((هر څه په دغه کتاب کې حقیقت دي))

# اورپه افغانستان کې

## ۱۹۱۴ ـ ۱۹۲۹


ریه تالي ستیوارت

ژباړونکی: دمحقق مرستیال عبدالحسیب حکیمی

«هرڅه په دغه کتاب کې حقیقت دي»

# اور په افغانستان کې

۱۹۱۴ - ۱۹۲۹

ریّه تالي ستیوارت



ژباړونکی: د محقق مرستیال عبدالحسیب حکیمی
تصحیح او ایډیټ: د سر محقق مرستیال جلات خان حکمتی

دغه کتاب:

# اور په افغانستان کې

ليکوال: ربّه تالي ستيوارټ
ژباړونکی: محقق مرستيال عبدالحسيب حکيمي
تصحيح او ايډيټ: د سرمحقق مرستيال جلات خان حکمتي
کمپوز او ډيزاين: عبدالغفور ميرويس
د پښتي انځور او ډيزاين: رضوان الرحمن ميوند
کمپيوټر او چاپ: ميوند خپرندويه ټولنه - سبا کتابخانه
لومړی چاپ: ١٣٨٣ لمريز
د چاپ شمير: ١٠٠٠ ټوکه
خپرندوی: ميوند خپرندويه ټولنه

کابل: صدارت څلورلاری، تيلفون: ٢٢٠٠٤٥٥ او ٢١٠٣٥٦٩
موبايل: ٠٧٠٢٨٤٩٥٤ او ٠٧٠٢٩٥٢١٤، پست بکس: ٥٢٢٥
پېښور: ډهکی نعلبندی، قصه خوانی بازار، تيلفون: ٠٢٥٦٥٥٢
موبايل: ٠٣٠٠٥٩٤٦٣٢٨، پست بکس: U.P.O. Box - 795
E-mail: maiwand@asia.com

# لړلیک

سرلیک | مخ

# یادونه

افغانستان حساس جغرافیایي موقعیت لري او له همدې امله یې تاریخي پېښې ګڼې، ګورې او ډېرې دي او افغانان بیا د خپلې خاورې او آزادۍ په ساتنه کښې ډېر حساس او ګړندي دي نو ځکه یې د یوه تاریخ جوړوونکي ملت ویاړ ګټلی دی. خو څرنګه چې د ویرونو او ویاړونو تاریخ یې یا پردیو لاسونو لیکلی، یا د غرض لاسونو او یا هم د استبدادي دربارونو تر تهدید او لاربښوونې لاندې لیکل شوی نو له دې کبله د دوی د اصلي او واقعي تاریخ منابع ډېر لږ په لاس کښې دي او ډېر لږ داسې آثار لرو چې د ملت د یوه باوري تاریخ له پاره کار ترې واخلو.

موږ اوس د منابعو په توګه اړه لرو چې ګڼ هغه تاریخونه چې خپلو یا پردو لیکلي، راغونډ کړو، ویې ژباړو، خپاره یې کړو څو د یوې درنې پانګې تر جوړېدو وروسته وکړای شو هغه تحلیل کړو، پرتله یې کړو او په نتیجه کښې د یوه ملي تاریخ لیکلو له انتقادي او پرتلیزې لارې ورسیږو.

«اوړ په افغانستان کښې» همداسې یو اثر دی چې زموږ د معاصر تاریخ له یوې حساسې دورې سره اړه لري، په خوره ژورنالستیکه ژبه لیکل شوی، داستاني تلوسې پکښې ځای پر ځای شوې او هم یې د معوماتو د باوري توب له پاره د انګلستان د پټو اسنادو په ملاتړ مطالب پاخه کړي او مستند کړي دي او هم یې افغانستان د د سفرونو له لارې له ځینې خبرو او خبیرو کسانو سره مرکې کړې او غوښتي یې دي چې خپل اثر هراړخیز کړي.

په دې اثر کښې ډېر داسې مطالب هم شته چې یو اړخیز دي، یا یې په اسنادو شک او رد کېدلای شي خو له دې ټولو سره- سره زما نظر دا دی چې د کتاب متن باید په بشپړه امانتدارۍ چاپ شي او بیا یو داسې عالم او څېړونکی یا یوه علمي ډله- چې په دې برخه کښې هر اړخیز

معلومات او اسناد ورسره وي د دی کتاب په رد ، سمون او یا ځواب کښې لیکنې وکړي او د داسې علمي سپیناوي له لارې لوستونکو ته حقایق ورسوله شي. دا به یوه علمی هڅه او هاند وي او له دې لارې به مونږ وکړای شو چې د خپل ملي تاریخ بابونه د غرضونو ، شکونو او مسخ کېدلو له دوړو او گردونو څخه پاک کړو.

په مینه حبیب الله رفیع
۱۳۸۰/۳/۲۸

# د علمي لارښود نظر

د پښتو څیړونو د بین المللي مرکز د تألیف او ترجمې د انستیتوت په غوښتنه او د ا.ج. د علومو اکادمۍ د هغه منل شوي علمي دود له مخې چې د هرې علمي پروژې په باب باید د هغې د علمي لارښود له خوا د نظر ور تکي ولیل شي، غواړم په نسبتاً لنډه توګه د هغه کتاب د ترجمې په باب یو څو ټکي ولیکم چې Fire in Afghanistan (اور په افغانستان کې) نومیږي او د محقق مرستیال ښاغلي عبدالحسیب حکیمي د دغه مرکز د ریاست د مخینې سپارښتنې او موافقې په اساس له انګریزي څخه په پښتو ترجمه کړې دی. دا خبره هم باید دیاره کړم چې، په دغه کار کې د ښاغلي حکیمي د لارښوونې کار ماته د ۱۳٦۲ کال په لومړیو میاشتو کې وسپارل شوه ځکه تر هغه د مخه محترم حکیمي لکه د نورو علمي غړیو په شان، هم د تألیف او هم د ترجمې دندې د علمي لارښود د مرستې څخه سیوا اجراء کولې او د دغه کتاب ژباړې ته یې لا د مخه پیل کړی و او انفرادي مرسته یې له ما او نورو باصلاحیته علمي همکارانو څخه ترلاسه کوله.

که څه هم دغه پنډ تاریخي کتاب (۷۳۵ لیکلي مخونه) په ژورنالیستیکي بڼه مګر د اوږدو، کله کله پیچلو، او زیات شمیر استعماري او غیر مستقیمو او نقل قول جملو په کارولو سره لیکل شوی دی، خو بیا هم ښاغلي حکیمي د یو شمیر هغو نمونیزو برخو په لوستلو او د هغه میتود په تعقیبولو سره چې زیاتره د لارښود له خوا ورته برابر شوی وه، د ترجمې په کار کې ژور مهارت پیدا کړ او د کتاب زیاته برخه یې پ نسبتاً کمه موده کې، ترجمه کړه. لکه څنګه چې پاس وویل شوه چې کتاب په ژورنالیستیکي

بنیه لیکل شوی، استعماری، نقل قول او پېچلي جملې پکې زياتې راوړل شوې دي، نو د زيات احتياط له مخې ښاغلي حکیمي د کتاب لومړی ترجمه په پنسل لیکلې وه او نو ځکه د بيا سمونې او سمې لیکنې په منظور هغه ته وويل شو چې د موازینو له مخې باید د کتاب ترجمه په رنګه قلم سره بشپړ شي. نو هغه و چې تر څو ترجمه يې له سره په قلم وليکله او دا ځلي هم په زياتو برخو کې يې له خپل لارښود سره مشوره وکړه او دغه پنډ کتاب يې ګواکې په خپل توان سره دوه ځلې ترجمه او تايپ ته يې چمتو کړ. نو دا واقعیت له مخې محترم حکیمي په دې ار کې هيڅ ډول هڅې نه دي سپمولې او د خپل لارښود مشوره يې تر پايه په نظر کې نیولې ده.

نو موړی کتاب چې یوې امریکایي ژورنالیستې Rhea Talley Stcuort (ریه تالي ستیورت په کال ۱۹٦۸ په ٦۱٤ مخونو کې لیکلې دی، په سر کې يې يوه د افغان سیاسي نقشه او لنډه مخکینۍ مطلب foreword لري او په پای کې يې د فصلونو یادښتونه او بیلیوګرافي په ځانګړې توګه په څو مخونو کې ځای په ځای شوې ده.

دغه کتاب چې په ۳۵ څپرکیو کې لیکل شوی او د افغانستان د معاصر تاريخ او سیاسي اجتماعي پېښو بهیر د امیر حبیب الله خان د وروستيو وختونو او د امیر امان الله خان د لس کلنې دورې او د هغه د زوال موده یعنې د ۱۹۱٤ تر ۱۹۲۹ کلونو پورې په تقریباً بې پردې او مفصله توګه څېړي او په لنډ ډول تر ۱۹٦٤ کال پورې موده هم يادوي، په خپل وار سره زما په نظر له ډیرو ښو او باوري کتابونو څخه شمیرل کیدای شي، لکه چې د هغه لیکواله د کتاب لومړی جمله داسې پيل کوي چې وايي، (په دغه کتاب کې هرڅه ريښتيا دي)... دا ځکه چې له څو نکتو پرته چې د فصلونو په يادښتونو کې ښودل شوي دي، ټول معلومات په هغو لومړي لاس منابعو او اسنادو باندې اتکا لري چې د برتانيې د امپراتورۍ د سیاسي او اطلاعاتي ناچاپ شوو پاڼو له لوستلو څخه په خاصه اجازه ترلاسه شوي دي. سربیره پر دې د کتاب لیکونکې افغانستان ته د دغه کار د بشپړولو او ثقه کولو له پاره (دری اوږده سفرونه) کړي دي او د دې په قول له باخبرو افغاني مقاماتو څخه يې په اصطلاح د «سکې د دابل مخ» په باب هم معلومات ترلاسه کوي دي. خو کاشکې چې دغه د «سکې بل مخ» د هغو اشخاصو تر نظر هم تیر شوی وای چې د امان الله خان د ترقي غوښتونکو پلانونو تأييدوونکي او تر پايه د هغه کلک ملاتړ هم وه لکه مرحوم داوی، غلام صدیق څرخي، او یو شمیر نور چې له بده مرغه د

کتاب لیکلو د څېړنې په وخت کې یا وفات شوي وو او یا لیکوالې ورسره تماس نه دی نیولی. څکه په دې صورت کې به د کتاب لیکوال نه یوازې د افغانانو له خولې د « تصور په توګه » ویل چې د امان الله خان د زوال له پاره « انګریزان د پردې تر شا ولاړ ووه » بلکې دا به یې په صراحت سره ویلي وچې، که څه هم د دربار داخلي حسادتوده او د مغرضینو توطئې، د یوې ستري روحاني کورنۍ له خوا د یو شمیر سرسختو قبایلو تحریکاتو او بالاخره پخپله د امان الله له خوا د مترقي پلانونو په تطبیق کولو کې له اندازې زیاته او بې ځایه بیړه او عجله او سیاسي خامي د هغه د زوال سبب شوي دي، خو د دغو ټولو نه زیات د امان الله خان ازادي غوښتونکي روحیه، له شوروي دولت سره د سیاسي نږدې اړیکو د تأسیسولو او بالاخره په نیمه وچه کې د امان الله خان د ورځ تر ورځې زیاتیدونکي نفوذ له مخې، انګریزانو هغه و نه شو زغملای او په داسې ماهرانه توګه یې د هغه مخالفین او خپل ګوډ ګیان د امان الله خان مخې ته راپورته کړل چې له هیواد څخه یې وتو ته مجبور کړ او افغانستان یې سل کاله نور هم د پرمختګ له کاروان څخه شاته وغورځاوه. په هر صورت، پخپله کتاب بیاهم د امان الله خان د دورې او د سقاو د زوی حبیب الله د بغاوت او د نادرشاه د کورنۍ د یو پر بل پسې د راتلو په باب هومره زیات معلومات د اسنادو په ژبه وړاندې کوي، چې سړی په ښکاره توګه د اماني دورې د سقوط په باب خورا ښه معلومات تر لاسه کوي. خو سره له دې هم بهرنیان د افغاني شخصیتونو او حالاتو په باب خپل ځانګړې تصورات نه پټوي. دا وه پخپله د کتاب په باب لنډ نظر.

اوس به راشو د ښاغلي حکیمي د ترجمې یا ژباړې کیفیت ته او وبه ګورو چې دغه پښتو ترجمه په څه توګه سر ته رسیدلې ده. په دې باب دا لاندې ټکي د یادونې وړ دي:

۱ - د ترجمې یا ژباړې له مهمو اخلاقي او علمي اصولو څخه یو هم امانت داري ده او د اصل متن مفهوم باید په بشپړه امانت داري سره دوهمې ژبې ته واړول شي. ښاغلي حکیمي د ترجمې دغه اصول له پیل نه تر پایه په بشپړه توګه په پام کې ساتلي دي او د لیکوال حق یې خوندي ساتلی دی.

۲ - په دغه ترجمه کې له تحت الفظي یا ټکي په ټکي ژباړنې څخه ډډه شوې ده او ښاغلي حکیمي پر ته له دې چې مفهوم ورڅخه پاتې شي، مطالب یې په آزادو او روانو جملو کې ادا کړي دي او د ترجمې عمومي بڼه روانه او بې تکلفه ده.

۳- په کتاب کې یو شمیر مطالب په سیاسي لحاظ د تأمل وړ دي. ښاغلی حکیمي دغه مطالب ترجمه کړي او شاوخوا یې کرښې ایستلي دي چې باید د ایډت او کره کتنې په وخت کې توجه ورته وشي. دا کار هم د ترجمې له ښیګڼو څخه شمیرل کیږي.

٤- په ترجمه کې د معنا او مفهوم د افادې له پاره له زیاتو او بې لزومه کلمو استعمالولو څخه ډډه شوې ده او په دې توګه د کتاب له غیر اقتصادي پنډوالي څخه مخنیوی شوی دی، که نه نو پښتو ترجمه به نږدې یو زر مخونو ته رسیدلې وه.

۵- د لیک دود بنیه یې د قناعت وړ ده د تنقیط اصول په پام کې نیول شوي او تر وسه وسه دا هڅه هم شوې ده چې د دري او عربي معادلو عبارتونو پرځای پښتو عبارتونه استعمال شي چې د دې ټکي په نظر کې نیولو سره د محترم حکیمي هاند او هڅې د قدر وړ دي.

څرنګه چې په دغه ترجمه کې محترم حکیمي ډیر زیار ګاللی او په ژباړه کې یې له خپل نهایي توان څخه کار اخیستی دی، نو په نتیجه کې زه هم د دغه کتاب د ترجمې، او هم د محترم حکیمي د علمي نوبتي ترفیع په باب خپل نظر په لنډه توګه داسې خلاصه کوم:

۱- د ټولو پورتنیو ټکو په پام کې نیولو سره زه د محترم حکیمي دغه علمي پروژه چې د محقق علمي رتبې ته د ترفیع کولو په منظوري سرته رسولې ده، مثبته ارزیابي کوم او په دې کار کې یې موفق او بریالی بولم. نو له دې امله هم د دغه علمي کار په بشپړولو سره او هم د محترم عبدالحسیب حکیمي د اجتماعي او علمي فعالیتونو په پام کې نیولو سره چې د علومو اکاډمۍ په د ننه او د باندې کې په دایمي توګه په هغو کې برخه اخلي، زه محترم حکیمي د محقق د مرستیال له علمي رتبې څخه د محقق علمي رتبې ته د ترفیع کولو مستحق بولم او لا یې زیات بریالیتوب غواړم.

۲- څرنګه چې دغه کتاب د افغانستان په معاصر تاریخ کې د (۱۲۹۲ - ۱۳۰۷ هـ.ش) کلونو په موده کې موږ د هیواد په تاریخي، سیاسي او فرهنګي اوضاع باندې او په تیره بیا د امان الله خان د لس کلنې له هیلو او امیدونو څخه ډکې دورې په باب او د

برتانوي استعمار او داخلي عناصرو د اختلاف ناخوالو په باب خورا زيات او په زړه پورې مستند معلومات وړاندې کوي نو د هغه چاپول د زياتې گټې وړ بولم او يقين دی چې د لوستونکو د زياتې استفادې وړ به وي.

۳- زما نظر دا دی چې تر چاپولو د مخه بايد نوموړی کتاب د هغو سياسي او اجتماعي نزاکتونو په نظر کې نيولو له پاره چې په اوسنيو شرايطو کې يې له پامه نه شو ايستلی، په جدي توگه اډيټ شي ځکه په دې کار سره به هم استفادې ته لا ښه چمتو شي او هم به يې علمي ښکلا او دروند والی لا پسې زيات شي.

په درناوی
محقق جلات خان حکمتی

# تقریظ

کله چې په ګران هیواد افغانستان کی د پښتو څیړنو بین المللی مرکز د یوی علمی او تحقیقی مؤسسی په توګه مینځ ته راغی، نو د دغه مرکز ریاست د خپلو اهدافو پر بنا د مرکز د علمی فعالیتونو په لړ کی د هیواد د یو شمیر نامتو پوهانو په مشوری سره ځینی علمی کتابونو، د ترجمی په پلان کې ونیول، له دغو کتابونو څخه یو هم د یوې امریکایی ژورنالیستې او لیکوالې، ریاتالی ستیوارت، اثر «اور په افغانستان کې» و چې د تالیف او ترجمی د څانګې یوه سابقه لرونکی استاد محترم عبدالحسیب حکیمی ته وسپارل شو.

ریاتالی ستوارت د اعلیحضرت امان الله د ژوند د پیښو د لیکلو له پاره په ۱۹۶۷ کال کې افغانستان ته راغله. د هغې د خپلو څرګندولو په اساس د امان الله په باب یی معلومات محدود و او افغانستان ته تو راتلو د مخه یی په دی برخه کی زیاتی څیړنی نده درلودی، ریاتالی په داسی وخت کې افغانستان ولید چې د امان الله له مرګ څخه څه ناڅه اووه کاله تیر شوی ود. کله چې هغه په کابل کی له الوتکی څخه کښته شوه د جشن وخت و، هغه جشن چې د اعلیحضرت امان الله په مشری د انګریزی استعمارګرانو د ماتی په ویاړ او د افغانستان د خپلواکی په غرض جوړ شوی و. ریاتالی د جشن مراسمو ته په هیښتیا کتل، ځکه دا وخت د امان الله نوم هیر شوی او په دولتی مراسمو کی د هغه په باب څرګندونی ونه شوی.

ریاتالی وایی چې دا وخت د افغانستان له تاریخ څخه د امان الله نوم پاک شوی وه خو په یو هیواد کې چې په سلو کی (۶۰) وګړی یی د سواد له نعمت څخه محروم وی، دا څه ارزښت نه لری.

دا هغه اشتباهات وو چې په لومړي سر کې ریاتالي ته پیدا شول او په خپل دغه اثر «اور په افغانستان کې» یې کښلي دي.

ریاتالي په دغو خیالاتو سره د امان الله په باب لیکنه او څېړنه پیل کړه او د امان الله د ژوند د پېښو په باب یې یو ښکلی تاریخي اثر برابر کړ چې په کرونولوژیک ډول د (۳۵) فصلونو لرونکی او په (٦١٤) مخونو کې لیکل شوی دی. دغه اثر د امان الله د بشپړې بیوګرافي په توګه د هغه له زوکړې سره د پیل او په مړینې سره یې پای ته رسیږي.

د کتاب لومړی فصل په (۱۸۹۲) کې د امان الله د زوکړې په باب دی او په هغه کې ریاتالي د امان الله زیږېدنه د افغانستان د ربښتیاني خپلواکۍ له پاره یوه نیکمرغي ګڼي په ورپسې فصلونو کې د بیلابیلو زماني مقطعو تر مینځ د امان الله څخه وړاندې د امیر حبیب الله پېښو ته کتنه شوې ده ورپسې د امان الله د پاچا کېدو او د هغه د اصلاحاتو په باب زیات فصلونه وقف شوي دي. په دغه برخه کې د کتاب غوره محتوا او مضمون یعنې د امان الله خان کورنۍ پالیسي او بهرني چارې په تفصیل سره بیان شوي دي. دغه راز یو لړ بین المللي مسایل د افغانستان په ارتباط تر څېړنې لاندې راغلي.

ریاتالي ستیوارت د شاه امان الله د سلطنت د سقوط په باب زیاته هڅه کوي چې د دغې تاریخي پېښې اصلي عوامل ومومي. هغې د شوروي پوهانو نظریې ذکر کړې او د دغو نظریو پر بنا د اماني سلطنت د سقوط علتونه زیاتره پرېهرنۍ لاس وهنې، په تیره بیا د انګریزي استعمار پر غلونه او تبلیغات ګڼل کیږي.

ریاتالي بیاهم د اماني دولت د سقوط د بهرنیو عواملو تر څنګ د درباري هیوارشۍ د مخالفت مسئله، د سقوط په کورنیو عواملو پورې تړلې بولي. ریاتالي په دغه وروستي حکم باندې د نورو غربي لیکوالو په څیر لکه پولادا او نور ټینګار کوي. خو سره د دې د بهرنۍ لاس وهنې مسئله هم نه ردوي او وایي چې هغې هڅه وکړه د همعصرو کسانو سره په دې ارتباط مرکې وکړي. هغه دا منې چې د امان الله د دولت په سقوط کې کورنۍ او خارجي عوامل په ګډه شامل وو.

د ریاتالي کتاب وروستي فصلونه د سقاو الدګوله، د امان الله تګ ایتالیا ته او بالاخره د دغه تاریخي شخصیت مړینه په تراژیدي بڼه شرح کوي.

ریاتالي د امان الله خان او د هغه د میړنې ملي احساس ته د قدرداني په، سترګې ګتلي

دی. هغه وائي چې کله چې د امان الله خپلوان له کابل څخه ایتالیا ته د ده لیدنې ته لاړل. نو د روغبړ په وخت کې د هغه یو، خپلوان غوښتل چې له جیب څخه یو توته ټکر وباسي او په هغې سره خپل بوټونه پاک کړي. پخوانۍ ملکې ثریا د امان الله خان منوري میرمنې ورته وویل: «گوره د بوټونو خاوري دي مه پاکوه دا د ښکلي افغانستان په پاکو خاورو خړ دی...!!»

د امان الله ژوند په ایتالیا کې د یوه غمجن اتل ژوند ته ورته دی. امان الله خان د افغانستان د معاصر تاریخ د اتل پاچا په توگه چې خپل ټول توان یې د خپل ملک د ترقي او عروج په خیال په کار اچولی وه په پردي ملک کې په ډیره خواري او نیستي سره تیر کړل.

ریاتالي وایي چې ده په ایتالیا کې د ترکانۍ له لارې د کور خرڅ برابراوه او حتی په یوه تنگسه کې یې د خپلې میرمنې جواهرات خرڅ کړل، ځکه امان الله په خپل هیواد کې د حکومت د اداري فن زده کړې وه بل څه کسب یې زده نه و.

ریاتالي ستیوارت د خپل دغه اثر په ایجاد د څه د پاسه (۱۳۰) مأخذو څخه استفاده کړې ده او د هغوی تر څنگ یې په کابل کې د خبیرو تاریخي شخصیتونو سره مرکې کړې دي. په دې توگه د هغې د اثر په لیکنه کې کتابي او ساحوي میتودونه دواړه په کار اچول شوي او هغه ته یې د یو علمي اثر بڼه ورکړې ده. د دغسې تاریخي مدارکو پر بنا مونږ ویلی شو چې (اور په افغانستان کې) د هغو کتابونو په لړ کې راځي چې زمونږ د معاصر تاریخ د یوې په زړه پورې دورې په رڼا کولو کې یې ساري مرسته کوي.

د دغه کتاب او د هغه د محترا په باب د دغو لنډو څرگندونو وروسته غواړم د محترم معاون محقق عبدالحسیب حکیمي له خوا د هغه د پښتو ترجمې په باب څه ولیکم:

محترم حکیمي د کابل پوهنتون د انگریزي ژانگې فارغ او څو کاله په کابل پوهنتون کې د انگریزي ژبې د استاد په توگه تیر کړي ده. دغه راز محترم حکیمي د انگریزي ژبې د تدریس د میتودولوژۍ له پاره فلپین ته تللی او د انگریزي ژبې د لوړې زده کړې په اړوند یې د فوق لیسانس شهادتنامه یې د استرالیا له سدني پوهنتون څخه ترلاسه کړې ده. په دې سبب محترم حکیمي د (اور په افغانستان کې) د کتاب په ترجمه کې په بریالي توگه وړاندې تللی، او زه یې دغه لاندې ټکي د ستایش وړ بولم:

۱- د محترم حکیمي د ترجمې سبک روان او انگریزي اصطلاحات یې په روانه پښتو ترجمه کړي دي.

۲- د ترجمې ټول اصول د کتاب په ترجمه کې په پام کې نیول شوي، له تحت الفظي او ټکي په ټکي ترجمې څخه زده شوي ده. او ټول مطالب یې په پوره امانت دارۍ سره ترجمه کړي دي.

۳- محترم حکیمي د یوه ډېر احتیاط کار مترجم په توګه د کتاب ترجمه تر سره کړې ده. د لیکوال حق خوندي ساتلی، په ترجمه کې یې زواید او حاشیه روي نه لیدل کېږي.

٤- په ترجمه کې د بې ځایه او بې لزومه لغتونو له استعمال څخه ډډه شوې ده. ټوله ترجمه د انګریزي متن له مفهوم سره پرمخ تللې ده.

۵- محترم حکیمي د کتاب سیاسي اړخونو ته پاملرنه کړې او هغه یې په خپله ترجمه کې په نښه کړي او کرښې یې ورنه تاو کړي چې دا کار د ترجمې د ښېګڼو ښکارندوی دی. زه په داسې حال کې چې د دغه کتاب ترجمه په مجموع کې عالي او مثبت ارزیابي کوم د ښاغلي حکیمي د دغه علمي فعالیت د ستایش وړ بولم.

څرنګه چې محترم حکیمي (اور په افغانستان کې) کتاب د یوه علمي کار په توګه د نوبتي علمي ترفیع له پاره ترجمه کړی، نو زما په نظر د محقق علمي رتبې ته د محترم حکیمي ترفیع د دغه ترجمه شوي اثر وړاندې کول یو مناسب او پرځای کار بولم او زه یې د محقق د مرستیال له علمي رتبې څخه د محقق رتبې ته محترم حکیمي مستحق ګڼم. هیله کوم چې محترم حکیمي خپل هیواد ته د همدغې نورو علمي خدمتونو مصدر وګرځي.

یادونه: د (اور په افغانستان کې) اثر د زیاتې استفادې له پاره د چاپ وړ ګڼل کېږي خو څرنګه چې په هغه کې په سیاسي لحاظ یو شمیر مطالب شته او ښاغلي حکیمي هغه مطالب په نښه کړي دي، نو زه پیشنهاد کوم چې د دغې سیاسي نکاتو له اصلاح او اډیټ کولو وروسته دې هغه د هیواد د علمي محافلو او علاقمندانو د زیاتې ګټې اخیستنې په غرض چاپ ته واستول شي.

په درناوۍ

د سر محقق مرستیال

نصرالله سوبمن منګل

# تقریظ

کتاب حاضر زیر عنوان آتش در افغانستان (Fire in Afghanistan) نگارش ریاتیلی سیتوارت (Rhea Talley Stewart) اثر نافعی است که بر زوایا و جوانب تاریخ معاصر کشور به ویژه از سال ۱۹۱٤- ۱۹۲۹ که آغاز عرصه تحول پسندی و تجدد در حیات فرهنگی، اجتماعی و تحرکات سیاسی و آزادیخواهی علیه نفوذ سیاسی برتانیه است، واقعبینانه روشنی می اندازد.

به تأسی آنچه گفته آمد، کتاب مزبور که در سال ۱۹۷۳ به طبع رسیده است، دارای ۳۵ فصل و ٦١٤ صفحه و یك مقدمه میباشد. به گونه ای که سه فصل نخستین کتاب بیانگر شرح حال (Biography) امیر امان الله و هم چگونگی دربار امیر حبیب الله پدر امیر امان الله، در رابطه به ججنبشهای سیاسی دیگر ناشی از وقوع جنگ اول جهانی ۱۹۱٤- ۱۹۱۸ پدیدار گردیده، به شمول حادثهء کشته شدن امیر حبیب الله پدر امیر امان الله و غیره مطالب مربوط میباشد. همانطور فصول متذکره این اثر موضوعاتی را در زمینه تمایلات و فعالیت های مشروطه خواهی یك عده روشنفکران که اصلاً حامیان نهضت های جدید در ساحات سیاسی، فرهنگی به ویژه استرداد استقلال افغانستان بودند و عکس العمل های دولت برتانیه در رابطه به جنبش های برجسته و وقایع بزرگی ایست که بعد از استرداد استقلال افغانستان در سال ۱۹۱۹ به اثر رهبری خردمندانه و جسورانه امیر امان الله که این امر الهام بخش خواست مردم ما بود، منجمله: طرح سیاست داخلی و خارجی و مسایل بین المللی کشور و بنیان گذاری اصلاحات فرهنگی، اجتماعی، اداری و مالی که کلیه آن مبتنی بر نهضت های جدید عصر بوده است و از طریق تاسیس موسسات قانونی به خصوص تدوین اصول اساسی، فرامین و لوایح که در طول فرمانروایی ده سالهء امیر امان الله در حیات مردم تجلی یافت، میباشد. همانطور کتاب «آتش در افغانستان» بر ماجرای

سقوط حتمی دولت امیر امان الله توسط حبیب الله کوهدامنی (کله کانی) در سال ۱۳۰۷ و دوره، فرمانروایی ۹ ماهه امیر متذکره به وضاحت روشنی می اندازد. نکات جالبی که در رابطه به موضوع قابل یاد آوری میباشد: یکی آنست که نویسنده صحنه، کنار رفتن امان الله را از اریکه قدرت و ترك نمودن کشور و توطن او در دیار روم که آمیخته با رقتها و الامهای بوده، خاصتاً اندیشه، دوری از وطن و مشکلات اقتصادی ای که به آن قهرمان تاریخ معاصر افغانستان روی آورد، به شکل دراماتیك نمایان میسازد: و دیگر آنکه محترمه ستیوارت در نهایت امر میکوشد تا بتواند پرده از روی کلیه عواملی که منتج به زوال سلطنت امانی شد، علی الخصوص مداخلات قدرت های خارجی و توطئه مغرضانه، بعضی از اعمال و اراکین دولت و مخالفت یك فامیل متنفذ مذهبی که الحق در مورد توفیق نصیب نویسنده شده است، پرده بردارد.

به قرار نبشته، نویسنده به خوبی مشهود میگردد که امیر امان الله مرد وطن پرست بوده و میتوان از او درس وطن دوستی فرا گرفت.

ادعا میشود که امیر امان الله صحنه ارای حصول استقلال مجدد افغانستان بوده که این امر به کشور حیات سیاسی، فرهنگی و اجتماعی مبتنی بر تجدد به ارمغان آورد. چنانچه سرجارج ارکیپل (Sir George R Kepple) در زمینه گفته ای دارد که درین کتاب مندرج است. «امان الله آتش بر افروخته است که خاموش ساختن آن زمان درازی میباشد.»[۱] به صراحت میتوان ادعا کرد که مولف به واقعیت های تاریخی مربوط آن دوره درست پی برده و بدون کوچکترین جانب داری، آن را بازتاب داده است، به نحوی که برای تثبیت صحت گفته هایش از گفتار های دیگران در مورد نقل قولهای به جا آورده است. بیانگر میشویم که درین کتاب راز های نهفته استعماری برتانیه بدون رعایت اینکه حفظ حیثیت و وقار آن کشور، مطمح نظر باشد، تجلی یافته است. چنانکه از قول نویسنده و سیاست مدار بزرگ افغانی علامه محمود طرزی مندرجه این اثر گفته، بالا صدق می یابد: «برتانوی ها در جهت تحقق اهدافشان (اغلباً اهداف استعماری نویسنده تقریظ) شیوه های مرموزی که همواره از انظار نمیتوانست پنهان بماند، بدون آنکه رعایت مصالح وقار و یا عزت خود شان در زمینه مطمح نظر بوده باشد، از پیش مینگرند»[۲]

---

1 - "Amanullah has lit a fire that take us a long time to put out

2 - "The ways of British are inscrutable but they always seem to obtain their own ends without comprising their dignity or their honor."

لازم به تذکر است، در پهلوی آنچه گفته آمد نویسنده با آنکه یك ژورنالیست امریکایی است و قسمتی از مطالب کتاب را به شیوه، ژورنالیستیك مبنی بر کاربرد و جملات متعرضه و حاشیه روی بررسی کرده است، اما در امر تدوین اثر «آتش در افغانستان» قسماً شیوه های علمی تاریخ نگاری معاصر را تیز به کار بسته است. یکی آنکه مولف کوشیده است وقایع مندرجه کتاب را مبتنی بر استفاده از مدارك اصلی و منابع دست اول (۱). ترتیب اثر دهد و این کار را نویسنده از طریق مراجعه به آثار و مدارك معتبر به ویژه اوراق سیاسی و محرم امپراتوری برتانیه آنچه در کتابخانه های انگلستان و کتابخانه های دفاتر هندوستان (۲). موجود بوده است، به شمول وثایق و یادداشت های آرشیف دفتر هندوستان (۳) که همه مدارك اصلی یاد میشوند، امکان بخشیده و از جانبی رفتن او به سراغ حقایق و رویداد های تاریخی مربوط به مواضع وقوع حوادث یعنی کابل و غیره، نقاط مربوط و برداشت واقعی از آن به نفع تدوین کتاب مزبور و هم به راه انداختن مفاهمه و مصاحبه های با یك عده افغانهای وارد به موضوع و یا آنانی که از نحوه و چگونگی وقایع رویداد های تاریخی آن دوره به شکلی از اشکال معلوماتی در اختیار داشتند، بیانگر این امر است. چنانکه برای نیل به این هدف چهار سفری به کابل نموده است.

لازم به تذکر است که نویسنده در رابطه به موضوع در مقدمه کتابش چنین میاورد:

«منابع عمده اصلی یادداشت های اول من، اوراق و یادداشت های سیاسی محرم امپراتوری برتانیه بوده که به مثابه، آثار نشر نشده در کتاب خانه دفتر هندوستان و دفتر ثبت اوراق هندوستان مربوط به تاج شاهی انگلستان موجود است.»

به دین صورت میتوان گفت که وقایع مندرجه کتاب مزبور که به مدارك و منابع اصلی و معتبر بسته گی دارد و واقعبینانه بررسی گردیده، در عرصه، تاریخ نگاری از اعتبار قابل ذکری برخوردار است. چنانکه مولف هم در مورد گفته ای دارد: «همه وقایع مندرجه کتاب در همه موارد متکی به واقعیت است.»

در باره، اهمیت و ارزش ترجمه کتاب مزبور باید اذعان نمود که این اقدام مرکز محترم تحقیقات بین المللی پشتو (د پښتو څېړنو بین المللی مرکز) اکادمی علوم جمهوری افغانستان مبنی

---

۱- مراجعه شود به پیشگفتار کتاب India office Records.

2- Primary Sourc

3- India office Library

بر ترجمه این اثر تاریخی مهم به پشتو که از یك زبان علمی و ادبی کشورما است، کاریست پرارج و درخـور ستـایش. بـه یقین تـرجـمـه، پشتـو این اثـر به نوبه، خـود نه تنهـا منتج به غنامندی تاریخ ملی مـا میشـود، بلکه در امر تکوین فـرهنگ مردم مـا در یك عـرصـه، معین تاریخ بالنوبه گامیست به پیش.

مسلماً بررسی و مطالعه، این اثر گرانمایه به پژوهشگران تاریخ و فرهنگیان کشور در جهت برداشتهای موثرانه و واقعبینانه از حقایق تاریخی دوره، امانی و چند سال پیشتر آن که متاسفانه تا اکنون بنابر ملحوظاتی زمینه های بررسی صائب آن چندان میسـر نبوده است، مساعدتهای فراوانی خواهد بود.

همانطور نحوه کار برگرداننده، تاب «آتش در افغانستان»، دانشمند محترم معاون محقق عبدالحسیب حکیمی به خاطری که وی به هر دو زبان (انگلیسی و پشتو) واجد فهم علمی و ادبی و صلاحیت های مسلکی مناسبی میباشد، خیلی مثبت و درد بخوری ارزیابی میشود. پیوست به گفته بالا ترجمه این اثر به پشتو به واقع از اهمیت و ارزشهای گونه گونه، در زیر از آن یاد آور میشویم، برخوردار است:

۱- متن ترجمه، کتاب با متن انگلیسی آن کاملاً منطبق بوده و خالی از اشتباهاتست، به نحوی که خواننده ناگزیر نیست در فهم مطالب و محتوای مندرجه اثر متذکره راه ابهام از پیش گیرد.

۲- در امر ترجمه کاملاً رعایت امانت و اصول اخلاقی و علمی نمایان است.

۳- متن کتاب تحت اللفظی ترجمه نشده، بلکه مطالب بدون اینکه تحریفی در الفاظ و عبارات پدیدار باشد و یا کاستی های معنایی به خود یابد، به پشتوی خیلی روان و قابل فهم افاده شده است.

٤- همانطور برگرداننده در امر ترجمه از کاربرد کلمات و اصطلاحات بی لزوم جداً دوری جسته و در عوض از اصطلاحات و کلمات مربوط و وارد به موضوع به وجه احسن تحلیل و تفسیر درست و به جا به عمل آورده است، به خصوص که جهات سیاسی موضوعات مورد بحث، با برداشتهای درستی که از آن محترم حکیمی نموده است، در نهایت دقت بدون آنکه در مورد جانب داری مترجم پدیدار باشد واضحاً ترجمه گردیده است.

۵- در کتاب برخی موضوعات قابل سوال وجود دارد که مترجم در نهایت دقت بدان ملتفت

شده و به حیث یك برگرداننده، ماهر در حین ترجمه به کلیه آن انگشت اشاره گذاشته شده است.

برای اینکه از فقره های متذکره در حین خوانش تعبیرهای نادرستی صورت نگیرد، به دور همه، آن خط کشیده تا اگر در مورد نیازی به تفسیر مجدد احساس نشود، خواننده گان به آسانی متوجه شوند، که میتوان این کار را از صفحات قابل ذکری یك مترجم آگاه و وارد به مسلك دانست.

در خاتمه گزارش کتاب «آتش در افغانستان» به زبان پشتو واجد ارزش علمی، فرهنگی و تاریخی ارجمندی در زمینه، افغان شناسی معاصر برشمرده میشود. متمنی است کتاب به عنوان یك اثر تاریخی و پر ارجی مورد توجه و استفاده محققان و پژوهشگران به خصوص علاقه مندان تاریخ کشور قرار گیرد. متذکر میشویم که محترم حکیمی آن طوری که در سطور پیشین یاد آوری شد، کار ترجمه کتاب را از متن انگلیسی به پشتو به درستی انجام داده است، بنابران وی مستحق ترفیع از رتبه، معاون محقق به رتبه بلندتری (محقق) میباشد. و از جانبی نظر به اهمیتی که این نوع آثار دارند، تقاضا میگردد که مرکز محترم تحقیق بین المللی پشتو بنابر وظیفه، ملی و میهنی ای که دارد در پهلوی سایر خدمات ارجمند علمی و فرهنگی خویش که تاکنون بدان توفیق یافته است، به چاپ اثر مربوط اقدام لازم نماید. به امید موفقیتهای بیشتر مترجم در امر ترجمه، همچو آثار و پیروزی های بیش از پیش مرکز محترم تحقیق بین المللی پشتو در امر گسترش علم و فرهنگ کشور.

با احترام

معاون سرمحقق محمد محسن پرملی

# سریزه

دغه کتاب یوې پیاوړي امریکایي ژورنالیستې ریاتالي ستیوارت د داسې لومړي لاس آرشیفي اسنادو پر اساس چې د دې په قول هر یو یې له تر لږه پنځوس کاله پټ ساتل شوي وو، لیکلی دی، لکه چې هغه د خپلې سریزې په لومړي جمله کې ادعا کوي چې، «هرڅه په دغه کتاب کې حقیقت دي.» او هغه وايي چې له یو لږ شمیر جملو پرته چې د فصلونو په لمن لیکونو کې لست شوي دي، نور نو هره وینا او هر مطلب او نقل قول کیدای شي چې په اسنادو سره ثابت کړي شي. په خپله لیکواله هم اعتراف کوي، چې امکان لري یو شمیر لوستونکي د دې په لیکنه باور و نه کړي او ښايي چې ځینې هغه په فانتیزي او کیسه پردازي باندې تورنه کړي، خو ریا تالي ستیوارت په کلکه د خپلو اسنادو او لیکنې دفاع کوي او وايي چې دغه اسناد او ویناګانې چې را نقل شوي دي، د هغه وخت د برتانیې د مرکزي دولت او برتانوي هند د تکړه جاسوسانو او سیاسي کارکوونکو له خوا چې په نه ستړي کیدونکو هڅو سره یې په هند او افغانستان کې یې وظیفې اجرا کولې، تهیه شوي دي.

په دغو سیاسي کارمندانو او بشپړو او نیمه جاسوسانو کې یو شمیر هندي مسلمانان یا ښایي مسلمان دوله هندیان لکه حافظ سیف الله هم شامل وو چې په کابل کې یې د برتانوي هند د استازي په توګه دنده درلوده. دغه سړي که څه هم ظاهراً مسلمان و خو په پټه د انګریز استخباراتي نماینده هم و، او غیر اسلامي جاسوسي وظیفه یې هم په یوه اسلامي هیواد افغانستان کې د یوه مسلمان باچا یعنې امیر امان الله پر ضد او د انګریزي استعمار په ګټه سرته رسوله.

په هر صورت، حقایق که واقعاً حقایق وي، «له ځانه خبري کوي» او ریاتالی ستیوارت په دغه کتاب کې چې له ۱۹۱۹ ع کال (۱۲۹۸ ش کال) نه تر ۱۹٦۹ ع کال (۱۳٤۸ ش کال) پورې موده نیسی، اساساً د کتاب ستره برخه د امیر حبیب الله د امارت د دورې د پای کلونو او د امان الله خان د قدرت لاس ته راوړلو او د هغه د زوال مـوندلو دورې یعنی د (۱۹۱٤ - ۱۹۲۹ م) (۱۲۹۳ - ۱۳۰۷ هـ.ش) کلونو پیښوته وقف کړې ده. خو په عین وخت کی د سقاو د زوی د ۹ میاشتنی کړکیچ او اړو دوړ څخه علاوه، تر ۱۹۳۳ ع کال (۱۳۱۲ هـ.ش کال) پورې د محمد نادرشاه څلور کلنه دوره او دا چې هغه څه ډول قدرت ته ورسید هم په تفصیل سره بیان شوې دی. له دغه را هیسې موده یعنې د محمد ظاهرشاه دوره تر ۱۹٦۹ ع کال (۱۳٤۸ هـ.ش کال) پورې یوازې په سرسرې توګه تر نظره تیر شوې ده. لکه همـاغسې چې لیکواله د کتاب په پیل کی د هیواد توپوګرافی او لرغونی تاریخ ته لنډه کتنه کوي.

د کتاب ویش د فصلونو په اساس پنځه دیرش فصلونه کیږي چې ټول په (٦١٤) مخونو کی لیکلی شـوي او په پای کی د فـصلونو یادداشـتـونه یا لمن لیکونه او بلاخـره مـفـصله ببلیوګرافی یا ماخذونه راوړل شوی دي چې یو خورا پنډ کتاب تري جوړ شوي دي.

لکه څرنګه چې د کتاب لیکواله یوه ژورنالیسته ده، نو همـاغسې یې د کتاب فصلونه هم په کرونولوجیکه توګه یعنی د کلونو او میاشتو او حتی ورځو په ترتیب سره لیکلی دي چې د پیښو په ارتباط یوه نیتیه له بلی څخه بیلولای شو، او په حقیقت کی کیدای شی دغه ستر سیاسی - تاریخی کتاب د امانی دورې او تر هغه د مخه او وروسته ځو کالو یو خورا شتمن او له معلوماتو ډک مستند پیښ لیک وبولو.

«اور په افغانستان کې» یې د دغه کتاب نوم اینبی دي. په خپله دغه نوم لکه څومره چې جالب دی په همـاغـه اندازه د برتانیی د وخت د خارجه وزیر Sir George Lcepple کیپل دسیاستمدارۍ رمز او د افغانستان او خصوصاً د امان الله پر ضد د برتانیی بیانونکی هم دي، ځکه هغه یو وخت ویلی و، چې، امان الله په افغانستان کی داسی اور لګولی دي چې تر څو دغه اور مړ کوو مونږ به له زیاتو ستونزو سره مخامخ کړي.

د امـان الله خـان د نوښـتګرۍ لس کلنی دورې (۱۹۱۹ - ۱۹۲۹) او د هغـه د ترقی غوښتونکو پلانونو او په پای کی په زیاته خواشینی سره د دغو پلانونو د شنډولو او د هغه د زوال او سقوط په باب کورنیو او بهرنیو پوهانو ډیر څه لیکلی دي او لاهم د دغی دورې له

عبرت ډک درس زيات شمير پوهانو له نظره نه دي غورزيدلی او په دې باب ليکنې او ګروېږنې کوي. د دغه کتاب ليکواله دا خبره تاييدوي چې د امان الله خان د ناکامولو او زوال په باب ټول افغان پوهان په دې عقيده دي چې تر بل هرڅه د انګريزي استعمارګرانو لاس وهنو او د سيسو ستر رول درلود. د افغانستان زيات شمير نالوستي مګر زيرک اوسيدونکي هم دغه پړه په انګريزانو باندې اچوي. د امان الله په وجود کې نه يوازې د افغانستان د استقلال او خپلواکۍ پلان عملي کړي شو بلکې د هغه له اندازې زيات شهرت او محبوبيت حتی برتانوی هند هم له خطر سره مواجه کړی و. انګريزانو اصلاً غوښتل چې د افغانستان د بهرنيو اړيکو په کنترول سره دغه هيواد د هند په لور د تزاري حکومت او بيا د شوروي دولت د احتمالي حرکت په مقابل کې حايل وګرځوي، خو ان د امير حبيب الله په دربار کې امان الله خان او د هغه ډله چې د محمود طرزي د لاربښوونو او ليکنو تر اغيزې لاندې راغلي وو، نه يوازې د افغانستان بشپړه خپلواکي يې غوښتله، بلکې هيله يې درلوده چې د نورو پرمختللو هيوادونو په څير افغانستان هم يو پرمختللی هيواد شي، او دغه هيله يې هغه وخت لا پسې قوي شو چې د پلار له ناڅاپي وژل کيدو وروسته دې په خپله د افغانستان پاچا شو، او کله چې يې اروپا ته يو اوږد سفر وکو او بهرنی نړی يې په سترګو وليدله.

د ده په مقابل کې د برتانيې د حکومت ضديت خصوصاً هغه وخت لا پسې زيات شو کله چې د شوروي او افغانستان ترمنځ دوستانه اړيکې ټينګې شوې. د هند برتانوي حکومت يو وخت لندن ته ليکلي و چې، «هيڅ داسې نښې نښانې نشته چې په تخت باندې د امان الله له ساتلو څخه به مونږ ته کومه ګټه ورسيږي.»

د انګريز يوه جنرال ادوارد بارو، د امان الله په پرتله د هغه ورور عنايت الله غوره ګاڼه چې د افغانستان پاچا شي، ځکه ده ويل چې امان الله په وطن کې انګريزي ضد احساس توليد کړي دي حال دا چې عنايت الله انګريزی ضد مفکوره نه لري. په خپله د هندوستان د نيمې وچې خلک د امان الله په نسبت سخت خوشحاله او خوشبين وو. هلته يو وخت د يوه مسلمان روحاني نعمت الله له خولې داسې اوازه خپره شوه چې، دغه پير لا پخوا ويلي و، چې انګريزان به سل کاله پر هندوستان باندې حکومت وکړي او بيا به لويديځ لورته يو پاچا راپيداشي او هغه به هندوستان تر خپلې قبضې لاندې راولي. د دوی په نظر او دغه سل کاله پوره شوي وو، او دغه د هند په لويديځ کې پاچا په خپله امان الله خان و.

انګریزانو له دغه ډول انګازو او دارنګه محبوبیت څخه هم ویره درلوده. ځکه په نیمه وچه باندې د خپل تسلط د ماتیدلو علایم یې په کې لیدل. او په غوڅه سره انګریزان د افغانستان د استقلال له بیرته اخیستلو وروسته په دې فکر کې شول چې د افغانستان له پاره د خپلې خوښې « یو مناسب امیر پیدا کړي. »

د شوروي دولت په ارتباط انګریزانو یو ځای لیکلي و چې وایي، امیر باید وهڅول شي چې د بلشویزم په مقابل کې د عایق په توګه خپل ګوښه توب وساتي. خو امیر امان الله چې له استقلال ګټلو وروسته یې هیڅ ډول سیاسي تجرید او ګوښه توب نه غوښت او نه یې هیڅ چاته دا وعده ورکوله، چې نصیحت او غوښتنه یې خامخا په پام کې وساتي. هغه عملاً وغوښتل چې له شوروي دولت سره هم دوستانه اړیکې ټینګې کړي او همداسې یې وکړل. او دې کار د انګریزانو له خوا د امان الله خان د داخلي او بهرنیو مخالفینو د تحریکولو لا ښه زمینه برابره کړه او غوښتل یې چې دغه پاچا سقوط وکړي.

لکه چې د مخه مو وویل، د کتاب ډیره ستره برخه د ۱۹۱٤ څخه تر ۱۹۲۹ کلونو پورې سیاسي - اجتماعي پیښو ته وقف شوې ده. په لومړي ټریواله جګړه کې د برتانوي هند د حکومت په پیشنهاد د امیر حبیب الله وژل کیدل، د دریم افغان - انګلیس جګړه او د هیواد د خپلواکۍ، د امان الله خان له خوا بیلا بیل نوښتونه او د هغو په مقابل کې د وخت د لویو جرګو عکس العملونه او په هیواد کې د دغو ترقي غوښتونکو پلانونو اثر او د انګریزانو او ځینو روحانیونو عکس العملونه او په نتیجه کې د امان الله ناکامول او د سقاو د زوی حبیب الله او تر هغه وروسته د نادر شاه او د هغه د کورنۍ منځ ته راتګ په زیات تفصیل سره بیان شوي دي، او په هر مورد کې ځای په ځای نقل قولونه او ریپوټونه د هري موضوع په ارتباط په مستند ډول را وړل شوي دي. د امان الله د ناکامۍ په ارتباط یو بل امریکایي تاریخ پوه لیون پولاده په خپل یوه کتاب « ریفورم اینډ ربیلین » (اصلاحات او اغتشاش) کې وایي چې، د یوه رهبر له پاره دري غوره صفات درلودل لازمي دي. لومړی باید هغه یو تکړه تولنپوه وي. دوهم باید یو تکړه اداره چي وي، او دریم باید چې یو رهبر یو تکړه پلان کوونکی او طراح وي. دغه لیکوال وایي چې له بده مرغه امان الله خان له دغو دریو لازمي صفاتو څخه یوازې یو ستر صفت درلود او هغه دا چې دي یو ډیر زړور او تکړه پلان جوړوونکی او طراح و. او د دغه لیکوال په نظر د خپل ټولني

ژوره پوره او اداری نبوغ یی نه درلودل، نو ځکه ناکامه شو او افغانستان د ترقی له کاروان څخه وروسته پاتی شو.

په هر صورت، تالی ستیوارت، نه یوازې د انگریزانو ناوړه لاس وهنی په تفصیل سره بیانوي، بلکې په عین حال کی په خپله د امان اللّه له اندازې زیاته خوش باوري او بیړه، هم له نظره نه غورځوي. خو د دغو تر څنگ د هغه د درباریانو او حتی نژدې خپلوانو لکه د هغه تره نصر اللّه خان، د ماما زوي علی احمد، شیر احمد او نورو لوړ رتبه مامورینو توطئی او مخالفتونه هم بې برخې نه بولی. همداشان د هیواد د سترو پرگنو بیسوادي او ناپوهی چې له هغو څخه انگریزانو ته د هر ډول ناوړه گټې اخیستلو زمینه برابریدله هم د امانی دوري په زوال کی موثر گڼی. لنډه دا چې تالی ستیوارت له هره پلوه کوښښ کړي دي چې د کتاب د لیکلو په وخت کی د افغانی او بهرنیو پوهانو او تر ممکنه حده د امانی دوري د واردو اشخاصو د نظر په لاسه کولو سره دغه کتاب یو واقعاً جالب، ژور او علمی اثر وگرځوي او په دې خبره باندې چې، «هرڅه په دغه کتاب کی حقیقت دي» د کتاب په لوستلو سره په خپله لوستونکی دا قضاوت کولای شی چې واقعاً هم «حقیقت دي» او که نه.

زما په نظر د دغه کتاب لوستل د هر افغانی لوستونکی له پاره زیاتی گټې درلودونکی دي، ځکه د هیواد د تاریخ یوه ډیره مهمه مقطع په خورا زیات تفصیل او مستنده توگه په کی بیان شوي دي. او همدا وجه وه چې د کتاب ژباړنه ماته څو کاله د مخه رسماً سپارل شوي وه او زما هیله ده چې په دې لاره کې می گرانو وطنوالو ته څه خدمت کړي وي.

عبدالحسیب حکیمی

# مخکني خبري

په دي کتاب کی هرڅه حقیقت دي. هر بیان، هره اخیستل شوي یادونه، مستند کیدلی شی او له یو څو استثناوو پرته چې زما د فصلونو په یادداشتونو کی لست شوي، نور ټول له اصلی منابعو څخه دي.

زما غوره اصلی منبع د برتانیا د امپراتوري سیاسی او پټی پانی دي چې په «انډیا افس لایبوري» او «انډیا افس ریکارډز» کی د شاهی حق الطبع د ناچاپ شویو موادو په ترڅ کی مطالعه شوي او ما د علیاحضرتی د اوراقو د دفتر د کنترولر په اجازه تري استفاده کړي ده. زیات شمیر لوستونکو ته به دا ګرانه وي چې باور وکړي چې یوي امپراتوري کولی شول په دي کتاب کی راغلی تشریحات درج کړي او یو شمیر په ما باندي د کیسه جوړونکی ګومان کوي. هیڅ یوه کلمه کیسه نه ده. برتانیی د خپلو ټولو رسمی کنفرانسونو ستینوګرافیک رپوټونه برابر کړي دي. یوه برتانوي دفتر له یوه مقام لرونکی افغان سره له مرکی وروسته سملاسی دهغی یو یادداشت برابر کړي چې په هغه کی د قوسونو د ننه عبارتونه او هراړخیزی یا دوتی او حتی زیاتره سطحی څرګندونی او اشاري راغلی دي. پوځی اتشی په خپل ورځنی یادداشت کی هر ډول فعالیتونه یادداشت کړي. حتی که د دغه فعالیت اړیکه تصادفاً د برتانیا له امپراتوری سره ډیري لیري بریښیدله. پټ خدمت اغیزمن و، ځکه دا سیاسی مامورین وو چې صحنه یی په ډاګه څیړله. دوي د یوه اوښ والا او یا سوداګر د بوي تصادفی تبصري په ارزښت پوهیدل. او زه د کوچنی موقف لرونکو افغانانو او هندیانو سره داسی مرکی لرم، (کله کله زه په هغو خبرو اترو شکمنه کیدلم چې په چای خانو کی به سطحی ډول اوریدل کیدلی) چې ډیرو

کوچنیو موضوعاتو ته دومره پاملرنه شوي، چې سړي فکر کوي هغه به دیوه عامه اداره کوونکی پر ځای یوه ناول لیکوونکی له خوا کښل شوي وي. که چیري یو لوستونکی په دي تعجب وکړي چې زه څنګه دومره زیات شمیر پټ کسان وپیژنم، نو دي دي یقین وکړي چې دغه حقایق د لندن په رسمي آرشیفونو کی موندل کیږي. همدارنګه دي دي دا په یاد ولري چې یو انګریز څنګه د امپراتوري په بهرنیو چوتیو کی یوازي کیدلی شو او څنګه یې د لاري په سر تیریدونکو خلکو سره په لیواله بوخت کیدلو، د وخت تیرولو داد ترلاسه کاوه. دي دي په یاد ولري چې د برتانوي ماموریتو د پاملرني له پاره چې د نا اشنا ځمکی سره په دلچسپي کی ډوب شوي وو، یو نوم اختراع شوي و، چې دا نوم «افغانستانیزم» و.

د لندن په آرشیف کی زما څیړنه هغه وخت لا پیاوړي شوه چې په افغانستان کی د څلور ځله لیدنو کتنو په ترځ کی د پوهي او مسؤلیت له خاوندانو سره وغږیدم، او دوي نه یوازي ماته نور معلومات او کیسې په لاس راکول، بلکی د انځورونو بل مخ یې راته وښود.

سردار عبدالولي، د ظاهرشاه د تره زوي او زوم له هغو کسانو څخه دي چې مرسته یې راسره کړي او په ایتالیا کی یې د خپل پلار د ژوند په باب معلومات راکړي دي. د امان الله ناسکه وروړ هم راسره مرسته کړي ده.

همداشان زه له خپل میړه، ارتورستیوارت، په کابل کی د بریتانیا په سفارت کی د اندیا افس له کتابدار. س. ال سوتون او د ده مرستیال جان لانکاستر، سناتور رابراهام ویبیکاف، د لویدیځ المان د کوتنګن د پوهنتون دوکتور، والترهنز، د لویدیزي استرالیا د پوهنتون استاد، جین، اي. ډي، برادلي، د ترینیتس د کالج فقید دوکتور الترلیویت، د اسیا یولنې ماري بانکرفت، هاریت پیپل، کارن کلیبانوف، ویکتور هیسر، دوکتور ماکسین تول برنر، ایدن نابې، د امریکا متحده و ایالتونو د ډګروال دنکان. اس. سمریل، په مانچستر کی د ماري چینې د کتابخانې دفتر، او په کابل کی زما د ترو زامنو، بیتې لارډلي ارنولد او جیفري ارنولد چې زما له کتاب سره یې علاقمندي وښودله او زما له ایډیټور جولی کوپرسمیت څخه مننه کوم.

ریاتالي ستیوارت
مانچستر، کنکتیک

# لومړي فصل

## ديوه پاچا زيږيدنه د جون ۲/ ۱۹۸۲

په افغانستان کې چې څوک هرې خواته ولاړ شي ديو شمير غرونو په منځ کې ايساريږي. د سفر په وخت کې تل داسې شيبې وړاندې راځي چې کله ديوه غره له څنډې څخه را تاو شي ناڅاپه بيا د نورو غرونو په ساحه کې واقع کيږي. افق تل نژدې ښکاري.

له همدې امله په افغانستان کې ديوې ليرې منظرې د ليدو له پاره خلک تل دې ته اړ شوي دي چې پورته وګوري او له دغه سببه سپوږمې د افغانانو د مينې ور ګرځيدلې ده. تن ورځ موږ پوهيږو چې سپوږمې په حقيقت کې څه شي ته ورته ده او پوهيږو چې د افغانستان په شان ده ځکه سپوږمې هم همدغه شان نه بدليدونکې او تغيير نه منونکې سطح لري چې لوړې ژورې پکې موجودې دي.

د افغانستان د غرونو څوکو ټول خړې او نصواري ښکاري. په ځينو ځايونو کې لمر پټ وي خو سيمه رڼا ښکاري. په نورو برخو کې ژورې نالې ليدلې کيږي چې د لوړو څوکو سيورې وړاندې لويدلې وي.

که د باميانو ناوې ته ځير شي د سرو پرښو له جګو ديوالونو سره مخامخ کيږي چې په يو وخت کې د ځمکې د ښويېدو له امله پکې درزونه پيدا شوي دي او په بل وخت کې په پرښه کې کيندل شوي دي او د نرۍ له ډيرو غټو مجسمو څخه دې ښايي هغه سترې مجسمې وې چې په دغه پرښه کې د بدلون راوستلو له زمانې څخه راپاته شوي دي ځکه د هغو ټول کارونه په انسان پورې اړه لري.

د بند امیر په لاره کې هیڅ شی نشته. افق د کلسکو او تورو خاورو د جریبونو جریبونو ځمکو په شاوخوا کې چې سپین داغونه پکې لیدل کیږي او یوازې د بري تغذیه کوي یوه دایره جوړوي.

خو بیاهم کله چې سړي د هندوکش له زیږو ځوکو څخه سترګې لاندې وغړوي نو په هغه ځای کې چې اوبه شته ناڅاپه شیلې په نظر راځي او د غنمو په پټیو کې ښځې په سروجامو کې لیدل کیږي چې د غنمو ترلو پورې په ناستې کار کوي.

د بامیانو په ناوه کې د بودا مجسمو ته نژدې بزګر د خپلو غوایانو په واسطه یوې کوې او د دغوپرښو له یوې سمڅې نه د کوم کور له نغري څخه د اور د لوګی حلقې هوا ته پورته کیږي.

د بند امیر په لور سړک د هغو خاوړو په ذریعه ویشل شوی دی چې د تیلفون مزي ورپورې تړل شوي او د افق تر پایه پورې تر هغه سړي پورې درومي چې د بند امیر د نیلي رنګو اوبو په څنګ کې یې سماوار جوړ کړی او کله چې سړي هلته ورسیږي نو دی ورته چای ورکوي.

نو په افغانستان کې د جغرافیاوي ستونزو سره سره بیاهم خلک په دې بریالي شوي دي چې خپله لاره پیدا کړي.

د افغانستان زیاتره مشخصات د طبیعي موقعیت له مخې پیژندل کیږي. دا هیواد د منځنۍ اسیا په لوړه سطحه کې پروت دی او په کال ۱۹۷۳ کې د شمالي لوري ته یې شوروی اتحاد، لویدیځ لورته یې ایران، شمال ختیځ لور ته په کمه مسافه له چین سره سرحد لري او په ختیځ او سویل خوا کې یې پاکستان موقعیت لري چې تر ۱۹٤۷ کال پورې د هند د لویې وچې یوه برخه او د برتانیې تر واکمنۍ لاندې وه.

فاتحین دې هیواد ته راغلي دي چې تر ټولو د مخه د فارس داریوش و. په څلورمه ق.م. پیړۍ کې لوی سکندر باختر ته راغلی او دری سوه کاله تر هغه د مخه پر دغه ځای کې زردشت زیږیدلی و. زردشت یو داسې دین خپور کړ چې دري سوه کاله وروسته د هغه پیروانو چې مګی (Magi) نومیدل ان تربیت الحم پورې یو ستوري تعقیب کړ. سکندر یو سخت زړی فاتح نه و. (هغه د شهزادګۍ رخشانې سره د واده کولو له لارې ځان افغانانو ته ورنژدې کړ، که څه هم دا کولای شوای رخشانه خپله معشوقه وګرځوي) او داریوش په حقیقت کې یو خیر خواه سړی و. خو یو فاتح مدام ویروونکی وي او حتی نن هم کله چې یو افغانی ماشوم نه کراریږي ورته ویل کیږي چې مه ژاړه «کلساندر Clisander به راشي تا به یوسي.» بابر هم په همدې لاره راغی او

په هندوستـان کې یې د مغلو یوه امپراتوري جوړه کړه چې د نویو فاتحانو یعنې انګریزانو تر راتګ پورې یې په هند کې واکمنې لرله.

د بابر کابل تر نورو ځایونو زیات خوښیده او دلته ښخ هم شو. افغاناتو هم خپل فتوحات کړي دي. د غزني بت ماتوونکی سلطان محمود په خپلو وقفوي یرغلونو سره هندوستان افغاني قوت ته متوجه کړ.

ځینې کسان چې راغلل سوداګران وو. له خزانو څخه ډک ختیځ او د ورې ستری اروپا ترمنځ یوه لویه لاره موجوده وه. دغه لاره له افغانستان څخه تیریدله. تومورې لاره دلته په دوو څانګو ویشله شوې وه. د میلادنه وروسته په دریمه او څلورمه پیړیو کې دوریښمو او مساله جاتو سوداګرانو بودایي دین بامیانوته له ځانه سره راوړ. هغوی د مذهبي راهبانو له پاره هستوګنځی او د بودا غټه مجسمه د غره په کمره کې وکیندله. څو پیړۍ وروسته څرنګه چې حضرت محمد (ص) خپل پیروان د انسان د مجسمې له جوړولو څخه منع کړل عربو مسلمانانو د بودا د مجسمو مخونه وران کړل.

د عربو فاتحانو ډیر پاییدونکی شی یعنې د اسلام دین دلته په میراث پریښود. اسلام تر نن ورځې پورې افغاني ژوند په خپل قالب کې راوستی دی او د ۱۹٦٤ کال اساسي قانون تاییدوي چې حکومت به د اسلامي اصولو پیروي کوي. حضرت محمد (ص) د خدای (ج) د اوامرو کړکیچن محیط او همدارنګه د نننۍ تکنالوجۍ په مقابل کې وړپه برخه کړي دي.

دوو تنو دلته هومره تاوان رسولی دی چې تر نن ورځې پورې یې نښې نښانې پاته دي. په دیارلسمه پیړۍ کې چنګیز خان او په پنځلسمه پیړۍ کې کرستوفر کولمبس.

چنګیز خان نه یوازې سړي، ښځې او ماشومان ووژل بلکې پر ځارویو او نباتاتو یې هم رحم ونکړ. او د دې له پاره چې کوم نفر ترې نه پاتې شوی نه وي، هغه به خپل عسکر په وران کړی شوو ځایونو کې موظف کړل چې د هغو اشخاصو انتظار وباسي چې ځانونه یې پټ کړي وو.

د چنګیز خان له لاسه په افغانستان کې زیاتره کنډوالې یو شانته ښکاري: که هر چیرې د ښارونو یو څو د خټو کاره دیوالونه او بس.

د چنګیز خان دوامداره تاوان دا دی چې هغه له خلکو سره یو ځای د اوبو لګولو هغه شبکې هم له منځه یوړې چې هغوی جوړې کړې وې او هیڅوک یې پرې نه ښودل چې پر ځای یې نورې جوړې کړي. افغانستان د یو وچ اقلیم لرونکی هیواد دی د ژمي واوره باید په کافي اندازه لند

بل ولري چې د کال تر پایه پورې دوام وکړي. اوبه لګول د ژوند معنی لري. د بند امیر لاره ځکه شاړه ده چې یوځلې اوبه یې لګیدلې وې او بیا په بشپړه توګه وچه شوې وه او په بنوره بدله شوه. د تولو هغو ځایونو له جملې څخه چې چنګیز خان وران کړي وو یوازې هرات دوباره ودان شو، ځکه چې دا ښار په یوه حاصل خیزه ناوه کې واقع دی.

کرستوفر کولمبس د لویدیځ خوا ته په بیړۍ کې سفر وکړ چې د اسیا او اروپا ترمنځ د یوازینی لاری یعنی د افغانستان پر ځای یوه بله لاره پیدا کړي. هغه او مجلیلان له دې څخه هم زیاته هڅه وکړه. په حقیقت کې هغوی اروپا ته یوه نوې خزانه په لاس ورکړه. همغه وچې کاروانونه به ډیر کم د هندوکش له لارې تیریدل او په پای کې ثابته شوه افغانستان د یوې کروی (ګردې) نړۍ په پرتله د یوې (اوږدې) نړۍ له پاره زیات اهمیت درلود.

کله چې د اوچتې ذوقي خاوندو کاروانونو د هیوادونو احوال راوړل پای ته ورسول، نو د اوارو لارو خلک دی ته نور نه هڅیدل چې له کرا و ډکې غزنی لارې ووهي. افغانستان ګوښه پاته شو. د خدای(ج) د رضا اجابت سرنوشت ته په تسلیمیدو باندې بدل شو. رسم او رواج سخت شو. ځینو روحانیونو او ملایانو افغانانو ته وویل چې د خپلو ښځو مخونه دې پټ کړي د «بهرنیانو» په مقابل کې دې چې دومره بد بختیو د راوړلو سبب شوي دي مقدس جنګ پیل کړي، د بهرنیو تخنیکي وسایلو او کتابونو څخه دې ځانونه وژغوري چې خدای(ج) په دغو شیانو باندې ناراضه کیږي. خلکو دغه اوریدې او ویې منلې.

څرنګه چې افغانانو له خپل چاپیریال څخه لږه ګټه ترلاسه کوله نو یې په ډله بیزه توګه د هغو خلکو خواته مخه کړه چې ورسره پیژندل یې. هغوی ته خپله قبیله یوه دنیا وه او هغه کورنی ورته یوه دنیاګۍ وه چې څیرې پکې پیژندل کیدې. د خپل د دغې تنګې فضا نه اخوا داسې شیان لکه دولت او ملت چندان د درک وړ نه وو.

د اتلسمې پیړۍ په وروستیو کې په افغانستان کې بیا جغرافیایي بدلون پیل شو. د فتحې او برې فاتحینو یوځل بیا بدلون منځ ته راوست. خو داځلې د یو فاتح پرځای دوه فاتحان له دوو لارو څخه را پیدا شول. د دوی ترمنځ شخړې د افغانستان د ژغورنې سبب شوې.

انګلستان او روسیه دواړه د پرمختګ په حال کې وو او د دواړو هدف هندوستان و. روسیه د هند په طمع وه او انګلستان هغه په خپل تصرف کې درلود. افغانستان د دوی په مسیر کې پروت و نو ځکه مهم و. د افغانستان واکداران پوهیدل چې روسیه به هند ته د رسیدو

په لاره کې افغانستان تر پښو لاندې کوي او هضم به يې کوي او هند ته به ځان ورسوي. مګر انګلستان بيا يې په دې قانع وي چې افغانستان په خپل حالت پاتې شي نه دا چې خامخا انګليسي وي خو فقط چې د روسيې په برخه ونه اوسي. افغانستان سياست بازي وکړه او انګلستان ته يې امتياز ورکړ.

د افغانستان د لاندې کولو د دوو ناوړو هلو ځلو وروسته هغه نيمه مړی (کوله) چې انګلستان ورباندې قناعت کاوه د افغانستان د بهرنيو اړيکو اداره کول و. د دې کار په بدل کې به لويې برتانيې امير ته په کال کې څه نغدي پيسې ورکولې. افغانانو دا نه منله. هغوی پردې باندې هم خپه وو چې ولې د دوی هيواد ته د دې اجازه نه وه چې د خپلو چارو په باره کې په مستقيم ډول له انګليس سره نه بلکې د هغوی د مستعمرې يعنې هند له لارې خبرې وکړي. په داسې حال کې چې افغانستان د دې مرستې څخه يو څه ومنله د برتانيې له پوازې يوه نماينده څخه پرته چې هغه هم بايد يو هندي مسلمان وای نور د برتانيې هيڅ ډول رسمي شته والی ته يې د خپلو سرحداتو د ننه اجازه نه ورکوله. د غه نماينده په دايمي توګه د يو جاسوس له خوا چې د چای پلورونکي په جامه کې يې خپله وظيفه ترسره کوله او د نماينده ګۍ په مقام کې يې د چای پلورولو دوکان جوړ کړی و تر څارنې لاندې و.

کله کله به د برتانيې امپراتورۍ غوښتل چې افغانستان ته ځينې خصوصي شيان ووايي چې وايسرا د ليک په ذريعه لازم نه ګڼل. په داسې مواردو کې به يو ځانګړی هيئت له زياتو ترتيباتو سره امير ته استول کيده. د غه ډول يو هيئت په کال ۱۸۹۳ کې د امير عبدالرحمن دربار ته راغی او پر هغې موافقت نامې باندې يې خبرې وکړې چې د افغانستان ختيځ سرحد يې له هند سره وټاکل. دا د ډيورند «تحميلي» کرښه يې له دې چې د سيمې وګړيو او يا جغرافيې ته پاملرنه وشي وټاکل شوه. د غه کرښه له هغو سيمو څخه تيريږي چې د پښتنو مختلفې قبيلې پکې اوسيږي او ډيرې کورنۍ يې بيلې کړې دي. څرنګه چې د غه پښتنانه له هر ډول حکومت څخه خپل قوم ته ډير اهميت ورکوي، نو د ډيورند کرښه به د تل له پاره د لانجې منبع وي.

کله چې امير حبيب الله د خپل پلار امير عبدالرحمن پرځای پر تخت کښيناست برتانويانو بيا يو هيأت کابل ته را وستاوه چې د خپلې مرستې د تبادلې په باب وغږيږي. داخلی د افغانستان د بهرنيو اړيکو د بشپړ کنترول څخه علاوه هغوی غوښتل چې له هند څخه

افغانستان ته د اورګاډي پټلۍ را وغزوي. روسانو په منځنۍ اسيا کی د خپل اورګاډي د پټليو په غزولو سره هغوي دی ته اړ ايستل چې د اورګاډي پټليو ته انکشاف ورکړي. د افغانستان له جنوبی سيمی نه د اورګاډي د پټلی را تيرول به نسبت د خيبر له غاښی څخه چې غرونه او پيچومی لري ډير اسان و. افغانستان د يو خپلواک هيواد په توګه د دی کار له منلو څخه ډډه وکړه.

نو دوه کاله وروسته افغانستان وليدل چې نړۍ تر کومی اندازی د دی هيواد دريغ ته په سرسري نظر وکتل کله چې له دو خواوو څخه دوو سترو قدرتونو د پترزبورګ ترون لاسليک کړ. انګلستان دا حق ترلاسه کړ چې افغانستان تر خپلی څارنی لاندی ولري په داسی حال کې چې روسی د مرکزي اسيا په نورو برخو کی تسلط ترلاسه کړ. د دغسی ويش په هکله له خلکو سره هيڅا مشوره ونکړه.

د واقعی ازادۍ نشتوالی د ملند ووهلو او له مايوسی څخه ډک غرور فضا منځ ته راووړه. دا د عليا حضرت پر لومړنی زوي باندی لومړنۍ اغيزه وه. عليا حضرت د امير حبيب الله چې د پاچا کيدو په درشل کی و، مشره ښځه وه.

دا ماشوم په کال ۱۸۹۲ د جون د مياشتی په دويمه نيټه په پغمان کی چې د کابل په اطراف کی موقعيت لري زيږيدلی و. او د دی له پاره چې خبيثه ارواح ورته کوم زيان و نه رسوي لومړی ورباندی غلط نوم کښينبودل شو او وروسته د امان الله په نوم ونومول شو.

امان الله د پلار دريم زوی و اما هغه يو داسی اشرافی مور درلوده چې په خپل ځان کی يی ټول هغه صفات درلودل چې له يوی ډلی کوچيانی قبيلو څخه يی يو ملت جوړ کړی و. په افغانستان کی نور د دی قانون اعتبار له منځه تللی و چې که پلار مړ شی د حکومت واکی به د لومړی زوي په لاس کی لويږي. نو کله چې په افغانستان کی تخت خالی کيده هيڅا څه نه شوای ويلی چې څه به وشی.

# دویم فصل

## له ۱۹۱٤ څخه تر ۱۹۱۸ پورې

«زه غواړم تاسو جلالتماب ته خبر درکړم چې په اروپا کې د جګړې وضعه لېدله کېږي. اتریش او هنګري د سربستان سره د جنګ اعلان کړی او جرمنی هم له فرانس او روسیې سره د دښمنۍ پیل کړی ده په نتیجه کې د جرمنی او لویې برتانیې ترمنځ هم جنګ پیل شوی دی چې ګټه یې حتمي د فرانسې د جنګ د ګټېو سره تړلې ده. زموږ د مکتوب تر شرایطو لاندې چې د ۱۸۸۰ کال د جولای په ۱۸ نیټه مرحوم امیر ته استول شوی و او د ۱۹۰۵ کال د وین په تړون کې ستاسو جلالتماب له خوا د دوهم ځل له پاره تصویب شوی و تاسو په ډاګه سره موافقه کړې وه چې د خپلو بهرنیو اړیکو په باب د برتانیې د حکومت د مشورو بشپړه پیروي وکړئ. د دې موافقې له مخې تاسو جلالتماب ته مصلحت درکوم چې د اوس وخت له پاره بې طرفه پاتې شئ او د افغانستان بې طرفي په بشپړه توګه وساتئ او په خپلو دواړو سرحدونو کې د نظم د ساتنې په خاطر ځانګړې احتیاط څخه کار واخلئ.»

د هند وایسرا دغه پیغام امیر حبیب الله ته د ۱۹۱٤ کال د اګست په اتمه نیټه را واستاوه چې د لومړۍ نړیوالې جګړې د پیل کېدو څرګندونه یې کوله.

حبیب الله دغو معلوماتو ته د کورودانۍ په ویلو سره ځواب ورکړ: «په هغه صورت کې چې د افغانستان د جلیله دولت د حفاظت تضمین د هغه د پردو دښمنانو د ناوړو هلوځلو په مقابل کې صورت نیسي او د هغه شان او شوکت ته کوم زیان نه رسیږي او د هغه اوسنۍ خپلواکۍ خوندي پاتې کیږي د دې حکومت خلک به د خدای په رضامندۍ سره ستاسو

د دوستانه سلا مشورې سره سم بې طرفه پاتې شي او په دې مورد ستاسو حضور ته داډ درکول کیږي. »

تاریخ به وښیي چې وایسرا د یوې نوې نړۍ د پیل کیدو اعلان کاوه چې د غه اعلان په ملتونو ٦٤ کې د نوې سیاست او چال چلند وعده ورکوله.

ښایي دغه ټولې ژمنې نه ترسره کیدې خو د افغانستان حکومت ته به یې د تجربو نوې زمینه برابره کړې وای. دا کار لکه څنګه چې پیل شوی و په شخړو او وینو تویېدو سره پای ته رسیدلی و.

امان الله دوه ویشت کلن و. د هغه مشر میرنی ورور، خوش باور عنایت الله په ښکاره توګه د خپل پلار امیر حبیب الله وارث و خو د هیواد دوهم شخصیت د هغه تره نصر الله و چې یو متعصب مسلمان او له انګرایزانو څخه یې دومره بد وړل چې امیر مجبور شوي و د هند په سرحد کې د هغوي پر ضد د هغه د مقدس جنګ مخنیوي وکړي.

امان الله هم له انګریزانو څخه کرکه کوله، خو نه د هغوی د مذهب په خاطر، هغه سترګې په لاري و چې افغانستان به په راتلونکې کې له عصري هیوادونو څخه وي خو د برتانیې تسلط د دغې لاري خنډ ګرځید. امان الله هیڅ کله له کابل څخه لیرې نه و تللی. هغه د خپل پلار له یوې لنډې تجربې څخه پر ته د عصری ښوونې او روزنې په باب یې درلوده، یوازې په حربي ښوونځي کې زده کړې وه. دغې عصري ښوونې او روزنې هم په هغه وخت کې سقوط وکړ چې ښوونکي یې په بغاوت باندي تهمتیان او ونیول شول.

خو امان الله په پرله پسې توګه د خپل مشر محمود طرزی عصري لاری چاري زده کولې. محمود طرزی د خپل وخت یوازینې افغان و چې د «طرزی» تخلص یې پر ځان ایښی و (*) چې د خاص طرز ښنیتن معنا لري او کله چې د طرزي کورنی د امان الله د نیکه د ظلم او تشدد په وخت کې په ترکیه او سوریه کې د تبعید په حال ژوند کاوه. محمود طرزي د ښو طنزونو په لیکلو شهرت موندلی و. د مخه تردې چې د حبیب الله له خوا د افغانستان د بیر ته راتلو د بلنې په ترلاسه کولو بریالی شي هغه د برتانیې د دسیسوزیات سپکاوی زغملی وی. حبیب الله چې د هغه په پوهه خوښ و نو اجازه یې ورته ورکړله چې د سراج الاخبار په نوم اخبار منځ ته راوړي.

(*) دغه تخلص هغه ته له خپل خوش ذوقه پلار غلام محمد طرزی څخه رسیدلی و نه د ده په خپل ابتکار.

د تېرلو افغانانو په شان امان الله او محمود طرزي د اروپا د عمومي جګړې په ارتباط زیات د ترکیې د جګړې په باب په اندیښنه کې و.

دوهم ولهلم قیصر فعالیت کاوه چې له ترکیې سره ځان دوست کړي. هیڅ بل کوم اروپایی پاچا دي ته نه و ځاضر شوي چې له قسطنطنیې څخه لیدنه کتنه وکړي. ولهلم د دوهم ځل له پاره دا کار وکړ او سلطان عبدالحمید یې خپل ښه ملګري ومونډ چې هغه هم د ده په شان په نړۍ کې له هر چا څخه کرکه کوله. د هغه عکس په بیت المقدس کې پر یو سپین اس باندې اخستل شوي و چې ترکي یونیفورم او فیض (Fez) خولۍ یې پر سر وه.

هغه ځان ته حاجي ولهلم ویل چې د دې لقب حق یې نه درلود ځکه چې دا لقب یوازې ٥٤ هغو مسلمانو ته ورکول کېږي چې بیت اللّه شریف ته ولاړ شي او حج وکړي. بیت اللّه شریف په مکه معظمه کې تر ټولو سپېڅلی ځای دی. خو که د فرانسې څلورم هنري وکولای شول چې ووایي «پاریس د یوې کتنې ارزښت لري» نو ولهلم قیصر هم کولی شو ووایي چې هند د یو حج ارزښت لري. برتانویان په همدې وخت کې پوره پوهېدل چې ولهلم د نورو ختیځو هیوادونو سره یوازې د هغوي د امپراتوري تاج یعنې هند په مقصد دیوه معبر په توګه علاقه مند و. هغوی فکر کاوه چې قیصر همدغه پلان تطبیقاوه کله چې یې ترکیې ته افسران، وسلې، مهمات او ارزان بیه سامانونه ولیږل.

په لویه برتانیه کې ډېر کلونه په ندرت سره داسې عامه خطابه ورکول کېده چې پکې د «ترک» لغت د «ویلو وړ نه دي» په مفهوم استعمال نه شي. د ١٩١٤ کال د جولاي د میاشتې په وروستیو کې د ترکیې د سمندري چارو وزیر جمال پاچا چې په زړه کې یې د برتانیې او فرانسې ته ښه نیت درلود پاریس ته ولاړ او د ایجین د ټاپوګانو د بیا ترلاسه کولو په خاطر یې د مرستې غوښتنه وکړه چې دوه کاله د مخه د ایتالیې له خوا نیول شوي وو خو منفي ځواب ورته ورکړي شو. په همدې میاشت کې د ترکیې د سمندري پوځ یوه ډله په انګلستان کې وه، او دې ته چمتو کېدله چې هغه دوې جنګي بېړۍ ترلاسه کړي چې ترکیې یې د جوړولو فرمایش ورکړي و. دغه بېړۍ د ترکیې د بېوزلو خلکو سره دیوې بې ساري او له برم نه ډکې همکارۍ ځرګندوي وې ځکه دا اخستلو بیه یې چې ۷۵۰۰۰۰ سترلنګ پونډو ته رسېدله د عمومي بسپنې (اعانې) په توګه برابرې شوي وې او نیمایي پیسې یې تادیه شوي وې. په دغه وخت کې ونستون چرچل د سمندري ځواکونو لومړي لارډ امر وکړ چې دا واړه بېړۍ دې ضبط او د

انګلستان د سمندري ځواکونو سره دې یوځاي کړي شي. هغه د بیړیو پیسو د بیرته ورکولو په برخه کې څه و نه ویل.

دا یوه طبیعي خبره وه چې څو ورځې د مخه کله چې وایسرا حبیب الله ته د جنګ خبر اعلان کړ د ترکیې حکومت یوه خصوصي وعده ورکړې وه چې که روسیه د انګلستان او فرانسې په پلوې په مداخله لاس پورې کوي نو هغه دولت به د جرمني په پلوي د سربستان او اتریش په جګړه کې ګډون وکړي.

ترکیه د خلافت کور و چې په اسلام کې د مذهبي قدرت ډېر لوړ مقام دی. د ترکیې سلطان د اسلام خلیفه و چې هره جمعه یې نوم د افغانستان په هر جومات کې د لمانځه د ادا کولو په وخت کې په خطبو کې ویل کېده.

امان الله د محمود طرزي له لارې د ترکانو یوې مخصوص ډلې سره احساساتي اړیکې درلودې. دا هغه ډله وه چې ځان ته یې «ځوان ترکان» ویل او په دې هڅه کې وو چې خپل هیواد عصري کوي او هم خپل زاړه اساسي قانون ته تغییر ورکړي. د هغوی د ډلې یو تن چې مصطفی کمال نومېده د جان ستیوارت مل (Johan Stuart Mill) د احساساتي آثارو د لوستلو په وجه بندي شو. یو بل لیکوال چې د غو ځوانو ترکانو یې آثار لوستل محمود طرزي و چې د هغه ناچاپ شوي پاروونکي آثار په خصوصي توګه د خلکو لاس ته ورتلل او په پټه سره لوستل کېدل.

په افغانستان کې طرزي د هیواد یوازنی اخبار سراج الاخبار چلاوه. دا اخبار د عصري توب په لار روان و او تل یې د طنز او کنایو په لفافه کې خپرونې کولې. امیر حبیب الله د غه اخبار په دې خاطر زغمل چې د هغه د پلانونو سره سم یې د انګلیسانو د ځورولو زمینه برابره وله. که چیرې به په دې پوهیده چې ځینې کترې شخصاً ده ته متوجه دي نو هیڅ کله به یې داسې نه ویل. په ټولې مرکزي آسیا کې د غسې مشابه اخبار د هغو اشخاصو له خوا خپریدل چې په یو ډېر زیات اروپایي هیواد یعنې روسیې باندې د جاپان د ۱۹۰۵ کال له بري څخه ډاډه شوي وو او غوښتل یې هیوادونه یې په نړۍ کې اوچت موقف ولري. «آسیا د آسیاییانو له پار» د سراج الاخبار شعار او داسې فکر کیده چې د ځوانو بخاراییانو، خیواییانو او د نورو له نشریو څخه د ځوانو افغانانو د غه نشریه بهتره وه.

امان الله یو ځوان افغان و. هغه له خپل ورور عنایت الله سره چې د مطبوعاتو مدیر او په کورکې یې د چاپ عصري دستګاه وه چې امیر حبیب الله د هغې وارد ولو ته هڅول شوي و د

اخبار په دفتر کی دومره زیات وخت تیراوه چې فکر کیده ګواه کی د ځانګی له کارکوونکو څخه دی. په همدی ځای کې هغه له ثریا سره چې د طرزي لور وه ملاقات وکړ. طرزي د نورو شیانو په څیر په خپل کورنی ژوند کی هم عصري و. امان الله چې یوازي د یوی ښځی لرل یې غوره ګڼل د اسلام له دی قانون څخه یی استفاده و نه کړه چې یو مسلمان حق لري څلور ښځی ولري، که څه هم د ډېرو ښځو شوقمن و خو یوازي یوه ښځه یی په نکاح کړه چې له همدی میرمنی څخه یی شل اولادونه درلودل. کله چې نورو افغانی نجونو ته زړو ملایانو د قران شریف درسونه ورکول د طرزي لونو عصري زده کړه کوله. مشره لور یی کوکب نومیدله چې له خپل پلار سره یی حتی د سکرتریت دنده هم سرته رسوله. عنایت الله د خپل پلار حبیب الله په موافقه له کوکب سره واده وکړ. امیر حبیب الله د ښځو آزادی او پوهی ته خوشبین و که څه هم دا شی د ده په حرم سرای کی نه لیدل کیده. امان الله د ځوانی په لومړیو کلونو کی د خپلی مور له یوی وینځی سره چې پري ګل نومیده که څه هم غیر رسمی مګر قانونی رابطه لرله او په کال ۱۹۱۱ کی یی یوزوي پیدا شوي و چې هدایت الله نومیده، خو کله چې امان الله له ثریا سره واده وکړ د نورو شیانو په څیر یی د طرزي له سلوک څخه پیروي وکړه او یوازي یوه ښځه یی غوره کړه. پري ګل لاړه چې د امان الله له مور علیا حضرتی سره و اوسی. مقصد دا چې د امان الله یوازینی میرمن شوه.

اوس چې د جګړي اور په اروپا کی بل شوي و، سراج الاخبار په خپلو خپرونو کی «روسیه او انګلستان» د «اسلام کلک دښمنان» بلل. په اخبار کی ویل شوي وو چې هغه عنعنوي ملاتړ چې انګلیسانو له مسلمانانو څخه کاوه اوس په ډاګه په دښمنی بدل شوی دی. په اخبار کی راغلی وو چې انګلستان له جرمنی سره د رخی لرلو له امله جنګ پیل کړی و. په سراج الاخبار کی د جرمنی ټول پوځی منابع یا د هغوي اوازی په شوق سره تشریح شوی وی.

دا هغه موسم و چې د کوچیانو قبیلی د افغانستان له غرونو څخه د هندوستان د اوارو ځمکو خواته کوچیدلی. په دغه وخت کی یوه اوازه خپره شوه چې په دی نژدي وختو کی د افغانستان له خوا پر هند باندی یوه حمله ترسره کیږي. او دا خبره هم خپره شوه چې د کوچیانو په کاروانونو کی وسله په بله بڼه برابریږي.

د اکتوبر په ۲٦ نیټه د جرمنی سمندري ځواکونه چې په قسطنطنیه کی وو د ترکیی له یو شمیر کوچنیو بیړیو سره یوځای شول او د تورسمندرګی له لاری یی د روسیی پر بندرونو باندی برید وکړ.

د نوامبر په پنځمه نیټه د هند د وخت وایسرا د پنشرسټ لارد هارډنګ امیر حبیب الله ته داسې ولیکل: «زه افسوس کوم چې ستاسو جلالتماب خبروم چې د عثماني ترکیې د حکومت د لنډ پاریز بې موجبه او قصدي عمل په اساس جنګ د لویې برتانیې او ترکیې ترمنځ پیل شوی دی... زما سترګې هغو واقعیتونو ته رندی نه دي چې ممکن ناپوه او مضر کسان هڅه وکړي دا جنګ یوه پلمه وګرځوي او له مذهب څخه په ناروا ګټې اخستلو سره د ستونزو د پیدا کیدو موجب وګرځي.»

لیکن «مقدس جنګ» په یقین سره هغه څه وې ترکانو ورته ویل او د هغوی د «جهاد» چیغه چې د مقدس جنګ له پاره بلنه وه په ټول افغانستان کې اوریدل کیده. دې جګړې خلکو ته وعده ورکوله چې هر مسلمان چې په دې جګړه کې ومري شهید دی او ځای به یې جنت وي.

نصر الله په کلونو کلونو هڅه کوله چې خپله کړکه چې د انګلیس په مقابل کې یې درلوده او خپله مینه چې یې له اسلام سره درلوده په جهاد کې سره یو کړي. محمود طرزي به هم په خپله جریده کې مطالب خپرول او خلک یې په هند کې د انګلیس پر ضد جګړې ته راپارول. حبیب الله فیصله وکړه چې بې طرفه پاتې شي. د اخبار څو ګڼې یې مصادره کړې او دا اخطار یې ورکړ چې طرزي به هم له منځه یوسي.

حبیب الله د ۱۹۱۵ کال د مارچ د میاشتې په ۲۳ نیټه وایسرا ته داسې ولیکل: «حتی اوس تاسو جلالتماب په خپل لیک کې په ګوته کړې دي... چې په سرحد کې د ملایانو مناسب تبلیغ او د سراج الاخبار په لیکنو کې اصلاحات زما د دوستانه نفوذ په خاطر دي... تر هغه چې زما په قدرت کې وي که د خدای رضا وه زه به د تنګ نظرو او ناپوهو خلک افکارو ته د مملکت پر منافعو هیڅ کله ترجیح ورنه کړم.» د «ناپوهو او تنګ نظرو خلکو» په ډله کې هغه د افغانستان ټول خلک شاملول.

حبیب الله په یوازې سره تصمیم ونیو چې خپل هیواد د بې طرفي په چوکاټ کې وساتي چې دا بې طرفي پر هند باندې د هغه د حملې مانع وګرځید. هغه کسان چې د دې پالیسي مخالف و فکر یې کاوه چې حبیب الله هغه ښه چانس له لاسه ورکوي چې په خپله خدای د تیري کوونکي انګلیس د سلطې د له منځه وړلو له پاره ورته ورکړی دی. که افغانستان پر هند باندې حمله کړې وای په زرګونو هغه لښکر به سرحد ته راورل کیده چې د بیړې په ذریعه اروپا ته استول کیدل چې د مرکزي ځواکونو په مقابل کې وجنګیږي. په دې مرکزي ځواکونو کې

مسلمانه ترکیه هم شامله وه. ډیرو افغانانو ته داسې معلومیده چې د حبیب الله بې طرفي په ترکیې ضد عملیاتو کې د ټولو مسلمانانو پر ضد عملیات دي او په مجموع کې د افغانستان پر ضد هم د حبیب الله د بې طرفي د اهمیت په برخه کې انتقادونه صحیح وو. هغه د ماهرانه نظم لــه مخې لویــې برتـانیــې تـه ازادي ورکـړه چې په هند کې د هند ټول لښکر په اروپا کې استخدام کړي.

سره له دي چې حبیب الله د «بو دوکاندار په څیر» معامله نه شوه کولاي لکه څنګه چې په بو وخت کې بې شکایت کړي و، خو کولای یې شول په زیاته اندازه د بو پاچا په شان معامله وکړي. د مرکزي اسیا د کاروان د بو سوداګر د ذوق سره سم چې تل غواړي په لوړې بیې سره معامله وکړي حبیب الله په ټول دې وخت کې د خپلو خلکو له پاره یوي جایزې ته سترګې نیولې وې او هغه د برتانیې له کنترول څخه ازادیدل و.

جرمنیان هم د هغه د بیطرفي په ارزښت باندې پوهیدل او په فعالیت یې لاس پوري کړ چې له دې لارې څخه یې واړوي. د ۱۹۱۵ کال د اګست په میاشت کې د هغوي هیأت د پارس له لارې د اسکارنیدرمایراو ورنواتوفون هنتیګ په مشري چې د جرمنیانو او ترکانو په ګډون څنې هندي انقلابیون هم پکې شامل وو د کابل په لور خوځیدل. حبیب الله چې د برتانویانو له خوا د هغوي له راتلو څخه خبر شو انګریزانو ته یې ډاډ ورکړ او ویې ویل: «د ګران خداي د راکړي افغانستان سیمې ته د دې ډلې را ننوتل به د خداي په حکم سره د افغانستان د دولت په بې طرفي باندې کومه اغیزه و نه کړي او نه به ورته کوم زیان ورسوي.» لیکن حبیب الله تومورې هیأت نه یولیک استولی و او غوښتل یې ورته معلوم شي هغوي څه په فکر کې درلودل.

په دې ځاي فون هنتیګ د افغانستان د مرکزي برخو په بې حاصلو غرونو کې د څلورویشتو ورځو سفر کولو وروسته کابل ته نژدې د دې ډلې را رسیدل داسې بیانوي:

«له ښار څخه تقریباً د نیم ساعت په واټن لیرې د ترکیې استعماري غرې چې؟ د خپلو ملي فیض Fezz خولیو له مخې پیژندل کیدل سره را ټول شوي وو.»

زمونږ تود هرکلی وشو. له هغه وروسته مونږ احساس وکړ چې په کابل کې مونږ لا د مخه دوستان درلودل او هم دا چې د ټرې له یوي داسې برخې سره مو اړیکې پیدا کړي چې که مونږ ته نا اشنا و د خو نوروته په پوره ډول داسې نه وه. زمونږ رویه په بې اختیاره توګه اخلاص مندانه شوه او دا شي ان زمونږ د اسونو له قدمونو څخه معلومیده.

« ناڅاپه د سپيدارونو له منځه د اشارې غږ واوريدل شو چې له دوو نورو ليرې پوستو څخه تکراريده. لږ وروسته د سرک په کينه خوا کې د لښکرو وړې ډلې د مارش په حال کې وليدلې شوې. يو ټولگې پياده بل سپاره او بل د تفريحي ټولې چې د کابل د مشهورو قواو څخه وو. کله چې به مونږ په هرات کې د افغاني لښکرو په باب خپل تشويش نه شواى پټولاى نو تل به دغه د کابل مشهور پوځ راته په گوته کيده. »

« کله چې ډله رانژدې شوه نو هغو افسرانو چې په مخ کې ولاړ وو، يا ترکي افسران وو او يا لږ تر لږه ترکي يونيفورم يې په تن کې وو امرونه صادر کړ چې په لوړ غږ سره د سلام مراسم په ځاى شي. په رښتيا سره دغه اشخاص زمونږ په نظر ښه راغلل. په داسې حال کې چې هغوي په مونږ پسې روان وو. مونږ په خپلو اسونو سپاره په تراټ سره له يوه کوچني کلي څخه تير شولو چې د اصلي ښار څخه د پاندي واقع و او د بابرشاه د ماڼۍ د ديوالونو ته نژدې پروت و. خلک چې د بامونو پرسر ولاړ وو او يا په کوڅو کې سره راټول شوي وو مونږ ته به يې د خوښي سلامونه اچول. ممکن دا يو ډول د ځان ستاينه وي چې د دې موضوع يادونه کيږي خو مونږ په ځرگنده توگه د خلکو له څيرو څخه ديو داسې اميد احساس کاوه چې زمونږ په رسيدو سره د دغه هيواد د يوې نوې ورځې افق په ځليدو و. »

په راتلونکو ورځو کې فون هنتيگ په کابل کې له هغې اندازې څخه زيات اروپاييان وليدل چې ده يې هيله درلوده. « د جگړې هغه اتريشي بنديان هم دلته وو چې د روسيې ترکستان له کمپونو څخه تښتيدلي او په سختۍ سره له بندر څخه را اوښتي وو. امير له هغوي سره ښه چلند کاوه. هغوي ځومره چې کولاى شول ښه ژوند يې کاوه خو د سولې په انتظار کې په پوره امنيت کې يې خپل ژوند ته ادامه ورکوله. ما هغوي په خپلو نفرو کې شامل کړل او عملي مبارزه مې له هغوي سره په گډه پيل کړه چې فکر مې کاوه په کابل کې به گټوري نتيجې ولري: يو اغيزناک تبليغ چې په کلتور او تمدن کې زمونږ د تفوق ځرگندوى وي.

« يو له دغو څخه يو معمار و چې زمونږ له صحي شرايطو سره سم يې په کابل کې يو روغتون جوړ کړې و چې پاکوالى، تازه هوا او روښنايي پکې زياته ليدل کيده يو بل تن چې يو مجارستاني مجسمه جوړوونکى و د روغتوون د ټولو تالاريې په ښو مجسمو سره ښکلي کړي و. يو تن ديکوريټور د عملياتو او جراحي کوټه يو جمات او د مقاماتو د انتظار خونه ښکلي

کړې وه. دوې تيول په ډېر لږ وخت کې د خلکو د درناوي وړ وګرځېدل او په هغوي کې يې لوړ موقف ځان ته حاصل کړ.

« په افغانانو کې موږ جرمنان له ډېرو همدرديو سره مخامخ شوو. يوه خبره داوه چې له دې سره سره چې موږ هم د اعتدال وړ غوښتنې لرلې او هم مو اقتصادي وضع هومره ښه نه وه خو په داسې يو هيواد کې ښه مشتريان وو چې په هغه کې د پيسو کمښت و. په دې وخت کې د پرنسيپ په توګه موږ هيڅ انګليسي مالونه وانه خستل. موږ وکولی شو چې سوداګرو ته پاروونکې ذهنيت ورکړو چې له هغو مالوچو څخه چې په لاسونو توليديږي او له نورو موادو څخه چې توکران ترې لاس ته راځي ښه ګټه واخلي.

« ليکن د تيولو په سر کې خلکو به په شوق سره اوريدل څه چې به موږ ورته د بهرنيو هيوادونو د چارو د حالاتو په باب ويل او يا به مو ورته ويل چې جګړه په څه پيل شوې وه او څنګه او په څه شي باندې يې د ختمولو امکان ليدل کيږي او هغه اغيزي چې په افغانستان باندې يې هم لرلې شواي. »(١)

امان الله چې غوښتل يې د هغه څه نه په زياته اندازه خپل رول د هيواد په برخه کې ولوبوي چې په شاهي کورنۍ کې ورته قايل و. د نړۍ په باب د دغو خبرو په اوريدو سره هغه خوښ و او د هيأت د ترکي غړيو تر اغيزي لاندې راغلی و چې لږ څه يې د هغوی په ژبه خبرې هم کولای شوې. فون هنتيګ هغه « يو ډېر غلی ذکي شهزاده » بللی دی. د يارلس کاله وروسته امان الله په يو بل هيواد کې په يوه تولنه کې د فون هنتيک څيره وپيژندله او بيړه يې وکړه چې ورسره روغبړ وکړي.

يو انګليسي انجنير چې لينچ Lynch نوميده او د حبيب الله له خوا د صابون، شمعې او د باروتو جوړولو له پاره مقرر شوی و هند ته لاړ او هلته يې وويل چې: « تر هغو چې جرمنيان له کابل څخه تللي نه وي » نه غواړي بيرته افغانستان ته ولاړ شي. له هغه څخه پوښتنه وشوه چې ولې نه ځي.

« ځکه چې له هغوي سره د راجاګانو په شان چلند کيږي او زموږ سره د پيسو په شان. » له لينچ څخه پوښتنه وشوه چې آيا امير مدام ورسره ښه سلوک کاوه او ښې پيسې يې ورکولې.

« بلې خو دا خلک د راجاګانو په څير نازول کيږي، هغوي تول، اروپاييان، ستاسو له کندکونو څخه تبتيدلي مسلمانان، او سکان، له تولو سره داسې سلوک کيږي لکه چې تول مسلمانان وي. »

هغه وویل چې، «ما هیڅ کله د استریا او جرمنی له ډلې سره خبرې نه دي کړي که څه هم هغوي مې زیاتره په بازار کې لیدل. کله به چې یو د بل ترڅنګ تیریدلو نو د سپیو په شان سره غوریدل.»

لینچ راپور ورکړ چې پرته له امیر څخه هر څوک په افغانستان کې د برتانویانو کلک دښمن دي. «بیاهم په یاد ولري چې زه فکر نه کوم تر هغو چې جلالتماب ژوندي وي هغوي به د کوم شي د کولو جراءت وکړي.»

برتانویانو له دې عمل سره د هغه شي له لارې مخالفت وکړ چې هغوي په کې پوره استعداد درلود: هغه طبقاتي توپیرو. د حبیب الله د دې ډاډ ګیرنې په باره کې چې جرمنی هیأت په پرده باندې کومه اغیزه ونه کړې د هند حکومت لندن ته تلګرام وکړ «د ده له ځواب څخه به بل هیڅ شي د زیات قناعت وړ نه وي. امیر زما خبرې ته د رجوع کولو له مخې داسې نتیجه ګیري کوله چې د هغه د دوستانه ډاډ ګیرنې خبر به امپراتور پاچا ته ورسولی شي چې هغه به ورڅخه تود هرکلی وکړي او غوښتنه یې وکړه چې وروسته دې معلومات ورکړل شي چې د اعلیحضرت تود هرکلي به څنګه ورته څرګند شي. زه په داسې حال کې چې پوهیدم څومره امیر د امپراتور پاچا شخصي نظر ته په عالي سویه ارزښت ورکوي، نو ځکه په دې ارتباط مې خبرې وکړې چې امیر خپلو وعدو ته متوجه کړم او زه اوس یقین لرم چې ممکن وروسته د اعلیحضرت په خبرتیا سملاسي ورسوله شي. که چیرې اعلیحضرت ما ته دا واک راکړی وای چې امیر ته یو شخصي پیغام ولیږم نو اغیزې به یې هم د امیر د خوشحالولو له پاره او هم د هغه پر مخالفینو باندې د ده په برلاسې کې ارزښتناک وای چې د ده په شاوخوا کې دي.»

څو ورځې وروسته د ۱۹۱۵ کال د سپتمبر په ۲٤ نیټه پاچا پنځم جورج د بکنګهم له ماڼۍ څخه حبیب الله ته داسې ولیکل:

«ګرانه ملګریه، زه ډیر خوښ یم چې له خپل هندوستان له وایسرا څخه معلومات ترلاسه کوم چې د بې طرفۍ هغه سیاست چې د دې جنګ په سر کې مو د هغه ذمه وهلې وه په پوره امانت دارۍ سره ساتلی دی. دا کار نه یوازې ستاسو د جلالتماب له خوا د هغو ژمنو په عملي کولو کې چې له ماسره مو کړي دي مهم دي بلکې د دې کار په واسطه تاسو افغانستان او اسلام ته هم ستر خدمت کړی دی.

«زه باور لرم چې تاسو اعلیحضرت به زما او زما د حکومت په هکله دغه تغیـــ نه

منونکې دوستۍ تر هغو پورې خوندي ساتی تر څو چې برې د متحدینو په نصیب شی او دا هغه مرحله ده چې هره ورځ نژدې کیدونکې ده.

«په دې توګه تاسو به د هغې دوستۍ مزې لا پسې ټینګ کړې چې زه ورته ډیر زیات ارزښت ورکوم چې ستاسو مشهور پلار او زما څخه مخکې زموږ د محترمې فقیدې وکتوریا له ورځو را په دې خوا بې زموږ خلک سره متحد کړي دي.»

د رډیارډ کیپلنګ RudYard Kipling په قول چې په د غسې مخفي کړو وړو باندې پوهیده «یو واکمن بل واکمن ته پیغام و استاوه.»

حبیب الله چې د دې لیک را رسیدو ته بې حوصلې شوي و یو سړي یې د مخه د استازي په توګه سرحد ته استولې و. د ډکې قوماندان د خیبر په دره کې لنډیخانې ته ولاړ. یو شمیر ایله جارې نفر هم ورسره وو چې تورې یونیفورمونه یې اغوستې وو او یو لوی بیرغ هم ورسره و. هغه تر خپل وخت دوه ساعته مخکې ورسید ځکه دا ویره ورسره وه چې ممکن برتانویان د تورخم سرحدې ستیشن ته مکتوب راوړي چې په دې کار سره به دې د هغوې په سیمه کې له ګرځیدو څخه محروم وګرځول شی. د ده د ناڅاپې خوشالتیا په خاطر د لنډیخانې د رود په غاړه یوه خیمه ودرول شوې وه او د خوراک او څښاک شیان د ستړیا د لیرې کولو له پاره تیار کړي شوې وو او د خیبر د ټوپک لرونکو د احترام ګارډ هم راټول کړي شوي و. د ډکې قوماندان ته په خاصو مراسمو سره مکتوب وسپارل شو او لاربښوونه ورته شوې وه چې، په خپله دې امیر ته ورسوي.

کله چې حبیب الله د جورج پاچا لیک له قوماندان څخه اخیست نو ورته ودرید. دا د زیات احترام ښکارندوې و په دې چې هغه په داسې مواقعو کې معمولاً نه جګیده. هغه خپل لاس د قوماندان خواته ور اوږد کړ او قوماندان دومره تر احساساتو لاندې راغلی و چې لومړي یې د هغه لاس و نه لید. قوماندان چې هڅه کوله ونه ژاړي حبیب الله ته په مشرحه توګه په لنډیخانه کې د تسلیمولو شرایط بیان کړل او بیایې اووه میله، لی- مدفورډ lee- Medford تمانچې د هغه د اردلیانو د استعمال په خاطر ورکړ.

وایسرا حبیب الله ته ویلی وو چې مکتوب «له ځانه سره ځینې مادي ګټې لري. د اعلیحضرت حکومت خوښ دې چې ستاسو د اعلیحضرت سره د مرستې اندازه په کال کې دوو لکو روپیو ته لوړه کړي.» دا هغه شی و چې د حبیب الله مقصد هم د دغې پوښتنې په ترځ کې چې «څنګه د اعلیحضرت قدردانې څرګندیداې شی» پکې نغښتې و.

وایسرا د حبیب الله د متنی کولو په انتظار کې و او د غه متنه یوه میاشت وروسته هم لا نه وه راغلې. د هند حکومت وویل «د متنی معطلی زمونږ د حیرانتیا سبب گرځی او داسی معلومیږي چې گواکی د مخالفو قدرتونو لاس په کې دي. »

د مخالفو ځواکونو له خوا په یو پیغام کې چې بیرته جرمنی ته استول شوي و او د نیدرمایر له خوا لاسلیک شوي او داسی ویل شوي و «موږ د اکتوبر په ۲۶ نیټه بالاخره په دوستانه توگه پاچا وغوښتلو. د امیر توضیحات موږ ته چندانی امیدواري رانه کړه. لطفاً موږ ته هرڅومره ژر چې امکان ولري ترکان زما د کار د چټکتیا په خاطر راولیږي. »

ترکان ټینگ وو او د هیأت یو بل غړي داسی ولیکل: «زه عقیده لرم دا بیخی امکان لري چې افغانستان جنگ ته راکښل شی که چیري زرتنه ترکان له ماشنگنو سره او زما ټولگی دلته را ورسیږي ممکن موږ د دي ضرورت احساس کړو چې د یوي کودتا په سازمان ورکولو سره پیل وکړو. دلته د جگړي له پاره هیڅ شی تیار نه دی خو موږ چمتو یو چې پر بد بختیو باندي غلبه ترلاسه کړو. دا ضرور دي چې امنیتی قوا زما له ټولگی سره باید د (فارس) له اصفهان څخه تر سرحده پوري راشی ځکه چې لارد د دښمنانو له خوا نیول شوي ده له دي ځایه یعنی له کابل څخه موږ د هیڅ ډول مرستی طمع نه شو لرلاي! »

دغه لیکونه بیخی جرمنی ته و نه رسیدل. د لیکونو وړونکی وډار شو او په مشهد کی یی د روسیی جنرال قونسل ته تسلیم کړل، چې هغه دا لیکونه د هغه متحدینو ته ورکړل چې برتانویان وو. برتانویانو د دی لیکونو متن حبیب الله ته وویل او ورته یی وویل چې ممکن د یوی کودتا په اثر له منځه لاړ شی.

پر حبیب الله باندي د یوی بلی منبع له خوا فشار و. یوي ډلی هندي انقلابیانو چې زیاتره یی محصلین وو «د خدای لښکر» په نوم یی یو لښکر جوړ کړ او د هند د یو موقتی حکومت د جوړولو پلان یی ترتیب کړ چې د هغه له مخی به هندوستان د افغانستان د امیر تر واکمنی لاندي و. دا ډله چې مشري یی مولوي عبیدالله سندهی و، کابل ته په رارسیدو سره سم د ځوارلسو ورځو له پاره بندي کړي شوه چې وروسته خوشی شوه او ښه سلوک ورسره وشو. هغوی امیر «مذهبی خاین» وباله خو نصرالله د هغوی دوست و او امان الله دومره همدردي ورسره وکړه چې هغوي امان الله «بهترین سړی او د جهاد د پلوي» په څیر وگاڼه.

د خدای لښکر هم د جرمنیانو د ډلی په شان د یو قاصد د حجب له امله له منځه لاړ.

عبیدالله په داسې حال کې چې خپل پلان یې په دریو مربع شکله زیړو وریښمینو ټوټو لیکلی و، یو هندي ته یې ورکړ چې د هند توطئه گروته یې ورکړي. دې هندي نفر د یو برتانوي مامور په کور کې کار کړی و. دغه هندي د برتانوي مامور د زوي ساتنه کوله. هغه چې په هند کې یې په ښکاره توگه د ځان د تباهي فکر کاوه په غیر ضروري توگه د خپل بادار لیدنې ته ورغی. بادار یې ورځخه پوښتنه وکړه چې زما زوي چیرې دی. ده ورته یو تیر ایستونکې ځواب ورکړ. بادار د ده په وهلو پیل وکړ. په دې توگه یې قاصد تلاشي کړ چې په نتیجه کې وریښمینې لیکونه د برتانویانو په لاس ولویدل.

د دسمبر په ۱۱ نیټه حبیب الله چې پر خلکو باندې د خپل کنترول له لاسه ورکولو څخه په ویره کې و د برتانیې نماینده یې ځانته را وغوښت. دا نماینده حافظ سیف الله نومیده چې د نصرالله په شان یې قران شریف ټول په یاد زده و. حبیب الله د مخه تردې چې خبرې وکړي دروازه یې بنده کړه او د هغه ډیرې مهمې خبرې په دې ډول وې:

«زه دوه مخې سړی نه یم... که زه وکړای شم غواړم د برتانویانو ترڅنگ ودریږم، لیکن پرما باندې د فردي اعمالو له مخې قضاوت مه کوي.»

هغه هیله څرگنده کړه چې برتانویان دې د «هغو بې اساسو خبرو له مخې داسې ورباندې قضاوت و نه کړي بلکې د هغو واقعیتونو له مخې دې ورته ارزښت ورکړي چې د هغه په قول او عمل کې یې ویني.» هغه وویل زما په تیرو اعمالو کې هر انحراف که د برتانویانو په فکرونو یې شک نه وای پیدا کړي زما د مسلمانو اتباعو او د سرحدي قبایلي مسلمانانو په لاس به یې زما د کفر او بې دینې ثبوت ورکړای وای.»

په پای کې عامه ذهنیت حبیب الله دې ته اړ کړ چې له جرمنیانو او ترکي هیأت سره به تړون لاسلیک کړي خو شرطونه یې تر دې حده پورې سخت وو چې یوازې فاتح ترکیه او جرمنې کولای شول هغه ترسره کړي او په هغه صورت کې به یو گټور تړون هم و.» حبیب الله د لسو میلیونو ستر لنگ پونډ و او د زیاتې اندازې وسلو او مهماتو غوښتنه وکړه او هیأت ته یې وویل څرنگه چې د «شلو زرو تنو څخه نیولې تر سل زرو تنو پورې ترکان افغانستان ته راورسیږي» نو جگړه به سملاسي پیل شي. هغه دغه تړون د ۱۹۱٦ د جنورۍ په ۲٤ نیټه وکړل.

هغه څلور ورځې وروسته یې یو دربار تشکیل کړ چې تشریفاتي مراسم یې درلود او انگلیسانو ته یې د مخه خبر ورکړی و چې د کومې پیښې په واقع کیدو سره دې اندیښمن نه شي.

حبیب الله په داسی حال کی چې له خلکو څخه یی هیله وکړه چې ورته نژدې راشی ځکه چې په ستونی کی یی درد و او جګی خبري یی نه شوي کولی، اعلان یی وکړ چې په پارس کی کورنی جګړي پیل شوي دي او له یوه بهرنی ځواک څخه غوښتنه شوي ده چې د سولی د ټینګولو په خاطر دي مداخله وکړي. «د پښتو دغه حالت نامعقول او نه قانع کوونکی دي او په څرګند ډول د هر ملت ملی ژوند تباه کوي. اتحاد او پیوستون په یو هیواد کی یوازینی ستر ځواک دي چې د هغه په واسطه نوموړي هیواد قوي او ژوندي ساتل کیږي.

«پرته له دي قدرت څخه یو هیواد باید له منځه ولاړ شی لکه څنګه چې د دریو تنو مزاحمو کسانو له کیسی څخه څرګندیږي. د دغو دریو تنو څخه یو تن سید بل تن یی ملا او دریم تن یی یو علمی سړي و. دوي دري واړه د زردالو باغ ته ننوتل چې څه میوه وخوري. کله چې د باغ خاوند ولیدل چې د هغوي شمیر پر ده باندي زیات دي نو د دي له پاره چې پر هغوی باندي غالب شی له یو چل څخه یی کار واخیست. باغوان په لومړي سر کی علمی سړي ته وویل: «دغه سړي خو سید او د احترام وړ دي او هغه بل نفر هم ملا صاحب دي. د دوي په مقابل کی کوم اعتراض نشته ځکه چې د رسوخ خاوندان دي خو تا څه حق درلود چې زما باغ ته را ننوتی او تاوان دي راته ورساوه. ملا او سید ساده توب وکړ او د باغوان د خبرو ملاتړ یی وکړ او د عامی سړي د نیولو په برخه کی یی له باغوان سره مرسته وکړه. باغوان عامی سړي ونیو او ټینګ یی وتاړه. وروسی د باغ خاوند دغسی خبري ملا ته وکړي او سید یی وپاروه چې ورسره مرسته وکړي او ملا ونیسی. په دغه وخت کی سید یوازی پاتی شو او د باغوان له پاره اسانه شوه چې ورسره فیصله وکړي کله چې دري واړه مزاحم کسان یو پر بل پسی ونیول شول نو پرته له دي چې قضیه تشریح شی په بهتره توګه اټل کیداي شی چې باغبان به پر دوي باندي څه کوي وي.

حبیب الله وویل چې دي لنډي کیسی را وښودله چې د زمامدار او د اتباعو په منځ کی باید هیڅ ډول اختلاف او شخړي وجود و نه لري په تیره بیا په هغو وختو کی لکه د حاضر وخت په شان د جنګ د اور شغلی اسمان ته پورته شوي دي.

«په همدي مناسبت می دربار جوړ کړی دی چې تاسو پر دي باندي پوه کړم چې په شاوخوا هیوادونو کی څه پیښی دی دا په دي خاطر چې د پښتو د خبریدو وسیلی نسبت له تاسو له ماسره زیاتی دي او تاسو ته د کومی واقعی د پیښیدو د مخه خبر درکوم چې بیدار و اوسی او د هر هغه شی په مقابل کی ودریږي چې نوروته خطر پیښوي. ما امر کړي دي چې دغسی دربار

دي د ټولو ولایتونو په مرکزونو کې جوړ شي او هم مې ویلي دي چې د متحد المال لیکونو (په دغه وخت کې حبیب الله خپل لاس جګ کړ او هغه متحد المال مکتوبونه یې خلکو ته ښودل چې تیار چاپ شوي وو) په ذریعه، د دې خلک وپوهول شي او دا مکتوبونه به د اعتباري استازو په واسطه ولیږل شي چې زما له خوا د ولایتونو په جوړ شوو دربارونو کې یې خلکو ته ولولي او یوه یوه نسخه دې هري یوه نماینده ته ورکړله شي ان که د یوې کوچنې قبیلې او قوم نماینده هم وي. د شاهي کورټې لوړ رتبه ماموړینو ته امر کړی دی چې له نماینده ګانو څخه دې په خپلو کورونو کې ښه هرکلی وکړي او هغوې دې له جریان څخه خبر کوي.»

په دې وسیلې سره حبیب الله غوښتل چې ټول دربار ته د ترې شخړه په ښه توګه څرګنده شي. کله چې حبیب الله غوښتل د متحد المالو د دلی (کوټې) ځایونه ووینې په خپله په محکمه کې جنجال را څرګند شو. د هغه د مالیې افسر، مستوفي الممالک وویل چې متحد المال تر اوسه پورې په مطبعه کې دي.

دغه څنډ هغو کسانو ته شکمن ښکاره شو چې له هغې مشاجرې څخه خبر وو چې څو ورځې د مخه د امیر په حضور کې ترسره شوې وه. مستوفي الممالک چې د نصرالله او عنایت الله دوست و او د هغې ډلې له مشهورو غړو څخه و چې د مذهب له امله یې له انګریزانو څخه کرکه کوله ویلي وو: «انور پاشاه له قیصر څخه لوړ نشان ترلاسه کړی دی نو زه هم د اعلیحضرت امیر څخه د غسې یو شي انتظار لرم ځکه زه چمتو یم ځان، مال او اولاد د اعلیحضرت په خاطر قربان کړم. زه په خپله کولی شم یوازې له کوهدامن او کوهستان څخه شپږ سوه زره تنه چې ټول په بشپړ ډول وسله وال وي برابر کړم. که چیرې موږ د مسلماني دعوا کوو نو باید چې د خپل دین او دیني ورونو ترکانو سره مرسته وکړو. که موږ له برتانویانو سره دوستي کړې وي نو باید اوس هغې دوستي ته خاتمه ورکړو ځکه موږ ته د ترکې ورونو له خوا د یو هیأت په ذریعه پیغام راغلی دی او پکې ښودل شوي دي چې زموږ مرستې ته اړتیا لري. که داسې و نه شي نو هغه له منځه ځي او د هغوې تابودي په رښتیا سره زموږ نابودي ده ځکه چې موږ او ترکان د هغې ونې څانګې یو چې ریښې یې یوازې مذهب تشکیلوي.»

نصرالله ورسره موافقه وکړه سیف الله هم همداسې وکړل.

خو د یو بل مهم افغان له خوا مخالفت وشو چې دغه مخالفت سیاسي اړخ درلود نه مذهبي. نوموړي شخص مصاحب یا هغه رسمي مامور و چې حبیب الله له پنځو تنو زامنو سره له

هند څخه بیرته را غوښتې وچې د تبعید په حال کې یې هلته ژوند کاوه. د دغو پنځو څخه یو زوی یې نادر نومیده چې د افغانی پوځونو ستر درستیز و. مصاحب وویل: «دا جګړه مذهبی جګړه نه ده، برسیره پر دې، موږ د انګریزانو له خوا په هیڅ یوه برخه کې کوم خیانت نه دی لیدلی. هغوی زموږ دوست ځکه نه دي او په هر حال موږ د دې توان نه لرو چې په یوازې توګه د هغوی په مقابل کې ودریږو. ایا تاسو غواړئ له ترکانو سره په هغو وسایلو مرسته وکړئ چې له هند څخه راغوښتل کیږي. د مثال په توګه د خاورو تیل په نظر کې ونیسئ چې یوازې د کابل د ښار د روښانه کولو له پاره هم کفایت نه کوي خو زه فکر کوم موږ کولای شو ستاسو تبصرې تا اوریدلې وبولو ځکه تاسو په دې قادر شوی نه یاست چې هند ته ولاړ شی او برتانویان په خپلو سترګو ووینی.»

امیر حبیب الله په داسې حال کې چې د مذهب مسئالې ته یې مخه کړه داسې تبصره یې وکړه چې اسلام هغه امانت ته د وفادارۍ پر بنیاد ولاړ دی چې یو نفر د هغې وعده کړې ده.

نصر الله او عنایت الله اعتراض وکړ. هغوی وویل چې ټول ملت د یوه سوي قرار داد او موافقې ته نه شي تسلیمیدلای که څه هم دا سړی پاچا وي یو پاچا باید د خلکو د رایو غوښتنه وکړي دا د قران شریف واقعي معنا ده.

دقران شریف د آیاتونو د نقل شخړه په تیره بیا د نصرالله په مقال کې چې قران یې په یاد زده و د حبیب الله د پام وړ ونه ګرځیده. هغه یو په غوصه شوی یو امیر و چې په تونداواز سره یې وویل چې ښه ده چې نصرالله سملاسي څوک و استوي او د برتانیې استازې دې را وغواړي چې ممکن ورته اخطار ورکړ شي چې هند ته لاړ شي او دا کار به د لویې برتانیې سره د جګړې مقدمه وي. د دې خبرې په اوریدو سره ټول غلي شول. حبیب الله په چټکې سره بلې کوټې ته ولاړ.

حبیب الله حتی په خپلې کورنۍ کې هم ځوریدلی او تر حملې لاندې راغلی و او وایسرا ته د دوولکورو پیسود مرستې د زیاتوالي په باب وویل: «دغه لږه اندازه تلافي به د افغانستان عزت ته سپکاوی وبلل شي. د وایسرا ځواب چې په احساساتي توګه ورکول کیده د دوو حریفانو یعنې روس او انګلیس له خوا چې اوس سره متحد شوي وو د افغانستان پر ضد د پردې تر شا یو د جګړې د تهدید ځواب و. لیکن برتانیه په اندیښنه کې وه او یو مامور په لندن کې د هند د دفتر یو یادداښت ته ځیر شو چې پې داسې راغلي وو: «موږ د مخه اوریدلي وو چې

علیاحضرت په کلکه سره د برتانیې پلوي ده خو هغه په زیاته اندازه اروپايي شوې ده او د هغې د نفوذ د تاثیر په اندازه کې شک لیدل کیږي. آیا دا به پرځای وي چې هغه ته د هند تاج (چې د یو ډول سینګار دی) د هغې د تشویق کیدو په خاطر ورکوو. البته نه. د هندي مشرانو د ښځو د نومونو لست چې د همدي مقصد له پاره ترتیب شوی دی د ی د اهمیت وړ نه دی او دا کار ممکن د یو بل توهین په توګه وګڼل شي.

په همدي وخت کې حبیب الله هیله وکړه چې له ده سره د مرستې له هغو نه څلویښت لکو کلدارو له جملې څخه چې په بانک کې امانت ایښی وي څلور څلویښت لکه دې ورته راولیږلې شي. د دومره زیاتو پیسو غوښتنه د منلو وړ کار نه برېښي خوښايي امیر په رښتیا سره هم پیسې وغواړي هغه بې له کوم شکه ښايي دا هم وغواړي چې پیسې یې خوندي وي او ممکن په دې کار سره هم زموږ ښه نیت او هم په دې برخه ی زموږ توان ځانته معلوم کړي. په هر حال موږ به دا پیسې په رښتیا سره سملاسي ورته ورکړو. »

په عین وخت کې په اروپا کې جګړې ځان ته فلسفي ښه غوره کوله او هغه دا چې کله چې د جګړې په پای کې د نوي نړې خبرې کیدې د سولې د کنفرانس خبرې کیدې چې د وړو هیوادونو هیلې به په پام کې نیسي داسي شعارونه اوریدل کیدل لکه « د دموکراسۍ له پاره نړې د امن ځای ګرځول » « داسي تړونونه دې وشي چې په آزاده توګه موافقه ورباندې شوې وي » یعنې « د سرنوشت د ټاکنې حق ».

حبیب الله چې د سنټ پترزبورګ تړون او د ستر و هیوادونو ظالمانه سلوک ورپه یاد کړل، نو د خپلې کورنۍ دا پیشنهاد یې په اخلاص سره ومانه چې باید لږ ترلږه د انګلستان څخه ژمنه واخلي چې افغانستان ته به د سولې په کنفرانس کې برخه ورکړه شي.

وایسرا لارډ چلسفورډ د هند د بهرنیو چارو وزیر سرایستن چمبرلین ته ولیکل: « په رښتیا چې دا یوه معقوله غوښتنه ده. په حقیقت کې موږ فکر کوو چې حتی ډیر پیاوړي سیاسي دلیل هم نه شي کولای موږ قانع کړي چې د جګړې په پای کې د سولې په هر ډول کنفرانس کې د یو کوچني بې طرف هیواد د نماینده د ګډون کولو پیشنهاد وکړو. »

حبیب الله چې د خپل هیواد او خپلې کورنۍ ستونزو وارخطا کړي و د لویې برتانیې کلک متحد پاتې شو.

خو په ۱۹۱۷ کال کې برتانیې خپل یو مهم متحد له لاسه ورکړ د روسیې تزار د مارچ په

۱۵ نیټه ورځخه لاس واخیست او د شوروي دولت له جرمني او ترکیې سره یوه ځانګړي سوله لاسلیک کړه او ټول هغه بندیان یې خوشې کړل چې روسي ترکستان ته داخل شوي وو او خپل متحدینو ته یې د افغانستان له لارې د خطر نوي امکانات برابر کړل ځکه هغه اتریشیان او جرمنیان که سره یو موټي شوي واي او تر اداري لاندې نیول شوي واي ممکن هند ته متوجه کیدل.

حبیب الله د هند وایسرا ته یو پیشنهاد ولیږه چې یکې ورځینې غوښتنه شوې وه چې له روسي او د هغه له نوي رژیم سره دې سملاسي جګړه پیل کړي، وایسرا د دیپلوماتیکي هوښیارۍ څخه په کار اخستلو سره د غه پیشنهاد لندن ته وانهستاوه چې هلته بنایي صرف د یوې چانس وهلو په حیث نه واي تلقي شوي[۲].

تقریباً ه همدې وخت کې سراج الاخبار د سام اکا (uncle sam) کارتون خپور کړ چې خپله ګوته یې وچولي ته نیولې وه او داسې ښکاریده چې کوم تصمیم نیسي. او د ۱۹۱۷ کال په اپریل کې د امریکې متحده ایالتونو تصمیم ونیو چې له برتانیې سره متحد شي.

د ۱۹۱۸ کال د نوامبر د میاشتې په ۱۱ نیټه د سهار په یوولسو بجو متحدینو یو بري اعلان کړ چې حبیب الله په هغه کې د زیاتې برخې درلودلو ادعا وکړه.

حبیب الله ویلي وو: «دا زه وم چې باعث وګرځیدم، هند له خپلو عسکرو څخه ځان داسې خلاص کړي چې وکولای شي په فرانسه اروپا او مصر کې وجنګیږي.» هغه رښتیا ویلي وو له اووه سوه زره تنو څخه زیات عسکر له هند څخه اروپا ته د جنګ له پاره تللي وو او ځینې یې چې په زیاته میړانه جنګیدلي وو له افغانانو سره یې نژدې کورنۍ او مذهبي اړیکې درلودې. مسلمانانو د هند د نفوسو یوازې پنځمه برخه جوړوله خو سره له دې هم له دریمې برخې څخه زیات عسکر له هغوی څخه برابر شوي وو. د دوو ایالتونو قبایل چې له افغانستان سره یې جغرافیاوي او قومي نژدې اړیکې درلودې، د ټولو مسلمانانو د عسکرو د شپږو برخو څخه پنځمه برخه هغوی برابري کړې وې. دا دوه ایالتونه د پنجاب ایالت او شمال لویدیځ سرحدي ایالت و چې د هندي مسلمانانو پنځمه برخه یې تشکیلوله[۳].

د هغوی په شان حبیب الله هم د خپلې حمایې تاوان په غاړه اخستی و چې دا د وینې تاوان نه بلکې د داخلي ضعیف موقف درلودلو تاوان، د اخلاقي ځوریدنې تاوان په افغاني ټولنه کې د مخالفو عناصرو د دوه قطبي کیدلو تاوان و هغه په داسې حال کې چې د بر ستړي شوي و خپل ډیر ډیر شاهانه صلاحیتونه یې نورو خلکو ته وسپارل.

امان الله، او ډیرو نورو ته دا څرګنده وه چې نوي نړۍ چې د هغې په باب خلکو په هر ځای کې خبرې کولې په زاړه نظام کې د بدلون راوستلو معنی لرله حتی په افغاني ټولنه کې هم.

# دریم فصل

## له ۱۹۱۸ څخه د ۱۹۱۹ کال د فبروري تر ۱۹ پوري

د یو ځوان شهزاده په توګه د امان الله خوښیدل چې اوږد زوړ کمیس او پرتوګ واغوندي خړه لونګۍ په سر کړي مستعمل پوستین پر اوږو واچوي او سیخ د سماوار دوکانو ته ولاړ شي چې خلکو به پکې پلتۍ وهلې ناست او تورکۍ تکالۍ به یې سره کولې.

د هغه په ملګرتیا کې برازي یو تن د باور په توګه هم و چې د هغه په تن کې به هم ورته جامې وې. د تیلي څراغ رڼا به تته وه. که چیرې به د اوښنو او حلبي جوړونکو له ډلې څخه کوم یو شهزاده وپیژاند نو د هغه په باره کې به یې نورو ته څه نه ویل.

وروسته امان الله د امیر په توګه هم همدغسې ځایونو ته ته، یوځل په هزاره جاتو کې چې د افغانستان په منځنۍ برخه کې موقعیت لري د سماوار په یوه دوکان کې یې پوښتنه وکړه چې خلک ولې له مامورینو څخه شکایت کوي. یا امیر تیره اوونۍ ستاسو ولایت ته نه وه راغلی او مامورینو ته یې لارښوونه ونه کړه چې له خلکو سره ښه چلند وکړي هغه ته په ځواب کې وویل شو «د خلکو سره د امیر لیدنه کتنه د اوړي د باران په شان ده دومره ژر پای ته رسیږي چې ښایي څوک بیخي ونه پوهیږي دغه لیدنه کتنه کله ترسره شوې وه» دا یوه داسې پوهه وه چې که چیرې یې د یو زړ او یو شپو هارون الرشید تقلید نه یلکی د خپل پلار حبیب الله څخه یې پیروي کړې وای هیڅ کله به یې په برخه شوې نه وه.

د ژمي په موسم کې کله چې امیر د دربار غړي به د جلال آباد د تودې سیمې ته تلل

امان الله به د کابل د والی په توگه په کابل کی پاتی کیده په دغه وخت کی به د ده بندي خانی کتلی او هغه محور خلک به یی له بند څخه خوشی کول چې د ده د پلار له خوا بندیان شوي وو. د دغه بندیانو خوشي کول چې به ممکن کله کله بوالهوس وه او د احساساتو پواساس به ترسره کیده خو بنایی په همدې توگه به هغوی بندیان شوی هم وو. اکثراً به یو بندي د دي له پاره چې په بیره کورته ولاړ شي پیسو او د خوړو موادو ته اړتیا لرله امان الله به دغه شیان ورته برابرول. هغو بندیانو چې خپلوان نه درلودل چې ډوډۍ ورته راوړي او تش به د بندیخانی ناڅیزه غذا ته ناست وو امان الله به هغو ته خواړه برابرول کله چې به خلکو غوښتل د لیری ولایتونو څخه کابل ته د کار له پاره راشی امان الله به د هغو له پاره اسانتیاوي برابرولی.

هغه به د خپلو خپلوانو سره د مړو د فاتحی په مراسمو کی گډون کاوه چې پکی د مسلمانانو د دود او رواج له مخی د قرآن شریف آیتونه لوستل کیدل. داسی تولنیزو مراسمو ته امان الله د خپلی مور له خوا هڅول کیده. همدا ډول په هغې کی دا لیاقت هم لیدل کیده چې د تاج او تخت د لاس ته راوړلو په منظور امیر حبیب الله خان ته مشوره ورکړي. او د یوي مودي له پاره داسی احساس کیده چې په افغانستان کی گډوډي منځ ته راځی چې معمولاً د یو امیر د له منځه تلو سبب گرځی او هغه د عسکرو د معاشونو په زیاتولو سره وکړی شو دا نیمگړتیا له منځه یوسی. امان الله د یوي اوږدي مودي له پاره د خپلی مور پوازینی زوي او هغه وسیله وه چې د هغی په ذریعه د علیاحضرتی هیلی ترسره کیدای شوی او غوښتونیی عملی بڼه غوره کولاي شوه.

امان الله یو زړه راښکونکی شهزاده و. د افغانی معیارونو پر اساس برابره ونه چاغ گردی مخ او روښی غټی توری سترگی یی درلودي چې تل متحرکی وي. خپلی خبري به یی د لاسونو د حرکت په واسته تنظیمولی او د خپلو خبرو په ترځ کی به په داسی توگه پر مخ روان و چې تا به ویل په زړه کی ډیر مطالب لري چې د معطل کولو انتظار یی نه شي ایستلاي. د ۱۹۱۹ کال په پیل کی په ټول افغانستان کی د امان الله نوم په مینه سره یادیده.

له بلی خوا امیر حبیب الله ته د هغه د تیرو کلونو ټولی خطاگانی ور په یاد بدي او لوبیدي. په هغه وخت کی چې افغانستان د عمومی جگړي د قواو په واسطه هري خواته راکښل کیده خو له صحنی څخه د لیري او بی کفایته امیر په احساساتی اسارت کی راگیرو. اوس بهرنی فشار له منځه تللی او د هیواد سترگی په تعجب سره امیر ته متوجه وی. دا د هغه واده

په شان و چې د سختو کلونو په دوران کې یې ځان ژغوزلی و او وروسته په سوله کې له منځه ولاړ ځکه لکه څنګه چې میره ویلی وو « مور هیڅ کله دا چانس نه درلود چې پوه شو څنګه مو احساس کاوه. دا به یوداسې شی و لکه چې سری د زلزلی په وخت د زړه ضربان واخلی.

خلکو په بازارونو کی د خپل امیر په باره کی ویل: « هغه نیکمرغه دي. ډیر پخوا یې پاچاهی پرې ایښی ده او خداي په امانی ورسره کړی ده. »(۱)

خلکو د هغه د داسې چرګانو خوړلو په باب خبري کولی چې فرانسوي آشپزان به یې سرونه شکول. مسلمان د چرګ د حلالولو په وخت یا د ښکار په وخت کی څنګه چې د ټوپک ماشه کشوي سمدستي ورسره « الله اکبر » وایی. نو د یوداسې شی غوښی خوړل چې غیر مسلمان د خدای له یادولو څخه پرته حلالول د مردارو خوړل و. هغه به تل اروپایی جامی اغوستلی. اوس دغه ټول شیان خلکو ته ځوروونکي و. کله چې د ټولو حاضرو کسانو پرځاي یوازې یو شمیر درباریانو ته له ده سره ډوډي خوړلو بلنه ورکوله نو هغوي به ویل چې امیر ممسک دی(۲).

په تیره بیا خلکو د هغو پیسو او وخت په باره کې شکایت کاوه چې حبیب الله په خپلو تفریحی او هوسی شیانو چې غوره یې ښځې وې مصرفولی. د هغه حرمسراي د ختیځ له سترو وروستیو حرمسرایونو څخه شمیرل کیده. کله به چې کومی قبیلی غوښتل امیر ته سوغات ورکړي نو هغوي پوهیدل چې نجلی ښه سوغات کیدي شی. هیڅوک د هغه د حرمسراي د ښځو له شمیر څخه خبر نه و خو د هغه د ماشومانو شمیر اته پنځوسو تنو ته رسیده چې د حرمسرای د اوسیدونکو تقریباً څلورمه برخه جوړوله چې د روایاتو له مخی ده ته منسوب ګڼل کیدل.

د مازیګر له خوا به حبیب الله داسی په سپرلی چکر نه وت چې یو شمیر ښځې به داسی په سپرلی ورسره تلی. د دغو ښځو په تن کی یو ډول جامی لیدل کیدي چې د کیسونو غاړي به یې جګې او کلکی او د پتلونونو پایڅی یې تنګی وی. دا جامی په لندن کی هغوی ته یوګنډونکی جوړولی چې د ټولو د قد او اندام اندازه ورسره وه. کله به چې د پاچا ښځې پر اس سپری وی نو یو ډول خولی به یې په سرولی چې ورځینی به نوي نازک نقاب د دوي پرمخ لویدلی و. د کابل په نورو برخو کی ښځو چادري ګانی په سر کولی چې د سرنه ترپښو پوري په کی پټیدی او د لیدلو له پاره به یې یوازي د سترګو په برابر کی یو څو سوري موجود وو. د کابل څخه د باندی په ولایتونو کی چې ځلی مجبوری وی په کروندو کی کار وکړي نو د خپل اقتصاد سره سم یې له داسی جامی او ټکري څخه کار اخست چې په اخلاقی معیارونو برابر و. د پاچا ښځی دومره

آزادي وي چې يو ډول ځنډي لرونکي خولۍ به يې په سرولې چې تقريباً مخونه يې پکې پټيدل او دا ډول خولۍ په اروپا کې ښځو د موټر چلولو پـه وخت کې په سرولې. هغوي به زياتره په دربار کې له نارينه و سره ليدنه کتنه کوله او خبرې به يې ورسره کولې. د علياحضرت له لورنيو ځخه يوې چې نورالسراج نوميده لا د مخه د مصاحب ډيوه زوي هاشم سترگي ښکاری کړي وي.

د افغانستان خلک له دغو جامو ځخه چې په لندن کې جوړيدي او راوړل يې له دومره ليرې سيمې ځخه اقتصادي نه تاميدل راضي نه وو. هغوي په قصرونو کې د کور له اروپايي ډوله سامان او د پاچا له دې کار ځخه چې د عکسونو چاپولو او د تيپرو د شوروا په جوړولو به يې ډير وخت تيراوه کرکه درلوده. هغوي د امير دا خوشحالي هم بده گڼل چې د لويې برتانيې برې يې اعلان کړی و.

حبيب الله خلکو ته د شکايت کولو علت په خپله براېراوه ځکه چې د بې باکۍ او بې مسؤوليتۍ په لور روان و. خلکو ته به د ډير کوچني جرم په بدل کې سخت سزا ورکول کيدله. مستوفي الممالک چې په يو وخت کې يې د بډو په اخيستو سره خلک استثمارول او د حبيب الله له خوا په اعدام ترې شوی و اوس د غټو مشاورينو له جملې ځخه و. حبيب الله د دغه سړي په باب ويلي و «هغه ليوه دی خو تر لاس لاندې دی »⁽³⁾ داسې گونگوسې کيدي چې حبيب الله په حرمسرای کې د خپل فعاليت په خاطر له قوي درملو ځخه کار اخيست او دا چې دغو درملونو د هغه په شخصيت باندې ناوړه اغيزه کوله.

د ده او علياحضرتی ترمنځ اړيکې نور د پخوا په شان نه وی. د دوي په منځ کې تل د مينې او ارادې قوي اړيکې موجودې وی. خلکو شک درلود چې د ده کورنی معامله به د عشق او جذبې له مخې نه بلکې زياتره تشريفاتی بڼه لري. اوس د دواړو له خوا ټول مينه له منځه تللې وه او د هغه د اولس په شان دواړو يو بل ته په رډ وکتل. علياحضرتی چې له نورو ښځو سره يې د حبيب الله د اړيکو زغم کاوه چې د ډيرو ښځو کولو په ټولنه کې يو عادي کار دي اوس يې د هغه له داسې اعمالو ځخه کرکه کول. ده چې يو وخت يې شپه د اوري په مانۍ کې تيره کړه کله چې هغه له خپل بستر ځخه وشاړه او بيا يې د هغې د پخلا کيدو په خاطر ورته په خپل لاس چای تيار کړ اوس دا ورته يوه بد ژبې او شريره ښځه ښکاريدله.

د ۱۹۱۸ کال په ورستيو وختو کې د ده له ځلورو ملکو ځخه يوه يې چې د عنايت الله مور وه مړه شوه. هغه يوه بله ښځه وکړه او د دغې نوي ښځې د واده په ارتباط د علياحضرتی د

موقف په باب خبري او تبصري کېدې ځکه چې نوي ناوې هم د علیاحضرتي په شان له یوې نجیبې کورنۍ څخه وه او ورته مناسب نه وو چې لکه د نورو ښځو په څېر هغې ته غاړه کښېږدي.

حبیب الله د خپلې نوې ښځې په مقابل کې په جنسي لحاظ بې فعالیته و. په افغانستان کې زیاتره داسې پېښې صورت نیولې چې د واده په لومړیو دریو شپو کې زوم «تړل کېده» چې جنسي فعالیت نه شو اجرا کېدې. د دې له پاره چې د دښمنانو له خوا د دغه عمل مخنیوی یې کړی وي ځېنو کورنیو به مخکې له مخې دا خبري کولې چې مور د مخه رد جادو او تعویذ کړي دي. په حقیقت کې د زوم له پاره چې خپله ښځه یې د واده تر شپې پورې نه وه لیدلې دا نو له مهربانۍ څخه ډک یو ارو څو د وصال په وخت کې د خپلې ناکامۍ په مقابل کې ځان و نه بایلي. سره له دې حبیب الله دغسې شیانو ته اړتیا نه لرله.

د حرمسراي خبرې حتی دغسې خصوصي خبرې هم ژر ټولو درباریانو ته معلومې شوې او ویل کېده چې علیاحضرتي په دغه نوي واده کې له جادو څخه کار اخستی دی. پر حبیب الله باندې د علیاحضرتي د نه ماتېدونکي نفوذ په رڼا کې ښایي د خلکو دغه گونگوس له رواني پلوه واقعي اغېزه کړې وه. په هر حال حبیب الله ژر خپلې ناوې ته طلاق ورکړ او بېرته یې د خپل پلار کورته ولېږله.

خو هغسې چې افغانانو په بازارونو او کوڅو کې فکر کاوه حبیب الله په قطعي توگه خپل هېواد نه و هېر کړی دی لا هغې جایزې ته سترگې په لاره و چې د هغې د لاس ته راوړلو له پاره یې د ټولو مخالفتونو په مقابل کې خپل وطن بې طرفه ساتلی و.

په دغه وخت کې افغانستان د پیاوړي، که څه هم کمزوري شوي هند، او د روسیې د داسې هېواد ترمنځ موقعیت درلود چې حکومت یې د خپل تیت او پرک حالت بېرته سمولو په لاره کې دومره مصروف و چې د فتوحاتو له پاره یې نوره انرژي نه لرله. په حقیقت کې په خپل روسي ترکستان حایل واقع شوی و. په دغه ځای کې د سرکونو د جوړېدو څخه د مخه د اورگاډي پټلۍ جوړې شوې وې کله به چې د اورگاډي یاغي کارگرانو اورگاډي ته توقف ورکاوه ارتباط به گران شول او د مرکزي حکومت د اداري په لاره کې به خنډ پیدا کېده.

د ترکستان د حکومت رئیس کولای شول هر یو ځې فرمان چې د لنین او تروتسکي له خوا به لاسلیک شوي و وگوري او داسې ووایي: «دا فرمان مور ته د یوې ټوټې کاغذ څخه پرته بل

څـه نه دی. مسـکو دومره لیـري دی چې مـوږ کـولی شـو هغـه څـه وکـړو چې زمـوږ په نظر سم بریښي. »(٤)

خو په دی نړی کی به وروسته له جگړی څخه زور او قـوت مـهم نه وي. سترو قـدرتونو هم داشي ویلی وو په تیر بیا د امریکی جمهور رئیس وډ رو ویلسن (Woodrow ilson) د خـود ارادیت او د کوچنیو هیوادونو حقوقـوته د درناوي په ارتباط دا ډول خبري کړي وي. د نړی ټولو وړو هیـوادونو چې د ډیرو نـومـونـه هیڅ کله د اولس پـه فکر کی هم نـه راتلل فکر کـاوه چې دغـه خبری پر هغوی باندی تطبیق کیدلی.

د ۱۹۱۹ کـال د جنوري په ۱۸ نیـتـه په پاریـس کی د سـولی کـنفـرانس جـوړ شـو. ژر د وړو هیوادونو هیله من استازي له دي کنفرانس څخه را چاپیر شول چې که بین المللی نوي عدالت په کی ووینی. یو امریکایی ژورنالیست دغه خلک له هغو کسانو سره تشبیه کړل چې فلج شوي وو او زړه نازره د هیوادونو په ډله کی د معـجزه لرونکی ډیپلوماتیک ډنډ څخه د داسی اوبو د را بهیدو انتظار باسی چې هیڅ کله را ونه بهیدلی. »(٥)

دانګلستـان د بهرنیو چارو وزیر لارد کرزن له دي څخه شکایت کاوه چې د «ځمکی د مخ د هر هیـواد د خلکو ډلی لکه سوریاییـان، صیـهونستـان، امریکاییـان، پولنډیـان او کرابینیان او کلدانیـان هریو غواړي پـه کنفرانس باندي نفوذ ولري». هغـوی په همدی هوټل کی کوټی نیسـی چې موږ پکی اوسیږو او په هره خوا چې موږ ځو هغوي زموږ د پښو پل تعقیبوي. »(٦)

په پای کی د فـارس هیـأت په نارضـایتی سـره خـپل هیـواد ته راسـتـون شـو. د هندو چین یو ځوان سړی چې وروسته یې د هوچی من نوم ځان ته غوره کړ کله چې هیڅ یوه مامور د هغـه خبرو ته غوږ و نه نیوه خپلی کوټی ته ولاړ او ویی ژړل(٧).

خو حبیب اللّه د ۱۹۱۹ کال د فبروري په دویمه نیټه له دي څخه هیڅ خبر نه و کله چې هغه لکه د ټولو نورو هیله منو ایډیالیستانو په څیر وایسرا ته لیک و استاوه چې افغانستان ته دي هم اجازه ورکړله شي چې د سولی په کنفرانس کی ګډون وکړي.

«... ما دا ضـرور او پر ځان فرض وګڼله چې د لیک په ذریعـه ستـاسـو لوړ حضور ته عرض کړم چې که د انګلستان ستر دولت د دغه کنفرانس د غړو او ګډون کوونکو څخه لیکلی موافقه ترلاسه کړي چې د افغـانستـان مطلقـه دایمی خپلواکی په بشپړه توګـه پکی ذکر شوی وي او هم په راتلونکی کی د نه تیـري لا نه وهنی او یا د کوم بل خطر د نه پیـښیـدو ذکر پکی شوي وي او

دا موافقه لیک که زه ترلاسه کوم نو ښه به وي. او که نه نو د افغانستان استازي به خامخا په کنفرانس کی گډون وکړي چې د خپلی خپلواکی دادِ ورکاوه چې انگلستان به بیاهم د افغانستان په باره کی خپلی پام لرنی ته دوام ورکړي.

په هغه ورځ د فبروری په ۱۹ نیټه امیر حبیب الله په جلال آباد کی په خپلی ژمنی مانی کی و او د کیمپنگ د تلو او کب نیولو سفر تیاری یی نیوه او زیاترو افغانانو چې د حبیب الله له هغو فعالیتونو څخه خبر نه وو چې د دوی په نماینده گی یی ټول دغه کار د هغه یوه بله د خود خواهی عیاشی وگڼله.

په کرم شی باندي چې دوي پوهیدل دا و چې یوه ښپیشه ارواح په هیواد کی لیدل کیده. کومه پیښه رامنځ ته کیدونکی وه. د امیر د کالیزي په ورځ کله چې هغه پر اس باندي سپور شو او د کابل بازارونو ته ولاړ د یو نامعلوم قاتل له خوا ورباندي ډزی وشوی. په تیرو میاشتو کی حبیب الله د هغو شیانو په جمله کی چې د ده ډیر خوښیدل خپل زوی امان الله یی هم شامل کړی و چې هغه یی اوس ښه نه ایسیده هغسی چې د ده احساس د علیاحضرتی د زوی په مقابل کی جریحه دار شوی و د هغه زوي اوس ډیر مشهور شوي و او حبیب الله هم د دی احساس کولو چې خلک له ده څخه اوړي.

مستوفی الممالک حبیب الله ته وویل چې علیاحضرته او امان الله ستاسو د وژلو په لټه کی دي. د بازارونو د ډیرو افواهاتو او گونگوسو وروسته ژوند د پخوا په شان پرمخ تله خو یوه کیسه وه او هغه دا چې ویل کیده نصر الله د امان الله او علیاحضرتی د ژوند د ساتلو له پاره د هغوي شفاعت کړی دی.

خو داسی معلومیده چې امان الله ته لیږي ورځی پاتی وي چې د کابل د والی په توگه پاتی شی. حبیب الله چې غوښتل زامن یی په وار سره مقامونو ته ورسیږي خپل د یاده وتلی زوي حیات الله ور په یاد شو. حیات الله د فبروري په ۱۹ نیټه د موټر په ذریعه، له جلال آباد څخه کابل ته راغی چې د امان الله ځاي ونیسی. زیات شمیر درباریان له امیر سره جلال آباد ته تللي و حتی علیاحضرتی چې له امیر سره د لانجی د لرلو سره سره خپل سیاسی دریغ یی ساتلی و هغه هم جلال آباد ته تللی وه.

د فبروري په ۱۹ نیټه حبیب الله د اس په سپرلی په لغمان کی د یوي دری په لور روان شو چې ښپه هلته تیره کړي. نصر الله او عنایت الله هم ورسره لاړل. همدارنگه عمومی قوماندان

نادر، ورور یې شاه ولي، او د هغوي پلار او اکا هم ورسره ولاړل. په دې ډله کې یو بل تن د امان الله یو ځوان ملګری و چې شجاع الدوله نومېده. دی د دربار فراش باشي یا سرخزانه دار و چې یوه اوونۍ مخکې یې د یوې کوچنۍ سرغړونې په وجه په محکمه کې د حبیب الله په امر وهل خوړلی و.

خیمې د یوې ویالې په غاړه درول شوې وې. وروسته له هغه چې د شپې ډوډۍ وخوړله شوه او د ماسختن لمونځونه وشول د ګارډ له ساتونکو پرته نور ټول د دغې لیرې سیمې په چوپه چوپتیا کې ویده شول. د نادر د اکا زوی احمد شاه د ګارډ قوماندان و. په دغه ورځ یو څلیر ویشت کلن ځوان چې شاعلي رضا نومېده او د ډګرمنۍ رتبه یې درلوده نوکریوال و د سهار په دریو بجو یو څوک د حبیب الله خیمې ته ننوت او ګولۍ یې په مغزو کې ورته تشه کړه.

# څلورم فصل

## د ۱۹۱۹ کال د فبروري له ۲۰ څخه
## د ۱۹۱۹ کال د اپریل تر ۱۳ پورې

افغانستان ته هیڅ معلومه نه شوه چې حبیب الله چا وواژه. خلک ګرد چاپیر ورته پراته وو ځینې ویده او ځینې ویښ او د ګرځیدا په حال کې وو، په هغه چوپه چوپتیا کې د تمانچې ډزې ناڅاپه هر یو متوجه کړ. د اریانتیا خبره پوازې دا نه وه چې د دغو ټولو خلکو په منځ کې قاتل ځان د امیر بستری ته ورساوه، بلکې اریانوونکې خبره دا وه چې د ټولو خلکو له جملې څخه چې له موضوع څخه به خامخا یو څه خبر وو، هیچا هم څه نه ویل.

هیڅوک د خطر په لومړیو اشارو په شور او زور او د خلکو په هاخوا دیخوا منډو وهلو او د لاټینونو په راوړلو باندې پوه نه شول. د حبیب الله دوهم زوی حیات الله چې کابل ته تللی و د خپل تره نصر الله په امر سره بیرته را وغوښتل شو د ورځې په وروستیو وختونو کې نصر الله شجاع الدوله کابل ته واستاوه چې د ده او امان الله ترمنځ منځګړیتوب وکړي. نورکسان په لغمان کې پاتې شول او په سیایي په منظم ډول جلال آباد ته ولاړل. دوی د امیر جسد له ځان سره جلال آباد ته وړل اما داسې په عادي حالت روان و چې که کوم دهقان د دوی له څنګ څخه تیر شوی وای دومره ځیرک به نه و چې په دې پوهیدلی وای چې په یوه موټر کې د وژل شوي امیر جسد دی.

د ګلف په میدان کې چې د امیر حبیب الله یوه مناسبه ساعت تیري وه ورته قبر وکیندل

شو. وروسته هغه په یوه ښکلې مقبره کې د یو داسې باغ په منځ کې کېښودل شو چې د ښځو پارک وګرځېد اوس داسې ویل کېده چې حبیب الله د هغو ښځو په منځ کې دي چې خوښېدل یې. امیر چې خپل حیثیت ساتلو ته په خورا زیات اهمیت قایل و د مرګ په وخت کې یې هومره حیثیت نه شو په برخه.

د مخه تر دې چې جسد یې په قبر کې کېښودل شي په داسې حال کې چې د افغانستان مخور کسان ګرد چاپېر ولاړ و نصرالله وویل چې د مسلمانانو د دود او دستور له مخې د مرحوم امیر مړي تر هغه پورې ښخېدی نه شي څو چې جانشین یې ټاکل شوی نه وي.

د امیر مشر زوی عنایت الله په هغه ځای کې ولاړ وو مګر د هغه نوم مزاج او د هغه د تره نصرالله جاه طلبي هرچا ته معلومه وه.

علي احمد جان د علیاحضرتې غټ ښایسته وراره لومړنی نفر و چې خبري یې وکړې او دی د حبیب الله یو باوري سلاکارو. امیر یوه ورځ د برتانیې نماینده ته ویلي و چې ورسره داسې چلند وکړي لکه چې په خپله له امیر سره خبرې کوي.

علي احمد نصر الله له لاسه ونیو د هغه لاس یې ښکل کړ او په جګ اواز سره یې وویل: «ته زموږ امیر یې!» اول عنایت الله او ورپسې حیات الله او بیا په ترتیب سره نورو هم دغه شی تکرار کړ. ډېر کسان په دوی کې اریان پاته شول چې نه چې د دې کار تجویز د مخه نیول شوی وي.

د هغو دوو ټیلفونونو له جملې څخه چې حبیب الله ځان ته جوړ کړي وو چې د رخصتیو په وختونو کې د هغو په ذریعه، له کابل سره تماس ولري د یو ټیلفون په ذریعه دا خبر کابل ته ورسول شو. امان الله ته وویل شو چې په کابل کې دې پاته شي او سوله دې وساتي. د جلال آباد خلکو ته هیڅ شی ابلاغ شوی نه و لیکن د ماسپښین په لومړیو وختو کې ناڅاپه امر وشو چې دوکانونه دې وتړل شي. د برتانیې نماینده حافظ سیف الله چې له شاهي ډلې سره د جنوب په لور تللی و داسې راپور ورکړ «د ورځې درې بجې لا نه ووې شوی چې لومړی په کرار سره راته وویل شو چې امیر حبیب الله نن سهار په لغمان کې ووژل شو لیکن ما نور هیڅ شان معلومات نه لرل ځکه هیچا حتی هغوی چې له موضوع څخه خبر هم وو د دې جراءت یې نه شو کولی چې د قضیې په باب راته څه ووایي که څه هم په ښکاره خپه معلومېدل او ساړه اسویلي یې له خولې ایستل. ما وغوښتل چې د څو شېبو ګرځېدو د پاره د باندې ووځم او په ضمن کې له

قضيې څخه هم ځان خبر کړم خو له افغاني محافظ څخه د نماینده ګۍ د میلمه پال فکر ژر زما په لور شو او له ما څخه یې هیله وکړه چې د باندې ولاړ نه شم ځکه چې «وخت بحراني و.»

له کابل څخه د امان الله تیلفوني پیغام داسې را ورسید «زما د پلار د قاتل د پیدا کولو او هغه ته د جزا ورکولو په برخه کې څه اقدامات شوي دي؟»

کوم شی چې نصر الله کړی و هغه د جانشین په توګه خپل ځان د هند وایسرا ته اعلامول و چې هغه وربانديې تبصره وکړه چې «هغه حتی له حبیب الله څخه هم د جانشیني په خاطر لږ وخت له لاسه ورکړ.»

وایسرا د ځواب مسوده برابره کړه چې پکې نصر الله ته د «اعلیحضرت» خطاب شوی و او له ډاډ ګیرنې ورکولو وروسته ورته ویل شوي وو «څه چې ته وایې زه به واضح ډول وربانديې پوهیږم چې ته د (حبیب الله قرار داد ونو ته پابندي ښکاره کوې. د نصر الله له مکتوب څخه داسې یو شی نه استنباط کیده. وایسرا لندن د داسې خبرتیا ورکړله «که خپله پېژند نه و ځنډ وو معامله به خطرناکه شي. کوم شی چې موږ غواړو هغه یو دوست امیر او یو سوله ییز بریالیتوب دی. که چیري پخواني کسان په تله کې ځوړند وي نو ځنډ به د تلې موازنه خرابه کړي. دا به تقریباً په یقین سره د نصر الله د دوستۍ په قیمت موږ ته تمام شي.

په همدي وخت کې د هند حکومت چې له جنګ څخه په ویره کې و د خپلو عسکرو له پاره د ذخیرې د ټولولو په فکر کې شو. هند په دې باندې ځان مطمئن کړ چې «عصري تخنیکي وسایل لکه طیاري او داسې نور زموږ هیواد چې په زیاته اندازه د عسکري قوی له نظره د افغانستان په شان د یو نیم متمدن هیواد په مقابل کې پیاوړی کړي دي.»

له لندن څخه یوه محتاطانه مشوره راغله: «په تیرو وختونو کې زموږه پالیسي دا وه چې موږ به هغه امیر په رسمیت وپیژنو چې پر خپل استقرار او ټینګښت بریالي شوی وي... زه ډېر شکمن یم چې موږ په داسې عمل لاس پوری کړو چې د (نصر الله) تله درنه کړي او بیا په راتلونکې کې معلوم شي چې موږ سهوه کړې ده نو په یقین سره به مو هغه خپل دوست نه وي ګرځولی.» هغه یاد داشت چې د نصر الله له پاره ترتیب شوی و صرف د هغه د ډاډ ګیرنې په خاطر و چې معلومیده هغه د کوم تکلیف موجب نه و ګرځیدلی ځکه چې کومه ویره او خواشیني یې نه وه څرګنده کړې. په یاد داشت کې ور ته وعده ورکړله شوې وه چې وروسته له هغه چې د افغانستان د خلکو له خوا ومنل شي نو په رسمیت به وپیژندل شي.

لیکن د لیکونو د ترتیب او لیکلو په اندول پیښې په چټکی سره په مخ تلی. د فبروری د یو ویشتمی نیټې په سهار په جلال آباد کی د امیر د ماتم درباري مراسم جوړ شول. په دي مراسمو کی مخورو کسانو ګډون کړي و. ساده جامی یې اغوستی وی. د ویر او ماتم نښې پکی نه لیدل کیدی. د مسلمانانو د دود او دستور له مخی داسی امر شوی و چې میز او چوکی دی په مراسمو کی وجود و نه لري.

نصرالله چې عنایت الله یې ترڅنګ ورانوت او عنایت الله هغه وظیفه په غاړه درلودله چې نصر الله به د حبیب الله په مقابل کی لرله. کله چې ټول حاضرین پر غولی باندی کښیناستل عنایت الله نصر الله ته د خپل تابعیت په اعلانولو سره خاموشی له منځه یوړله او خپلو خبرو ته داسی خاتمه ورکړه «صاحبه! څنګه چې ما خپل پلار ته بیعت کړي و تا ته یې هم کوم.» دا خبره یې دومره په کراری سره وکړه چې لږو کسانو وکړي شول هغه واوري.

نصر الله هم چې پر غولی باندی ناست و یوه بیانیه یې ورکړه چې په ټوله بیانیه کی یې د قرآن شریف آیاتونه استعمال کړل. وروسته له هغه خلکو لاسونه پورته کړل او دوعایې ورته وکړه او د خدای (ج) له دربار څخه یې د بري غوښتنه وکړه. وروسته علی احمد خلک د تقریباً سل کسیزو ډلو په ترتیب سره د بیعت له پاره را وستل او بیایی حاضرین د هغی بیعت نامی د لاسلیک کولو ته را وبلل چې د امیر له خوا په جګ اواز سره لوستل شوی وه. په دغه سند کی لیکل شوي وو چې خلک او شهزاده ګان سره پوره موافقه لري چې سردار نصر الله د خپل نوي امیر په توګه وټاکی. موږ ټول ده ته او د ده پاچاهی ته وفاداریو. ټولو ته امر وشو چې سند لاسلیک کړی.

د جمعی ورځ وه. د جلال آباد په ټولو مسجدونو کی خطبه چې د امیر نوم پکی یادیږي د امیر نصر الله په نوم ولوستل شوه. د برتانیې نماینده ولیکل «په دي توګه هغه ستره پیښه چې له ویر او ماتم او راتلونکو امکاناتو څخه ډکه وه د ستاینی په وړ ارامتیا او هوښیاري سره رسماً پاي ته ورسیده... په دربار کی د ځینو کسانو ځیری بشاشی معلومیدی چې په خاصه توګه د علی احمد جان او نادر پکی د یادونی وړ وي... نورو هیجانی او خپه معلومیدل چې په هغوي کی د خان مصاحبان د مرحوم امیر ترونه او ټول غلام بچه ګان شامل وو.

«مګر ربښتینی بی وس توب اوربړ د مرحوم امیر د زامنو په مخونو کی لیدل کیده چې په ربښتیا سره د دوی د پریشانو افکارو ښکارندوی و.»

امان الله په کابل کې بې وزلې نه ښکارېده.

د هغه د پلار د وژل کېدو خبر په داسې وخت کې را ورسید چې د پلویانو له پلوه تقریباً دی یوازې و حتی موریې هم په جلال آباد کې وه. مگر خزانه او جبه خانه ورسره وه.

امان الله هغه مامورین سمدستي را وغوښتل چې پر دغو د وو ثروتونو باندې مقرر وو او همدارنگه یې خپل نیکه مشاور، چې عبدالقدوس نومېده او نصر الله یې نه خوښېده هم له دوو تنو مشرانو سردارانو سره را وغوښتل. دوې درې ساعته مشوره وکړه وروسته امان الله د کابل ټول ملکي او عسکري مقامات لویې غونډې ته را وبلل او اعلان یې وکړ چې امیر حبیب الله د نصر الله له خوا وژل شوی چې اوس یې ځان امیر اعلان کړی دی. امان الله وویل چې نصر الله خاین دی او د توری په تیری څوک باندې یې قسم وخوړ چې د پلار غچ به واخلي. هغه کسان چې هلته وو او دا خبرې یې واورېدې د همداسې انتقام اخستلو لوړه یې وکړه.

امان الله یو پیغام جلال آباد ته واستاوه چې پکې بیا غوښتل شوي وو چې قاتل دې پیدا او گرفتار شي. څنگه چې پیغام نصر الله ته ورسید هغه په بېړه سره له خپلو ملگرو ملایانو سره مشوره وکړه او هیأت یې وټاکه چې کابل ته ولاړ شي او د هغه وراره غلې کړي.

علیا حضرتې نصر الله په دې راضي کړ چې په دغه هیأت کې دا هم شامله کړي. کوم شی چې په ربښتیا سره علیا حضرتې غوښت هغه تر کابل پورې د ترانسپورت مسئله و. کابل ته د رسیدو سره سم علیا حضرته له ملایانو څخه بیله شوه او د خپل زوی کره ولاړه.

امان الله لا د مخه په هغه اقدام لاس پورې کړی و چې افغانانو به تل په علیا حضرتې باندې دا شک کاوه چې د تیلفون په واسطه یې امان الله ته مشوره ورکوله. هغه اعلان وکړ چې د عسکرو معاش دې په میاشت کې پنځه روپۍ زیاتې شي او هم ټولې پیسې دې ورته سمدستي ورکړلی شي. نصر الله پیشنهاد کړی و چې په معاش کې دې درې روپۍ زیاتوالی راشي.

په همدې وخت کې امان الله هغه خزانه او مهمات بررسي کول چې په ښه نیت یې تر لاسه کړي وو او همدارنگه بندیان یې له بند څخه خلاصول او له خلکو سره یې د هغوی د مړو په مراسمو کې په گډون کولو سره مرسته کوله. د کابل مخور کسان راغلل او لوړه یې وکړه چې د پاچاهي ربښتینی وارث امان الله دی نه نصر الله او هم ولوړل چې نصر الله پاچاهي څخه داسې منصرف شوی دی لکه چې د واده په یو مراسم کې له خپل اس ځینې تیر شوي و.

په دې وخت کې امان الله یو بل پیغام جلال آباد ته ولیږه. هغه ملکي او نظامي کسان چې

هلته له نصر الله سره وو خپلې کورنۍ یې په کابل کې پرې ایښې وې امان الله اخطار ورکړ چې که یې د پلار قاتلین و نه نیول شي نو دغه کسان (کورنۍ) به یرغمل ونیسي او له منځه به یې ویسي.

په دې توګه ټولې هغه غوصې را برسیره شوې چې د امیر له وژنې راهیسې د عامو خلکو او عسکرو په زړونو کې خوټیدې. د حبیب الله په مقابل کې د هغوی دښمنې د هغه له ظالمانه وژل کیدو سره له منځه لاړه. په جلال آباد کې ټوله ظاهري ارامي او د نصر الله په اسانۍ سره امیر کیدل یوازې په مهمو خلکو کې لیدل کیده. ټولو ښاریانو ته معلومه وه چې پر جرم باندې پرده غوړول شوې وه حتی صواب ګڼل شوې و او د حضرت پیغمبر (ص) قانون ته اهانت، هغه پټکې لرونکې کسان خپه کړل چې په ګرمو او له خاورو ډکو کوڅو کې به روان وو او په پس پس سره به یې خبرې کولې. دوی په خپله به پر هغه چا باندې سخت ګوزار کړی و چې د هغوی خپلوان یا کوم لیرې خپلوان یې له منځه وړی وو او غچ اخستنه به یې بل نسل ته پرې ایښې وه. د انتقام لپاره د امان الله چغه داسې چغه وه چې د دوې په خپلو کورونو کې یې غږ پورته شوی و.

یوه ورځ د مخه د برتانیې نماینده یو پیغام استولی و چې پکې لیکل شوي وو: «هر نفر له ډیرې ویرې نه نه شي کولای چې خپله بدګومانې بیان کړي ځکه دا د مصاحبانو پر کورنۍ باندې چې یوه قوي کورنۍ ده چپه کیږي چې بو غږي یې چې شاولې نومیږي د تحریک کولو تر اشتباه لاندې دي. رښتینی قاتل لا تر اوسه معلوم نه دي.»

د حبیب الله له مړینې څخه شپږ ورځې تیرې شوې وې. د نصر الله پیسې خلاصې وې. جلال آباد تقریباً بیل شوي و. د کابل د مخابري کنترول امان الله کاوه او د خیبر له لارې له هند څخه د مالونو وړل او راوړل سست شوي و. هند د زیاتو شیانو د برابرولو منبع و.

د انګلیس نماینده پیښور ته دا خبر و استاو چې په ولس او پوځ کې ګډوډي موجوده ده او هم یې وویل چې د سولې تامینولو په خاطر فعالیت کیږي او خطر ورځ تر ورځ زیاتیږي.

د کابل سرتیرو د جلال آباد سرتیرو ته دا خبره ورسوله چې امان الله د هغوی معاش زیات کړی دی. امان الله د یو مستحق امیر په توګه د بازار د خلکو او د ګارد د عسکرو په منځ کې اعلان شو.

جمعه بیا راغله. نصر الله چې د جمعې د ورځو لمونځونه یې هیڅ نه قضا کول په خطبه کې

د امان الله د نوم له ذکر څخه په تعجب کې شو. هغه ملا چې خطبه ولوستله د وسلې په زور سره يې دا کار وکړ. سرتيرې حتى د نصر الله تر مذهبي ملګرو هم په بيړه جومات ته داخل شوي وو. څو قبايلي ډلې جلال آباد ته لاړې چې ورسره مرسته وکړي مګر د ګارډ د عسکرو له خوا په شا وتمبول شول.

نصر الله چې بله چاره نه درلوده له مسجد څخه ولاړ او مخور کسان يې را ټول کړل او د امان الله په ګټه يې خپله استعفا ورکړه. هغه او عنايت الله د موټر په سپرلۍ کابل ته ولاړل چې هلته دواړه جلا جلا په خپلو کورونو کې تر څارنې لاندې ونيول شول.

يو لوا عسکر چې له حبيب الله سره جلال آباد ته تللي وه نو څرنګه چې سخت زړه، او ظالمه لوا وه د «حرامي» لوا په نامه سره ياديدله. دغه حرامي لوا چې د مخه يې په عنايت الله پسې را اخستې وه او ورته ويل به يې چې «د پاچاهۍ غوښتنه ولې نه کوې» اوس يې تل نصر الله ايسار کړ چې د قدرت له لاسه ورکولو په بند او بست کې و. هغوې ده ته د دې خبرې په کولو ټينګار کاوه چې قاتلين په ګوته کړي. اوس هغوي د خپل ځان له پاره تصميم ونيو.

هغوی ژر د مصاحبانو د کورنۍ غړي ګرفتار کړل: نادر، ورور يې، شاولي د دوي د اکا زوي احمد شاه، د هغوي پلار او تره. هغوي دغه سر شناس اشرافيان سره وتړل او کشول يې او په دي تحقير اميز شکل سره يې کابل ته بوتللي. له مستوفي الممالک سره چې په خپل وخت کې يو ظالم سړی و لا زيات ناوړه سلوک وشو. هغه د برچې په څوکو ځورول کيده حتى تردې چې يو تن چابک عسکر ټوپ کړ او پر اوږو يې سپور شو او لکه د اس په شان يې شاوخوا وګرځاوه او له سپکاوي څخه يې ساعت تيرې جوړه کړه[١].

امان الله د کابل د عيدګاه د جومات په منځ کې ودريد. په څنګ کې يې د افغانستان ډير لوی او محترم ملا چې شا اغا نوميده ولاړو. هغه د حضرت پيغمبر (ص) د يار د حضرت عمر (رض) له اولادې څخه و چې د حضرت په نامه سره ياديده څرنګه چې دغه کورنۍ د کابل په شور بازار کې اوسيدله نو شور بازار د حضرتا نو په نوم سره ياديدله. دوی او د دوی کورنۍ په دې فکر کې وو چې د نفوذ او شهرت خاوندان و اوسي.

---

(*) دلته د (حضرت) لقب د عليا حضرتې له نوم سره کوم ارتباط نه لري. په هغه وخت کې افغانانو کورنۍ نوم يا لقب نه درلود ل صرف تخلصونه يې درلودل. تقريباً يوازينی افغان چې وروستی نوم يا د کورنۍ نوم درلود او په دې کتاب کې د هغه ذکر شوی دی (طرزي) دی. دغسې نور د کورنۍ نومونه لکه مصاحبان چې د نادر او د هغه کورنۍ په هغه نوم سره ياديدله صرف هغه لقبونه دي چې د هغوي د پلار له لقب څخه ايستل شوي دي.

څرنګه چې بيره مهمه وه نو د تاج پوشی له ځينو مراسمو څخه لکه بيرغ او د هغه ځينی تښانونه چې د امان الله نيکه عبدالرحمن خان په هغه وخت کی چې د يوی اوږدی مودی له پاره په روسيه کی تعبيد و له ځانه سره راوړي وو په دي ورځ باندي تير شول. د شوربازار حضرت صرف وريښمينی پټکی چې پر يوه کندهاري خولی باندی وهل شوی و را واخيست او د امان الله پر سريی کښيښود او په دي توګه يی امان الله د افغانستان امير اعلان کړ.

د افغانستان راتلونکی د تيرو وختونو په پرتله ښه پيشبينی کيدله. که چيری نصر الله پاچا کيده نو د ژوندانه ټولی عصری چاری به يی له منځه وړلی حال دا چې امان الله د هغوی د پرمخ بيولو او ودی ورکولو په فکر کی و. نصر الله او د هغه وراره يوازی په يوه شی سره ګډ وو: د برتانيی له تسلط څخه د آزادي هيله.

د مارچ په دريمه نيټه امان الله خپل شخصی خط د هند وايسرا ته واستاوه چې پکی د «غولونکو غدارو خاينينو له خوا د خپل پلار د وژنی په هکله خپله خواشينی څرګنده کړی وه... او ليکلی يی وو چې د خدای(ج) په توکل سره می د افغانستان د پاچاهی تاج په پايتخت (کابل) کی پر سر کيښود چې دا کار د خلکو او پوځ له تود هرکلی سره مخامخ شو. و من الله توفيق.

وروسته امان الله برتانويان وارخطا کړل او هغوی يی په مساوي توګه داسی مخاطب کړل: «دا دی هم پته نه وي... چې زموږ د افغانستان خپلواک حکومت په هر موسم او هر وخت کی د دوستی او نورو ښو اړيکو د په نظر کی نيولو سره ځان اماده ګنی چې د انګلستان له پياوړی حکومت سره داسی معاهده لاسليک کړی چې د دواړو مملکتونو تجارتی ګټی به پکی خوندي وي. »

وروسته د هند د بهرنيو چارو سکرتر له محمود طرزي څخه يو ليک تر لاسه کړ چې پکی د افغانستان د بهرنيو چارو د وزارت د منځ ته راوړلو موضوع ليکل شوی وه او ځان يی د دغسی موسسی په رأس کی معرفی کړی و. دا لومړي لمبر ليک و.

دوهم لمبر ليک داسی يو ګاونډی هيواد ته وليکل شو چې په تيرو وختونو کی افغانستان موافقه کړی وه چې ورسره روابط و نه لري. دا ګاونډی هيواد روسيه وه چې له پخوانی روسيی سره يی توپير درلود. د طرزی دوهم لمبر ليک چې د اپريل په اووم تاريخ د شوروي جمهوريت

رئیس ته لیکل شوي و پکې له بالشویکانو سره د دایمي اړیکو هیلې څرګندې شوې وې. امان الله روسیې ته داسې ولیکل:

«د خپل بري له فرصت څخه په استفادې سره د شوروي اتحاد جمهوریت ته دا اعلاموم چې زه د ټول بشر د مساوي حقوقو او اصلونو پیرو یم او د خلکو صلح آمیز اتحاد او پیوستون ته پابندي لرم. تر اوسه پورې افغانستان له نورو هیوادونو څخه جلا ساتل شوی و. مګر اوس چې شوروي اتحاد د بالشویزم د عدالت جنډه جګه کړې ده په بې صبرۍ سره، غواړم زیاته کړم چې د ټولې نړۍ د ستاینې وړ ګرځېدلې دی. هیله من یم د شوروي اتحاد محترم جمهور رئیس زما د مبارکۍ پیغام ومنې او رد یې نه کړي.»

په هماغه ورځ امان الله مشابه لیکونه جاپان، امریکا، فرانسې، ایران او ترکیې ته و استول چې پکې لیکلي یې و: «دا لومړي ځل دی چې له نیکه مرغه دا فرصت تر لاسه کوم چې د دوستۍ دغه لیک د افغان ملت په نامه چې د خپلې آبادۍ له پاره چمتو دی او همدارنګه د افغانستان د مستقل او خپلواک حکومت له خوا تاسو ته لیږم.»

برتانویان له خپل مکتوب څخه پرته له نورو مکتوبونو څخه خبر نه وو اما د مارچ په یوولسمه نیټه یې د هند په مطبوعاتو کې د امان الله یوه اعلامیه ولوستله چې ویل یې: «د افغانستان حکومت به داخلي او خارجي استقلال ولري او آزاد به وي په دې معنی چې د حکومت ټول اختیارات به چې د نورو مستقلو هیوادونو په لاس کې دي. په بشپړه توګه د افغانستان په واک کې به وي.»

برتانویانو داسې وویل: «دا څرګنده خبره ده چې امان الله په خپل اوسني حالت کې د خپل پلار او نیکه موقف غوره کولو ته حاضر یږي.» په داسې حال کې چې د هند د بهرنیو چارو وزیر ای هیلستون ګرانټ (A. Hamilton Grant) په دې فکر کې و چې بې له شکه عنایت الله تر امان الله د قناعت وړ امیر دی خو موږ په دې کار کې مداخله نه شو کولای.»

انګلیسانو د امان الله د لیک ځواب ورځنډاوه او په دې کار پښیمانه وو. امان الله په داسې حال کې چې لیرې افقونو ته متوجه و له نژدې ستونزو سره مخامخ و. هغه د دوو کارونو په کولو سره خپله د پاچاهۍ دوره پیل کړه:

مستوفی الممالک یې دار ته وخېژاوه چې پر ده باندې یې د خاین تور لګولی و او خپل ښوونکی داکتر عبدالغني یې له بند څخه خوشې کړ چې په لس کاله بند محکوم و. ګڼ شمیر

افغانانو د ډاکتر عبدالغني بندي کيدل د هغو ملايانو توطئو او د سيسو ته نسبت ورکول چې له عصري زده کړې سره يې خپل مخالفتونه ښودل.

اما امان الله د خپل پلار د قتل په باب هيڅ ونه کړ. په داسې حال کې چې اشخاص يې مقررول او د عبدالقدوس په صدارت يې کابينه جوړه کړه مصاحبان ورونه وزگار او نظر بند وو. ليکن خلکو هير کړي نه وو په هرات کې نا آرامي وه چې د مصاحبانو دوې کورنې سليمان او هاشم هلته والي او قوماندان وو. د جلال آباد عسکر نا آرامه او په غوصه وو ځکه هغوی ته ويل کيده چې بايد له هغې اندازې څخه کم معاش ومني چې وعده ورسره شوې وه.

د اپريل په ۱۳ نيټه امان الله هڅه وکړه د غه ټول موضوعات په يوه دربار کې چې د محکمې حيثيت درلود حل کړي. نصر الله په عمري بند محکوم کړ (هغه په راتلونکي کال کې په بنديخانه کې مړ شو) او عنايت الله په کور کې تر څارنې لاندې ونيول شو. نادر، شاولي او د مصاحبانو د کورنۍ پاته کسان بې گناه اعلام شول او خوشې يې کړل.

څرنگه چې داسې يو نفر ته ضرورت و چې بايد د بل چا په ډب کې لاړ شي نو يو ځوان ډگرمن چې د گارډ افسر و په وظيفه کې د غفلت په تور محکوم اعلان شو نو د باندې وايستل شو او سمدستي د برچو په څوکو له منځه ويوړل شو.

اما خلک پوهيدل چې د حبيب الله د قتل منشا کوم يو لوړ مقام دی او په دې شکمن شول چې هغه لوړ مقام به په خپله امان الله وي.

امان الله په همدې دربار کې د افغانستان د خپلواکۍ اعلان وکړ او په لوړ اواز سره يې د برتانيې استازي ته وويل «او سفيره: اوري؟»

امان الله احساس وکړ چې اوس پاچاهي په رښتيا سره پيل شوې ده. هغه د ډيرو خوبونو له ليدو وروسته حقيقت ته ورسيد. محمود طرزي دې حقيقت ته متوجه و چې د ده د ژوندانه هڅې چې د هغو په خاطر په ډير تکليف سره له ترکيې څخه راغلی و نتيجې ته رسيدونکي دي. هغه د سراج الاخبار خپرول بس کړ ځکه مقصد يې چې د خپلواکۍ لاس ته راوړل و تر سره شوی و او اوس يې په ټوي فعاليت لاس پورې کړی و چې هغه د لاس ته راوړل شوي خپلواکۍ عملي کول او په کار اچول و.

کله چې امان الله د «خپلواک آزاد» لغتونه په خپلو خبرو کې استعمالول حاضرو کسانو ته دا يوه تاريخي صحنه وه. تاريخ به يې هم همداسې ومني.

اما اوس زیاتره افغانان چې کارگران او د ټیټې طبقې وګړي وو د داسي عدالت په انتظار کی وو چي د مخه عملی شوی نه و. هغوی ته «خپلواکی» صرف یو لغت و مذهب او افتخارات له واقعیتونو څخه ګڼل کیدل.

کوم شی چې په دی دربار کی د انګلیسانو د نا آرامی سبب شول هغه د خپلواکی اعلان نه و ځکه هغوی ته دا کوم نوی شی نه و بلکی د هغوی د ناراضی توب اصلی علت دا و چې امان الله د خپل پلار په غچ اخستلو په داسی ډول ناکام و چې یو ډیر کمزوري افغان به هم نه و ناکام شوی. هر کله چې به افغانی واکمنانو په هیواد کی د ننه له ستونزو سره مخامخ شول نو دوی به په بهر کی د خپل ګډ دښمن ته مخ واړاوه او هغه دښمن برتانیه وه.

په وروستیو کلونو کی یو برتانوي مامور داسی وویل چې د برتانیی د امپراتوری یوه ډیره تیاره ورځ د ۱۹۱۹ کال د اپریل ۱۳ ده او دا د دوو پیښو له امله. یوه یې د امان الله له خوا د هغو کسانو بري الذمه کول و چې له قتل سره یې اړیکی درلودی. بله توره پیښه د هند د پنجاب د امرتسر د ښار په یوه عمومی ځلور لاری کی، چې د جلیانو الا باغ په نامه سره یادیږي، منځ ته راغله.

# پنځم فصل

## د ۱۹۱۹ کال د اپریل له ۱۳ څخه
## د ۱۹۱۹ کال د جون تر ۳ پوري

حج د مکې معظمې زیارت کول دي. هر مومن مسلمان (چې غنی وي) مکلف دي لږ تر لږه یو واري په خپل ژوند کې حج وکړي. په ۱۹۱۹ کال د برتانیې د امپراتوري له خوا له زایرینو سره په پټه مرسته وشوه.

له جنګ څخه وروسته په هند کې د شیانو قیمتونه جګ شول چې په دي توګه د هغو بیړیو کرایه هم جګه شوه چې حاجیان یې د هند له بندر څخه تر عربی بحیري پوري او له هغه ځای څخه یې تر سري بحیري پوري رسول چې جدي ته لاړ شی. له جدی څخه د مکې معظمې په لور د حاجیانو لنډه مګر احساساتی سفر د ځمکې له لاري پیل کیده. د هند حکومت د خپل هیواد او د ګاونډیو هیوادونو حاجیانو له پاره داسې ترتیبات ونیول چې کرایه دي د پخوا په شان ورڅخه واخستله شي نوبي د بخارا بیړي له کمپنی سره د لسولکو روپو په حدود کې مرسته وکړه.

د ۱۹۱۹ کال په پسرلي کې امپراتور ته دا مهمه وه تر څو چې وکولی شی مسلمانان راضی وساتی ځکه چې هغوي له ډیرو شیانو څخه شکایتونه درلودل او د امپراتوري عالی قونسل په دي باندي پوهیده چې د د ترکیې د سولې شرایط اعلان شی نو هغوي ته به د شکایتونو موضوع ګانې لا زیاتی شی. وایسرا د هند د بهرنیو چارو وزیر ته داسې کښلي و:

«که د برتانیې حکومت زموږ د مسلمانانو له پاره داسې یو ترتیب ونیسي چې د هغه په واسطه اعتبار تر لاسه کولی شي، نو تاسو به بې له کوم شک څخه ووینئ چې فرصت له لاسه نه دي تللی.»

هغو دوو نباغلو وایسرا لارډ چلمسفورډ او ادوین اس مونتیاګ د هند د بهرنیو چارو وزیر د جنګ په وخت کې سره مشوره کړې وه چې داسې یو فورمول پیدا کړي چې هند ته زیاته خپلواکي ورکړي. دغې خبرې خلکو ته کومه خوښي ور په برخه نه کړه که څه هم مونتیاګ د هغوي احساساتو او اړتیا و ته دومره حساس و چې د برتانیې په یوه حکومتي ټولنه کې د یادونې وړ و. ممکن دا په دې خاطر و چې مونتیاګ یهود و او د هغو خلکو پر ځمکه باندې دعوا نه وه کړې مګر د ننه په ځمکه کې لا لنهانده ګرځیده. هغه کولی شو په خپله یاد داشت کې داسې ولیکي:

«بیا هم ممکن په خاص ډول وویل شي چې په هند کې انګلیس نارینه بریالي، او ښځې یې په ښکاره ډول ناکامې دي. ښځې له نارینه و نه نژادي تعصب زیات لري. (هندي ښځې هم په ضمن کې همداسې عمل کوي) او د لاسه یې څه نه کیږي. په هغه ځای کې چې دغه ښځې صرف د یوې لنډ مودې له پاره د اوسیدو اجازه لري، نه د یو راهب د لور او نه د یو سردار د ښځې عمل اجرا کولی شي، نو لټې تنبلې او عصبي کیږي... زه فکر کوم چې ښځې ټیټ موقف لري. زموږ ښځې به هندیان خوښ نه کړي او هڅه به ونه کړي چې... زه فکر کوم دا رښتیا ده چې د هند میندې د رښتینې بلوا راتلونکي سر کرده ګانې دي؟ دا رښتیا ده چې دا ښځې تقریباً بیخي مینځې دي او دا رښتیا ده چې هغوي په خپلو کورونو کې او په عمومي توګه په چارو کې یو قدرت او د نارینه و په واسطه فعالیت کوي.»(۱)

د مونتیاګ او چلمسفورډ پیشنهادونو کومه ګټه و نه کړه نو وروسته د هند پارلمان د رولات قانون منظور کړ چې د دې قانون له مخې شورشیان، بې له دې چې استیناف طلب شوي واي، په خصوصي توګه محاکمه کیدل، نو هندوان او مسلمانان (د هندوانو شمیر تر مسلمانانو زیات و) د دې قانون پر ضد ودریدل او انکار یې ور څخه وکړ. په هغه وخت کې چې د مخالفتونو اور په ټول هندوستان کې لګیدلی و د رولات د قانون پلویانو داسې اعلام کاوه چې، (نظم او قانون). مهنداس ګاندي د ټول هند د کانګرس مشر د اپریل شپږم تاریخ د تحقیر او سپکاوي ورځ اعلان کړه او خلک یې ملکي نافرمانۍ ته را وبلل.

د دې پيښې د لمبو شدت زيات شو. له نورو ايالتونو څخه د پنجاب په ايالت کې توندي زياته شوه. هغه پنجاب چې په يوه وخت کې يې خپل خلک د انګليسانو په خاطر جنګ ته استول، اوس د هغوي پر ضد جنګيدل. په هغه ځای کی د زياتو امکاناتو توقع کيدله. په امرتسر کې د بانګ دري تنه پيغام وړونکي په اور کې وسوزول شول، ډير طالع مند يې د مخه ووهل شول او بې حسه شول. يوه انګليسي مبلغه ښځه سخته ټپي شوي وه يوي ډلې ورانکارو د اورګاډي ستيشن رنګ کړ. د هند حکومت د ډګرمن رګنال ډاير په مشري قوه و استوله. دې سړي د اپريل په ۱۳ تاريخ له امرتسر څخه راپور ورکړ چې د څو تنو له نيولو وروسته وضع ارامه ده.

د هسدي ورځې په مازيګر نژدې شپږو زرو تنو د هندوانو د يوي مذهبي ورځې مراسم په ځاي کول، په جليانو الاباغ کی يې د خپلو ښاروېو تجارت او يا نوره سوداګري کوله. دا ځاي هغو کورونو ته نژدې و چې په منځ کې يې نوي لاري اخوا دې خوا تللي وي. له هغوي څخه زياتو کسانو هغه اعلاميه نه وه اوريدلې چې په هغه ورځ خپره شوي وه او پکې د داسې ټولنو ممانعت شوي و. ډايسر خپل ګورکا (Gorka) عسکر د دې ساحي په يوه خواکې پر يوه جګه غونډي باندي ځاي پر ځاي کړل؛ د ده د ويري له امله هغه موټرونه چې ماشيندار پکې بارو، په دې کوڅوکې نه شو تير بياهم د ده له طرفدارانو سره ټوپکې وې او بې له دې چې خلکو ته اطلاع ورکړي ډزې بې پيل کړي. ډزو لس دقيقې دوام وکړ چې ۱٦۵۰ داني مرمې مصرف شوې. په خپله ډاير په هغه ځاي کې د اور لارښوونه کوله چې هلته خلک ډير زيات وو او ده به ورته «هدف» ويل. د دې ناوړې پيښې په نتيجه کې ۳۷۹ تنه مړه او نژدې ۱۲۰۰ تنه ټپيان شول او له دغه بابته کومه انديښنه لرل هغه «خپله وظيفه» نه ګڼله. ډاير خپلو ملګرو ته وويل «زه فکر کوم ټول کلي به په خاورو ايرو بدل شوي وي.» څو ورځې وروسته ډاير يو فرمان صادر کړ چې په هغه ځاي کې چې پر مذهبي مبلغينو ښځو باندې بريد شوي دې ټول هنديان چې له هغه ځاي څخه تيريږي په خاپوړو دې تير شي که نه نو د خلکو په مخ به په درو ووهل شي.

د ډيلي لهسنټ ستيفنس (st. stephen's) له کالج څخه محترم سي. اف. اندريوس C.F.Andarews د وايسرا سکرتور ته وليکل «ما په اخبار کې ولوستل چې په لاهور کې خلک په عام محضر کې په متروکه وهل کيږي او خلک خپل د وکانونه خلاص نه کړي نو هغوی به هم په متروکه ووهل شي. ستاستو جلالتماب به خبر نه وي چې له ټولو سپکاويو او تحقيرونو

څخه دا ډول ازار ورکول خلک خپه کوي او هیڅ کله به و نه بخښل شي. » د هغې ورځې په وروستیو وختو کې وروسته له هغه چې اندریو له هغه سړي سره ملاقات وکړ چې پیښه یې په خپلو سترګو لیدلې وه نو په دې باره کې یې داسې ولیکل « زه هغه څه تاسو ته په دقیقه توګه نه شم تشریح کولی چې په دې هیواد کې داسې تهدیدونه تر کومې اندازې پورې د خلکو احساسات را پاروي مګر ما له هندیانو سره دومره عمر تیر کړي دي چې دا احساس په ماکې شته - کرکه، تنفر چې د یو تیرې کوونکې په مقابل کې پیدا کیږي د عوامو په حضور کې د یو نفر د لوڅولو د شرم احساس - زه یې تشریح کولی نه شم لیکن دا یوه جهان شموله غریزه ده چې چاره یې نه شي کیدلی.

« زه په امرتسر کې پر اروپاییانو باندې د تیریو له تحریک څخه خبر یم لیکن د عوامو په محضر کې دغه په متروکو وهل په خودسري سره صورت نیولی دی. »

که څه هم د دې مکتوب ځواب و نه لیکل شو خو بله ورځ وایسرا امر وکړ چې دا ډول جزا وې دې باید محدودې شي او د خلکو په وړاندې دې ور نه کړلی شي. د پنجاب د ایالت نایب وکیل، سر مایکل او ډایر Sir. Michal o.Dwyer چې فرمان د ده په نامه راغلی و، وایسرا ته ځان داسې تبرئه کړ « په لاهور کې د نهو ورځو په اوږدو کې چې نظامي قانون جاري و دولس واري د متروکو وهل پر خلکو باندې تحمیل شوې دي خو په دې وروستیو څوارلسو ورځو کې دا عمل تکرار شوی نه دی. هغه کسان چې په متروکه وهل شوي دي ټول بدماشان او د ټیټې طبقې خلک وو مګر یو یکې یو سخت زړي بزاز و. »

په امر تسر کې د اپریل په ١٣ د برتانویانو او هندیانو مغلوب او غالب په منځکې لانجه تر دې حده پورې ورسیدله چې بیا یې د سمولو امکان نه لیدل کیده.

وروسته یو پخوانی روحاني سړي صحنې ته راغی. دا سې د مسلمانانو پیر نعمت اللّه و. د ده قصیدې او اتکل د لویدیزې نړې د ناستیرادو امس (Nastradamus) له قصیدو او اتکلو سره شباهت درلود. هغه پیشګویي کړې وه چې برتانویان به پر هند باندې سل کاله حکومت وکړي او وروسته به د لویدیز د یو پا چا له خوا واک ورڅخه واخستل شي. که دغه وعدې نه رښتیا کیدې نو بیا به یې په موهومه توګه دغه وعدې تر بلې نیټې پورې بدلولې. یو « د هیلې وړ سړي » چې په مهدي باندې یادیده « چینایي » جنرال ګاردون ته یې په ١٨٨٥ کال په سوډان کې ماتې ورکړه چې د ګلادستون (Gladstone) د حکومت د رنګیدو سبب شو. تازه په ١٩١٥

کې بيا د ختيزو هيوادونو په بازارونو کې قصيدې واوريدلې شوې زياتره د هندي مسلمانو عسکرو له خولې څخه، چې په قاهره کې ميشته وو او په ۱۹۱۸ کې د بهار د قاضي يو مرستيال، چې د يو روحاني سړي له خوا ورته وويل شو چې هغه وخت رانژدې شوي دي چې د يو لويديز پاچا له خوا به پر هند حمله وشي، نو يې رخصت واخيست او داسې بوې منطقې ته لاړ چې فکر يې کاوه له حملې څخه به په امان کې وي.

اوس په رښتيا سره د هند په لويديز کې يو نوی پاچا منځ ته راغلی و او د هغه نوم امان الله و.

د اپريل په وروستيو وختو کې امان الله يو خاص دربار تشکيل کړ او په داسې حال کې چې د يو شمير مخورو افغانانو په وړاندې ولاړ و، د هند هغه مکتوبونه يې ولوستل چې پکې د جليان والاباغ او د نورو پيښو ذکر په احساساتي توګه شوي و. په هغه وخت کې چې امان الله هغه مکتوب لوسته ورته يې ژړل.

«هو زموږ پر ورونو باندې په هند کې څه ظلمونه وشول! نه يوازې دا بلکې پر بغداد او نورو مقدسو ځايونو باندې هم تيري شوي دي. زه ستاسو څخه دا تپوس کوم چې ايا تاسو د جهاد له پاره چمتو ياست؟ که داسې وي، نو ملاوې وتړي. همدا اوس يې وخت دی.» ټولو په يو آواز سره وويل «غزا، جهاد، مقدس جنګ!»

«زه به ستاسو څخه نوره ماليه وانخلم مګر تاسو ټول بايد د مقدس جنګ له پاره غله ټوله کړي. شتمن کسان دې له جعبه خانې څخه وسله او مهمات وپيري او په تضمين سره دې غريبانو ته ورکړي.»

د برتانيې نماينده ګۍ د حبيبي د ليسې د پاتې شاګردانو له خوا دستې محاصره شوه او دا ناري يې وهلې چې: «مړ دې وي انګلستان!» ځينو چې تحصيل ورباندې ښه اغيزه نه وه کړې داسې ناري يې وهلې چې: «مړه دې وي ملکه ويکتوريا، ورانه دې وي د ختيځ هند کمپنی!» په پای کې ځوان افغانان په يو محل کې سره راټول شول.

له هغو سرحدي سيمو څخه چې هند ته نژدې و، هغه قبايلي خلک کابل ته راتلل، چې د يو امير د مړينې په مناسبت دوعا وکړي، او شعار يې ورکړ چې: «ژوندي دې وي امير!» امان الله چې د دود دستور پيروي کوله، هر يوه ته څه پيسې، چپنې، پوستين، او نور شيان ورکول. دوی چې دا چپنې او پوستينونه اغوستل، او د کابل په کوڅو کې ګرځيدل نو د يو ډول د بدبينې

احساس به یې کاوه. په دې وخت کې دغو خلکو نوي احساسات درلودل. ملایان چې د مذهبي جنګونو اعلامولو په خاطر تل تر څارنې لاندې وو، له قیوداتو څخه خلاص شول. یو له دغو مشهورو ملایانو څخه د چکنور ملا و چې د مومند و قبایلو ته و استول شو نور د تیرا خواته لاړل چې افریدي تحریک کړي. د جلال آباد ښار ته نژدې د هډې په جومات کې یوه اعلامیه ولوستله شوه چې پکې د انګریزانو ناروا وي ذکر شوې وي. ملایانو د مذهبي جنګ غږونه پورته کړل. د غلجي کوچیانو قبیله چې په ګرم موسم کې افغانستان ته راتله له خپلو اوښانو سره سرحدي سیمو ته و استول شوه چې مواد را وچلوي.

امان الله چې د دغه جریان په مرکز کې و، دومره د خپګان احساس کاوه چې هیجاني معلومیده. د احساساتو یوې څپې هم امان الله خان خپلې اعلامیې ته نه و هڅولی، دا یو اتیکل شوي خطر و. هغه په داسې حال کې چې مشوش و هغه ملا ته چې په دغه وخت کې په هند اوسیده او د ده روحاني مشاور وو د سرو زرو له یو ساعت سره داسې لیک و استوه:

«د علم او پوهې پر تخت باندې ناست او د مسلمانانو معنوي لارښود، د نړې قوماندان، شا عبدالخیر، خدای دې لره. هغه صمیمیت او ملګرتیا چې زه یې له تاسو معنوي لارښود سره له اوږدې مودې راهیسې لرم، ورځ په ورځ د زیاتیدو په حال کې دي اوس زما پریشانو حواسو او معنوي جذبې زه وهڅولم چې د پوهانو مشر او معنوي پاچا ته تکلیف ورکړم او د دې لیک په ذریعه، ورڅخه په بیړه سره د دوعا هیله وکړم.

«سره له دې چې پوهیږم ستاسو سپیڅلې شخصیت ته دنیایې مادي شیان یو ډول اهانت دي په تیره بیا هغه شیان چې له سرو زرو څخه جوړ شوي وي مګر بیا هم زه جرا ءت کوم او تاسو ته د اطاعت په خاطر یو قاب ساعت او یوه قطب نما (د مکې معظمې د لارې د پیدا کولو په خاطر) در استوم. دا د یو وفادار مرید یوازنی هیله ده او هر کله چې ستاسو جناب د پنځه وخته لمانځه د ادا کولو په وخت کې له دغه ساعت څخه کار اخیستو د دغه وفادار مرید به هم درپه یاد شي او دوعا به ورته وکړي...»

«ستاسو دوست او وفادار مرید امیر امان الله.»

کوم شی چې د امان الله د ذهني تشویش سبب و او هغه یې دوعا کوونکو ته اړ کاوه دا و چې هغه په دې باندې نه و بریالی شوي چې د انګلستان حکومت دې ته حاضر کړي چې فقط د اعلامیې په واسطه د هغه استقلال وپیژني. د اپریل په ۱۵ تاریخ وایسرا د امان الله د مارچ د

دریمې نیتې مکتوب آخر ځواب کړ. مګر د ده د پلار او نیکه سره یې د شوو معاهدو په اساس «د اړیکو پر دوام» باندې هم خبرې وکړې. امان الله په ښکاره مجبور و ځینې زیاتې چارې ترسره کړي چې د افغانستان خپلواکۍ یو حقیقت وګرځوي.

برسیره پر دې د ځینو بدګمانیو له مخې داسې ناکرارې پیدا شوې وه چې ګوندې امان الله خان د خپل پلار د مړینې له پېښې څخه وړاندې یا وروسته غفلت کړې دی. د عسکرو د معاش د زیاتولو په مورد کې هم ناکرارې منځ ته راغلې وه.

د دې ټولو شیانو د حل یوازنۍ لاره له انګلیس سره مقدس جنګ و.

امان الله د مقدس جنګ هغه لوبه کوله چې پلار او نیکه یې کړې وه هغه دا وه چې خلکو ته د هغوی دښمن و ښیه او انګریز وو ویره وه. لیکن دی په دې لوبه کې څو قدمه وړاندې لاړ، ساده خبرې یې په چیلنجونو (تهدیدونو) او اعلامیو باندې بدلې کړې او په پای کې په داسې پوځي حرکاتو بدل شو چې ده فکر کاوه عسکر لانځکي دي. تر هغه پورې چې عسکرو په خپله پوه شول او دایي وښودله چې دوي انسانان دي او په اسانۍ سره په کار نه شي اچول کېدې. امان الله توقع کوله چې دا مانوره به، چې په هند کې د برتانوي امپراتورې د خطر ټکی ته نژدې شوې وه، له جنګ پرته د هغه د رسمي پېژندنې سبب شي. څو کاله وروسته دا په یو بل هیواد کې د یو خام سیاست په نوم یاد شو.

د امان الله د جواسیسو رپوټونه په هند کې د احساساتو د سختوالي په باب تر اندازې زیاتې خبرې نه کولې چې په دې برخه کې مبالغه کول نا ممکن و، خو د شورش د قوت مبالغه یې کوله. له دغو ستونزو سره سره برتانویانو هندوستان په خپل تصرف کې لاره خو د هندوانو او د مسلمانانو د ورورولۍ له نوي روحیې څخه په ویره کې وو ځکه چې اوس دغه دوې بېلې ټولنې د خپل ګډ دښمن په مقابل کې سره یو شوې وې او هغوي د خپلو عسکرو له وفادارې څخه هم په شک کې وو. د هند پوځ لندن ته داسې تلګرام وکړ «د هندوستان له ځینو اوضاعو څخه داسې څرګندېږي چې په راتلونکې باندې اعتبار نه شي کېدې.»

برتانویان لا هم له بالشویکانو سره په منځنۍ آسیا او د کسپین په پورې غاړه کې په جنګ اخته وو – یا داسې نه وه؟ په لندن کې د هندي دفتر یو رسمي مامور چې جه. ای. شکبرګ J.E.Shuckburg نومېده د مارچ په ۵ نیټه داسې لیکلي و:

«له بالشویکانو سره زمونږ د عمومي پالیسۍ له مخې، موضوع تر اوسه پورې ماته

روښانه نه ده. آیا د خپلو څرګندو دښمنانو په څیر یې وګڼو یا د هغو خلکو په څیر یې و ګڼو چې ورسره کله کله د ضرورت له مخې د دوستانه ژوند کولو احساس پیدا کوو؟ آیا زموږ عاجل تصمیم دا دي چې جنګ وربانديې تحمیل کړو او یا دا چې د سولې او دوستې په فضا کې ژوند وکړو؟» دغه سوال ته داسې ځواب ورکړ شو چې د مرکزي آسیا له بالشویزم سره دي د هغې مرستې وعدې ونه شي چې هغوي يې په لټه کې دي.

جنرال ولفرد میلسن welfered Malleson له مشهد څخه چې په لویدیځ فارس کې پروت دي د بالشویکانو پرضد د قوې رهبري کوله، او په هغه تازه ګیو کې مجبور شوي و چې د ماوراي کسپین Trams Caspia څخه ځان وباسي غوښتل یې هغه قوې په مرکزي آسیا کې په کار واچوي او هرات تهدید کړي. هرات فارس ته نژدې یو افغاني ښار دي هغه له دي مانوري څخه منع شو، لیکن میلسن د یوې عالي پوهې خاوند و او د خصوص پروپاګندي ماشین یې درلود، او په یوه وخت کې یې په کندهار کې د برتانویانو په ګټه یوه آوازه خپره کړه چې شیعه ګان چې شمیر یې په ختیځ افغانستان کې لږ او په هرات کې زیات دي یو سنې هلک وژلې، او د هغه مړي یې د کشافاتو په ډېران کې اچولې دي سنیان د خونړې کسات په فکر کې شول، په پای کې څوک نه پوهیده چې هلک به وژل شوي وي، مګر د میلسن پروپاګند چېانو په ټول هرات کې د سنیانو د برغلونو کیسې کولې نو په هرات کې نا آرامي پیدا شوه او د انګریزانو په ضد د امان الله د جهاد پلویان کم شول(۲).

امان الله په عین وخت کې خپل پلانونه په دقت سره ترتیب کړي وو. د اپریل په ۱۵ تاریخ، د مسکو د ایزویستیب ورځپاڼې، د افغانستان د خپلواکې خبر خپور کړ. کله چې شورویانو یو افغاني تبعید شوي سړي، چې شهزاده غوندي و، د بندر خواته خپل پلار ته و استاوه، امان الله خپل هیأت روسیې ته و استاوه. همدا راز هغه خپل یو استازي هند ته ولیږه چې د جاپان د امریکې د متحده ایالتونو او نورو په نامه مکتوبونه هم ورسره وو، او ورته سپارښتنه شوي وه چې که د مکتوبونو د لیږلو نورې وسیلې موجودې نه وي، نو دي کولې شي چې د راجستري پوستې په ذریعه یې و استوي. استازي ته د مخه ښې په وخت کې د امان الله خبري داسې وې: «په هند کې له انګلیسانو سره ژوره اړیکه ټینګه کړه.»

سره د دې، محمود طرزي دغه استازي ته داسې لیکلي و: «په اخبارونو کې هیجان منځ ته راوړه.» او ورڅخه وېې غوښتل چې له هندیانو څخه دې افغانستان ته د وفاداري سندونه تر

لاسه کړي. هغه هغو استازو ته چې په هند کی وو اعلامیې و استولې چې پکی تکرار سره لیکل شوي وو چې یوازې انګلیسان انسانان دي او برتانویان پرته له خپل ځان نه نور خلک انسانان نه ګڼي. «کوم شی چې زیات د تعجب وړ دي هغه دا دي چې جنګ به بیا د انګلیس او جرمن ترمنځ پیل شي او په هغه ځای کی هم (په اروپا کی) انګلیسان په مصیبت اخته دي او ان شاء الله چې انګلیسان له منځه تلی دي... هندوانو او مسلمانانو له یوې لوښې څخه اوبه څښلی دي. انګلیسان په دنیا کی تمک حرام معرفی شوي وو ځکه چې هغوي هند ته تر راتګ وروسته خپل ځانونه ماړه او نور خلک یې وږي کړي دي... اې ورونو! هندیانو ته وګوري چې تر کومی اندازې پوري ځورول شوي دي او توپک ورته نیول شوي دي. دغه ټولی پیښې د انګلیسانو له ظلم او تیري پرته بل څه نه دي. پر ظالمانو دې لعنت وي. پر انګلیسانو دې نفرین وي. »

وروسته امان الله له یو ډیر ښه پلان څخه کار واخیست. هغه د هند په لور په دریو ګروپونو کی د عسکرو استول و: یوه ډله یې د ډکی په لور و لیږله چې د خیبر غاښی ته نږدې دي. د دې ډلی مشري د جنرال صالح محمد په لاس کی وه چې د نادر پر ځای چې عمومی قوماندان و مقرر شوي و بله ډله د نادر په مشري د خوست سختی سیمی ته و استول شو. نادر یوځل بیا مقرر شوي او دریمه ډله د جنرال عبدالقدوس خان تر مشري لاندې د کندهار په لور و استوله شوه.

امان الله یو شدید الحن فرمان صادر کړ چې تر هغه چې ده امر نه وي کړي هیڅ اقدام دې صورت و نه نیسی. همدا راز ده خپلو سرحدي والیانو ته ویلی وو چې هغوي دې خپلو مادونانو ته خبر ورکړي چې: «بیدار دې و اوسی چې کومه افغانی تبعه د برتانیې په قلمرو کی کومه اشتباه او کم عقلی و نه کړي. » او په پیښور کی یې خپلو نماینده ګانو ته امر ورکړ، چې د هغه له اجازې پرته دې د هند هیڅ یو تبعه ته چې په هند کی یې په اله ګوله کی برخه اخستې وي، که هندو وي که مسلمان، کابل ته د تلو ویزه ورنه کړي. په پیښور کی د اتحاد یې د کمیټې ځینو غړو لا د مخه د پاسپورت غوښتنې لیکونه جوړ کړي وو چې د ناکراري په وخت کی ورڅخه استفاده وکړي.

کله چې فوځ د دریو پوستو په لور رهی شول نو د ابل د شاو خوا له هغو لارو څخه تیر شول چې احساساتی پوسترونه پکی بند شوي وو او د دغو کلیو هر قبیلوي سړي به ځان ته غازي ویل او د جهاد او مقدس جنګ لیوال وو. لیکن امان الله نه غوښتل چې جنګ پیل کړي.

د ډکې چې سرحد ته نژدې یوه افغاني تانه وه، او لنډي کوتل، د خیبر په غاښې کې انګریزانو د مهمې پوستې تر منځ یوه تېره ځمکه د باغ په نامه یادېدله چې اوږدوالی یې له یو میل څخه کم و او یوه ویاله پکې روانه وه چې اوبه پکې بهېدلې او یو څو ونې هم پکې ولاړې وې. هیڅوک ډاډه نه و چې دا تېره خاوره پر هندوستان پورې مربوطه وه که په افغانستان پورې. ځکه چې په دې ساحه کې سرحدي علامې نه لیدل کېدې. هر کله چې برتانویان د یو کمیسیون پیشنهاد کاوه افغانانو هغه ځنډاوه.

د ډکې سرحد دار د اپریل په دیارلسمه سرنوشت تاکونکې نیته «د باغ د ویالې په باره کې چې لنډي کوتل ته نژدې یې جریان درلود، د هغه ځای د اوبو په باب د برتانیې د حکومت د تصمیم په باره کې چې همدا شی په بیه واخلي، د هغه د اشغال په برخه کې د هغوی د ناکامې په باره کې او د ویالې په باره کې د یوې مفصلې محاسبې په کولو سره چې د خدای ورکړي افغانستان د حکومت په حدودو کې یې موقعیت درلود» طرزي ته ولیکل. طرزي داسې ځواب ورکړ «د سرحدي چارو په حل او فصل کې دي باید له ډیر غور او دقت څخه کار واخستل شي.»

د مې د میاشتې په لومړي نیټه په خپله امان الله سرحد دار ته ولیکل:

«تاسو ما پوه کړي چې د پنجشنبې په ورځ کله چې قافله پېښور ته تله یو اروپایي له څلور تنه عسکرو سره له لانجمنې سیمې څخه تیر شو له هغوی سره بیرته ستون شو او دا معلومه نه شوه چې هغه په څه مقصد راغلی و او بیرته لاړ. دا هغه ځای و چې تر دې د مخه به د هغوی د قافلې تولو بدرګه کوونکو پکې د بیرته ستنیدو لوپوری له تودوخې څخه د پناه کیدو په خاطر د ونو د سیورې لاندې دمه کوله. څرنګه چې دا سیمه تر لنډي کوتل پورې یوه جنجالي سیمه ده نو هغوی حق نه درلود چې دې سیمې ته تللې وای تر هغه چې د هغه په مورد کې په لنډي کوتل کې موظف منصبدار، له تائیني پوښتنه نه وای کړي، ولې هغوی زموږ په سرحد باندې تیری کړی دی حال دا چې هیڅ کوم کار یې په هغه ځای کې نه و تاسو د لنډي کوتل منصبدار ته ولیکئ چې که داسې عمل بیا تکراریږي نو په هغه صورت کې به تیري کوونکي ګرفتار شي.»

بله ورځ جنرال صالح له دوو تولیو پیاده عسکرو او دوو غتیو توپونو سره را ورسید او د خیبر رایفلز (یو ډول عسکري تنظیم - مترجم) یو افسر یې په شخصي توګه پوه کړ چې زه غواړم تول افغاني سرحد ووینم. د ده له لومړیو اقداماتو څخه یو دا و چې د باغ په لانجمنه سیمه کې پیرې ودروې او خیمې ورته ووهي. هغه د خیبر انګلیسي سیاسي نماینده ته ولیکل چې غواړي په هغه ځای کې یوه کلا جوړه کړي.

کاروانونه به د اوونی په ټاکلو ورځو کی هند ته تلل او په ټاکلو ورځو به افغانستان ته تلل. د خیبر لاري له خلاصیدو د مخه به د هغی خوا سرایونه د شپی له خوا تل د اوښانو او خرو ځخه ډک وو. دا ځاروي له درنو بارونو ځخه په عذاب وو. د شپی له خوا به بارونه ورځخه ښکته کیدل او سبا سهار وختی به بی بارول چې له دري ځخه تیر شی. دمی د میاشتی په دریمی نیتی په سهار اوښان او خره ټول په سراي کی پاته شول. نور کاروانونه په دوي پسی را روان وو.

د شپی له خوا ۱۵۰ تنه افغانی عسکرو باغ، او هغه ته یو نژدي کلی چې د کافر کوټ په نامه یادیده ونیول. د دي سیمی ټول اوسیدونکی یا غرونو ته وختل یا د لنډي کوتل خواته و تښتیدل. په دي وخت کی د افغانانو له پاره داسی امکانات برابر شول چې پر قافلو یاندي برید وکړي ځکه چې د لاري په یو جگه برخه کی ورته سنگر نیولی و. په هغه شپه یو قبایلی شینواري چې زرشا نومیده له خپلو وسله والو نفرو سره راغی او په خیبر رایفلز باندی د ډزو کولو گواښ وکړ چا چی د کاروانونو ساتنه کوله.

د می په دریم تاریخ د ورځی په ځلورو بجو د شمال لویدیز سرحد د ایالت لوي کمشنر داسی ولیکل «ممکن دغسی پیښی د زرشاد گستاخی او بی باکی له مخی صورت نیولی وي لیکن د دي امکان هم شته چې زرشاد کوم دستور له مخی دا کار کړي وي او د سرحدي زړو لانجو د ژوندي کولو له پاره به دا پیښه لومړي حرکت وي.» لوي کمشنو سرجورج اوس کیپل نومیده چې د پښتو ژبی قاموس یی هم ترتیب کړي و چې د سرحدي قبایلو ژبه ده، ویل کیږي چې دغه کمشنو ته یو سړي ځان د امیر استازي معرفی کړي او اوده ورته ویلی وو «کوم امیر».

د می د میاشتی د دریمی نیتی په شپه د زرشاه نفرو پنځه تنه هغه مزدوران ووژل چې د انگلیس د اوبو لگولو په پروژه کی بی کار کاوه. زرشاه هغو خلکو ته چې د ده په شاوخوا کی وو وویل چې جنرال صالح چې اوس بیرته جلال آباد ته ستون شوي دي ماته لیک استولی دي چې جنگی حالت ځان ته غوره کړم مگر د افغانی پوځ تر رسیدو پوري به دا امکان تر سرحده پوري په لږو اقداماتو لاس پوري کړم. د برتانیی افسر ته د امان الله د یسوي تهدید امیزي اعلامیی یوه لیتوگرافی کاپی و استوله.

اوس خپلو آمرینو ته داسی تلگرام وکړ «زه پیشنهاد نه کوم چې لنډي کوتل ته دي اکتشافی قوا ولیږله شی ځو چې وضعه زیاته خرابه نه شی ځکه چې دا حرکت به په پیښور کی بده اغیزه وکړي.»

برتانويانو جنګ نه غوښته ځکه چې امان الله ته يې چانس ورکړ چې له زرشا څخه لاس واخلي. هغوي د يو مخصوص قاصد په واسطه دمې په څلورم تاريخ هغه ته يو پيام واستاوه چې د ويسرا له خوا لاسليک شوي و او پکې داسې راغلي وو:

«ما ته احوال را رسېدلي دي چې د خيبر په سرحد کې يو سړي چې زرشاه نوميږي او د ننګرهار د شينوارو او سيدونکي دي او پخوايي هم د پېښور په سيمه کې يرغلونه کړي دي په ځينو وران کاريو لاس پوري کوي.

«هغه د خيبر له ټوپک لرونکو (خيبر رايفلر) سره د برتانيې په سيمه کې مداخله کړي ده. او په ګستاخي سره وايي چې زه د مخه د جنرال صالح له خوا استول شوي يم چې په دې سيمه کې ناکراري منځ ته راوړم. دا يوازني شی نه دي. هغه ستاسو په مهر باندي داسې اعلاميې خپروي چې پکې ليکل شوي دي چې په هند کې ناکراري موجوده ده او هم دا چې زما حکومت د خپل رعيت د وفاداري په بدل کې د هغوي د مذهب، عزت، او حيا سره ظلم او بې عدالتي کوي. او دا چې حق لري چې را پاڅيږي او ناکراري منځ ته راوړي.

«که څه هم زه معلومات لرم چې په اعلاميو کې ستاسو مهر دي خو نه شم کولی چې باور ونه کړم چې دا کار د افغانستان او په خپله ستاسو د يو دښمن له خوا جعل او په خلکو کې خپور شوي نه وي. ځکه چې په اعلاميه کې د هند دولت تر دې حده پوري غلط ښوول شوي دي چې هيڅ يو سياست پوه به يې و نه مني. اعلاميه ډېره څرګنده او محسوسه ده او مقصد يې قبايلي زړور خلک د انګلستان د حکومت پرضد را پارول دي (چې د نړي د ډېرو قوي قدرتونو په ټکولو سره يې قدرت معلوم شوي دي.) او د افغانستان هيڅ يو دوست څخه د هغسې يو شي د ليکلو توقع نه شي کيدلی. لنډه دا چې دا اعلاميه ستاسو امنيتي وضعې ته چې تاسو له تيرو څو مياشتو تاريخي ستونزو وروسته ټينګه کړې ده خطر متوجه کوي او دا ستاسو د داسې يو دښمن کار دي چې غواړي تاسو له پښو وغورځوي...

«زه ستاسو څخه هيله کوم چې ژر تر ژره امر وکړي چې زر شا دې ګرفتار شي او زموږ او ستاسو په ګډ سرحد کې دې خلکو ته وويل شي چې پورتني اعلاميه چې د هغه له خوا ويشله شوي ده... بې اعتباره او يو جعلي سند دي چې په دروغجنو شايعاتو ولاړه ده.»

په همدې ورځ باندې د باغ افغانانو کوچنې وياله بنده کړه. څرنګه چې دغې ويالې د لنډي کوتل له پاره اوبه برابروې او اوبه په هغه شاړه سيمه کې يو ارزښت من شی و نو برتانويان تړی

او وارخطا شول. د هغوي بوازنی تسل دا و چې هغوي ليدل هغه ډگروال چې پر افغانانو باندي مقرر و، ډير عصبي معلوميده. همداراز په هغه ورځ باندي د زرشا د اعلاميې ډيرې نسخې پېښور ته ورسيدي او د افغاني پوسته خانې له خوا وويشلې شوي. روس كيپل داسې وويل «هيڅ امكان نه لري چې وويل شي دا اعلاميې جعلي دي.»

امان الله خان دا ونه منله چې پر شا لاړ شي نويې بيرته وايسرا ته داسې وليكل چې د زرشاه گرفتارول او بندي كول په داسې سخت وخت كې «چې د هند ټول خلک د استبدادي قانون په مقابل كې سره يو شوي دي اصولي كار نه دي او مشكل دي...

د هغو احساساتي پانو د ملاحظې له مخې چې د زرشاه له خوا ښودل شوي وي، هغه ممكن داسې چاپي اعلاميې ترلاسه كړي وي چې پكې د دغه دوست شاهي مهر لگول شوي وي او پكې زما اسلامي خواخوږي او د انسان په مقابل كې احساسات او زما شاهانه كركه او نفرت د هغو شيانو پر ضد ښودل شوي وي چې پر مذهب آزادي او خصوصاً د انسان پر آزادي باندي بده اغيزه لري.

دد زياتې حيرانتيا خبره ده چې وايسرا زمونږ د لومړي مكتوب ځواب وروسته له زيات ځنډ څخه ووايه او هغه هم داسې يو ځواب نه و چې د سړي زړهورباندي خوشاله شوي واي.

دا دي پرځاي چې ستاسو حكومت بايد زمونږ حكومت د هغه سياسي او جغرافيايي مهم موقعيت ته په پاملرنه سره په ټول درنښت او عزت سره له ټولو حكومتونو څخه په مطلق ډول آزاد پيژندلی وي دا په زرگونو واري د افسوس ځاي دي چې ستاسو د اعليحضرت له ليک او مقاصدو څخه داسې څرگنديږي چې زمونږ ټولې هيلې چې مونږ له يو دوست او متحد حكومت څخه درلودلې بربادي شوي. د افغانستان حكومت غواړي ستاسو له حكومت سره معاهده وكړي او دوستانه اړيكې ولري. هيله من يم چې دغه دوست له زيات زيار څخه كار واخلي د ظلم او بې عدالتې قانون له منځه ويسي او مطلقه زمونږ خپلواكي وپيژني... څو د نړي پر مخ د مصيبت دروازي خلاصې نه وي ځكه چې خپل حق غوښتل درست دي او د حق په غوښتلو كې په ناحق ډول د وينې توييول درست نه دي. هيله من يم ستاسو جلالتماب بې له كوم ځنډ څخه مونږ پوه كړي چې په دي برخه كې په څه گټور عمل لاس پوري كوي.

په پاي كې هيله من يم چې زمونږ دوستي هميشنې وي.»

اما د مصيبتونو دروازي د مخه خلاص وي. انگليسانو په خپل وار سره د امان الله خان

هغه پیشنهادونه رد کړل چې د افغانستان د خپلواکۍ د پېژندلو په باره کې یې ورته کړي وو.

انګریزانو د ۱۹۱۹ کال د مۍ د ریمه نیټه چې په دې ورځ باندې زرشا د خیبر ټوپک لرونکي (خیبر رایفلر) تهدید کړي وو او پنځه تنه مزدوران یې وژلي وو د پرانستونکي نیتې په توګه وپیژندله چې د هغوی یو مامور «یو بې معنی تراژېدي چې په دریم افغان جنګ سره یاد یږي» توضیح کړه.

په نوي جنګ کې د برتانویانو لومړي اقدام دا و چې روس کیپل ته صلاحیت ورکړي چې د برتانوي سیمې پر قبایلي خلکو باندې له حده زیاتې پیسې ولګوي.

څو د هغوی ملاتړ حاصل کړي. بل اقدام یې دا و چې په پېښور کې پر افغاني پوسته خانې باندې برید وکړي.

افغانستان د نړیوالې پوستې د اتحادیې غړیتوب نه درلود پارسلونه او خطونه چې له نورو هیوادونو څخه پېښور ته راتلل که د مرسل له خوا د افغاني پوستې له پاره پیسې نه وې استول شوې او یا که په دې مورد کې له مرسل الیه سره د هغه پیسو تا دیه کولو ترتیبات نه ونیول شوي نو تیول په پېښور کې پاته کېدل. غلام حیدر د مخابراتو په مرکز کې د مۍ د میاشتې په لومړیو وختو کې له خپل مقام څخه د امان الله ورقې او رسالې پر خلکو باندې وویشلې. همدا راز هغه کله کله امان الله ته غلط راپورونه ورکول چې برتانویان په خیبر کې تشې لارې بنکته او پورته ځغلوي او دوړې پورته کړي چې په دروا غو خپل فعالیتونه خلکو ته وښيي. د هغه په وروستي لیک کې امان الله ته داسې لیکل شوي وو «که چیرې تر دې وروسته چې مهر شوي پاڼې خپرې شوې دي او دري تنه جنرالان مقرر شوي دي د افغانستان پاچا پر هند باندې له یرغل کولو څخه ډډه وکړي د دې سیمې مسلمانان او هند وان په خوا شیني شي. نو داسمه نه ده چې موضوع وځنډوله شي او انګلیسانو ته موقع ورکړله شي چې خپل عسکر سره راټول کړي او یا په خپلو غورو وعدو او پوچو خبرو وغولوي.»

د پوسته خانې امر له هغه کنفرانس څخه بیرته راغلی وچې په جلال اباد کې یې له جنرال صالح سره درلود. د روس کیپل په نظر د هغه د فعالیتونو پلان په لاندې ډول و:

«زه له بوې مودې راهیسې په دې عقیده یم چې په پېښور کې د یوې ډلې جنایت کارانو له پاره یو پلان وجود درلود چې د افغانانو له حملې سره یو ډله جنایت کاران هم زموږ پر ضد راپورته کیږي لیکن دا جنایت کاران چې ورته په آزاد ډول پیسې ورکړي شوې وې د خپل سازمان

ورکوونکې له اداري څخه وتلې وو او بې له امنیتي تدابیر وڅخه به دمې په اتمه شپه پرمور باندې یرغل کیده او د هغوي یوي لويي ډلې به زمور دبې سیم دستګاه ګو دامونه، تجهیزات، خزانه، د اورګاډي پټلي او نور... له منځه وړل که چیرې اړه دوره جوړیدله نود افغانانو دا غږ به چې د دوي دیني وروڼه او هغه وروڼه چې په وینه کې ورسره شریک دي وژل کیږي نو ددې غږ اغیزي به د اجنبي سکانو د مصیبتونو د غږ له اغیزي څخه زیاتې وي. »

د پېښور له ښار څخه جګ جګ د یوالونه تاو شوي وو چې شپاړس دروازې یې درلودې او ځینې دروازې بې ډیرې کلکې وې. دانګلیسانو سپاهیان په څلورو ځایونو کې د اورګاډي د سرک په اوږدوکې دریدلې وو. د مې په اتم تاریخ دورځې په دوو بجو له خپلو ځایونو څخه وخوځیدل. هرې ډلې ته وظیفه ورکړله شوې وه چې څو دروازې وترې او له هرې ډلې سره یو پولیس روان وچې کاغذ یې په لاس اوپکې د دروازې نوم په انګلیسي، اردو، او په ناګرې رسم الخط لیکل شوي ووچې غلط یې نه کړي. دا هغه موسم وچې د پېښور خلک دعادت له مخې د زیاتې ګرمې له کبله د غرمې له ډوډي وروسته څو شیبې استراحت کوي.

سربازانو د سپرو عسکرو له ډول ډول ثقیله وسایطو سره چې ددوي جبه خانې او نور سامان پکې بار وو مخ په وړاندې حرکت وکړ. دهرې دروازې له پاره یې یوه قطعه موظف کړې وه. په دې وخت کې ځینې خلکو ته چې دباندې ګرځیدل امروشو چې ښار ته داخل شي. دیوولسو دقیقو په موده کې شپاړس دروازې ټولې وتړلې شوې او بیا په څلویښتو دقیقو کې د ټولو دروازو له پاره موظف نفر وټاکل شول چې څارنه یې وکړي. د پېښور خلک چې له خوبه را پاڅیدل پوه شول چې کلابند شوي دي او به چې د ژوند ډیره ضروري ماده ده وړباندې قطع شوې وې او یوازې یو محدود شمیر خلک د اجازه نامو په درلود لو سره کولی شوي چې له ښار څخه دباندې او دننه تګ راتګ وکړي.(۳)

د افغاني پوسته خانې امر هم د غرمې په خوب ویده وچې د کتونکوډلو له خوا راویښ کړي شو. هغوي په کوچنیوډلو کې راغلل، ټول ډاریدل اوویل یې چې « مور اوریدل دي چې پولیس راځي، ستاسو وسلې اخلي او تاسو بندیانوي. » وروسته د کمشنر (صوبه دار) څخه د پولیسو قاصدان راورسیدل کتونکې ډله وړباندې په قار شوه او په تونده لهجه یې وړباندې غږ وکړ او په تیل وهلو سره یې وشړل، لیکن هغوي وکړي شول چې پیغام تسلیم کړي چې پکې لیکل شوي وو چې د پوسته خانې آمر دې له خپلو پنځو تنو کارکوونکو سره د کابل دروازې د

پولیسو دفتر ته حاضر شي. صوبه دارد خبرو په ترڅ کې د پوسته خانې آمر ته په تونده لهجه وویل چې ستاد فعالیتونو له امله د امیر او انګریز په منځ کې جنګ پیښ شو. د پوسته خانې آمر په جګ آواز سره وویل «زه د پوسته خانې یو مرزای څنګه کیدي شي چې داسې یو اوچت پاچا زما خبروته غوږ ونیسي؟»

دمې په ۹ نیټه انګریزانو په ډکه کې د افغانانو ځایونه بمبارد کړل. په دي توګه په افغانستان کې هوایي دوره پیل شوه. دمخه تردې د افغانستان په فضا کې کومه الوتکه جګه شوي نه وه او په فعالیت یې لاس پوري کړي نه و. انګریزانو پخوا پر هغوقبایلوباندي بمونه غورځولي ووچې دهغوي له امر څخه یې سر کشي کړي وه هغوي پوهیدل چې اغیزه به ونه لري.

یو افغان ته چې دخپلو غرونو په لړي کې ایسار وي نړي محدوده او احاطه شوي ښکاریده. مرګ ممکن دبل غره په شاوخوا کې یاپه هموارہ کې دهغه په انتظار کې وي. مګر هوایي نابېره مرګونه د دوي له پاره یونوي مصیبت و...

لومړي بم د سرحد دار په حویلي کې ولوید او دجنرال صالح یوه پښه یې ژوبله کړه. بل بم دهغه د مرکزي اداري کمپ وران کړ اوشل دیر شوتنو، چې عسکر او قبایلي کسان پکې شامل وو خپل ژوند له لاسه ورکړ. په دي نوي طریقې سره د خلکو مړه کیدل. د زخمي شو و اوښانو او اسانو رمباړي وهلو او هک پک پاته کیدلو خطر ناکه صحنه منځ ته راوړي وه. جنرال صالح چې په موټر کې لاړ خپل مرستیال ته یې وویل چې له جلال آباد څخه به قوه واستوم. قوه دري ورځې وروسته را ورسیدله او افغانان په میړانه وجنګیدل خوهوا یې برید بیا وربانديې وشو.

مومند و اوشینوار و قبایل له دي وژونکي سهمي څخه لاړل مګر هغوي لومړي بستري، غالي، جنګي مهمات، وسله او نورشیان راټول کړل چې یوځ ورته تیار کړي وو او له ځان سره یې غره ته وخیژول.

روس کیپل دمې د میاشتي په ۱۳ نیټه وایسراته داسې ولیکل، « افغاني لښکر چې مونږ ورسره څو ورځې دمخه وجنګید وله هغه هم زیات په میړانه وجنګیدل چې ما فکر کاوه مګر څرنګه چې سازماندهي او ترانسپورتي وسایل نه لري نو نه شي کولي جنګ ته په پراخه پیمانه دوام ورکړي.

« له افغانانو څخه قبایل ډیر خطر ناک دي، داچې هغوي تر اوسه پوري زمونږ پر ضد پورته شوي نه دي یو خارق العاده کاردي.

«ډیر زیات خطر د هند له شمالی ایالت څخه متوجه دي. زیات شمیر خلک له موږ څخه داسی متنفره دي چی کـه یوه شی زموږ له شر څخه خلاصیږي نو پر موږ باندي به حتی د یوي حملی هر کلی وکړي.»

امان الله په کابل کی تل کار کاوه. یولوي سالون یی، چی په قومی باغ باندي مشهور و، په جنگی اداره بدل کړي و، د ماښام په خړه کی به داس په سپرلی باندي په عسکري یونیفورم کی دغاړه کی، توري او څرخی توپانچی سره کورته روانیده. هغه په دي ورځو کی له عسکري یونیفورم پرته بل هیڅ شی نه اغوست. څرنگه چی پنځوس تنه وسله وال کسان به له ده سره هغه د ماښام په سفر کی ملگري وو نودي ته ضرورت نه احساس کیده چی توره او تمانچه له ځانه سره وگرځوي مگر کله چی کومه وظیفه ورپه غاړه کیدله هغه به یی په بشپړ ډول سرته رسوله. اوس هغه د یو نظامی رهبر نقش لوباوه.»

اما هغه داسی یولیډرو چی هڅه یی نه کوله جنگ پیل کړي مگر حیران وچی څنگه به کوم جنگ اداره کړي.

د بمباري خبر امان الله ته په هغه وخت کی ورسید چی طرزي د برتانیی له نماینده حافظ سیف الله سره د کنفرانس د دایر ولو په درشل کی و، او امان الله طرزي ته په وارخطایی سره تیلفون وکړ، طرزي د خبري کولو له پاره ځان امان الله ته ورساوه او نتیجه یی داوه چی سیف الله او دهغه کارکوونکی دي دومره جدي ترڅارنی لاندي ونیول شی چی حتی ماشومانو ته یی اجازه ورنه کړلی شی چی کوڅی ته ووزي، او له ماشومانو سره لوبی وکړي. طرزي په قهر سره حافظ سیف الله ته وویل «صاحبه زه تا ښه پیژنم. ماستا سود مهارتونو په باره کی اوریدلی دي، تا سو د قران شریف د آیتونو په استنا سره امیر حبیب الله تشویق کړي دي چی په عمومی جنگ کی د ترکیی له داعیی څخه ځان گوښه کړي. داتا سو او ستاسو د آیتونو اقتباسات ووچی د ترکیی حیثیت ته موزیان رسولی، او دهغه له مخی مود اسلام نړي ته زیان رسولی دي.»

حافظ سیف الله ته چی قران شریف یی به یاد و زده و او به همدي وجه ورته د حافظ لقب ورکړي شوي و، د دي خبري اوریدل خوش آینده نه وچی دهغه تقوي او پرهیزگاري، چی دانگلیسی بادارانو په خاطر ښودل کیده، دهغه دین ته تاوان رسولی وي.

په هغه شپه یی افغانان په باغ کی وو، نه قوا ورته ورسیدله او نه غذا هغوي نه شواي کولی حرکت وکړي ځکه چی په آسانی سره یی درانو تو پونه خو ځولی نه شو. دوي باید ددي

توپونو د ورلوله پاره پلان درلودلی وای. دوی او هغوی نورملګری د څو ورځو په موده کی بیرته کابل ته تلل او د دی سیمی د شاوخوا ټولو خلکو به اوریدل چی په ډکه کی په شرموونکی توګه د خوراکی مواد و ترانسپورتی چارو او د درملو کمښت لیدل کیږی.

بل سهار روس کیپل داسی تلګرام وکړ، «په خیبر ټوپک لرونکو (خیبر رایفلر) کی د وظیفو ترک کول پیل شوی دی.» له ټولو محلی ملیشیایی یونټونو نه چی برتانیوی پوځ ته یی د داسی استدلال کولو حق ورکاوه چی له فتحه شوو خلکو سره د هغوی ډېښه فعالیت ستاینه وکړی هیڅ‌ها هم د خیبر له ټوپک لرونکو څخه په انګلستان کی زیات شهرت نه درلود. مګر د ټوپک لرونکو (رایفلر) افراد ګوډ اګی عسکر هم نه وو، هغوی په هغو کورنیو پوری مربوط وو چی په افغانستان کی خپلوان درلودل، او له سرحد نه د تیرید لواو راتیرید و په وخت کی به یی سره لیدنی کتنی کولی او هغوی د «جهاد! غزا» غږ ته دومره حساس وولکه چی نور مسلمانان وو.

روس کیپل داسی راپور ورکړ: «د خیبر ټوپک لرونکو ډیره بده رویه کړی ده. د لنډی کوتل نفرو د برتانیوی افسرانو په شمول ډیر ښه اجرات وکړل لیکن افسران چی دجګړی په لومړی صف کی جنګیدل، تردی حده په جنګ مصروف وو چی کشافی پوستی یی هیری کړی او ملاقات یی ورسره ونه کړ. د کشافی پوستی نفرو هرډول پیغامونه درلودل چی د پیښور د دسیسه کارانو له خوا ورته استول شوی وو او یکی راغلی وچی افغانان بیخی بربالی دی. افراد و اول یویو نفر او بیا په ډله ییزه توګه د جنګ له ډګر څخه په تیښته پیل وکړ. هغوی خپلی کشافی پوستی وسله وال پوځ ته تسلیم کړی دی.»

او بله ورځ یی داسی راپور ورکړ: «قوماندان ته می امر ورکړ چی د (خیبر ټوپک لرونکی) دی تیت او پرک کړی. تیره شپه په جمرود کی د زیوا وریدلی شوی چی ممکن د خیبر ټوپک لرونکو څخه د تښتیدلو کسانو له خوا به وی. هغه پرون په لنډی کوتل او جمرود کی بدخویه معلومیدل. په لنډی کوتل کی له اوه سوه تنو څخه صرف سل تنه په خپله خوښه پاته شوی دی او محلی افسرانو وویل چی موږ به هیڅ کله د هغوی مسوولیت په غاړه وانه خلو حتی د دغو کسانو مسئوولیت چی به خپله خوښه پاته شوی دی ځکه چی احساس بیخی بد دی. کله چی په جمرود کی له افراد و څخه دلومړی ځل له پاره پوښتنه وشوه چی څه غواړی له پنځه سوو تنو څخه یوازی سل تنو غوښتل چی خپلی وظیفی خوشی کړی خو ګله چی زه هلته ورسیدم د پاتی کیدونکو شمیر نژدی ۱۵۰ تنو ته راټیټ شوی و د دوی دریځ د خواشینی وکه څه هم له ما

سره شخصاً دوست او مودب و. زه دې نتیجې ته رسیدلی یم چې زیات کسان ددې په خاطر په خپله خوښه پاته شوي دي چې ټوپکونه غلا کړي او له ځانه سره یې وتښتوي نو ځکه ما قوماندان ته هدایت ورکړي چې ټوله قطعه دې تیت او پرک کړي... »

ما له ملکانو او محلي افسرانو سره په خپلو خبرو اترو کې یقین حاصل کړ چې په دې وختونو کې دهغوی د وفا داري د کمزوري کولو له پاره توطئه شوي وه او دا توطئه بریالی وه. یو ذهنیت چې له خلکو سره پیدا شوي و هغه داوو چې موږ دافریدیو د پاڅون له ویرې غواړو د جنګي کسانو شمیر کم کړو او زموږ مقصد چې ګوندي هڅه کوو د خیبر ټوپک لرونکي و هڅوو چې وړاندې لاړشي، دادي چې موږ هغوي د اور پلومړي صف کې دروو، او په یو مناسب وخت کې د خپلو توپونو د اور په واسطه هغوي له پښو غورځوو. »

د برتانوي عسکرو له جملې څخه یو افسر دهغه کال په لومړ یو وختونو کې داسې لیکلي و «موږ باید دداسې امر کولو جرأت ونه کړو چې دمنلو وړ نه وي. » جنګي کسانو څلور کاله هغه شعار دخپل ژوندانه لارښود وګرځاوه، چې یو شاهر، چې په خپله نه جنګیده، ورته ویلی و، او هغه مطلب داسې و: «هغوي یا باید جنګ وکړي یامړه شي. » اوس هغوي یا پوره فعالیت کاوه یایې تلفات ورکول، او که یې دلیل راوړ چې ولې، نو په خپله دهغوي ستړیا او ستومانی ورته کافي دلیل کیدي شو. که چیرې دهند ټول هغه عسکر چې یې نومونه دخوشی کیدو له پاره یاد داشت شوي وو رخصت شوي واي په پوځ کې به په بې ساري توګه کمښت منځ ته راتلي واي نو یوازې محدود کسان زیاته هغه کسان چې مریضان وولندن ته خپلو کورونو ته لاړل هغوي چې پاته شول هر نفر ته یې سوغاتونه او تحسین نامې ورکړې شوي چې د عمومي قوماندان لاسلیک پکې شوي و.

کله چې له افغانستان سره جنګ پیل شو، ډیر کسان په ممبی کې د کښتي په ذریعه خپل هیواد ته د تلو په حال کې ووچې د بین النهرین ځینې هغه کسان هم پکې ووچې دهند له لارې خپلو کورونو ته استول کیدل. له دغو کسانو ځینې غوښتنه وشوه چې که په خپله خوښه د افغانستان په سرحدکې وظیفه اجرا کړي. دهغوي ځواب داسې و چې په لندن کې یې ورته کار په انتظار کې دي او که چیرې په خپله خوښه بیانومونه ولیکي نو هغه کارونه به زیانمن شي. هغوي په دې شرط سره حاضر ووافغانستان ته لاړ شي چې پوځ دخپلې خوښې په ځای هغوي ته امر صادر کړي ځکه چې په دغه صورت کې به په انګلستان کې کارفرمایان هغه وخت دوي ته

دجـزا ورکـولو قـدرت ونـه لري کـله چی ډیر کسـان د کـارغوښـتونکي وي. په دي خبره باند ي موافقه وشوه.

وروسته، د وطن پرستی د یوي داسی مفکوري د ایجاد ولو په خاطر چی د عمومی جنګ په پیل کی منځ ته راغلی وه د پوځ د عامه ارتباطاتو یو افسر په اخبارونو کی اعلان وکړ چی دغه کسان «داوطلب شوي دي» هغوي په سرحد کی له افغانانو نه چی دوي ورسره په جنګ کی وو، پر خپلو آمرینو باندي ډیر په قـاروو، او په انګلستـان کی دخـپلی آینـدي په باره کی پـه اندیښنه کی و. د اورګاډي د لاري په یوه برخه کی حتی سرحد ته درسید و دمخه له دغو کسانو څخه د وو زرو تنو اعلان وکړ، چی موږ له اورګاډي څخه ښکته کیږو خپلی خیمی دروو، آذوقی را اخلو مګر نور هیڅ نه کوو، او په یقین سره به دلویدیځ په لور وراندي لاړ شو. نورکسان چی ورڅخه تیریدل، او افغانی سرحد ته د وظیفی د اجراکولو په خاطر روان وو دهغوي د ډګرمن په احترام وربانديغږ وکړ «او دو داس بالشی غونډ. (Bolishi Brigade S Dowda SO) په پوښته کی چی یولوي سازمان د افراد ود تیښتی دوسیی ترتیبولی، دهغوي دلیکنی بی عدالتی د برتانیی کـاتبـان دومـره راوپا رول، چی نوره یی د زیاتولیکنو څـخـه ډډه وکـړه او دي تـه اړتیـا ولیدله شوه چی خبري ورسره وشی، او راضی کړي شی چی له دي بلوا څخه لاس واخلی.(٤)

حتی په هغو خلکو کی چی افغانستـان نه په یوښه نیت سره ولاړل، دهمغو عناصرو په منځ کی چی افغانستـان ته په ښه نیت سره تللی وو یوډول نارضایتی موجوده وه او دغه نارضایتی د هغـه زغم له امله وه چی دوي د اروپایی دښـمن سـره دجګړي پـه کـولو کی هم له ځـانه، نه وښودلی: د سیاسی افسر زغم. د برتانیی سیاسی افسر په یوه قبایلی سیه کی دهغو خلکو تر منځ چی په تخنیکی لحاظ د برتانیی تبعه بلل کیده که څه هم دوي دغه حالت ډیر کم احساسا وه تقریباً دیو زمیندار خان او ډیر بامسئولیته سړي په توګه یی عمل کاوه. هغه د خپلو خلکو څارنه کوله د هغوي نارضایتی ده ته تکلیف ورکاوه او د دیورند خیالی کرښه چی افغانستان یی له هغه څخه جلا کوله، دده قبایلی اتباعو ته دومره جزئی اوبی ارزښته وه، چی د یو افغان په مـقـابل کی عـمل کـول بـه دده دهند دخـپلوانو پـه مـقـابل کی عـمل کـول و. د پوځ دتګ نه ډیر وروسته به سیاسی افسر په هغه ځاي کی وچی نتیجی ترلاسه کړي او وربانديِ یوه شو.

دبرتانیی د پوځی قوت د لومړي سروي کوونکی یوه ډله افغانی قبایلی کسـان یی دري ځلی په هغوویا لوکی پیدا کړل چی غروئو د واورو دویلی کیدو په وجه او به پکی زیاتی شوي

وي او دوي پکی ځانونه پټ کړي وو. هغوي د افغانانو توپکونه معاینه کړل، او پوه شول چی تازه ډزي ورنه شوي وي، او د دوي د هدایاتو سره سم دغه کسان یی سیاسی افسر ته تسلیم کړل. په داسی حال کی چی وروسته تحقیق وشو چی څه شوي وو، عسکروته وویل شول چی، دا هغه شپانه دوستانه دي چی خوشی کړي شوي دي. وروسته دهغوي منصبدار د تیرو پیښو یا دونه داسی وکړه «په نتیجه کی موږ هیڅ کله نوربندیان ونه نیول.»

هماغه ډله، یوي ساحی ته نژدي، چی د گردي په نوم باندي یا دیده، سېره روانه وه، دهغو لاښونو دلیدو او بوي په وجه چی دسړک په غاړه پراته وو او په ویالوکی د ډراگون پاچا د گارډ عسکرو د جسدونو په لید وسره چی په گرمی کی خوسا شوي وو بی هوښه شوه. هغه پا دري چی دوي د مړو د چټک ښخولو په خاطر را بللی و دوه واري د کانگی کولو په خاطریی توقف وکړ.

څو ورځی وروسته هغوي د گردي ساحی ته چی اشغال شوي وه اما اوسیدونکی یی بیرته ورته راتلل واستول شول. په دوي کی هغه غوصه لاتر اوسه موجوه وه چی د مړو په لیدو سره منځ ته راغلی وه. دغی ډلی له لاسی بمونو او ډیرونوي سیمانو سره د کلی د بیرته راستنیدونکو کسانو له پاره تلکی جوړي کړي. دوي خپل دا اعمال په پټه ترسره کاوه ځکه چی سیاسی افسر به دوي له دي کار څخه منع کول. هغوي دي ځاي ته په بل وار راتلو سره، ویی لیدل چی دغو تلکو په بریالیتوب سره خپل کار کړي دي. هغوي خپل جنگ ته ادامه ورکوله، دسیاست لوبی نه کولی.(۵)

یو سړي چی احتمالاً یی باید له برتانویانو سره په کلکه جنگ کړي واي مخلوع امیر یعقوب خان و، ده په هغه وخت کی داسی وویل چی دخپل ځان او زامنو خدمات یی پیشنهاد کړل. برتانویانو له یوي داسی کورنی څخه دغه پیشکش رد کړ، چی ډیر علاقه مند وو چی په خپله د افغانستان پاچاهی ترلاسه کړي، او دا ورته عاقلانه معلومه شوه چی له عمومی راپور څخه دهغوي یادونه وغورځوي. دهند واکمن شهزاده گان چی هغوي ورڅخه د وفاداري د څرگندولو هیله وکړه، هغه څرگندونی یی دامان الله پر ضد دغصی په ښکاره کولو سره وروا ستولی. یوازي یو زمامدار خپل یوزوي وروا ستاوه: هغه د پتیالی مهاراجا و، چی وارث یی د ملغلرو دوي لویی لښتی په غوړ کړي وي چی گرد چاپیر پکی الماس کارول شوي و. که څه هم ډیرو قبایلیانو د سرو زرو یوه ساده لښتی په غوړ کوله، خود برتانیی عسکرو په نارینه وکی دا ډول جواهرات بیخی نه وولیدلی. او که چیري دغه ځوان سړي

زخمي کيده نويي سمدستي تداوي کيدله ځکه چي دده مسلح ملګري دهغه دلښتي د ترلاسه کولو په فکر کي وو.(٦)

د برتانويانو په کمپ کي د کولرا مرض ولګيد. جنګ په داسي ناګهاني توګه پيل شو چي د افراد وله پاره وقايوي ستنو وهلو وخت هيڅ نه و، او ستني په محاذ کي وهل کيدي. ښې خالصي او به هم په کافي اندازه نه پيدا کيدي او ګرمي په ١١٤ (فارنهايت) درجه کي وه چي وني هم زياتي نه ليدل کيدي چي يې له سيوري څخه استفاده شوي واي، افراد و دويالو له اوبو څخه ډېره نه شوه کولي او په کوم لښتي چي يې او به پيدا کولي، هغه به يې څښلې. کولرا په عين وخت کي څوسيمو ته سرايت وکړ، د مرض د شدت په وخت کي په يو روغتون کي چي دري سوه ناروغان پکي وو، شپيدي خلاصي شوي. دليمو شربت، چي دانګليسي عسکرو دوا وه، او د ويتامين سي د کمبود په ضد ورڅخه کار اخستل کيده په څوا ولو ورځو کي خلاص شوي و. (٧)

انګليسانو چي دافغان دډکي په ترانسپورتي چارو باندي يې انتقاد کاوه خپلې ترانسپورتي چاري يې هم په هغه ځاي کي له ستونز وڅخه ډکي وليدي. په راپور کي داسي ويل شوي دي « دزيا تو تلفاتو توقع نه کيدله، مګر (سر افسر) وکړي شو هغه وزغمي، دوه برتانيوي افسران تېپيان شول، يو تن يې چي په سړي باندي په ګولي لګيدلی و او مري (Muree) ته درسيدو په وخت کي يې هيڅوک ونه ليدل، چي له موټر سره د دوي مخي ته ورغلي واي، نو مجبور شول چي يابوګان کراکړي او خپله چاره سازي وکړي. »

بل شکايت داسي و، « څرنګه چي زما ټول قاصدان وژل شوي دي نو له افغانستان څخه د احوال ترلاسه کول هم په تدريج سره سختيږي. »

وروسته برتانويانو پر امان الله خان باندي دهغه په خپله وسله حمله وکړه: دا وسله زښتې خبري وي. هغوي يوه اعلاميه ترتيب کړه چي بيخي د امان الله د اعلاميي کاپي وه. په لندن کي دهندي دفتر ځينو مامورينو د دي اعلاميي په ويشلو باندي چي دوا ايسرا لاسليک پکي و اعتراض وکړ. دا اعتراض ممکن ددي په خاطر وچي له داسي يو دښمن پاچا څخه نقلي شوي وچي هغه د دوي له پاچا سره هيڅ اړيکې نه درلودي او فکريي کاوه چي دا کار بوډول غوره مالي ده. د برتانيي په عنعنه کي داسي يوه تحقير آميزه سياسي حاضر جوابي نه وه، په اعلاميه کي داسي ادامه ورکړي شوي وه:

«ای د افغانستان محترمو او زړو روخلکو! کله چې امیر حبیب الله په نامردي سره ووژل شو، پر لویې برتانیې باندي وبر او ماتم راغی، او په ټول هندوستان کی ماتم اعلان شو. کله چې په دي برخه کی ګونګوسه وشوه چې امان الله خان دخپل پلار ځینی قاتلان خوشی کړي دي او د شریعت د حکوم پر اساس یې ځینی نور کسان بې له مقدمې او محاکمې مجرم اعلان کړي دي، نو امان الله وغوښتل چې له برتانیې سره دي دښمنی ته ملن ووهي او د غه ګونګوسې به ادامه ولري. په دي توګه هغه دخپل تاج او تخت د ساتلو په خاطر د افغانستان د خلکو ژوند او شتمنی په خطر کی واچول.

هغه د قران شریف د حکمونو له ماتولو څخه هم ډډه ونه کړه چې پکی ویل شوي دي: «په یقین سره خداي (ج) امر کوي چې له ورور سره دي احسان او عدالت وشی، خپلوانو ته دي بخشش ورکړ شی. هغه تاسو له بدواعمالو څخه منع کوي، او تاسو ته مشوره درکوي چې متوجه و اوسی، کله چې خداي (ج)، سره تعهد کوي، نو هغه تر سره کړي، او چې قسم یاد وي، هغه مات نه کړي، ځکه چې تاسو د قسم په یاد ولو سره خداي (ج) د ځان ضامن ګرځوي. خداي (ج) په یقین سره په هغه څه باندي خبروي چې تاسو یې کوي. » (قران شریف د النحل سوره) آیا دافغانستان خلک به دغه یې تجربې ځوان ته چې دخپل شهید پلار، دخپل هیواد ګټو او قرانی هدایاتو ته خاین و، اجازه ورکړي چې پر ښکی افغانستان او هغه پر زړ وروخلکو باني لویه بدبختی راولی؟ نه خداي دي ونه کړي! آیا اوس باید ستاسو سوداګر بر باد شی؟ آیا تاسو او ستاسو کورنی باید له هند څخه بې له له جامو او د ژوند نورو خرافاتو څخه وشړل شی. آیا ستاسو او بتان باید د ژمی له څرځایونو څخه منع شی او له منځه لاړ شی؟ دا دلویې برتانیې یوه هیله ده چې د یو پوه امیر تر لارښوونی لاندي یوواري بیا غوړیدلی او هوسا افغانستان ووینی، او له برتانیې سره ستاسو د هغه ډول دوستی غوښتونکی ده لکه چې مرحوم عبد الرحمن او حبیب الله سره یې درلوده. »

اعلامیی ته په دي توګه خاتمه ورکړله شوه «دهند حکومت هیله کوي چې پورتنی مطالب دي په پښتو او دري ژبه دالوتکی او یا کومی بلی ذریعی په واسطه په افغانستان کی خپره شی. اعلامیه دي باید په ښه وجه وویشله شی، او دهغه د صحت او سوچه توب په خاطر لازم دي چې یوښه اعتباري مهر یا ټا په دی ورباندي ولګوله شی. »

په همدي ورځ باندي روس کیپل داسی تلګرام ورکړ «تیره شپه پرمور باندي بو مصیبت تیر شو. دهنډ لی پیج (Handly Paige) الوتکه چې کولی یی شو کابل بمبارد کړي خرابه شوه. »

هغه جنگ چی د برتانویانو له پاره رسماً د می په ۳ تاریخ پیل شو د افغانانو له پاره د می په ۱۵ تاریخ پیل شو، کله چی د امان الله خان له خوا د عید گاه په مسجد کی په لوړ آواز سره داسی اعلان و شو، «ای زما زړ ورو او دیندار و خلکو! ای زما وفادارو زمریو عسکرو! دانگلیسی تګ او مکار حکومت... دوه ځلی زموږ پر هیواد باندي په بی شرمی سره یرغل وکړ او خپلی ناپاکی منګولی یی زموږ د ګران هیواد په ځینو برخو کی، چی زموږ پلرونه او نیکونه پکی ښخ دي، او زموږ دخویند و او میندو دعفت او پاکدامنی مقدسه مینه ده، ښخی کړي، او په دي فکر کی و وچی حتی موږ له خپلو شتمنیو څخه له خپل وقار غرور او نجابت... څخه محروم وگرځوي. په زرها ولعنتونه دي وي پرانګریز وروسته له هغه چی لعنتی طیاري یی په بی رحمی سره پر هغو خلکو باندي، چی دحق لاره یی غوښتله بمباري وکړه نوستاسر پرپاچا باندي دا شی واجب شو چی د انګریز د خاین حکومت په مقابل کی دحق جهاد اعلان کړي. الله اکبر، الله اکبر، الله اکبر.»

په دي باره کی بله ورځ د برتانیی داخلی نماینده په خپل یادداشت کی داسی ولیکل، «پاریدلوډلو د ماشومانو نه نیولی ترلویانو پوري مختلف ډله ییز مارشونه وکړل او څوڅو ځلی له ښارنه ګرد چاپیره وګرځیدلی په تیره بیا د هغی مانی له مخی نه تیري شوي چی دانګلیس نماینده ګی پکی وه. هغوي به د دي مانی په مخکی ودریدل او د نماینده ګی کارکوونکو ته یی، چی له پاس پوړ څخه یی دوي ته کتل، بدي خبري کولی، او د حبیبی د لیسی پارید لوشاګردانو، بر سیره پر دي چی سختی خبري یی کولی، لاري یی هم ورباندي توکولی. دنماینده ګی کار کوونکوته وویل شو چی د دغسی مارشونو په وخت کی دي کرار کښینی او ځانونه دي ښکاره نه کړي. مارش کوونکو به په چغه سره ویل (الله اکبر) او یوه لوحه بی هم له ځان سره وړله چی پکی برتانویانو ته سختی خبري لیکل شوي وي.

امان الله فقط په همدي وخت کی دجنګ غوښتنه کوله. دهغه جنرال د خیبر سیاسی نماینده ګی ته داسی احوال ولیږه، «ماته سپار ښتنه شوي ده چی جنګ (لکه چی په غیر قانونی توګه ستاسوله خوا پیل شوي دي) تر بلی سپار ښتنی پوري وځنډوم. په دي توګه خبر درکول کیږي، چی د افغانی اعلیحضرت او دوایسرا تر وروستی پریکړي پوري جنګ معطل دي.»

په هغه راپور کی چی لندن ته ورکړ شوي و داسی ویل شوي دي، «څرنګه چی دا بی ډبه پیغام په ښکاره د دي له پاره تجویز شوي دي چی وخت مساعد شی، سیاسی نماینده ته هدایت

ورکړ شو چې وواېي د ځواب ورکولو صلاحيت نه لري او که چيرې امير سوله غواړي هغه بايد د عملياتي عمومي قوماندان له لاري له وايسرا سره تماس ونيسي. » دوايسرا شخص عکس العمل داسې و، «افغاني ستونزې په ربښتيا سره دخداي (ج) له لوري د استول شوي ستونزې په توګه راغلې دي. د غوستو نزو عامه ذهنيت له داخلي مسئلو ځينې اړولې دي. » انګريزانو هم دجهاد لوبې اجرا کول زده کول.برتانويانو د امان الله استازي چې په هند کې و، بيرته استولی و، او د مي دمياشتې په ۱۸ نيټه د انګليسي نماينده ګۍ ته خبرورکړ شوچې : «دغازيانو د را رسيدلو او دهغوي د قهر او غضب له امله د انګلستان د نماينده ګۍ امنيت په خطر کې دي. » نو هغه بيرته هندته واستول شو. هغه تېنکار وکړ چې اول له امان الله سره ووينې.

« ما د بهرنيو چارو د وزير په شمول له امان الله سره د ستوري په ماني کې ملاقات وکړ. په دې ماني کې امير له پنځوسو يا شپيتو تنو سره مجلس درلود. دوي ياد ښارياد ولاياتو نماينده ګان وو يا ځوتنه متعصب کسان ووچې دتش په نامه اتحاد اسلام غوښتونکي وو. په دوي کې ډير مشهور سړي عبد الهادي و، چې د کابل د امان افغان د اخبار چلوونکې و. د کابل ځينو هندوانو هم په دې ملاقات کې ګډون درلود. په دې مجلس کې دشاهي کورنۍ هيڅ بوزوړ يا ځوان نه ليدل کيده. د مرحوم امير د درباره له کسانو څخه هم هيڅا حضور نه درلود. دا راته معلومه وه چې د نالايقانو موجوديت د هيجاني اوبې تجربې امير د بربادي زمينه برابره کړې وه. امير تر روغبړ وروسته وويل:

«اې د برتانيې نماينده، زما دهغه دربار خبرې به ستا په ياد وي چې پکې ما ويلي وو، زه به دهغو خلکو سرونه پرې کړم (امبر لاس ستونې ته يووړ او د حلالولو حرکت او عمل يې اجرا کړ چې وښيې څه وايي) که چيرې په شومو مقصد ونود افغانستان حدود و ته داخليږي. »

« ما دلته دهغه خبرې پرې کړې او ورته مې وويل چې زه د رسمي خبرولپاره دلته نه يم راغلی بلکې د خداي په اماني له پاره راغلی يم. کله چې يې داخبره وا وريدله له خجالتې څخه غلی شو.

« د هزاره ګانو نماينده له خپلې چوکۍ څخه را پورته شو او راته يې داسې وويل: (زه حاضر يم د هزاره و ټول وګړي تر وروستۍ نفره پورې دخپل پاچا او دهغه تر تاج او تخت قربان کړم!)

« دې لاسم په خپله چوکۍ کې ناست نه وچې يو هند و پورته شو او مشابه خبرې راته وکړې او زياته يې کړه چې که مسلمان واي نو داسلام د اهدافو په خاطر به يې ځان قربان کړي و.

« ما په ځواب کې ورته وویل چې واقعي اسلام موږ ته داسې درس نه راکوي چې کور کورانه د چاپسي لاړ شو بلکې دا درس موږ ته راکوي چې د ښه او بد تمیز وکړو او فقط منطق او واقعیتونو ته غوږ ونیسو. »

« کله چې زما خبرې خلاصې شوې امیر د خداي په اماني په مفهوم خپل لاس او ږد کړ او ویې ویل (زه ستاسو حکومت نه تسلیموم.) او زیاته یې کړه (هغسې چې سردار عبد الرحمن خان ستاسو د حکومت له خوا زما د استازي په توګه نه وپیژندل شوي، او په بې احترامي سره بوازې بیرته ولیږل شو نو تاسو به هم همغسې له جنرال عبد الوکیل سره چې څوساعته وروسته د موټر په ذریعه جلال آباد ته ځې، بوازې لاړشی. څرنګه چې ستاسو د حکومت له خوا زما استادي ته دهیڅ شي دوړ لو اجازه نه وه شوي نو تاسو هم هیڅوک او هیڅ شي له جان سره نه شي وړلی. زه د یو متقابل عمل په توګه دا کار کوم. »

نادر له څلور لوا عسکرو، دوه هاتیانو چې توپونه یې کشول، او له دولسو زرو قبایلي خلکو سره د خوست د متون په لور روان و. د شور بازار د حضرتانو د کورنۍ څخه هم دوه تنه ورسره وو. یو یې شاآغا نومیده چې د تاجګذارۍ په مراسمو کې یې دامان الله پر سر باندي پټکی ایښی و او بل یې شیر آغا نومیده چې د شا آغا ورور و.

په جلال آباد باندې بمبارې کیدله مګر د مې په ۱۹ نیټه د نادر پر مختګ یو مهم خبرو دا ځکه چې نادر هغه قبایلي خلک را تول چې زیات محبوبیت یې پکې درلود حتی سرسختو غلزیو او افغانانو د برتانویانو د سیمی قبایلیانو ته پیشنها ونه وړاندي کول.

یو افریدي هیأت له پولي څخه را واوښت چې د جلال اباد په جرګه کې ګډون وکړي، لیکن هغوي په داسې ویلو سره، چې موږ د افغانانو د ضعیفو نقطود معلومولو په خاطر راغلي یو چې که تصمیم ونیول شي کمپونه یې تالا کړو علت د برتانویانو ګتې په صداقت او ایمانداري سره په نظر کې ونیولې.

همدا رنګه د مې ۱۹ نیټه له هغې ورځې سره برابره وه چې مصطفی کمال د ترکیې له یو بندر څخه د اناتولیې خواته، چې دده دهیواد په منځ کې واقع دي، و خوځید چې هلته د تولو خلکو له پاره نوي ژوند خلق کړي. له دي وروسته که ورڅخه دهغه دزیږیدنې د نیټې پوښتنه کیدله دده به په ځواب کې ورته ویل، د «مې ۱۹/ ۱۹۱۹».

همدا راز په دي ورځ باندي دو و تنو نماینده ګانو په جلال آباد کې سره ولیدل. یو یې سیف

الله د برتانيې نماينده و چې له قرآن څخه بې بيا طرزي ته نقل قول کړي و کله چې طرزي د سولې د شرطونو پيشنهاد کړي و چې د افغان آزادي او دهند د رولات د ظالمانه قانون د له منځه وړلو موضوع هم پکې شامله وه. سيف الله بير ته هند ته روان و. بل نماينده، چې له متقابل لوري څخه راته، عبد الرحمن افغاني ته منلی شوي نماينده و. امان الله ورته ويلي وو، چې دوي دې سره خبرې وکړي څودي نتيجې ته سره ورسيږي چې که د دواړو هيواد و نو تر منځ د «راتلونکې وينې توييد نې څخه» ډه ډه وشي. د دوي له خبرو څخه هيڅ کومه توقع ونه شوه. سره له دې چې سيف الله ځان د برتانيې د امپراتوري وصيې باله خود برتانيې په نزد هغه يو استخدام شوي نفرو، او هيڅ کله د هغسې يو فوق العاده جاسوس په څيره وپيژندل شوي چې دهغوي خوښ شوي واي. دهغه را پوروننه هم برتانويانو ته بې ارزښته وو.

بله ورځ سبا روختې سيف الله د عبد الرحمن له خوا را وبښ کړي شو چې انگليسې افسر ته، چې په ډکه کې و، په انگليسې خط وليکې. کله چې دوي د خط په ليکولو بوخت وو، پر جلال آباد باندې بمونه غورځول کيدل. يوبم د سيف الله د کړکې لاندې وچاوديد. خطونه چې په بيړه ليکل شوي وو، دري تنو عسکري منصبدارانو ته ورکړل شوي او ورته وويل شو، چې ژر دې ډکې په لور وخوځيږي او سمدستي دې خط ورته ورکړي.

جلال آباد چې په دې وخت کې دهوا يې عصر لومړنی تجربې ترلاسه کولې، په ويره کې ژوند کاوه. ډير خلک په وحشيانه توگه مړه شول. ځينې چې ژوندي پاتې وو، په مشکل سره بې ددې انتظار ايسته چې خپل سپک او دوړ لوړ شيان سره را ټول کړي، او ژر دې د نملې خواته لاړشې. په نمله کې، چې له جلال آباد څخه دومره زياته ليري نده، دمغلو د امپراتور دهندوستان واکمن او د تاج محل د جوړونکي شاجهان له خوا يو ښکلی باغ جوړ شوي دې چې په هغه شاړه سيمه کې د مسافرينو او لاروپانو له پاره د دمې کولو ډير په زړه پوري ځاي دي. له نور ځايونو څخه باغ له هوا يې خطرونو څخه خوندي معلوميده. دجلال آباد او نملې لاره له هغو کډوالو کورنيو عسکرو، چې د ډکې له خوا شينې کوونکو کيسو سره بيرته راغلي وو، او له هغه قبيلو څخه ډکه وه، چې په زيات شوي سره يې غزا، او جهاد کاوه، او اوس خپه معلوميدل ځکه چې دامير له خوا ورته ويل کيده چې له جهاد څخه لاس واخلې، يو پناه وړونکې چې پر يو سټرې آس باندې يوازې سپورو يو جنرال وچ جلال آباد ته د رانتوتو سره سم دده په وياړ يوه ورځ د توپکو ډزې شوي وې.

امان الله د څو ساعتو له پاره په تیلفون کې له خپلو جنرالانو او استازو سره چې د نورو په شان ننګلي ته تللي وو خبرې وکړې.

جنرال محمود سامي هم، چې هند ته روان و، له کابل څخه ننګلي ته ورسید، او شپږ تنه اتریشي افسران هم ورسره وو چې له خپلو متحدینو سره روسي ترکستان ته داخل شوي وو، او د بلشویکانو له خوا خوش کړي شوي وو. دوې غوښتل د افغانستان له لارې خپل هیواد ته لاړ شي. محمود سامي د امان الله خوښیده او د ښوونځي د یو سر ښوونکي په توګه یې د ډېر زیات درناوي کاوه. د ترکیې دغه پوه افسر، چې په یو وخت کې یې د برلین په جهاني ټولنه کې هم وظیفه لرله، ښکلي شخ بریتونه درلودل او د شاهي کورنۍ یو په زړه پورې نفرو. د ۱۹۱۹ کال په سختو ورځو کې د حبیب الله پرضد د دسیسې ترکشفولو وروسته کله چې غلام بچه ګانو د شکنجو په زور څه نومونه، چې یې په یاد و، افشا کول، هغه نوم چې علیا حضرت ته وریاندې شکمنه شوه د محمود سامي نوم و او افشا کوونکي ته یې وویل چې بس کړې.

اوس محمود سامي او دهغه ملګرې مجبور وو په جلال اباد کې توقف وکړي. لاره له خلکو، او ښانو، اسونو او خرو څخه داسې بنده شوې وه چې موټر په سختۍ سره کولی شو تیر شي. محمود سامي له سیف الله سره لاس ورکړ او دهغه سلوک په مقابل کې، چې په کابل کې ورسره شوي و او هم یې له «افغاني پولې څخه د اوښتو» په برخه کې ورڅخه معذرت وغوښت. هغه وویل چې امان الله فکر کوي د دغه جنګ په خاطر جنرال صالح ډیر ملامت دي چې د باغ د سیمې هغه برخه یې نیولی وه.

محمود سامي وویل «زه نه پوهیدم چې خبره داسې وه، که نه نوما به مداخله کړې وای. امیر د ځینو کم عقلانو، لکه محمود طرزي، عبدالقدوس او نورولیونو متعصبینو له خوا میدان ته بایللي دي.

امان الله له محمود سامي او عبد الرحمن سره تقریباً یونیم ساعت په تیلفون کې خبرې وکړې. په ډکه کې افغاني مامورینو د سولې دوه پیشنهادونه عمومي آمر ته ورکړل او عمومي آمر فکر وکړ چې د غه برتانیوي نماینده خپل یادداشت ترا جبار لاندې لیکلی دي ځکه داسې راپوروته ورکړل شوي ووچې آمر په جلال آباد کې دي او د دوې په نظر دغه کار مهم و. سیف الله د امان الله په باب په خپل یادداشت کې چې په بیړه اوویره کې لیکلی وڅه نه ولیکلی که څه هم دي پوهیده چې آمر په کابل کې و. عمومي امر په دغو عسکرو باندې، چې دا پیغام یې

ورته رسولي و، د جاسوسانو گومان وکړ نویوازي یوه ته یې د بیرته تلو اجازه ورکړه او په شفاهي توگه یې دا پیغام ورته ورکړ چې د برتانیې د نمایندگی تر خلاصید و پوري به هیڅ ډول اقدام هم ونه شي؛ او که چیري آمر د سولي غوښتونکي وي نودي باید د پروتوکول په مراعاتولو سره وایسرا ته د برتانوي قوا و دامریت له لوري ولیکي.

د هند حکومت لندن ته داسې تلگرام وکړ، «دامان الله له رژیم سره دخلکو نارضایتی چې د اوسني لانجې منشا هم گرځیدلې ده، موږ ته دا جرأت را کوي چې ووایو امان الله له ماتې سره مخامخ دي. په افغانستان کې به (کله چې موږ جلال آباد اشغال کړ) زموږ د ناکامي چانس کم وي. افغانان امان الله نه مني او دنوي امیر دمنځ ته راتلو له پاره چې موږ به ورسره د مفاهمي کولو هیڅ مشکل ونه لرو، لاره خلاصه پریږدي.»

د برتانویانو پلان داو چې د جلال اباد په لور پرمخ ولاړشي، او په دې فکر کې وو چې یا کابل ته هم باید ځانونه ورسوي که نه. دا هغوي ته داسې یو حرکت معلومیده چې ممکن هغه شورشیان د دوي په قدرت باندي قانع کړای شي چې له هند څخه یې د حالاتو څارنه کوله. که چیري هغوي سمدستي حرکت کړي واي، هغوي به لږ تر لږه دجلال آباد په نیولو بریالي شوي واي. ښارله دري سوو زخمي عسکرو پرته، چې په یو موقتي روغتون کې پراته وو تقریباً تش شوي و. د بازار دریمه برخه ورانه شوي وه، دولتي خزانه او جعبه خانه د شاوخوا د قبایلیانو له خوا لوټ شوي و. که څه هم الوتکې د برتانویانو داسې قوي وې چې دافغانستان ډیر غښتلي سري هم د هغوي په مقابل کې مقاومت نه شو کولی خو بیاهم هغوي چې غرونوته ختلي وو او یاد لاري په سر پراته وو پر جنرالانو او د قدرت په نورو کسانو باندي یې د ناکامه کیدو او تلفاتو په خاطر لعنت وایه. سیف الله د انگلیسي نماینده کابل ته راغلی وچې نور ورته ضرورت نه و.

په عین حال، په خوست کې، نادر، چې د یو افغاني عسکري د بري تولي هیلي یې له ځان سره وړلي، خبري به یې ځنډولي او اعلان به یې کاوه چې څو ورځې به له جرگوسره خبرې اترې وکړي او وروسته به ډیر پرمختگ تاریخ وټاکي. په کومه سیمه کې چې امان الله یرغل کاوه نادر به هلته په دقت سره گرځیده.

د می په ۲٤ نیټه کابل بمبارد شو.

لومړني الوتکه چې د کابل د غرونو د پاسه یې پرواز وکړ، دهند بیج په نامه یوه زړه

الوتکه وه چې دلکې له قوي باد پرته يې پروازنه شو کولی. دا الوتکه د سهار په شپږو بجو باندي رابنکاره شوه او څو بمونه يې وغورځول. زياتره کابليان په دې وخت کې له خوبه راپاڅيدل. هغوي د باندې منډې کړي. ځينو پر دغه خطر ناک شي باندې خپلو ټوپکو او ځينو پر خپلو تمانچو او څرخې تمانچو ډزي وکړي. څنګه چې الوتکه له ستر ګوښاه شوه په ټول ښار کې يو سخت اواز واوريدل شو. دوارخطا خلکو آواز. داسې آواز په کابل کې د مخه نه و اوريدل شوي.

که څه هم د شاهي کورنۍ ځينې اسان زخمي شول خو هيڅوک ونه وژل شو. د تير ساعت له پيښې سره سره امان موزيک يوه ډله واستوله چې د غم خپلو خلکو په خاطر موزيک وغږوي او يو کنډک ته يې امر وکړ چې د رسم ګذشت ميدان ته دې لاړشي. دا پوره تسل ورکوونکې شی نه و؛ څنګه چې ورځ تيره شوه، دغازيانو ډلې له سرحد څخه راغلي. دوي چې د سرحد ده ګرمۍ، او له لوړي تندي نه ناروغان شوي وو په خواشينۍ سره يې وويل، «له بهرنيانو سره غزا غير ممکنه ده ځکه چې هغوي پاس په هوا په الوتکه دي. »

کوم شی چې امان الله يې زيات په غوصه کاوه دا وچې هغه يوه ورځ مخکې ټول سرحد او هيوادو الوته فرمان صادر کوي وچې جنګ بس کړي. هغه پردې پوهيده چې که برتانويان جنګ بس هم کوي د هغوي پيغام به ممکن کوم ځاي ونه نيسي، او په دې توګه هغه بې له دې چې د بالمثلي معاملي انتظار وباسي، خپل جنګ ته يې خاتمه ورکړه. هغه لږتر لږه هڅه وکړله. له جنګ نه سولې منځ ته راوړل ډير مشکل کارو.

امان الله خپل نماينده ته داسي وکښل، «عجيبه ده چې دانګليسي حکومت له يوي خوا د افغانستان له حکومت څخه غواړي چې د ښمنۍ ته دې خاتمه ورکړله شي او له بلې خوا يې الوتکې راغلی کابل يې بمبارد کړ او بېرته لاړي. داسې عمل بايد اجرا شوي نه واي... که چيري داسې عمل ته دوام ورکول کيږي نو افغانان به د جنګ له لاري هيڅ کله تابع نه شي... که د انګليسي حکومت په ريښتيا سوله نه غواړي نو تاسو بايد په دې مورد کې له هغوي څخه رسمي مکتوب ترلاسه کړي او ماته يې را واستوي. »

په کابل کې چې ټولې ناري سوري د مقدس جنګ په خاطر کيدي، هغوي اوس داسي چغې وهلي چې دامير مقدس جنګ موږ له تباهۍ سره مخامخ کړو. امان الله وارخطا شونو يې رسمي مامورين د کابل مخور خلک او با نفوذه ملايان يې راوغوښتل او ټول هغه علتونه يې ورته بيان کړل چې د جنګ سبب ګرځيدلي وو او ورته يې وويل چې ما څو ځلي د سولي پيشنهاد ونه د

انګلیس حکومت ته وړاني کړي دي مګر انګلیس یې نه مني او خبرونه هم نه دي حاضر شوي.
امان الله وویل، «که د افغانستان خلک، د جنګ مسئوول او دهیواد د خرابی عامل ماګني، نوزه به په خپله خوښه له دي کار څخه لاس واخلم او له خپلې کورنی سره به بخارا ته لاړ شم.»

هغه خپل نوکرته امر وکړ چې دده وړوکې زوي چې دده له ښځې (ثریا) څخه لومړنی زوي و، دننه راوړي. امان الله د خپل زوي په سر قسم یاد کړ اووېې ویل چې زما خبري ربښتیا دي. دیو افغان له پاره تردي سخت قسم نشته.

مجلس ومنله چې جنګ د انګلیسی له خوا تحمیل شوي دي. ملایان چې څو ورځې دمخه موظف شوي وو چې له نماینده ګانو سره دي یو ځای شی او هڅه دي وکړي چې قبایل له جهاد څخه وساتی، بیایې قبایلوته فتوا صادره کړه، چې خپل جهاد ته ادامه ورکړي.

بله ورځ، دمی ۲۵ نیته، برتانویانو خپلې وراني سمبال کړي.

نادر لاهم دسرحد په لورد پر مختګ په حال کې و، انګلیسانو نه د نادر له عسکرو څخه ډاریدل چې ډیر خطر ناک روزل شوي وو او نه دهغوي له توپکو څخه چې زیاتره یې زاړه او له موده لویدلی معلومیدل مګر قبایلي خلکو څخه ډیرډاریدل. ډیر قبایلیان له هغه سره یو ځای کیدل. په دوي کې هغه قبیلې هم شاملې وې چې دانګلیسانو جنګ کلاګانی سره نژدې پرتې وې. د برتانویانو پوځ د داسې کسانو له خوا کلا بند شوچې حکومت کول وربانديډیر ګران و او څوکاله د مخه د دوي یوه ډله د برقی سیمونو په منځ کې، چې برق هم پکې جریان درلود، ایسار کړي شوي وه. وزیري قبایل چې نادر دهغوي دغرنی سیمې په لور روان و، په خاص ډول د برتانیې حکومت ته لږ احترام قایل وو او کله چې لارد کرزن په دوي کې میلیشیایی سیستم د دوي له خپلو خلکو څخه پیل کړ ژرپوه شوي و، چې په وزیر وکی له وزیر و څخه د داسې یو سیستم پیل داسې ما تالري لکه چې سوي د لیوانو له ډلې څخه یو لیوه وروزي چې درمې ثارنه وکړي.

ملایانو له د غو قبایلیانو سره د جهاد په باب خبري کولې، په تیره بیا یو ماهر وینا کوونکی چې په ببره ملابانديمشهور و او په یوه سمڅه کې اوسیده. په دي سمڅه کې له تیږو څخه داسې طاقچې جوړي کړي وي چې ملایې د ګولیو له اصابت څخه ساتلې و. کله چې له دغو ملایانو څخه یوتن د تبلیغ له پاره کوم کلي ته روان شو، نو کله به یې سل تنه او کله به یې

په زرها وتنه ملګري شول. زيات کسانو به يې ځانونه دمخه په تبرونو، تورو، او ټوپکو سره جهاد ته آماده کړي وو. ډول چيانو په ډول وهلو ته دومره دوام ورکاوه چې له زياتې جذبې به بېخوده کېدل، او پر ځمکه لوېدل. اتڼ چيانوو چې د اتڼ جامې به يې اغوستې وي، سترګې به يې هم توري کړي وي، داسې په جوش او خروش سره به تاوېدل چې لمنې يې ښې هواريدې او له ځمکې سره به يې يوه موازي سطحه جوړوله. دوي دجهاد سره او شنه جګ جګ بيرغونه هم له ځانه سره وړل. کله به چې کوم ملا د انګليس د حکومت خبري وکړي، په ژړا به شو. دده له خبرو ځخه څرګنديدل چې هغه قبايلي خلک چې د دغو کافرو له حکومت سره همکاري کوي، ټول درواغجن او دهغوي تالې ځتې دي. زما پيروان دي بايد د دوي په جنازه کې ګډون ونه کړي. ټول مسلمانان چې دانګليسي له پاره خدمت کوي، کافران دي. هغوي بايد خپلې اړيکې له انګليسي سره وشلوي، که چيري داسې وکړي نوبرتانويان به لکې ښکته واچوي او له هيواد ځخه به ورځي. ټولنو به تل د انګليس په مقابل کې دجنګ ناري وهلي. ملايانو به کله کله ترديې هم لازيات له تشدد ځخه کاراخست او خپلو اوريد ونکوته به يې ويل چې که دحکومت مامورين مړه کيږي نوبايد اجازه ورنه کړله شي چې ښخ يې کړي.

نادر دغي فضاته را روان و. د کابل دوه تنه مشهور ملايان، د شور بازار ملايان هم ورسره وو. هغه په داسې لاره راغی چې له هغې لاري نه د تګ راتګ توقع نه کيده. برتانويانو پيشبيني کړي وه چې له دې لاري ځخه به عسکر چې غټ غټ توپونه يې پيلان کشوي نه شي راتلاي.

دبرتانيې سياسي نماينده ته داحتياط له مخې دهغې سيمې په باره کې او امر صادر شوي وو چې نادر هلته د رسيدو په حال کې و. داسيمه توچې نوميده چې ممکن جنګي کلاوي دهغه په امر سره تخليه کيدي.د مې د ۲۵ تاريخ په شپه سياسي نماينده د تخليې امر ورکړ. د برتوچي (Upper Touchi) له ټول پوستو ځخه ټولې قشلې وويستلې شوي. نادر خپلې قواوي د سرحد خواته وليږلې؟ هغوي په سپين وام کې يوه کلاوليدله چې تخليه شوي وه او له زيات شمير وزير وسره چې په خوشحالۍ سره له افغانانو سره يو ځاي شوي وو، پکې ننوتل، دتلو په حال کې برتانويانو تعقيب کړل او ځوتنه بنديان يې ورځخه ونيول. د برتانويانو په نور و کلاوکې سامانونو ته د مخه تر دې چې وويستل شي، اور واچول شو. يوازې يوې کلاته اور وانه چول شو او داهغه کلاوه چې قوماندان يې کلا د تږدې کلي يو مخور سوې ته سپارلې وه چې ورته وېی

ساتي؟ د دي مخور سري گاونډيانو پر کلا باندي ور ودانګل او ټول شيان يې ورنه يووړل. په میرانشا کی د وزیرستان ملیشیا داسی ښېي وښودلی چی دوي هم د ملايانو غړونه اوريدل، نو دوي په خپله کلاکی بنديان کړي شول. کله چی له دوي څخه وسله واخستله شوه نو شورش يې وکړ او د ديوال په سوري کولو سره وتښتيدل.

په ټل کی د نادر نفر کلا ته راغلل او په حمله يې پيل وکړ.

روس کيپل داسی افسوس وکړ «يوه شپه سياسی وضعه له آرام حالت څخه په توفانی حالت بدل شوه.» هغه وروسته وويل «د توچی له پوستو څخه د عسکرو ويستل يو په خپل سر کار او يوه خطرناکه تيروتنه وه... دا بيخی زړه ماتوونکی ده.» نور نو د جلال آباد په لورد پر مختګ فکر نه وياته. روس کيپل توقع کوله چی زيات قبايليان به دانګليس پر ضد پورته شی خو پورته نه شول.

دهند عمومی قوماندان جنرال سير. سی. سی. منرو (Sir .C. C. Munro) داسی ليکلو ته مجبور شو، «کله چيري نادر سکوبوليف (هغه روسی جنرال چی د تزار له پاره يې د مرکزي آسيا ډيري برخی نيولي) واي هغه به يې له کومی پوښتنی ټل (thal) په قواو پوښلی واي او يوه برخه به يې د افريديو او اورکزيو دشورش د په نظر کی نيولو په منظور د پر هغو خوا و پرمخ بيولی واي. موضوع ډيره زياته خطرناکه وه، او که هغه حق د خو قبايلی کسانو په مشري اقدام کړي واي خپل مقصد ته درسيد و په خاطر به يې ښه چانس درلوداي.»

ليکن نادر په ټل کی پاته شوچی تانه يا جنګی کلا محاصره کړي او هغو مره چی برتانويان و بريدل قبايل د زړه له اخلاصه پورته شوي نه وو. يو دليل دا وچی د کابل د بمباري د مخه د امان الله قاصدانو داسی خبري له ځانه سره وړلی چی جنګ بايد ودرول شی.

وروسته تردي انګليسی ته بله ويره پيدا شوه، د افغانانو زاړه او له موده لويدلی توپکونه دوباره په ټل کی جوړيدل چی دا دهغوي له توپکونونه بهتره وو. او سره ددي چی دهغوي د وو الوتکو افغانان بمبارد کړي وو، هغوي په دي باندي بريالی نه شول چی دافغانانوله خوا دمی په ۲۷ تاريخ د تانی د اوبو د بندولو مخ نيوي وکړي. افغانان بر لاسی وو.

خلکو به د سرحد په اوږ دو کی ګونګی سی کولی چی اروپايی ځواکونه ټول غواړي اسلام نابود کړي او دامان الله د بی تجربه ګی له لاسه انګليسانوله وروستيو پيښو څخه ګټه تر لاسه کړي ده غواړي افغانستان او سرحدي سيمه د ځان کړي. هغوي د امان الله دسولی خبروته غوږ

ونه کاږه کړل. امان الله چې اول هغوي ته په خبرو کې يو اتل او بيا ورانکار وپيژندل شو، او س دخپلو اهدافو قرباني شو. هغوي د امان الله د قاصدانو خبرې اوريدلې وې. هغوي په دې پوهيدل چې که امان الله کولی شواي، سوله به يې ورته تامين کړې واي.

روس کيپل تصميم ونيو چې له دغه دريغ سره په مخالفت کې بايد يو څه وکړي. «زه سپارښت کوم چې غوث الدين (يو احمد زي غلزي جلال پور ته داخل شوي چې دوه تبعيد شوي سرداران ولمسوي چې پر افغانستان باندې يوه قصدي حمله وکړي) په سرحد کې د پروپاګندې مقصدونو په خاطر ماته دې راواستول شي... که چيرې هغه له موږ سره غلطي وکړي او له افغانانو سره يوځاي شي، دا به دومره مهمه نه وي.»

همدا ډول خبرې له لندن غونډې ليرې ځاي څخه هم اوريدل کيدې. په پارلمان کې دغه پوښتنه وشوه: د مخاصمت د انقطاع له پاره د افغان هيله ولې په لندن کې په رسمي توګه نه ده خپره شوې.

روس کيپل داسې تلګرام کاوه «زموږ الوتکې کارنامې کړې دي د افغانانو او قبايلي خلکو په زړونو کې يې ويره اچولې ده. که الوتکې نه واي نو ددې پر ځاي چې پر مختګ مو کړي واي له مشل سره مخامخ کيدو.» په حقيقت کې برتانويانو بيخي پرمختګ نه وکړي.

دا هغه ورځ وه چې امان الله خپلو دروتنو جنرالانو ته فرمان صادر کړ او ورته يې وويل «ترهغه پورې چې دبحث او مفاهې دروازه خلاصيږي خصومت وځنډوي.»

کله چې نادر په ټل کې دغه پيغام ترلاسه کړ، دا خبر يې هغه برتانيوي جنرال ته تير کړ چې له ده سره يې مقابله کوله، هغه هماغه ډګر جنرال رجينال ډاير و، چې په امرتسر کې يې پريوې ټولنې باندې د اور امر کړی و او اوس په هند او انګلستان کې دډيرو برتانويانو په منځ کې قهرمان و، او که څه هم له پيښې څخه شپږ مياشتې وروسته يو کميسيون دی په هند کې له دايمي خدمت څخه منع کړی و مګر، په خپل حال باقي پاته و.

جنرال ډاير چغه وکړه چې «زما ټوپکونه به زما له پاره جواب ورکړي.» نادر د جنګ له ډګر څخه ولاړ، برتانويانو وويل هغه خپل ځان وويست.(۸)»

مګر د ډاير امرين له هغه مکتوب څخه راضي ووچ دمې په ۳۱ تاريخ يې له امان الله څخه ترلاسه کړی و، که څه هم هغه د برتانويانو هغه نماينده، بيرته ونه ليږله چې استول يې هغه ضروري ګڼل، اوس هغوي هم تيار وو چې سوله وکړي. له جبهې څخه داسې خبره وشوه،

«د مکتوب لهجه بیخی نومه ده.» برتانویانو امر وکړ چې تربګنۍ ته دي خاتمه ورکړله شي، او د جون ۳ تاریخ یې د افغان او انګلیسي د دریم جنګ پای تثبیت کړ چې پوره یوه میاشت یې دوام وکړ.

دواړو خوا و به د دي جنګ د بري ادعا کوله. برتانویانو په دي باندې په غصه وو چې افغانانو د دغه میاشتنی جګړي په ویار د بري ځلی جوړ کړي وچې په هغه کی په زنځیرونو کی یو تړلی زمري هم شامل و. برتانویانو داسی فکر کاوه چې دا برتانیوي زمري و که څه هم افغانانو به ویل چې افغانی سرتیري تل د زمري په بڼه کی مجسم شوي دي. کله به چې کوم یوه مضر سړي دغه زمري ته تاوان ورساوه، نو د روسیې نماینده ګی به داسی آوازه خپره کړه چې دبرتانیې نماینده ګی دا کار کړي دي. برتانویانو چې ددغه انګازي تصور به یې نه کاوه، نو بیا به په غصه شو.

دهغوي له پاره دا لاهغی وخت نه وچې دخپل تازه سخت جنګ څخه مهم درس زده کړي واي: او هغه دا چې هیڅوک دي باید فکر ونه کړي چې جنګ څوک ګټي، کوم شی چې مهم دي هغه د سولی ګټل دي.

# شپږم فصل

## د ۱۹۱۹ کال د مى له ۲۸ څخه د ۱۹۱۹ کال د اګست تر ۲۰ نيټې پورې

د برتانيا امپراتوري چې دوايټ هال له ګوتيک (۱) برجونو څخه اداره کېدله، له تجرد څخه ووتله او په يوه ډله کسانو بدله شوه. ښايي هيڅ به کله چې د بګ بن غږيې په ډاډه سره اوريده او دا به يې په ياد راوستل چې وخت هماغه وخت دې چې د ګرينويچ رصد خانه يې ټاکي، د دې ګومان کړې نه وي.

خود هغو مانيو په دننه کې انسانان کټ مټ هغسې انسانان وو لکه د افغانستان په ښيرمه وچوغرونو کې چې دي. د هند د دفتر کسانو د هند د حکومت له خوا تلګرامونه او مکتوبونه ترلاسه کړل. دوې واړه کاغذ ونه وليکل او د يوبل پر کارونو يې کره کتنه وکړه، په حاشيو کې يې تبصرې وليکلې او په ځينو وختونو کې يې خپله عدم موافقه څرګنده کړه له هغوې نه پورته د هند له پاره د بهرنيو چارو وزير او هغه په ۱۹۱۹ کال کې د تاريخي اشتباه له مخې احساساتي ادوين ـ ۱۰ س. مونټيګ و او د ده نه پورته د بهرنيو چارو دفترو چې پکې په ۱۹۱۹ کال د (کډلټون) مارکويس کرزن د بهرنيو چارو د وزير کفيل و، چې يو ځل يې د امان الله نيکه ته ويلي وو چې سرګرونه دې بس کړې.

---

۱- د معمارې هغه سبک دې چې د دولسمې او شپاړسمې پېړې په منځ کې يې په لويديزه اروپا کې رواج درلود. (ژباړونکی).

که څه هم وایټ هال د توماس دسیند په غاړه خپل پرتم په عادي حال ساتلی و او په عین توگه د برتانیي امپراتوري د دنیا په نظر د مجبوری څخه خپل وقار خوندي ساتلی وخو د دغه مانۍ (وایټ هال) په دننه کې زیاتره لانجې او ټکرونه موجود وو. دو عناصرو دهغو مسئلو په باب مناقشه کوله چې په هند او دهند په ارتباط په افغانستان پورې اړه درلوده دغه عناصر یا دغه قدرتونه عبارت و دبرتانوي هندي حکومت او دانگلستان سلطنتي حکومت. په دغو دووکتېه گوریو کې دهغې طبقې اشخاص شامل وو چې موقف یې تل خوندي و او دغو اشخاصو په خپلو خبروکې د خپل پخوانې او معمولي غرور او د بدبۍ له مخې خبرې کولې، دوي خبرې داکسفورډ او کیمبرج د ادبیاتو په نثر ولاړې وې.

دغه د برتانیوي هند او د انگلستان د سلطنتي حکومت د اشخاصو تر منځ یوه ظاهري بیلوونکې نښه موجوده وه، ددوهمې ډلې په کال څلور سره سترلنگ پونډه معاش و. د برتانیې د بهرنیوچارو دفتر دغه اندازه پیسې دلومړي کال بې معاشه خدمتونو په مقابل کې هغه چاته ورکولې چې نیکونو یې دغه په اصطلاح ناگېلی معاش تضمینولی شو. ډیر زیات توپیر په دې کې وچې هند د ملکي چارو اداري چې د امپراتوري له سترو افتخاراتو څخه گڼل کیده، دیو شمیر داسې ځانگړ اجتماعي موقفونو درلود ونکو اشخاصو څخه متشکله وه چې هم دهغوي موقف په مطلقه توگه خوندي و او هم په ژوند کې د کمترینو احتمالي حادثو سره مخامخ کیدل. د پوهنتون د څلورم کال د محصل له پاره چې دخپلې آیندې په باره کې به لا په پوره اندازه ډاډه نه وو. سلاکارانو به ورته دهند د ملکي چارو اداره پیشنهاد وله ځکه په دغه اداره کې دهغه نه پرته چې قضا قدر او یا به دبدچانسي جگړې مداخله وکړه، نور نو ژوند ارام و او د سړي موقف به صرف ددې په خاطر لوړ وچې د غنم رنگو پوستکو لرونکو ترمنځ به سپین پوستې و، او په پاي کې به انگلستان ته بیرته په دبدبې سره له سوغاتونو سره راته. انگلیسانو په هند کې په صداقت او جدیت سره کارکاوه خو لیکن دوي ته دهغو امتیازاتو ډیره کمه اندازه میسریدله چې ددوي د هیواد یو تن به وربانديقانع کېداي شو.

دهند حکومت هڅه کوله د افغانستان په باب له احساساتي کړو وړ و څخه کار واخلي او دانگلستان حکومت هڅه کوله دخبروله لارې عمل وکړي. د دوي د اعمل د جغرافیایي محیط

زيږنده وه نه د شخصيت. د جغرافيايي محيط طريقه د خبرو طريقه وه او د دې لاري تعقيبول اسان کارو.

لارډ کرزن چې يو هيجاني او احساساتي سړي و د مې د مياشتې د ۲۸ نيټې په مکتوب چې به هغه امان الله د هند حکومت سولې ته راضي کړي و داسې تبصره کړي وه:

« د امير مکتوب موږ بې باک اوبې حيا معرفي کړي يو اوستاد ځواب وروستې برخه داسې ښيي چې د سولې له پاره ډير زيات علاقه مند ياست. »

وايسرا چلمسفورد کرزن ته تلګرام وکړ « آيا تاسو په رښتيا سره غواړي د افغانانو جګړه دوام وکړي او دوي ورڅخه د کومې نتيجې هيله لري؟ »

کرزن د غرونو له ډيري ليري مسافې څخه چې په دې غروو او پيچوموکې دورځې له مخې تودوخې تر دې حده زياته وي چې سنګرونو ته لاس نژدې کول به د سړي لاسونه سوزول داسې ځواب ورکړ: « زما انتقاد ونه د هغې سولې پرېنا باندې ولاړ وو چې موږ ټول د هغه په هيله وو تاسو... هغه ډول خبري وکړي چې زموږ په فکر حقيقت يې په ناکافي اندازه په برکې درلود اوستا کړه وړه پکې د يوفاتح کړه وړه و. »

بيا هم د پېښور يو جنرال چې سرار ترېيرټ نوميده امان الله ته دو ايسراد شرايطو د لوستلو په وخت کې داسې تبصره وکړه « پيل او ماشې ». دا د هغوي د بدسلو کې او زشتې يوه تعجب آور د اصطلاح وه.

د جګړې د پېښور د بيانولو وروسته او پر افغانانو باندې د ځلور و خواوو نه د هغه د پيل کيدو د ملامتيا د اچولو او د هغو مکتوبو له اقتباس کولو چې طرزې د وفا دارې د تضمين په خاطر هند ته ليکلي وو (مکتوبونو په هغه وخت کې چې د پېښور پوسته خانه چور کيده په کڅوره کې وو) و ايسرا امان الله ته وويل چې هغه دې خپل عسکر داسې ځاي ته اخراج کړي چې له ډيرو نژدې برتانوي عسکرو څخه شل ميله لري وي برتانيوي سرتيرو به په هغه ځاي کې پاتې شي، خوغير فعال برتانوي الوتکې به بمونه نه غورځوي ليکن خپلې بې خطري الوتنې ته به دوام ورکوي. امان الله بايد د قبايلو څخه چې د سرحد په دواړو خوا ووکې پراته دي، وغواړي چې جګړه بس کړي.

په پاي کې به وايسرا د هند په راولپنډي کې د سولې کنفرانس جوړ کړي او آيا امان الله به مهرباني وکړي چې هغه ته د خپل هيأت نومونه ورکړي؟

کوم شی چی امان الله و ایسرا ته لیکلی و چی لارد کرزن د تردد سبب شوي وداو:

« دا ډیر د خواشینی ځای دي چی پر لندن باندي د ژوبلو الوتکو په ذریعه بمباري کول د یو وحشیانه عمل په توگه محکوم کړي شو او پر سپیڅلو ځایونو باندي بمباري کول له نفرت څخه ډک عمل وگڼل شو ، حال دا چی موږ اوس په خپلو ستر گو وینو چی دا ډول عملیآت د لویدیزي د پر مختللو خلکو په منځ کی یو عادت گرځیدلی دي. »

د سرحدونو فاتحینو غوښتل چی ددغه لکچر ځارنه وکړي، امان الله که څه هم څه ناڅه په دي فکر کی شو چی دسولی له پاره د ده پیشنهاد ولی نتیجه ورکړه او نور پیشنهاد ونه چی هغه هم دجنگ په وخت کی شوي وو ، له نامی سره مخامخ شوي وو ، خوبیا هم په دي باندي خوښ و چی یوه لارخوبی پیدا کړي ده. همدا ډول برتانویان په دي قانع وو چی هند د دوي قدرت ته متوجه شوي ونو دا ډیره ښه وه چی جگړه بس شی. کله چی هغوي د « روانی جگړي » په هکله ولیکل، دا د ټولو ستونزوله ویروونکی پوهی له مخی و.

بیاهم حتی په ټل کی د نادرله بري څخه وروسته هغوي دا احساس ونه کړچی سوله په صحیح توگه تر لاسه شوي وي، سوله نه شی ټینگیدلاي. وروسته په سرحد کی د هندلیوال حکومت پښتو رسالی چاپی کړي چی پکی لیکل شوي ووچی د افغانستان آمر په رسمی توگه د سولی له پاره غوښتنلیک وړاندي کړي دي. پیغام وړونکو دارسالی د غرونو او سیدونکو ته هم ورسولی. اپریدو چی په باغ کی دجگړي د دوام یانه دوام په خاطر جرگه جوړه کړي وه، څو رسالی ترلاسه کړي، په هغی باندي یی قضاوت وکړ او په داسی حال کی دجنگ اوسولی په لاره کی غلط شوي وو ، پریکړه یی وکړه چی انتظار به وباسی او وگوري چی څه کیږي.

یوه افغانی جنرال ولیکل چی که څه هم ده خپلو عسکرو ته امرور کړي وچی حتی یوفیر هم ونه کړي، خو انگلیسانو د بولدک د نیولو په واسطه له تیرو خوابدبو څخه کارو اخست او د جهاد جنډه جگه شوه. پردي بیرغ باندي داسی وي کسان راټول شول چی نه شوکیدلی له هغه فرمان سره سملاسی بلدشی چی جگړي ته یی خاتمه ورکوله. له دولس سووتنو ( ۱۲۰۰ ) څخه زیات قبایلی کسان چی د ژوب (Zhob) له ملیشا څخه تښتیدلی وو ، یونیفورمونونه یی اغوستی وو ، ټوپکونه یی له ځان سره گرځول چی د برتانیی له خوا ورته ورکړل شوي وو ، اوو دښار په شاو خوا کی گرځیدل، ځینی دی ته چمتوو چی فیرو کړي، نورو په همدي توگه دخرابو اواز و په اچولو سره خطرناک تمامیدل.

نادر د وزیرستان برتانیوي سیاسي نماینده ته ولیکل چې که څه هم وزیراو دوړ، د برتانوي هند دوي قبیلې، زما په امر سره له دښمنۍ څخه لاس اخستي، خوزه به په دې باندې بریالی نه شم، په هغه صورت کې هغوي تر کنترول لاندې راولم، چې برتانیه پدې باندې ټینګار وکړي چې د جګړې په خاطر هغوي جریمه کړي او نتیجه به داشي، چې د وضعې کنترول به د دولوړو حکومتونو له لاسه لاړشي. د برتانیې نماینده چې د جریمې د اندازې په مورد کې بې خبري کولې وویل: «نادر د سیاسي ښه سلوک له حدود څخه تیري کړي دي.»

سولې ته واقعي خطر، برتانوي کرښې ته د افغانی قبایلو نژدې والی نه و (دا فاصله لس میلو ته لنډه کړای شوه) بلکې واقعي خطر د برتانوي الوتکو د استولو دوام و، چې قبایلیان یې را پارولي وو. د هغوي له جملې څخه یوې الوتکې پر افغاني عسکرو باندې پاڼي وشیندلې چې پکې لیکل شوي وو چې متحدینو له جرمني سره د سولې تړون لاسلیک کړی دی. افغاني جنرال په داسې حال کې چې، د داسې لیرې سیمې دسولې موضوع یې په پاڼوکې لوستله او په سیمه کې د همداسې مقصد په خاطر مصروف و، نماینده ته یې ولیکل چې پکې پوښتنه یې کړې وه، چې ایا تاسو فکر کوئ داسوله د نړۍ سوله تضمینوي.

دغه زوړ سړي، عبدالقدوس، چې دې موضوع ته یې هیڅ کله اعتنا نه کوله، یوه اشاره وکړه چې امان الله ممکن د ترکې معزول سلطان پر ځای د اسلام خلیفه شي. داد برتانیې له خوا د پروپاګند یو سوغات وګڼل شو. « په دې کې شک نشته چې که دغه ادعا چې دافغاني لوی وزیر له خوا شوې ده، څرګنده شوې وای، نو دا به دهند او د نورو ځایو زیات شمیر مسلمانان ړا رولې وای او د هغوي نظریې یې هم اړولې وای. زه شکمن یم چې، دا به ګټور وي چې د دې ادعا حقیقت چې درزیکې پیدا شوی دی، په اسلامي مطبوعاتو کې څرګند شي. » دغه پیشنهاد ډیر خصوصي ښودل شوی و.

سوله لا منځ ته نه وه راغلې او امان الله په رسمي توګه د سولې کنفرانس نه و منلی، دهند حکومت وویل، « موږ به د جون تر ۲۲ نیټې پورې د امیر قبولی ته انتظار وباسو او که چیرې تر هغه وخته پورې موږ قبولي تر لاسه نه کړو، نو موږ به د ښمنۍ له سره پیل کړو نو وضعه به خرابه شي. »

د امان الله مکتوب د جون په ۲۱ نیټه راورسید چې پکې وعده ورکړې شوې وه چې خپل هیأت د جولای په ۱۵ نیټه استوي. دوه ایسرا خاص سکرتر جیک مافي، چې په مخ کې کتار

کې موقف بې درلود، خوښ شو. زه د سولې نظر ته په دوه بابته جلب شوي يم. لومړي داچې ترڅو چې ته ښه چلند ولري داروانونه به وي، او نور (ته پوه شه کاردي پوه شه) دويم: د امير له غوښتنې څخه مقدمې او پيشنهاد ونه جوړول.»

سر. اي. هيلمټون ګرانټ، دهند د حکومت د بهرنيو چارو سکرتر د يو مختار واک لرونکې په توګه د برتانيې د هيأت په رأس کې وټاکل شو او هغه په دې برخه کې سمدستي داسې څرګندونې وکړې، «که موږ له افغانستان سره ګټوري اړيکې ولرو... (دا اړيکې) بايد د رښتنې دوستۍ او - متقابل اعتبار پر اساس وي.»

لارډ کرزن ته د بهرنيو چارو د دفتر په يادداشت کې داسې ليکل شوي وو، «د هند دحکومت... مختار وزير يو حيانا ک سړی دی... داسې ښکاري چې د پاچا په توګه د امان الله ساتل به موږ ته کومه ګټه ونه لري.»

سر ادوارد بارو، (Sir Edward Barrow) سرحدي جنرال امان الله بې «په بد حالت کې يو ځوان، چې ډېره قوي انګريزي ضد مفکوره ولري، حال دا چې وروبې عنايت الله د انګليسي پلوي دی، يوه ښځه لري. مينه ناک، با احساس او د ښه ژوند خاوند دی. په ۱۹۰۵ کال کې چې مې فکر کاوه دی يو ضعيف شخصيت دی، ما په هغه کې ځينې شيان وليدل، ليکن ماته وښل شوي دي چې هغه يو پوه سړی دی، خپلې نظريې په ښه توګه څرګندوي چې موږ ته هم د قدروړ دی، او له خپلو نظريو څخه د فاع هم کولای شي، نو موږ د هغه منځ ته راتلو ته هرکلي وايو،» مخاطب کړ.

انګليسانو پر هغو شرايطو فکر کول پيل کول چې پر افغانستان يې تحميلول، دا فکر زياتره د ماشومانو هغې لوبې ته پاته کيده چې يکې ماشومان وايي، «آيا دا به ښه نه وي...؟» او «ولې موږ...؟» په لندن کې تجويز شوي و، چې لويه برتانيه به افغانستان يوازې په تحت الحمايه کې وساتي او دوخت د غوښتنو له مخې به دا کار «پټ» وساتي. جنرال کاکس (Cox) د اعتراض په توګه وويل:

«فکر نه شم کولی د افغانستان په څير به د کوم بل يوه هيواد ساتنه بې ګټې وي... دا به په رښتيا سره د غومبسو ځاله وي.» د دې په مقابل کې لابله مناقشه په دې ډول وه: «پر افغانستان باندې به زموږ د کنترول پر پراختيا باندې تر هغه پورې قضاوت کول ګران کار وي څو چې ونه ښودل شي، چې موږ په خپله د هغوی په موافقې سره عمل کوو. د (حق خود اراديت) او

د (گوچنيو مليتونو حق) نظريې دې بايد په پام کې ونيول شي. » تو دا پلان د مکناټن او د کيوباري ارواحو ته هم غاړه ږدي. دوي دوه تنه برتانويان وو چې په مخکې پيړۍ کې ووژل شول او غوښتل يې چې افغانستان د برتانيې تر واک لاندې راولي. همدا راز دا پلان د وډرو ولسن (Woodrow Wilson) ديو مقتدر نفر پلان ته غاړه کېښودله. يو پيشنهاد په دې دول و:

«زه فکر کوم موږ بايد امير و هڅوو چې ديو فرد په توګه د بالشويزم په مقابل کې خپله انزوا وساتي، » په لندن کې د اعليحضرت د حکومت يوه تن موافقه وکړه چې د سياست له مخې اوس د دې وخت نه دې چې کومه سيمه چې انګليستان يې د نيولو ادعا نه ده کړې تر لاسه شي. «کاشکې دغسې واي، ځکه موږ په داسې حال کې چې په هغه بله خوا هيڅ (Skobolev) نه لرو نو باور نه شو کولای او که موږ له بالشويکانو سره په دې نژدې وختو کې په جدي توګه وجنګيږو (لکه چې احتمال به هم ولري) نو دا به داسې وي لکه چې موږ بايد په هغو کې د خپل قيمت او ارزښت برابر کوم يو پيدا کړو. »

دهند حکومت ديوې معاهدې پيشنهاد وړاندې کړې و چې دوې برخې يې درلودې، لومړۍ سوله او شپږ مياشتې وروسته که چيرې افغانستان ښه سلوک وکړي، د دوستۍ تړون جيک مافي خوښي وکړه او ويې ويل: «که چيرې (عسکري) عمومي امريت په حوصله مندي او زغم سره، دوهم باب ته انتظار وباسي، و هغوی به افغانانو ته د اورګاډي پټلې ورتيرکړي. (وروسته به يې البته ترخپلې قبضې لاندې راولي)، هغوي به هوايي موافقتنامه ورڅخه واخلي (الوتکو ته يې د افغانستان پر فضا باندې د الوتلو اجازه) او همددا ډول په آسانۍ سره نورشيان پکې شامل وي. په دغه وخت کې چې دهوايي موافقتنامې نوم ورته واخستل شي، افغانان به لومړي وډارشي ليکن وروسته چې ورباندې فشار راوستل شي نو به وايي، (اوه، دا به مو د مهرباني له مخې نوري پنځلس لکه روپۍ وي. )

داعليحضرت حکومت شخصاً د کرزن په واسطه چې د کورنۍ شعار يې داسې و، «څه چې کرزن وايي هغسې کوي » ټينګارو کړ چې د افغانستان د بهرنيو چارو اداره کول يوه حياتي موضوع ده. دهند حکومت داسې اعتراض وکړ: «په تير کال کې د افغانستان په ګډو د منځنۍ ختيځ په سياسي دور نما کې ژور بدلون منځ ته راغلی دي... که موږ د افغانانو اعتماد بيا ځانته جلب نه کړو او دې ته يې مجبور کړو چې د ستونزو په وخت کې په خپله خوښه موږ ته مخ واړوي، نو دبل څه په پرتله به موږ زيات شمير يې خپل کړي وي... » او دلته حکومت چې پر

ملیونونو هندیانو باندي حکومت ( یو عبارت یی استعمال کړ چی یوه تجلی چی دواده څخه مایوسه وي او د نورو له خوا واده ته هڅوله کیږي) بیاهم دیو څه اړیکو لیوالتیا لري. « مطلب دا کاغذ یوه تپوته ده. »

دهند حکومت په راولپنډي کی دامان الله د هیأت د رارسیدو په انتظار کی داسی ناست ولکه چی یوه پیغله چی د رومان شوقمنه وي خوله تنبتونی څخه اندیښنه کوي.

د کابل په بازارونو کی په سړو اسویلیو سره دا خبره اوریدل کیده چی « دسولی تینګول سخت شوي دي او زیات وخت ورته په کار دي. » د « غزا » او « جهاد » خبري نوري نه اوریدل کیدي، حتی د برتانی د نماینده ګی په سیمه کی. کوم شی چی پخوا په شور او زوږ سره پیل شوي و اوس هغسی نه و، خلک دخپل تش نس، خالی جیب او دیوي نوي نا آشنا ویري په فکر کی وو، هغوي فکر کاوه چی که سوله منځ ته راشی، بله الوتکه به والوزي او بمونه به وغورځوي.

بوره قیمته شوي وه، کله چی خلک دوکان په دوکان په بوري پسی ګرځیدل نو ویل به یی چی، « قحطی مخ په زیاتیدو ده ». په هغه ورځ چی برتانویانو په خوشالی سره د امان الله وروستی لیک تر لاسه کړ، نو دوکاندارانو یه له ځان سره ویل چی څو ورځی وروسته به بوره بیخی پیدانه شی. څلوینبت (متره ) هندي تپوکر چی کالی ورڅخه جوړیدل ۱۲۰ روپی بیه درلودله.

دمخه د وایسرا د دفتر مشتملو کسانو په سمله کی اټکل کړی وچی د کاروانونو پر مخ لاره بندول به په افغانستان کی هیڅ واقعی بدبختی رانه ولی، یوازي نا آرامی به پیدا کړي، خو په ښار او کورونو کی تقریباً قحطی لیدل کیده، هتی وا لاوو د خرڅلاوله پاره کافی شیا نه درلودل. مسلمانانو او هندوانو یو شان د حبیب الله دوختونو آرمان کاوه، بیا هم په هغه کال کی کښت او کرنه ښه وه، په ګاونډي هیواد هندوستان کی کرنه د ډاډ وړ نه وه او انګلیسانو دهغه ځاي د بدبختی دله منځه وړلو په خاطر د استرالیا څخه غنم واردول.

امان الله مجبور وچی دوطنی تورو تیلو په رڼا کی دشپی له مخی کار وکړي. دغو تیلو هم ښه رڼا نه درلودله، او هم ښه نه سوزیدل. دخاوروښه تیل له هند څخه راوړل کیدل.

هغه پوهیده چی دځوانی او بی تجربه ګی په خاطر معاف ګرځول شوي و، خو په دي هم پوهیده چی ملامتیا دده د مشاورینو په غاړه ده، زیاتره دده دخسر په غاړه چی دهمدي مقصد له پاره یی په ډاګه او د اوږدي مودي راهیسی هڅولی و. له جلال آباد څخه د سړک په اوږدو کی

برتانوي اجنټ سيف الله د ډيرو له خولې څخه دا اوريدلي وچې، «د ډبهرنيو چارو وزير امير يې معنى سر د تکبر، ځان ستاينې او شومو خبرو څخه، ډک کړي او پرته له دې چې د يو کوچني هيواد لکه افغانستان ظرفيت او اهميت يې په پام کې نيولې وي، غوښتل يې چې په يوه دقيقه کې د جرمني د امپراتور موقف ورته ورکړي. » کره کتونکو په شعوري توګه د مقايسې په ډول هغه واکدارو ته اکه چې د برتانيې له خوا يې عسکر او غازيان چې د ډکې او جلال آباد په خاوره کې غزيدلي وو، په نه منل کېدونکې توګه د خوراکي مواد و د خراب تنظيم په باب کيسې کولې، هغوي به ويل چې د زياتې لوږې له کبله په تکليف کې وو، صالح د ډکې جنرال کورته له داسې ستونزو سره راغې چې د بم په واسطه له خپلې زخمي پښه څخه دومره په تکليف کې ته و.
امان الله او محمود سامي هغه په ماتې خوړلو باندې ملامت کړ. امان الله د جون په ۱٤ نيټه په يوپوځي دربارکې هڅه کوله چې دډکې د دغه مشکوکې الوتنې په دليل باندې پوه شي او جنرال صالح هغو سرتيرو په واسطه ملامت وګڼل شو چې ويل يې، کله چې زموږ افسران د مقاومت تاب نه شي راوړلي نوموږ به يې څنګه راوړو؟
تر هغه وخته پورې چې پيلان له کابل څخه تيريدل او د سرحد د پياوړي کولو په خاطر بې دوه زاړه توپونه په ځان پسې کشول چې که سرله بياله تاکامې سره مخامخ شي، خلکو د ازادې د هلوځلو هيجاني حالت له ياده ايستلي وه. سرتيري به له ځانونو سره پيسدل، «په يوه هيواد باندې له کوم دليل پرته تيري کول غزانه دد، خو هغه وخت چې لومړي وارد هغوله خوا چې د دوي په کور او تايوبې همدا ډول يرغل او تيري وشي.
امان الله په هغه آزادي سره خپل عمل ته دوام ورکاوه چې دهغې ژمنه يې کړې وه.
د امان الله هيأت روسانو ته د جون په ٤ نيټه چې دانګليس سره د متارکې له ورځې څخه يوه ورځ وروسته وه، د روسې ترکستان پايتخت تاشکند ته ورسيد چې اوسيدونکي يې ټول مسلمانان وو او د نوي حکومت په منځ ته راتلو سره، چې لاښه ټينګ شوي نه و، نا ارامه ژوند درلود. افغاني هيأت چې اته ديرش کلن ښکلي ځوان محمد ولي يې مشرتا به په غاړه درلود دامان الله د پلارد خصوصي مراسلاتو يو باوري نفرو. له ولي سره افغاني سرتيري هم وو، چې ښکلي جامې يې په تن کې وې. کله چې دوي له اورګاډي څخه پلې شول د احترام د ګارډ له خوا د دوي هر کلي وشو داور ګاډي ستيشن هم د دوي په وياړ ښکلي کړي شوي و. اور لوبه هم د دوي په درناوي اجرا شوه. برسيره پردې شيانو، د (ګله) په نوم بونمايش هم په تياترکې د دوي

په ویاړ وښودل شو. په دي تیاترکی هغه بکسونه او غالي چي له بورژوازانو څخه اخستل شوي وو، څرول شوي وو.(۲)

ولي، روسانوته وویل چي زما ډله دسولی کنفرانس ته راغلی ده او په پاي کی به دنړي پایتختونو ته لاړه شي چي دافغانستان خپلواکي ورته اعلان کړي. هغه د افغانستان او ترکستان ترمنځ د متقابلی مرستی په پاره کی هم خبري وکړي، چي نفر د افغانستان له خوا او وسله به د ترکستان له خوا برابره شي.

دا کارد بالشویک حکومت دي ته چمتوکړ چي افغانستان په رسمیت وپیژنی د می په ۲۵ نیتیه مسکو په انگلیسی ژبه یو رادیویی پیغام خپور کړ، چي هغوکسانو هم چي د «امیر امان الله او د افغانستان له خپلوا کی او منځنی آسیا دخلکو دحق خود ارایت» په برخه کي نژدي رابطه او علاقه درلودله، پوه شي، وروسته لنین د امیر امان الله مکتوب په داسي یو شوق سره ځواب کړ چي دبرتانیی له سري روبي څخه یی توپیر درلود: «خداي دي وکړي چي د افغان اولس دالویی هیلی، د روسانو د لاري په پیروي سره، دافغانستان د خپلوا کی او دهغه هیواد د قدرت ضامن وگرځی.» هغه د«ظالمو بهرنیانو د ناوړوگټیو اخستنو او دهغوي د دوه اړخیزومرستو» په باب هم خبري وکړي.

څو میاشتی دمخه بلشویکانو سپینو روسانو ته چي د تاشکند په شمال کی د اورگاډي پټلی یی په خپل تصرف کی لرلی، ماتی ورکړي وه، او اوس مسکو کولی شول له تاشکند سره مخابراتی اړیکی تینگی کړي. مسکو د تاشکند د ناارامی او دهغه ځاي د مامورینو له ناوړي وضعی څخه او دهغوي له دي ناکامی څخه مسلمانان حکومت ته جذب کړي او یا په هردول چي کیږي هغوي دي ارام کړي پریشان و، د دي وضعی د اصلاح په خاطر یوه ډله تجربه لرونکی مامورین تاشکند ته واستول شول.(۳)

پال الکزاندر براوین یوله دغو څخه و. دي یوبد مزاجه غښتلی سړي و، چي د تزار دواکمنی په وخت کی په ایران او هندوستان کی یی سیاسی پوستونه په غاړه درلودل. دي نه یوازي په فارسی او هندي باندي غږیدي شو، بلکی د دغو هیوادونو په څولهجو هم غږیداي شو، دهغه مهارت دده له هغه پرستیژله مخی په اثبات رسیدلی و او دا پرستیژ دهغه حکومت له خوا ده ته ورکړ شوي وچی کڅه هم په خپله یهود و، خو د سامی ضدو. په یو وخت کی دانگلیسی د جاسوس تورورباندي لگول شوي و او د بهرنیاچارو د کومیساري یو کاتب په

حواله، په ځینو پاڼوکی جاسوس معرفی شوو. دغه پاڼی یو فوق العاده کمیسیون ته ولیږل شوي چی دانقلابی ضد او تقلب کاریو په ضدیی کار کاوه. براوین برائت تر لاسه کړي و، او په دغه وخت کی له پنځو سومپلیونو روبلو سره ترکستان ته راغی. دا دمخلوع او مقتول تزار روبلونه ووچی د نکو لایس په نوم سره یادیده او ارزښت یی د ترکستان د بلشویکانو د پیسو په پرتله زیات و. ددي پیسو په واسطه بالشویکانو ته د سپینو روسانو پر ضد ښی مرستی کیدلی.

براوین په افغانستان کی دروسیی دلومړي سیاسی استازي په نوم یاد شو. د جون په ۱۳ نیټه هغه او ولی یوله بل سره مخه ښه وکړه. افغانان چی مسکو ته روان وو، په تاشکند کی یوه قونسلگري جوړه کړه او براوین کابل ته روان شو. دواړه مجبور شول چی بیرته وگرځی.

افغانانو ولیدل چی د کسپین په جهیل کی دالکساندر فسکی بندر چی دوي غوښتل له دي بندر څخه د بیړی په ذریعه سفروکړي، دبرتانیی د شاهی بحري قوي له خوا تصرف شوی دی. براوین او ملگري یی د بیړی په ذریعه د آمو په سیندکی پورته لاړل اوغوښتل یی چی د بخارا په سیمه کی بخارایی عسکرورسره بدرگه لاړشی، خود سیمی مسلمانو سرتیرو دهغه چاله بدرگه توب څخه سرو غړاوه چی په خداي(ج) یی عقیده نه لرله. نو هغه د بخارا بیړی له بدرگی پر ته حرکت وکړ او یوه پلنه وړه بیړي یی په ځان پسی کشوله چی توپک او مهمات پکی باروو. د امو دسیند په یوه برخه کی دغره یولوي غاښ راخړیدلی و، کله چی دبخارا بیړی ددغه غاښه له څنگ څخه تیریدله له دي ځاي څخه وربانديډزي وشوي چی د دي ډلی دوه تنه پکی ووژل شول. وړي پلنی بیړي او رواخیست او حربی مهماتو په چاودلوپیل وکړ. براوین بیرته تاشکند ته راستون شو چی ولی هم په همدي وخت کی بیرته ستون شوي و او دواړو د دوهم ځل له پاره بیرته په بله لاره لاړل.(٤)

د افغانستان او روسیی په سرحد کی بلشویکانو او افغانانو خپل ځانونو سره امتحانول چی که دکومی همکاري امکان ولیدل شی. دروسی د کمشنر مرستیال، قره خان، چی له روسیی سره د اسیاسی هیواد و نود اړیکو د ساتلو دنده په غاړه لرله، دجون میاشتی په ۱۲ نیټه د تاشکند د بهرنیو چارو وزیر بوگویاولنسکی (Bogoyalenski) ته داسی تلگرام وکړ: «لطفاً افغانی هیأت ته، چی دوسلی او پوځی تجهیزاتومرسته غواړي، په ځواب کی ووایه کله چی د اورگاډي ارتباطات بیاټینگ شول نوموړ چمتو یو چی له تاسوسره دغه مرسته وکړو. تر هغه وخته پوري به ښه وي ستاد صلاحیت په چوکاټ کی ورسره مرسته وشی. بله اونی به دري تنه

پوځي متخصصين تاشکند ته ولیږل شي چې د براوین سره مرسته وکړه او مالي مرسته به هم ورسره واستول شي. اوس ته دهغو افغانانو شمیر معلوم کړه چې د کلچاک (یوسپین روسی سمندري قوماندان چې د برتانیې په مرستهٔ له بلشویکانو سره په مخالفت اخته و) په ضد په خپله خوښه جنګیږي، چې په دې صورت کې به موږ د خپلې برخې ترکستاني مسلمانان سره راټول کړو، چې له افغاني عسکرو سره د برتانیې په ضد جنګ وکړي. ته اوس د هغې موافقې ټکي موږ ته ووایه چې د افغانانو له خوا طرحه شوي ده، لیکن د یوې مودې له پاره یې له لاسلیک څخه ډډه وکړه.»

ویل کیده چې د کشک په سرحدي ښار کې، روسانو افغانستان ته د تګ په خاطر دامان الله اجازې ته معطل وو، او افغانان دې ته تیار وو چې د کشک پوسته په یوه قشله بدله کړي.

خوخلکو د سرحد په اوږدو کې تګ راتګ درلود چې دا پلانونه رنګ کړي، په دې کار کې زیاتره ترکمنان شامل وو چې د برتانیې له خوا ورته پیسې ورکول کیدې. جنرال میلسن چې دا خلک یې استخدام کړي وو وویل:

«دا زموږ وظیفه شوې چې د افغاني او بلشویک د تیرې او دفاع د اتحاد او تړون د پلانونو د مخنیوي په خاطر له هیڅ ډول کوښښونو څخه ډډه ونه کړو.»

برتانویانو هغه شفر له منځه وړي وچې دهغه په ذریعه مسکوله تاشکند سره خبري کولې. د تاشکند او مسکوتر منځ تلګراف وجود نه درلود نو هغوي دبې سیم په ذریعه ، خبري کولې. په کوم شي باندې چې تاشکند پوهیده برتانویان هم په هماغه وخت وربانديې خبر بدل چې مسکو خبریده، او هغوي په دې هڅه کې شول چې د روسیې او افغانستان تر منځ بدګوماني پیدا کړي.»

میلسن وویل، «ماځینې ډیر ښه منصبداران درلودل چې په څوړبو باندې یې خبري کولې. ما په زرګونو میلوتر دې هم زیاتوو اتېنو نوکې حتی د بلشویکانو په دولتي دستګاوکې نماینده ګان درلودل. ما په هغو سیمو کې نفر درلودل چې زما په فکر مهمې سیمې وې چې په منظمه توګه بې تګ راتګ کاوه. د مرکزي آسیا په اورګاډي کې هغسې اورګاډي په سختۍ سره لیدل کیده چې زموږ له نماینده ګانو څخه به یوپکې نه و او داورګاډي داسې مهم مرکز هم وجود نه درلود چې زموږ دوه یا درې تنه سړي به پکې نه و. سیاحان هرډول او له هرې ډله څخه به چې وو په بیلابیلو ځایونو کې په زیات سره معاینه او پوښتنې ورځینې کیدې.

«موږ په مقدماتي توګه ځانونه دې ته چمتوکړي ووچې د براوین (پلانونه شنډ کړو) په

یولړ پیغامونو کی چی... تقریباً په ثابت ډول په هغو خلکو کی په وړیا توگه په دوران کی وو... او آیا هغو بلشویکانو ته چی د پخوانی تزار د غیر عادلانه حکومت په له منځه وړلو کی چی تیري کوونکی امپریالیستی ماهیت یی درلود نه ستړي کیدونکی مبارزې کولی، تردي بل کوم اقدام گټور او انصافانه وو؟»

براوین، چی افغانانو ورسره تماس کی شول، موافقه وکړه چی دا کاردي ممکن په هغو سیمو کی په خبرو او عامه رایو تر سره شی. د هرات له جامع جومات څخه څلور تنه مشهور ملایان د عامه رایو د وضعی د څرگندولو په خاطر د بخارا په لور روان شول.

جنرال میلسن وویل، «په داسی حال کی چی موږ د یوشمیر نماینده گانو په واسطه چی په دواړو کمپونو کی درلودل پوره ذهنیت او معلومات ترلاسه کړل، چی څه خبره وه او څنگه دغه دوي مهمی ډلی هڅی کولی یو بل ورک کړي موږ دا خپله وظیفه وگڼله چی په غیر رسمی توگه هره خوا یود بل له غداري څخه خبر کړو. په دي وخت کی افغانانو و اوریدل چی په فرغانه کی جدي او امید بښونکی د بلشویک ضد باغیان پیدا شوي دي، هغوي پوره بی نزاکته شول او خپل نماینده گان یی له مکتوبو او تحفو سره د هغه ځاي د باغیانو مشرانو ته واستول، موږ دا هم خپله وظیفه وگڼله چی د غو معلوماتو ته د بلشویکانو پام راوا ړوو.»

د جون په وروستوو ختو کی له تاشکند څخه مسکو ته د بی سیم په ذریعه یو سخت راپور مخابره شو چی: د جنرال نماینده گان بریالی کیدل.

جنرال میلسن وویل، «د افغانی قوا ویوي ډلی دا جازې پرته د کشک له لاري د مروي په لور حرکت وکړ، د ترکستان په هر ښار کی افغانی نماینده گان او قونسل ترستر گو کیدل. افغانی ملایان په هر ځاي کی په فعالیت بوخت و بلشویکانو ته د دغو موضوعاتو دوړاندي کولو په نتیجه کی، د یادونی وړ نا آرامی منځ ته راغلی وه. کشک ته امتدادي قوه واستوله شوه. د بالشویکی ترکستان د حکومت مشر عشق آباد او مروي ته لاړ چی د افغان د دسیسی په باره کی معلومیات ترلاسه کړي. وروسته له هغه کشک ته لاړ او هلته دیر افغانی افسرله خوا د تحقیر کیدو په وجه ډیر حیران شو. د بلشویکانو توري قواوي هم کشک ته لاړې. موږ هرات ته اطلاع ورکړه چی خپله قوا یی په بیړه سره د سرحد په لورو استوله. بلشویکانو ددي په هکله خبرتیا حاصله کړه او لوبی ادامه پیدا کړه.»

براوین د جولاي په لومړي نیټه افغانستان ته و اوښت. یوسل او شل یابوگان هم ده سره

ووچې وسله وریاندي باروه. همدا راز څلور سوه سپاره عسکرورسره ووچې له دي جملې څخه یوازي د یرش تنه یې ورسره له بندر څخه تیر شول. یو میاشتې وروسته هغه لاهم په هرات کې و، امان الله نه غوښتل چې هغه کابل ته دراتګ د اجازي په ورکولو سره له برتانیې سره خپلې د سولې تړون ته زیان ورسوي.

د راولپنډي دسولې د کنفرانس له پاره امان الله خپل د اکا زوي - علي احمد، د خپلې اصلي ډلې په توګه وټاکه چې دده د پلار اعتباري نفر او خاص سکرترو. علي احمد، چې شپږ دیرش کلن و، د امان الله څخه نه کاله مشرو او ښه زده کړه یې هم دهند په موري ښوونځي کې په هغه وخت کې کړي وه چې له حبیب الله سره دهند په رسمي سفر کې تللی و. هغه دعلیاحضرتې ورارهو او په خپل دغه قدرت او اعتماد باندي تردي حده په هوا شوي و، چې علیاحضرتې نه شو کولې هغه تر اداري لاندي راولي. داسې فکر کیده چې ګوندي علي احمد د علیاحضرتې د مشرزوي په توګه ځان احساسوي او همدا راز هغه مدام ځېه معلومیده چې دهغه ځوان خپلوان امیر شوي و.

امان الله، په خپل وارسره، علي احمد بېخي ونه با ښه ځکه هغه لومړنی نفرو چې نصرالله یې د یو واکمن په توګه منلی و. دهغه په ټاکل کیدو سره د کابل پروپاګند چیان پوه شول چې د بوبدلون پیل به د جلال آباد یانو په ګټه وي. جلال آبادي په اصل کې هغه نفرته وایې چې له جلال اباد څخه وي، خو په دي وخت کې هغوکسانو ته ویل کیده چې د نصرالله په لوي او محلي پاچاهي کې یې ژوند کاوه.

امان الله علي احمد ته قدرت ورکړ چې په خپل اختیار سره بوتړون وکړي. دافغانستان هر پخوانی امیر به دغه قدرت په کلکه سره په خپل لاس کې درلود. خو امان الله علي احمد ته هدایت ورکړچې یوه عمده اصلي دي له راولپنډي څخه بیرته راوړي: دافغانستان بشپړه خپلواکي.

وروسته امان الله یو هیأت وټاکه چې دافغانستان ټولنیز جوړښت ته بدلون ورکړي. په کابل کې ډیر هندوان اوسیدل، هغوي کاروانونه استول چې هند ته تګ راتګ وکړي، ځینو یې په طبابت او د درملو په جوړولو کې مهارت درلود، مګر چون په اقلیت کې وو په عامه چاروکې کوم رول نه درلود. په دي وخت کې امان الله یوه هندو، چې نرنجنداس نومیده، دخپلې سولې په ډله کې وټاکې. کله چې ګرانت له دي کار څخه خبر شو وي ویل: «په یوه هیواد کې چې هندوان

یی په سیاسی چارو کی کوم رول ونه لري، نو داد ډیر تعجب ځای دي چی هندو ددي کار له پاره تیاکل شوي دي.» ډاکتر عبد الغنی، دامان الله پخوانی استاد، چی امان الله هغه له بند څخه خلاص کړي و او دهغه تحصیل په هند کي ترسره شوي و او کرنیل غلام محمد، یوازاد غړیدونکی عسکر، د هیأت پاته غړي وو.

دجولاي د میاشتی په نیمایی کی دخیبر په دره کی یو استازي پیدا شو چی برتانویانو ته دغه لاندي پیشنهاد ورکړي چی دهغه په قول د نصرالله له خوا راغلی و:

«زما دا غوښتنه ده چی له غاصب امان الله سره دي سوله ونه شی، ځکه چی د افغانستان مستحق پاچا زه یم او دورور د مړینی په وخت کی دخلکوله خوا هم د اسلام له نظره او هم د افغانستان د یو سردار په توګه پیژندل شوي یم. خلک امان الله ته خوښوي. که کوم پر مختګ منځ ته راشی او یا که کابل بمبارد شی نو هغه وخت به تیښتی ته مجبور شی.

«زه باورلرم چی کابل ته د برتانویانو په رارسید وسره، به زه دخلکو له خوا حق په جانب وګڼل شم او به پیژندل شم او په هغه صورت کی به زه حاضر یم چی د برتانیی له حکومت سره دخپل پلار او ورور په شان د دوستی تړون وکړم او حتی که برتانیه یی وغواړي زه به ننګرهار ترجګدلک پوري او کندهار او خوست هم ورته تسلیم کړم.»

څرنګه چی نصرالله، نه شوکولاي چی دغه سوغاتونه برتانویانو ته ورکړي، ځکه چی یو یی قدرت بندي و، انګلیسانو تکلیف ونه مانه چی د پیغام واقعیت چی دوي وربانديي شک درلود ځان ته معلوم کړي. افغانانو به تل داسی فکر کاوه چی دا د نصرالله له خوا څخه نه، بلکی دهغه د یو شمیر پلویانوله خوا را رسیدلی دي چی امان الله په هغه وخت کی د دوي نقشه کشف کړي وه چی د مبتکر امان الله له وژنی څخه وروسته پرهیزګار نصر الله پاچا کړي. د دسیسه کوونکو یومشر غوښتل چی امان الله تیرباسی او پخپله خود کشی وکړي چی دامان الله له تحقیق څخه ځان خلاص کړي، خو په دي کارباندي هم بریالی نه شو او که څه هم یوه سترګه یی نه وه، خوبیایی هم خپل ژوند ته دوام ورکړ، دا کار به دامان الله خوښیده، چی دغه سړي چی یی کورنی دهغه خدمت کړي و، و بخښی، امان الله دهغه د محاکمی په وخت کی ورڅخه پوښتنه وکړه چی که یو حکمروا او واکمن واي، تا به له یو داسی د سیسی کار سره چی ستا په شان وي څه کول؟ سړي په ځواب کی ورته وویل، «ما به د داسی دسیسه کوونکی د مرګ فرمان صادر کړي واي.» امان الله ورڅخه پوښتنه وکړه، «که زه تا و بخښم آیا ته به

بیاهم هڅه وکړي چې ماووژني؟» سړي وویل هو، امان الله په خوا شیني سره د هغه د مرګ فرمان صادر کړ. سره له دې د نصرالله په توم لیکونو په برتانویانو باندې کومه اغیزه نه درلوده.

په یوه لیک کې خبرتیاورکړې شوې وه چې امان الله د هند دخلکو له هوساینې سره مینه لري او په همدې وجه یې دخپلې سولې په هیأت کې یې هندوانوته هم ځای ورکړی و. برتانویانو نه غوښتل چې د هند خلکوته د خلوص د نیت په ښود لوکې دوهم مقام ولري نو هغوی هم دوه تنه هندوان په خپل هیأت کې شامل کړل چې دبرتانیې ډیر سلامونه یې هم له ځانه سره راوړي وو.

د جولای په ۲٤ نیټه افغاني هیأت هند ته لاړ. له دوی سره ځینې ملازمین هم ملګري ووچې په هر تم ځای کې به دهغوی د استراحت اوهوساینې په خاطر ورته خیمې درولې. د دوی لومړنی تم ځای داسې یوه نقطه وه چې انګریزانو ورته شنه غونډې ویله ځکه چې په نژدې شاوخوا سیمه کې چې هلته سل تنه توپک لرونکې د ډکې د سیمې څارنه کوله چې اشغال شوې وه هیڅ شنیې نه معلومیدل. د خیموله درولو وروسته ملازمینو به په خیموکې هغه ښکلې غالۍ وغوړولې چې په خاص مهارت سره رنګارنګ نقشې پکې کارول شوې وې او د ختیځ داډول صنعت د نړۍ زیات پام ئې ځان ته اړول و، برتانوي سربازانو په زیاتې مینې سره ورته کتل.

کله چې هیأت راڅرګند شو سربازانو د افغانانو لومړې منظره ولیدله چې زیات او مهم کسان پکې وو.

علي احمد فکر کاوه چې ښکلې قواره لري او ډیرکسان په دې باندې قانع ووچې دې هماغسې و. دهغه زامه وتلې او بریتونه یې شخ او جګ معلومیدل. علي احمد د ټولو موقف لرونکو افغانانو په ځیر اروپایي جامې اغوستې خو هیڅوک پوه نه شو چې د اروپایي په کومه ښه جامه کې څرګندیده. هغه په دې ورځ باندې تور بخونې شنې او پر دې ډبلې جامې د سپرلۍ ډبل پتلون مهمیزلرونکې اوږدې موزې اغوستې و. دسام براون[۱] (Sam Brown) کمر بند یې هم تړلی وچې یوه توره او تمانچه پکې ځړول شوې وه. دهوا تودوخې د جولای د میاشتې له تودوخې سره برابره وه. د ده په سر کې یوه بوکه خولۍ وه چې د پخوانې وختونو د اوسپنیز خولۍ په شان وه چې په تور ښکو پوښل شوې وه، نرنجداس یو زوړ تړي او ږد هندو و چې پر

۱- سام براونی یو انګلیسي افسر وچې د ۱۸۲٤ - ۱۹۰۱ پورې یې ژوند کاوه. ده یو عسکري کمربند درلود چې یوه نري تسمه یې له اوږ وڅخه تا وشوې وه. (ژباړونکی).

یوه ډنگر یا بوډا یابو ته ورته سپورو. که چیرې د غه سرتیري د خپلو سیاسي صاحب منصبانو په شان پوه واي نو دوي ته به د ډان کیشوت (Don Quixote)[۱] ور په یاد یده چې پر روسیتانتیي (Rosinante) باندي چې یو زوړ آس و سپورو.

لکه څنگه چې معلومیده هغوي د ده خولی ته هک پک پاتی شول چې د برتیت تاج او پراخه څنډه درلوده او د دې له پاره چې د ډان کشوت عالمانه چلمچي ډوله خولی په نشان معلوم شوي واي نو څنډو یې صرف پري کولو ته اړتیا لرله.

هیأت ان یو ساعت استراحت وکړ بیا له ځینو ناراحتیو وروسته لاړل. دانا راحتی د نرنجنداس په خولی پوري مربوط وچې پیدا کیدلی نه شوه. ځینی برتانوي سرتیري په خپله خوښه حاضر شول چې د غالیو په راټولولو کی مرسته وکړي. دوي هغه خلک ووچې د غلا او لوټماري په خاطر یې په انگلستان کی خپلی د بند مودي تیرولی او په ۱۹۱۰ - ۱۹۱٦ کال کی دجګړې د فشار له امله لیږل شوي ووچې خپله د جزامو ده د سمرسټ له پلی قوي (Sumerset Light Intantry) سره تیره کړي. هغوي ټول د خپل یو ځوان صاحب منصب په ګډون دا هیله درلوده چې له خپل خاص مهارت څخه کار واخلي او افغاني غالیو څخه یو ترلاسه کړي خود افغاني پیره داراتو د غور او پاملرنې په وجه هغوي دې کار ته چمتووالی نه درلود. کله چې دا د له لاړه او ټولي غالي یې له ځانه سره یووړلی یو چالاک سرتیري ته څرګنده شوه چې لږ تر لږه یو څه ورسره وهغه ورکه شوي خولی چې د هغه په دننه کی د غه نښه وهل شوي وه «هاکس اینډکمپنی ساویل رولندن.»[۵]

هیأت په یو مخصوص اورګاډي کی له پیښور څخه د راولپنډي په لورو خوځید چې له خاور و څخه ډک یو عادي محل و او کار هم پکی کم شوي و. هغوي په هغه ځاي کی د خپلو ښارونو په شان ډیر ځایونه ولیدل. خوبرتانوي واکدار خپله د معماري ټاپه وربانډي لګولی وه. د دې کنفرانس په موده کی افغانانو له لرګو څخه په جوړ و شوو هغو تعمیرونو کی او سیدل چې د یو داسي شي په واسطه احاطه شوي وه چې دوي ته بیخي نوي ښکاریده دا نوي شی د تعمیر برنډه وه. افغاني کورونه داسې جوړ شوي ووچې شاوخوا یې دیوالونه او د دیوالونو په منځ کی به

---

۱ - د یوانتشادي رومان شهکار دی چې مکول ډي سروانتیس (Miquel de Cervantes) له خوا پر اوسیتانتي باندي چې یوزوړ آس ولیکل شوي و او په ۱٦۰۵ - ۱٦۱۵ کی خپور شوي دي. (ژباړونکي)

کورونه‌وو چې معمولا ، به‌له‌ ختیو څخه‌جوړ وو. حتی‌له‌قصروتو نه‌به‌هم دیوالونه‌تاو شوي وو. کله‌به‌چې کوم افغان‌وغونښتل پر یوې چوترې باندې کښېنې او دباندې وګورې او یانور خلک ده‌ته‌وګوري هغه‌به‌دکوم سماوار دوکان ته‌ولاړ . ډیر کلونه‌وروسته کله‌چه‌مسلمانی نومونه انګریزي نومونو ځای‌ونیسی نوبیر دغو چوترو باندې‌به‌غالی وغوړولی شی ځوچې ختیځ خصوصیتونه‌په‌نظر کی‌نیول شوي‌وي.

دبرتانیې هیأت‌هم په‌اورګاډي کی‌راولپنډي ته‌راغی. د پولیسویو خوش‌باوره منصبدار دري‌ورځی د مقرراتو په‌باره کې داسی‌لیکلی وو «که‌چیرې د سر هیملتیسن ګرانت د هرکلی له‌پاره دهرې ډلی له‌خوا دراتولید و تمایل موجود وي‌نودا تولید نه‌دي‌باید په‌خپله‌خوښه‌وي نه‌جبري. » هیڅ کومه‌ډله‌سره‌را ټوله‌نه‌شوه. حتی داسې یوه‌کوچنی‌ډله‌چې‌باید د خلکو تر سترګونه‌کیدله‌هم ټوله‌نه‌شوه یعنی د جاسوسانو ډله. ځوا وونی د مخه‌د شمالی لویدیځ ایالت‌سیاسی منصبدار ته‌داسی‌مشوره‌واستوله: «داپوهه‌تر لاسه‌شوي‌ده‌چې د نظامی او مرکزی استخباراتی ځانګی داسی ګامونه‌اوچت‌کړي دي‌چې په‌راولپنډي کی‌له‌افغانی ډلی څخه‌دي‌افغانی مخبران‌را ټول کړي. آیا فکر نه‌کوي‌چې دا یوسیک‌او له‌ضرر څخه‌ډک کار دي‌د جاسوسی سیستم‌ډیر بدکاردي او موږ نه‌غواړو چې دغه حیاناک مرغان‌له‌دي‌څخه وویرووچې پرموږ او زموږ پرهندي همکارانو باندي اعتماد وکړي. » دا به‌وروستی ځل‌و چې برتانویانو افغانانو ته‌د «حیانا کی مرغی » نسبت‌ورکړ.

په‌یوه مشابه‌اوله‌مهربانی ډکی‌لهجې سره‌چې مینديي دماشومانو‌د سرزنش کولو په خاطر استعمالوي‌سرهیملتین ګرانت یوه داسی افتتاحیه‌بیانیه‌ترتیب کړه: «کله‌چې ناروغی موجوده‌وي‌نو دا ضرور ده‌چې هغه‌دوا چې خوندېې خراب‌وي‌اوله‌وخوړله‌شی او خواږه‌شیان چې د خولی خوند ښه‌کوي‌وروسته‌خوړل کیږي. »

د جمعی ورځ د جولاي ۲۷ نیټه‌د کنفرانس د پرانستلو ورځ‌وه. په‌تیره شپه‌کی علی احمد په‌دي حقیقت‌باندي جوړ شی و چې راولپنډي ته‌په‌را رسیدلوباندي د ده مستخدمین له‌خپلو وسلو څخه‌محروم ګرځول‌شوي‌وو او بله‌دا چې دده‌ډله‌په‌ښکاره د پولیسو تر څارنې لاندې‌وه هغه‌خپلې خبرې تر همدې عنوان لاندې پیل کړي.

علی احمد وویل: «زه‌به‌دیو دوست په‌توګه په‌تمام معنی‌سره حاضریم د دوستی په‌روحیه هر شی تر بحث لاندي‌ونیسم‌خو افغانستان‌دي ته تیار نه‌دي هر هغه‌شی‌ومنی‌چې تهدیدي ماهیت‌ولري. »

گرانټ وویل: «د اسلحی په ارتباط زه یقین لرم تاسو د ذخیره کولو له پاره ځینی ترتیبات نیولی دي.»

علی احمد وویل: «زه به خپلو نفرو ته اجازه ورنه کړم چی دوسلو پرته د باندي ولاړشي خو که چیري زه خپله د باندي ووځم آیا کولی شم یو مسلح اردلی له ځان سره کړم؟»

«د مسلح اردلی غوښتنه ولی کوي هیڅ خطر وجود نه لري.»

«دا د افغانانو د اقناع موضوع ده.»

گرانټ وویل: «وایسرا امیر ته لیکلی دي او پکی ددي ذکر شوي دي چی زه محافظ گارډ دلرلو اجازه چاته نه ورکوم او د افغانی هیأت د مصئونیت مسئولیت به زما په غاړه وي.»

«ماصرف د احترام او عزت په خاطر د محافظ گارډ غوښتنه وکړه.»

«زه افغانی هیأت ته ددي اجازه نه شم ورکولی چی له یو شمیر مسلحو کسانو سره اخوا دي خوا وگرځی.»

«دا صرف یو جزئی شی دي.»

«مسئله په دي نه حل کیږي چی ووایو دا یو جزئی شی دي دبر نور شیان دي چی دجگړي په وخت کی باید په نظر کی ونیول شي.»

علی احمد وویل: «دا یوازي زما دعزت او احترام د ساتنی په خاطر دي.»

«زه به ستا عزت او احترام وساتم. په یوهیواد کی چی هیڅوک له مسلحو کسانو سره دگرځید و اجازه ونه لري موږ نه شو کولاي چی پنځوسو کسانو ته سمدستی اجازه ورکړ وچی په مسلح ډول اخوا دي خوا وگرځی.»

«که زه په موټر کی وگرځم له ما سره به له څلورو یا پنځو تنو څخه زیات کسان وي. که موږ دغه کسان له ځان سره بدرگه ونه لرو نو دافغانستان خلک به ووایی چی موږ له هر څه نه محروم وو، زموږ په نظر دا کار سپکاوي دي.»

گرانټ وویل: «زموږ د هیواد رواج دادي چی هیڅوک مسلح نه شی گرځیدلی.»

«کوم شی چی دوي ورباندي په ربښتیا سره بحث کاوه هغه دجگړي دگټیلو سوال وچی جگړه چاگټیلی وه چی په دي صورت کی دي له افغانانو سره باید د نیول شوو هندیانو په شان چلند وشی او هم دا حقیقت چی گرانټ او علی احمد په هغود ووهیوادونو پوري مربوط دي چی هریویې ځانته خپل رسم او رواج لري. په افغانستان کی مسلح گرځیدل یو عادي کار دي.

وروسته په کابل کی د برتانیې استازي یوه څرگنده موضوع وگرځیدله. علی احمددا

پیشنهاد وکړ چی هغه به خوشی کړي که چیري برتانویانو د پینبورد افغانی پوستی آمر او دهغه بندي ملګروته دخوشی کیدو خبرواستوي.

«زه په دي شیبه کی دغه مطلب فکر ته نه شم راوستلی. که په رښتیا سره دغه روحیه ښود له کیږي نوزه به هغه څه وکړم چی ستاله خوا دهغه ه کولو سپارښتنه راته شوي وه او ځان به په ښکاره تهدید او خطرکی واچوي. زه به خپل حکومت ته دهغو شیانو راپور ورکړم چی ویل شوي وو او په دي باندي به خپه نه شم که چیري ماته وویل شی راولېږدي ته د برتانیی د نماینده تر راتګ پوري دي خبري اتري وځنډول شی.»

«دبرتانیی حکومت خپل استازي څه وخت غواړي؟»

«سمدستی.»

«ته نه شی کولاي ماته دستور راکړي. ته یوازي غوښتنه کولاي شی. څه چی ته ویل غواړي هغه به امیرته ورسول شی. زه غواړم له ما سره دي د یو دوست په څیر چلند وشی.»

ګرانت وویل: «زه ډیره زیاته علاقه لرم چی له تاسره د یو دوست په شان چلند وکړم خود حالاتو په هکله د پیشنهاد ګونګ توب ته هک پک پاته یم.»

علی احمد وویل: «زه فکر کوم ته ډیر احساساتی او زود رنجه سړي یی خو څرنګه چی زه په خپله هم یو احساساتی سړي یم نو فکر کوم دا به بهتره وي چی یوازي دلیک په واسطه یوله بله سره اړیکی ونیسو.»

ګرانت وویل: «زه په خپل مزاج باندی پوره حاکمیت لرم خو کله چی د پخوا په شان کومه قضیه واورم نو مجبوریم پر موضوع باندي د خپل حکومت نظر په څرګند ډول بیان کړم.»

وروسته هغه پوښتنه وکړه چی ولی د برتانیی استازي له هیأت سره یوځاي شوي نه و.

سیف الله د برتانیی نماینده په کابل کی په پوره توګه ښه ولی بد نصیبه و. هغه د نماینده ګی په ماني کی دخپل هیأت له غړو سره تر څارنی لاندي و. ددي ډلی یو تن فکر وکړ چی نورغړي دده وژلو نقشه جوړوي نویی خپل پلار او اکاته چی په هند کی وولیک واستاو او پکی ځینی کسان دخپلی ناځاپی مړینی په باب تورن کړي وو.

دنماینده ګی په څنګ کی، شجاع الدوله د امیر امان الله ځوان ملګري اوسیده چی دهغه د پلارد مړینی لومړنی اصلی خبرورته ورکړي و امان الله شجاع الدوله د خپل استخباراتی آمر مقرر کړي و. دهغه په ټول ژوند کی به د شجاع الدوله په باب په پس پس سره خبري کیدي چی دده خپلی ګوتی وي چی یی په خپل امیر باندي یی ماشه کش کړي وه.

سیف الله په خپل یاد داشت کی داسی ثبت کړ: «یوماښام په اته تیمو بجو یوه ښځه چی دنماینده گی د مانی او د شجاع الدوله د کور تر منځ پر یوه دیوال باندي ښکاره شوه او په چغه سره یی وویل: «اي د نماینده گی خلکو! زموږ یوه وینځه ورکه ده او هغه تاسو غولولی ده او له تاسو سره ده. ژر هغه بیرته موږ ته راکړي که نه نود پولیسو ماموریت ته به خبرورکړشی.» هغی ته په ځواب کی په کرار سره وویل شو چی دهغی په مورد کی نماینده گی کومه اطلاع نه لري. ښایی هغه بل چیری تللی وي. ماد نماینده گی د دروازي حواله دار را وغوښت او له پیښی څخه می خبر کړ. هغه وویل چی نجلی د شجاع الدوله د کور میرز سوري کړي و او یوه نري لاره یی جوړه کړي وه چی د نماینده گی دروازي ته نژدي وتلی وه د دي لاري څخه دو تلو په وخت کی ونیول شوه. دهغی د تیښتی علت دا و چی د شجاع الدوله وینځه وه او تره یري سختی شکنجی لاندي وه په دي خاطر د تیښتی په لټه کی شوه.»

لیکن د برتانیی نماینده ته ډیره سخته ضربه داسی یوه مفکوره وه چی د برتانیی حکومت دغه نفر خوشی کړي و ځکه چی هغه صرف یو هندوستانی و.

په دي وخت کی کله چی برتانویانو په راولپنډي کی دخپل نماینده په یاب پوښتنه وکړه علی احمد په ځواب کی وویل چی موضوع خپل اهمیت له لاسه ورکړي دي. هغوي نور پر دي ټکی باندي فشار وانه چاوه. گرانت علی احمد تربرنډي او ترموتړ پوري چی د دوي په انتظار کی و لارښوونه وکړه. په دي توگه د سولی د منځ ته راوړلو لومړي اجلاس پاي ته ورسید.

په هغه شپه علی احمد امان الله خان ته ولیکل چی پکی یی له قیوداتو څخه شکایت کړي و او مافی وایسرا ته ولیکل: «علی احمدد یوخوشی مغرور او ځان ستایونکی انسان دي.»

د بلی ورځی مجلس په نیک مرغی سره پیل شو ځکه چی علی احمد په خپل کور کی یو یاد داشت پیدا کړ چی په تیر اجلاس کی یی ترتیب کړي و. اما گرانت ژر وویل: «موږ زیات معلومات په لاس کی لرو چی افغان حکومت لاد مخه پر بلشویکانو باندي نازیدلی دي.»

علی احمد وویل: «هغوي پر موږ باندي نازیدل.»

«ممکن دا حقیقت ولري. بلشویکانو دحمایی او ملاتړ وعدي کړي دي...»

علی احمد چی د «ښایی» د لغت د استعمال په واسطه خپه شوي و مداخله وکړه اوویی ویل: «زه به تا سو ته حقیقت ووایم. دا زما هدف دي چی تل حق بین واوسم.»

په دي وخت کی سر شمس شاوویل: «هند له بلشویکانو څخه چی دلوړ تیټ ښه او بدتوپیر

نه کوي کرکه کوي. په هند کی مذهبی فرقی ډیري دي. افغانان دیوي شیبی له پاره غلی شول برتانویان مجبور وو چی پر دغو اظهاراتو باندي وروسته تبصره وکړي نو خپلو ځانونو ته داسی تسل ورکړل: «دلارو په بند ولوکی موږ خورا زیاته خطرناکه وسله په لاس لرو.»

علی احمد خپلی خبري داسی پیل کوي: «ته به بیا پر افغانستان باندي فشار واچوي مگر گرانت د مخه تردي چی کوم خطر منځ ته راووړي دهغه په خبرو کی مداخله وکړه او ژربی خبري د امیر حبیب الله بی طرفی او له برتانیی سره دهغه د مرستی په لور واوښتی او په دي ترڅ کی داخبري هم وشوي برتانیه امیر حبیب الله ته دمالی مرستو په ورکولو کی ناکامه شوه. «که چیري مرحوم امیر ژغورل شوي واي زه گومان نه کوم د دغسی خبرو د کولو له پاره زمینه برابره شواي واي چی نن بی موږ دلته کوو.»

علی احمد په قهر شو اوویی ویل: «د امیر حبیب الله ظالمانو ستراتیژي د اولس احساسات شنډ کړل. کله چی هغه مړ شو او اوسنی پاچا دهغه پرځاي کیناست خلکو ته داحساساتو د ځرگند ولوموقع په لاس ورغله.»

که چیري هغه یونیم کال نور ژوندي پاته شوي واي نو په افغانستان کی به یو سخت انقلاب شوي واي. د افغانستان اوسنی پاچا دملت د نظریو پیروي کوي. دیوان نرنجنداس یو داخلی ډگروال و او د دربار څلور سوه محمد زایی او بارکزاي افسران دده ترلاس لاندي دي. دملیتونو د متحدکولو په خاطر اختلافات له منځه وړل شوي دي ځود بلشویکانو او یاد هغوي د نفرو له پاره دا امکانات وجود ونه لري چی د دوي اتحاد له منځه یوسی. له افغانستان سره د بالشویکانو د دوستی وکولو گتی به په دي کی وي چی دوي به افغانستان ځخه وغواړي چی دماوراي کسپین او منځنی آسیا مسلمانان دي ته وهڅوي چی د بلشویکانو قوانین ومنی او هغوي به دمسلمانانو د خاوري یوه برخه افغانستان ته ورکړي چی دافغانستان د دوستی ساتندوي وي.

«اوس دا ستاسو کار دي چی تصمیم ونیسی چی له موږ سره دوستی کوي یا موږ بلشویکانو ته شري. موږ ټول د دي لیوال یو چی دوستان وا وسو. زه ډیر خوښ یم چی تاماته نظر راکړي دي.»

په داسی حال کی چی علی احمد لیدل چی د برتانیی سکرتریا ددانیت اخلی خپلی خبري بی داسی پاي ته ورسولی: «زه هیله کوم چی تاسو ماته ددي تبصري لنډیز راکړي.» گرانت د حبیب الله د مقبري په ټپارد کیدلوباندي د خپلی خوا شینی په ځرگندولوسره موضوع بدله کړه.

هغه دا عبارت پکی زیات کړ: «دا به هغه شی وي چی په حقیقت کی پیښبه شوه- «او ډگروال غلام محمد په خبرو کی مداخله وکړه چی «موږ مسلمانان یو او دروغ نه وایو. »

گرانت وویل: «زه ستا په خبرو کی شک نه لرم مگر جنگ جنگ دي او پیښبه به پکی صورت ونیسی. »

غلام محمد وویل: «تاسو باید له ژوندیو خلکو سره جنگ وکړي نه له هغو سره چی مړه دي. »

«دا یو تصادف و. کله چی له توپک څخه پر یو ښار باندي چی پنځه میله لیري وي ډزي وشی موږ په یقینی توگه نه پوهیږو چی کوم ځاي به وولی. الوتکی هم عین عمل اجرا کوي. »

علی احمد وویل: «دا معمول نه ده چی الوتکی هغو هیواد ونوته واستولی شی چی دهغوي نه وي. دا کار لندن ته د جرمنانو د زپلین (۱) د الوتکو استولو ته ورته ده.

«په هغی قضیی باندي برتانویانو کوم شکایت ونه کړ خو زپلین الوتکه یی راکوزه کړه او هغوي نوري ونه لیږلی. »

علی احمد وویل: «که موږ الوتکی درلود لاي موږ به هم برتانیوي الوتکی را کوزي کړي واي. »

گرانت چی حکومت یی په دي تازه گیو کی خوښی کوله چی قضیه داسی نه ده وویل:

«زه به خوښ شم چی داسی حالتونه ووینم چی پکی ټول ملتونه په مساوي توگه مسلح وي. کوم هیواد چی د یره اعلی اسلحه لري هڅه کوي چی تر نورو ځان بهترو گنی. »

«برتانویانو به همدا شکایتونه کول چی جرمنان پر کلیسا گانو او خلکو باندي بمونه غورځولی دي. »

«دا یو پروپاگند و. موږ تل هڅه کوو چی ثابته کړو چی زموږ دښمن د بر وران کارونه کوي. داکار د دي باعث گرځی چی زموږ خپل خلک ښه وجنگیږي. »

علی احمد وویل: «برتانویانو د جرمنانو عملونه نړي ته په جاپ ورسول. »

«بلی، دا کار زموږ د خپلو خلکو په پارولو کی مرسته وکړه. »

علی احمد چغه وکړه: «تاسو دافغانانو حوصلی ته وگوري. موږ د برتانیویانو اعمال نړیوالو ته نه خپروو خو یوازي هیأتان ورباندي خبروو. »

«داستاسو صفت دي او په دوستی کی به مرسته وکړي. »

د غونډي په پاي کی علی احمد وویل چی هغه شرطونه به واورم چی برتانویان چمتو دي

هغه وړاندي کړي. «او که موږ سره دوستان شو زه به له سرهیملټون ګرانت سره ځولی بدلی کړم اولاسونه سره ورکړو. »

«زه به ډیر خوښ شم. »

«که چیري نتیجه معکوسه وي زه به تاسو ته یو سلام واچوم خو لاسونه به سره ورنه کړو. »

د جولاي په ۲۹ نیټه هغوي تولوبیا سره ولیدل او ګرانت وروسته له هغه چی د تاوان پیشنهاد یی وړاندي کړ ځکه چی افغانستان یی په ورکولو قادر نه و یوه پیشنهاد شوي معاهده یی ولوستله چی افغانانو پکی د جګړي مسئولیت منلی و پښیماني ځرګنده کړه او د برتانویانو د سرحد پر نښي اینښودلو او د حبیب الله دوختوو د پیښو پر ضبط کولوباندي موافقه وکړه.

د افغانستان پر بهرنیو اړیکو کی د برتانویانو د کنترول په باره کی کومه یاد ونه ونه شوه. ګرانت خپلو آمرینو ته تلګرام کړي وچی ددي کارنه ډاډه کیدل به امکان ونه لري.

علی احمد د ترون له منلو څخه سرو غړاوه اوویی ویل: «افغانستان ځان آزاد کړي دی نو پروا نه لري چی د برتانیی حکومت یی په رسمیت پیژنی که نه. »

ورځ په دوه جانبه نفرت سره ختمیدله. علی احمد وویل: «موږ په ځانګړي توګه سل میله حرکت کړي دي. »

مګر برتانویانو له غونډي وروسته خلکو ته د کنفرانس په کوټه کی چاي ورکړ. علی احمد څوپیالی چاي وڅښلی اولږ څه کیک یی هم وخوړ. وروسته یی وویل:

«که ته وغواړي نوزه به پولیس په خپله خوښه پراوږ وکښینوم او بهر وګرځم. » هغه داسی تشریحات ورکړل:

«که تاسو د یودوست په توګه په مهربانی سره له ما سره چلند وکړي نوهر څه چی تاسو وغواړي پر ما کولی شی. »

علی احمد دري ورځی د خپلی هغو ضروري موضوع په باره کی خبري وکړي چی له ده سره دي باید د یو دوست په صفت چلند وشی. په دي وخت کی هغه برتانویان هم چی د چایو په خاطر نوم کړي شوي وو هغه ته غوږ شول.

ګرانت وایسرا ته داسی مخابره وکړه: «افغانان د فرانسویانو په شان توند مزاجه دي د چاتیري او سپکاوي نه منی د طاوس په شان تل په ځان غره دي او ددي شیانو سره د ملګرتیا او ښه سلوک په مقابل کی دومره ښه متقابل عمل کوي چی سړي ورته زیات حیرانیږي. »

وروسته ګرانت داسې لیکلو ته مجبور شو: «کله چې کوم سړی له یو شمیر هغو کسانو سره مخامخ شي چې ښې جامې یې په تن کې وي نسبتاً ښه قواره ولري نو په مشکل سره به داسې فکر وکړي چې دا د ول خلک به د تمدن څخه بې بهره دي په رښتیا سره وحشي دي له کنترول څخه وتلي او طفلانه کړه وړه لري. کومه موضوع چې په دوي پورې ارتباط ولري د هغه ځواب د ماشومانو په شان ورکوي. د دې شیانو سره سره هغوی ډیره عالي روحیه لري آزا او په خپل سر دي او د هغو ماشومانو په شان دي چې په سختو خبرو او تهدیدونو باندې چورت نه وهي هغوي به له خپلو ډیرو ارزښتمنو شیانو ځینې تیرشي که چیري د کومې موضوع په باره کې ورته په نرمه لهجه او ښو الفاظو سره وویل شي.»

برتانویانو په خپل وې در ک سره په هغه ورځ باندې پوه شول چې د یوه افغان له پاره دا یو په زړه پورې کار دی چې په خپل کور کې میلمه پال و اوسي. نوځلورمه غونډه په هغه کور کې جوړه شوه چې په دغه وخت کې د علي احمد و. «ننني خبري اترې به په ډیره دوستانه لهجه تر سره شي ځکه چې برتانوي هیأت زما د ملاقات له پاره راغلی دی.»

وروسته علي احمد د خپل تړون هغه کاپي یې را واخستله چې برتانویانو پیشنهاد کړې و او تجویز یې ورکړی وچې: «د امیر د تجاوز بې دلیله او وچ په وچ» خبرې دي په «د دوحکومتونو تر منځ د جګړې په خاطر» باندې واړ ولې شي او «د افغانستان د امیر» عبارت دې د «افغان حکومت» په عبارت واړول شي او هم دا مطلب چې: «امیر په تیرو پېښو باندې پښېمان دی» په داسې مطلب واړول شي چې ورڅخه استنباط شي چې «افغان ولس ته د (پښیماني) د لغت استعمالول تر یوې اندازې پورې بې خونده ښکاري.»

علي احمد دا خبره وکړه چې ټولې هغه قبیلې چې په هند کې دي او دافغان په نوم یادیږي افغانستان ته دي وګرځولې شي او د برتانیې حکومت دې دهغو پېښو بوه نیمه برخه افغانستان ته ورکړي چې په کال کې پر د غو قبیلو باندې لګولې. «په دې توګه به افغانستان د برتانیې د حکومت په پرتله په ښه توګه شکمنې قبیلې تر خپلې اداري لاندې راولي.

کله چې ګرانت دغه خبرې وابسراته وکړې هغه مجبور شو چې ووایې علي احمد په رښتیا سره دغه شی غوښت.

ګرانت وویل: «سرحد به د سرحدي کمیسیون له خوا وټاکل شي.» دا هغه جبران دی چې

برتانویان یې د دې جنګ په خاطر غوښتنه کوي. دا کومه ګټه نه ده. دا مازې د دوي د پت دساتلو په خاطر دي. »

علي احمد وویل: «زه اوس دې ته چمتو یم چې ووایم سرحدي کرښه دې باید له کوم ځاي څخه تیره شي او یوافغاني هیأت کولی شي د سرحد د ټاکنې په خاطر هلته لاړشي. »

ګرانت ورته وویل: «د برتانیې حکومت او عوام په اوس وخت کې د ډیر زیات خپګانې په احساس سره ځوریږي او زما خپل خلک به زما له پاره دانا ممکن وګوځوي چې سوله منځ ته را ولم. »

ګرانت وروسته وویل: «ما د دوستۍ یو پیشنهاد په شپږو میاشتو کې وړاندې کړ. »

علي احمد پوښتنه وکړه: «تا سویې د څه شي په خاطر د شپږو میاشتو له پاره ځنډوئ؟ »

«په دې خاطر چې د برتانیې دعوامو په مخ باندې به یوه ورځ په سو وهل شوي نه وي او بله ورځ یې لاس په خپل جیب کې نه ایشتل شوي نه وي چې پیسې دې ورکړي. »

علي احمد وویل چې غواړم له وایسرا سره وګورم. ګرات دهغه دا خبره رد کړه. «ما په دې موضوع باندې پوره واک تر لاسه کړي دي او زه غواړم خپلې دندې سرته ورسوم. وایسرا ته ستاسو د ورتګ امکانات نشته. »

په دې توګه ګرانت علي احمد ته دغلطو ستراتیژیو په ویلو پیل وکړ او وویل پرته له دې چې خپلو امرینو ته مراجعه وکړم، ټولې فیصلې زه په خپله کوم. هغه غوښتل چې افغانانو ته د تاکتیکونو دځنډ ولو په برخه کې کومه مفکوره ورکړي.

علي احمد وویل: «خیر سوله منځ ته نه شي راتلای. »

«زه ډیر افسوس کوم. »

زما مقصد دادې چې زه هم باید ځینې شیان پر مخ بوزم او تاسو هم. »

«امکان نه لري. یوه بله خبره، موږ فیصله کړې ده چې داګست ۱٦ هغه نیټه ده چې معاهده پکې باید قبول شي. که ته وغواړې چې معاهده رده کړې زه باورلرم چې تاسو به د امکان په صورت کې ما ژرخبر کړې زه به ستاسو لپاره اورګاډې برابر کړم. »

علي احمد وویل: «موږ کولی شو په پښو لاړ شو. »

د اګست په ٦ نیټه بله غونډه د ګرانت په داسې خبرو باندې پیل شو: «هر څه چې ستاسو جلالتماب ووایې زه به خوښ شم چې هغه واورم. »

«زه تاسو ته انتظار لرم چې یو څه ووایې. »

«زه فقط غواړم پوه شم چې تاسو معاهده قبوله کړي ده که نه.»

«علی احمد د یوبیل مکتوب او یا په معاهده کی د یوي فقري د ذکر کولو غوښتنه وکړه چې یکی: د افغانستان د بهرنیوچارو د اړیکو د آزادي موضوع باید په خاص ډول ذکر شی.

د دغسی یو مکتوب د لیکو اجازه دوي ورځی د مخه گرانت له وایسرا څخه ترلاسه کړي وه. وایسرا لندن ته تلگرام وکړ او د ځواب انتظار یی ویست. له لندن څخه هیڅ ځواب را نه غی نو یی گرانت ته تلگرام وکړ چی که د معاهدي په ځنډولو کې کوم خطر موجود دي او یا که داسی خطر متوجه وي چی معاهده دي کابل ته راجع شی چی هلته د هرڅه د پیښید و امکان شته نو هغه معاهده فوري لاسلیک کړي. د هغی ورځی په وروستیو کی لند تصویب وکړ. نو گرانت چی د قبایلو له نوولوتیما ریو څخه تازه خبر شوي و یو مکتوب یی مخ کی له مخکی ترتیب کړي وچی علي احمد پوښتنه وکړه چی : «زه خپلو خلکو او خپلی کابینی ته څه ووایم هغوي به ووایی: (ته هند ته لاړي. څه دي له ځانه سره راوړي دي) هغوي به پرما پوري وخاندي.»

علی احمد مکتوب ته وکتل اوویی ویل: «موږ د غه مکتوب ته ضرورت نه لرو ځکه چی موږ د جگړي له نیتی څخه آزاد وو.»

«زه منم چی افغانان د غه مکتوب ته اړتیا نه لري مگر تا سو د هغه غوښتنه کړي وه.»

مافقط غوښتل چی خپلو خلکو ته یی وښیم... زه به اوس لاړشم او نن شپه یاسبا سهار به احوال در کړم.»

کله چه گرانت وروسته مجبور شود مکتوب په ارتباط ځان تبرئه کړي هغه داسی وویل: «وخت یو مهم شی و. موږ یوي بحرانی نقطی ته ورسید وچی هلته افغانان چی د خپلی ازادي او د خپلو بهرنیو اړیکو د ازادي په مورد کی زموږ پر تصمیمونو باندي شکمن دي دي ته تیار ووچی معاهده لاسلیک کړي که چیري هغه تضمینونه چی دوی غوښتل ورته ورکړاي شوي واي. که چیري موږ په دي موضوع باندي متردد واي د افغانانو بد گومانی به په پوره توگه پورته شوي واي او هغوي به یاد معاهدي له لاسلیک څخه ډډه کړي واي او د خبرو اترو لړي به یی شکولی واي او یا به یی تینگار کړي وي چی موضوع دي کابل ته حواله شی. کابل ته د موضوع حواله ورکول په داسی حساس وخت کی چی په سرحد کی ډیره زیاته خرپړ تیا موجوده ده ځنډ به یی منځ ته راوړي واي او په واقعیت کی په پیوار (peiwar) کی عملی مخاصمتونه مخ په زیاتیدو او په هره شیبه کی د پیښود منځ ته راتلو امکانات موجود وچی دي کار به سوله نا

ممکنه کړي واي بر سيره پردي دا هم يقيني نه ده چې د معاهدي هر کلي به په کابل کی ځنګه وشي. ځکه نو موږ په دي فکر کی شو چې دا ډيره مهمه ده څومره ژرچې کولی شو ترون بايد لاسليک کړو.»

په دي وخت کی هغه علي احمد ته وويل: «زه نه غواړم چې خبره دري يا څلورو ورځو ته پريږدم.»

«ته له خپلولوړو مقاماتو سره تلګرافي ارتباط لري او ستاسو خلک تعليم يافته دي. زه تلګراف هم نه لرم او زموږ خلک تعليم يافته هم نه دي. زه حتی له تاسو نه هم ډير شوقمن يم چې يوي فيصلي ته سره ورسيږو.»

وروسته علي احمد په غوصه شو چې په معاهده کی امان الله خان د «اعليحضرت» په توګه معرفي شوي نه و.

ګرانت وويل: «داکار يوازي د جورج پاچا په واک کی دي.»

علي احمد وويل: «که چيري افغانان جورج پاچا د (عليحضرت) د کلمي په استعمال سره مخاطب نه کړي داکار به د برتانيي د حکومت خوښ نه شي.»

مافي (Maffey) په چټکی سره غږوکړ: «هو خوښ به نه شي!» مګر ګرانت وويل: «دا به په جدي توګه موږ ته تکليف رانه کړي.»

علي احمد وويل: «دافقط د مخاطب ګرځولو عصري شکل دي.»

«په دي باندي دي موافقه صورت ونيسي.»

«د افغانستان واکمن دي ته اړتيا نه احساسوي چې د برتانيي د حکومت له خوا دي ورته اعليحضرت وويل شي.»

«په هغه ډول چې موږ د دوستی په هڅه کی يو...»

«موږ دوستي نه ايجاد وو سوله منځ ته راولو. آيا زه د امپراتور پاچا څخه پوښتنه کولی شم هغه سړي دي په رسميت وپيژني چې له موږ سره په جنګ کی دي.»

علي احمد وويل: «امير له برتانويانو سره جنګ کوي مګر هغه داخپلي پاچاهي څخه محروم شوي نه دي.»

برتانوياتو ته د ډيروکلونو له پاره دا مهم برېښيد له چې د افغانستان د حکومت پر عوض چې معاهده بې زغمله د افغانستان له اميرانو سره چې فنا کيدونکي وو معاهدي وکړي.

گرانټ چې د دې پرنسيپ او د پاچا د ټولنيز و فعاليتونو تر منځ له مخالفت سره مخامخ ويو عاجل تصميم يې ونيو.

« که مور د تړون په سرکې د امير د نوم په عوض کې د ( افغانستان د حکومت ) نوم داخل کړو دا به د توهين ټول ذهنيت له منځه يوسي. »

علي احمد وويل: « زه تاسو ته يوه دوستانه مشوره درکوم چې په راتلونکې کې کله چې وايسرا امير ته ليک استوي د (اعليحضرت) کلمه دې استعمال کړي. دا کوم سخت کار ندې. »

گرانټ وويل: « دا سخت کار دې تاسو جورج پاچا نه پيژنې. »

د اگست په ۸ نيټه گرانټ او علي احمد دواړو « د افغانستان د خپلواک او د برتانيې د نامې حکومت ترمنځ » معاهده لاسليک کړه چې پکې داسې راغلي وو:

« د دې تړون د لاسليک له نيټې څخه سوله تامين ده. »

« د هغو شرايطو له نظره چې اوسنی جگړه يې منع ته راوړې ده... د دې په خاطر چې خپله نارضايتې ښودلې وي هغه امتيازات بيرته اخلي چې پخواني اميران ورباندې خوښ وو او هغه له هند څخه افغانستان ته د جنگي مهماتو او وسلو راوړل و. برسيره پر دې د مرحوم امير د باقيداري مرستې ضبطې شوي دي او اوسنی امير ته هيڅ مرستې نه ورکول کيږي. په عين وخت کې د برتانيې حکومت د پخواني دوستی دبيا منځ ته راوړلو هيله من دې... په دې شرط سره چې هغوي دا ضمانت وکړي چې افغان حکومت په خپله برخه کې د برتانيې له حکومت سره د بيا دوستی کولو هيله من وي. په دې توگه د برتانيې حکومت حاضر دې بحث او پريکړه وکړي چې د دواړو حکومتونو د ټولو عواموگټې پکې خوندي وي او په پوره برياليتوب سره بيا دوستي ټينگه کړي په دې شرط سره چې افغان حکومت داشې په وينا او عمل کې په اثبات ورسوي. » په تړون کې دهند او افغان ترمنځ دهغې سرحدي مشکوکې کرښې ذکر هم شوی وچې د برتانيې د يو کميسيون له خوا ايښودلې شوي وه او دهغه پريکړې به پر افغانستان تحميلې وې.

همدا راز علي احمد ته يو مکتوب هم ضميمه وچې پکې را ورل شوي و: « تا سوله ما څخه د ځينو زياتو ډ ډگيرنو په باب پوښتنه وکړه چې د سولې معاهده چې د برتانيې حکومت يې اوس وړاندې کړي هيڅ هغه شې نه لري چې د افغانستان په بهرنې او کورنې بشپړې آزادې کې مداخله وي. ملگريه که تاسو معاهده په غور سره ولولې تاسو به وويني چې په هغې کې د

افغانستان د آزادي پر موضوع باندي کومه مداخله نشته. تاسو راته ويلی دي چی افغان حکومت د هغه حساب نوي کول غواړي په کوم سره چی مرحوم امير موافقه وکړه چی د خپلو بهرنيو اړيکو په ارتباط د برتانيې د حکومت مشوري په ښکاره توګه تعقيب کړي. په دي توګه ما دا موضوع جدي ونه نيوله او په تړون کی هم د دي کومه يادونه نه ده شوي. له دي کبله نو موږي معاهده او دا مکتوب افغانستان په خپلو کورنيو او بهرنيو چارو کی په رسمي توګه آزاد پريښي دي. برسيره پردي دا جنګ ټول تړونونه فسخ کړي دي. »

له لاسليک کولو وروسته ګرانت له علي احمد څخه پوښتنه وکړه چی په ۱۹۰۵ کال کی د معاهدي د لاسليک کولو په وخت کی حاضرو که نه وچی د امير حبيب الله او سر لوئيس ډين (Sir Louis Dame) په مشري د پوهيأت ترمنځ شوي و. علي احمد وويل چی بلی زه حاضر وم. ګرانت په ياد راوړل په هغه موقع کی پر کاغذ باندي يوه لکه ليدل شوي وه او سر لوئيس ډين د غه شعر را نقل کړي و: «زبه د خپلی محبوبی دمخ د خال په بدل کی سمرقند او بخارا ورکړم. »

علي احمد وويل زما د غه شی په ياد دي خو يو شرط ورسره ضميمه و. ژباړونکی تشريح ورکړه چی د شعر لومړي بند داسی دي: « که چيري زما معشوقه زما زړه په لاس راوړي. » دا پيشکش د هغه د عشق په بريالی کيدلو کی يو شرطيه پيشکش و.

ګرانت وويل: « زه غواړم د سمرقند او بخارا دا تحفه ورته وړاندي کړم خو نه پوهيږم چی بلشويکان به څه ووايی. »

علي احمد به په هند ی تم کيده خو ګرانت يی د ژر تلو باعث وګرځيد.

په کابل کی د د غه خبر هر کلی د نهو توپونو په آوازونو سره وشو.

د تنګو بازارنو تشو دوکانونو داګست په ۱۳ نيټه هيڅ کوم مشتري نه درلود. داځکه چی د کابل ټول خلک د معاهدي د پيغام را وړ ونکود هرکلی کولو له پاره خيابانونو ته وتلی وو. د عسکري موزيک ډلی دهيلی اوبري موزيک غږاوه.

کله چی علي احمد بيرته کابل ته راستون شو د تالارد کونسل د غړو هر کلی هغو مره تود نه و لکه چی د بازارونو و. محمود طرزي ورته وويل چی داستا وظيفه نه وه چی دافغان خاوره دي د نور و په اختيار کی ورکړه او برتانويانو ته دي اجازه ورکړه چی سرحد وټاکی او هم دا چی د يوي کلمي « خپلواکی » په خاطر دومره تراغيزي لاندي تللی وي چی نوهر څه دي له ياده وتلی

و. نادر ددې په خاطر په غصه و چې معاهده دهغو وزیر و خلکوله پاره دعمومي بخښنې پیغام نه درلود چې دبرتانیې له حکومت څخه کړکه کوله او د افغانستان په خاطر جنګیدل نادر د قبایلو د تضمین او ډاډ په وجه خپل شهرت له لاسه ورکړي و.

په خپله امان الله فکر وکړ چې افغانانو ښه برخورد کړي دي. بیا هم پالیسي ایجابولو چې هیأت دې باید لږ ترلږه سرزنش شي نوعلی احمد یې په کورکې ترڅارنې لاندې ونیو.

وروسته کورنۍ عواطف چې په افغانستان کې یوه اغیزمنه قوه ده یوه زړه سوانده لاره برابره کړه او هغه یې په کور کې دڅارنې له قیودا توڅخه خلاص کړ. علي احمد وغوښتل چې دامان الله د سکه خویندو له جملې څخه یوه یې چې سراج البنات نومیده ځان ته نکاح کړي او علیاحضرتې غوښتله ورازه یې زوم شي. دغه واده د زوم ( علي احمد؟ په خوشې کولوکې یو دلیل شو.

دغه کیسه په ټول کابل کې دعلیا حضرتې د یوبل نفوذ دمثال په توګه کیدله. په حقیقت کې دغه ضمني پیښه دهغې د نفوذ کمزوري وښودله. د امان الله له پاره جنګ یوه معامله وه. هغه د جواري لوبه کړي وه او وېې ګټله. دهغې ورځې دمخه هیڅ کوم تدبیر به د ده په خپل قضاوت باندې دروند والی نه کاوه.

د اګست د ۲۰ نیټې په ماښام، د عیدګاه مسجد په آزاده فضا کې په هغه محل کې چې دامیرې پګړې دده پرسر باندې اېښول شوې وه، استقلال یې اعلان کړي و، او خپل خلک یې جهاد ته دعوت کړي وو امان الله پر منبر باندې وخوت. دهغه په وړاندې پنځوس زره تنه افغانان له بیرغونو سره را ټول شوي ووچې پکې د قرآن شریف آیاتونه او د «ژوندي دې وي زموږ امیر» شعارونه لیکل شوي وو.

امان الله خان : «اې زما وياړلې او زړه وره اولسه! نن مې تاسو په دې ځاى کې ددې له پاره راټول کړي ياست چې دهغه شي زيري درکړم چې ستاسو د برد خوښيده او هغه هيله موږ درلوده هغه ستاسو د هيواد بشپړه خپلواکي ده چې له يو پردي هيواد بر بانيي... څخه تر لاسه شوه. له دې وروسته تاسو او ستاسو هيواد په سياسي لحاظ پوره خپلواک ياست چې له هر هيواد سره خبري وکړي...

«ستاسو خپله وينه تويونه او قرباني دغه له خوښي ډکه ورځ چې د ملي خپلواکي ورځ ده زموږ په برخه کړي هيڅ بل کوم يو هيواد موږ ته داشي نه دي راکړي.»

طرزي وروسته وويل: «کوم شی چې اوس دوسلې په استعمال سره لاس ته راغلی دي په ور و لارو چارو سره دهغه د لاس ته راوړلو هيله موجوده وه.» د امان الله پلار هڅه کړي وه چې په يوه تينګه کړنلاره سره کاروکړي خوبريالی نه شو. امان الله ميدان دجګړي په زور وګاټه نود ده حق و چې له هغه وخت څخه ځان انقلابی وګڼي.»

کــه څــه هم بـراوين لاتـر اوســه له هرات څـخـه د راتلوپه لاره کی وله روسی ترکســتــان څخـه يو مسلمـان سـړي چې حسين نوميـده کابل تـه راغلی و چې د افـواهـا تـو له مخی هغه د يوهيـأت په مشـري د اميـر حبـيب الله دمـاتم خاطر راغلی و. په هر حـال هغـه يودول رسـمی موقف لرونکی و او امـان الله په دي مراسموکی ورڅخه داسی کار واخست چې دروسيی نماينده ګی وکړي.

حسين د امـان الله په يوه خوا او سيف الله د انګليس نماينده چې دري ورحی دمخه خوشی کړي شوي و دهغه په بله خوا کی ولاړو. امـان الله وويل: «نن دلته د روسيی استازي د انګليس له استازي سره څنګ په څنګ ولاړ دي چې داکار زمونږ دخپلواکی عملی ثبوت دي.»

علی احـمـد دغـه دو، تنه په رسـمی توګـه امـان الله ته ورمـعـرفی کړل. امـان الله چې سيف الله تـه يې لاس ورکـړ وويل: «سـتـاسـو د برتانيـی حکومت خـپل د دوسـتـی حق ادا، او هغـه يې سرته ورساوه.» ورستـه هغه حسيـن تـه لاس ورکړ او وويل: «ستاسو حکومت لومړي حکومت و چې زمونږ دخپلواکی او سياسی آزادي په پيژند لوکی يې لومړي ګام واخست.»

وروسـتـه هغـه له اولس څخـه غـوښتنه وکړه چې د علم پوهی ښوونی او روزنی په خپرولوکی له ده سره مرسـتـه وکړي او ورته يې وويل: «تر اوسه پوري تـاسو د يوه سړي تر ظالمانه اداري او حکمروايی لاندي ژوند کاوه خواوس تاسو خپلواک ياست.»

د اګسـت په ۱۳ نيتيه مـسکو دمطبـوعاتو له لاري د معـاهدي له لاسليک څخـه خبر شوي و او تاشکند ته يې امرور کړي وچې: «يی له کوم ځنډ څخه يې تصديق کړه.»

د غه تړون په لندن کی وارخطايی پيدا کړه ډيرو انګليسانو ته داسی ښکاريده چې دهغوي سيـاستمدارانو داسی يوشی له لاسه ورکړي دي چې له خلکو څخه يې غوښتـل دهغه له پاره دوي خپـل ځانونه قربان کړي: هغـه د افغـانـستان کنترول و. لارد سد نهام (Lord Sydenham) په پارلمان کی په ناپوهی سره د کرزن دغـه مطلب منعکـس کړ «کوم شی چې پرما باندي خورا زياته بده اغـيـزه کړي ده هغـه د فـاتحيـنو هغـه سلوک دي چې ښکاري تل د افغـانانو په واسطه تر سره

شوي وي. » مونتيګ صدراعظم ته يو مکتوب وليکه چي پې چلمسفورد وايسرا په توګه پيشنهاد شوي و خوتصميم يې ونيوچې صادر يې نه کړي. (۷)

دهند حکومت د انګلستان دحکومت په پرتله ددي کار له نتيجې څخه ډير خوښ و.

ګرانت سر ډينزي بري (Sir Denys Bray) ته چې دهند دبهرنيو چارو د سکرتر په توګه دده پرځاي مقرر شوي وو ليکل: « نژدي وه چې بدلون منځ ته راشي دا دعصر له روحيې سره سمون لري. » د افغان او هند په سرحد کې د برتانيې د امپراتوري د نور و بر خو څخه د مخه د جنګ نه د وروسته دوري وخت را رسيدلي و.

« دمخه زمونږ د کرنلاري لارښوونه دروسيې ديوي متجاوزي امپراتوري له خوا چې دهند په دروازو کې يې دسيسې جوړولي کيدله. هغه امپراتوري توتې شوي ده او دهغه پرځاي مونږ بلشويکي ګډوډي لرو. زه فکر کوم داسې شي وجود نه لري چې په افغانستان کې مونږ د بلشويکي اغزي څخه وويروي مګر په هغه صورت ي چې دحکومت ټولي دستګاه وي ګډي وډي شي او بالشويزم ته موقع په لاس ورشي چې لکه د نورو ځايونو په شان له دي ګډوډي څخه بهره بر داري وکړي. » ګرانت لا تر اوسه پوري دعلي احمدي تبصري ته په فکر کې وچې ويلي و: « که ته مهرباني وکړي او له ما سره ديو دوست په توګه چلند وکړي نوهرڅه چې ته وغواړي پر ما کولي شي. »

ګرانت وويل: « افغان حکومت ته آزادي يوه نوي بازيچه ده اودوي دهغې په باره کې ډير حسود او هيجاني دي او هغوي ته په دي موضوع باندي د اختيار ورکولو په هلکه مونږ بايد هوښيار و اوسو. ورسته که مونږ دهغوي د آزادي اداره په ښه توګه وکړو نوکله چې دا بازيچه توټې توټې شي هغوي به دهغې دسمولو په خاطر مونږ ته مراجعه وکړي. هغوي د بهرني ازادي سيوري غواړي او په واقعي توګه دهغې دمفهوم په باره کې په فکر کې نه دي. »

خو عسکري قوماندان سر سي. سي. منرو (Sir C. C. Mumro) وويل: « له امير سره زمونږ سياسي اړيکې بايد په ژوره توګه بدلون ومومي. مونږد خپلي خوا د سرحدي برخي په باره کې سترګې ترلي پاته کيداي نه شو. »

د برتانويانو خيالونو ته د تحقق ورکولو په خاطر په پيښور کې د جې، اچ، ادم (J. H. Adam) په هدايت يوه اداره جوړه شوه چې د افغانستان احوال را ټول او هغه ته انسجام

ورکړي. داسړي چې د پيښور د مرکزي استخباراتي اداري نفرو د افغاني استخباراتي نماينده ګۍ مشر مقرر شو.

د افغاني چارو د جاسوسی د مشر په توګه آدم خپل لومړني راپور له هغه مسافر څخه ترلاسه کړ چې د کوهاټ په دره کی يې يولوی بيرغ ليدلی وچې د مياشتی او ستوري نښه او دامان الله نوم پکی و. داشی په هغه ځای کی د معاهدي د لاسليک څخه يوه ورځ وروسته څرګند شو.

که چيري روس کيپل له هغی لاري څخه تير شوي واي نودي بيرغ به هغه يوه جلسه ور په يادوله د جون د مياشتی په څلورمه نيټه يې وايسر ته ليکی وه او هغه داسی وه:

« امان الله داسی اور بل کړي دي چې په زيات زحمت سره به وکړاي شو هغه مړ کړو.»

# اووم فصل

## د ۱۹۱۹ کال د اگست له ۲۱ څخه

## د ۱۹۲۰ کال د جولاي تر ۲۹ پوري

سیف الله خان د برتانیی نماینده هر ما ښام په یوه مخصوصه دولتی بگی کی گرځیده. دا بگی د امریکی ساخت و او وکتوریا نومیده امان الله خان دغه بگی د افغان او انگلیس د معاهدي د اعلام په ورځ بهرته را ایستلی وه او دا پیغام یی هم ورسره لیږلی وچی ورځینی چکر به د سیف الله ناروغی هم ښه کړي چی د گرفتاري په وخت کی ورته پیدا شوي وه.

سیف الله خان له دي چکر څخه ریښتیانی خوند نه اخست، ځکه چی ورسره کسانو به تل د غه بگی په همدغه یو یابو پسی تړله. دا یو کوچنی او کمزوري یابوو چی د دغی مخصوص گاډي د کشولو توان یی نه درلود. کله به یوي خوا او کله به هم بلی خوا کږیده چی دا وضعه د گاډي وان او هم د سپاره د ارامی سبب گرځیدله.

د اگست په ۲٤ نیټه چی په کابل کی د راپیدا کیدلو ایله څلورمه ورځ وه، یابو تر دي حده پوري نارامه شو، چی سیف الله خان، له گاډي څخه ښکسته شو او گاډي وان ته یی وویل چی یا بو دي بیرته طبیلی ته بوځه. هغه د نماینده گی په لار روان شو او تشه گاډي او نا آرامه یابو وریسی. گاډي وان له شا نه وړاندي غږوکړ، چی یابو ښه شوه صاحب کولی شی بیا سپور شی. سیف الله خان په ورین تندي ورته وویل: زه خوش یم په پښو لاړ شم، او گاډي له ستر گو پناه شوه.

وروسته په دې سرک باندې یوه بله ګاډې راغله. دا یوه دولتی څلور ارابه ییزه ګاډې وه چې دسیف الله خان له وکتوریا څخه ډیره ښه وه او د دو وقوي اسانو په واسطه کش کیدله چې په قوت کې سره مساوي معلوميدل او یوه ډله افغاني بدرګه هم ورپسې روانه وه.

په دې ګاډي کې د روسيې نوي استازي ښاغلي الکساندر براوین سپورو. هغه ته اجازه ورکړې شوې وه چې داګست په ۲۱ کابل ته داخل شي چې ددغي نيتې نه یوه ورځ دمخه دسولې په مراسمو کې د روسيې نماینده ګي بل چاکړې وه.

براوین په ډير ادب سره کوز شو او سیف الله خان هم همدغه عمل اجرا کړ که څه هم دبرتانيې دامپراتوري تحقیر کیدو ته خپه وچې دي په پښو روان و خودلاري په یوه کې ليچ کې له امان الله سره مخامخ شو چې هغه هم پلې روان و او دوي دواړ وسره تړوکې هم وکړي.

سیف الله خان ولیکل «له هغې راهيسې چې دافغان ملي حکومت له خوا ماته هغه ګاډي راکړه شوې وه، ما دمننې په څرګندولو سره دهغوي داپيشکش رد کړي، چې په راتلونکې کې به ورڅخه کاروانه خلي. که دامتياز له مخې ته وي، نوهغوي دي باید د دوو رقيبو عناصر و په منځ کې احترامانه تعادل وساتي چې په تاسف سره د افغان حکومت په سیستم کې د نوو ید لونونو په واسطه منځ ته راغلی دي.

په څو ورځو کې سیف الله ته یوه ګاډي ورکړي شوه چې ربړيني ارابې یې درلودې او د براوین د ګاډي په شان ښکلې وه، او دوو قوي اسونو کشوله. سیف الله به هر مازيګر په هغې کې سپريده او په کابل کې به یې ګرځوله مګر یوه ورځ یې محمود طرزي ته وویل چې: «دا زما له پاره کوم خاص امتياز نه دي بلکې ربښتيا خبره داده چې ماته ددې له پاره راکړي شوې چې ددغې ګاډي په استعمالولو سره هغه کسانو چې دبرتانيې د استازي سپکاوي يې ليدلی و اوس دهغې د درناوي شاهدان هم و اوسي.»

دغه ضمني پيښه په خپل هيواد کې د روسيې او برتانيې یوله بله سره اچولو په برخه کې دامان الله لومړی ضروري تجربه ښکاره کوي.

د ګاډيو په ارتباط حتی اوس هم انډول بر قرار نه و، ځکه امان الله خان روسانو ته درې ګاډي منظوري کړي وي. روسانو په یوه داسې لهجه له افغانستان څخه مننه کړې وه، چې برتانویانو د ۱۹۳۰ کال راهيسې نه وه کړي، ځکه هغه وخت دوي داسي ښکاريدل چې ټول افغانستان ترخپلې اداري او تسلط لاندې راولي او په دې توګه یې د خپلې تباهي موجبات په

خپله ځان ته برابر کړل او اوس یې له زیاتې مباحثې د تکرار و لوجرأت نه شو کولای. روسانو خپلې ښځې هم راوستې وې.

د براوین ښځې له خپلې دغې نوې تجربې څخه خوند اخیست. هغه یوه تند خویه ښځه وه چې په تاشکند کې یې ځینې ټوپکونه ښودلي وو او ویلي و چې دا ټوپکونه ترکمنانو ته لیږل کیږي چې د برتانیې پر لښکرو د شاله لورې برید وکړي. دا ښځه ډیره ښکلې هم وه، ژیړ طلایي ښکلي ویښتان او نازک پوټکی یې درلود، او دوې پالتوګاډي ددې او دهغو دریو تنو سهیلیو (ملګرو) له پاره چمتو کړي شوي وي. هغوی به هر ورځ د کابل اطراف ته په دغو ګاډیو کې په چکرتلې. د براوین میرمنې به اروپایي جامې اغوستې او مخ به یې لوڅ و. دې ښځې به پرسربانډي دستمال اچاوه او دهغې څنډې به یې د زنې لاندې تړلې، چې په دې ترتیب سره به یې دهغې مخ پټاوه. د ابل د ناربنه وله پاره، چې د یوې ځوانې ښځې مخ په بازارونو کې ووینې، او هغه هم په داسې یونقاب کې چې نیم مخ یې پټ او نیم یې لوڅ و، دا یوه د یادونې وړ صحنه وه. د تعجب په حال کې هلکانو به ددې د ګاډي پس منډې اخستلې چې مخ یې ووینې مګر زاړه خلک، چې د ملایانو خبرې به په دوی ژوره اغیزه کړې وه، د اسلام د احکامو په اساس د دې کار مخالف وو او له ځان سره به د عیسویانو دکړو وړو په باره کې بونګیدل او ویل به یې چې د دوی دا سلوک موږ کفرته نژدې کوي.

په پای کې سیف الله خان دسپتمبر په ۲۵ نیټه هند ته ولاړ. دمخه تردې چې مخ په هند روان شي دده او دده ټول اداري کارکوونکو ته یوه پر تمینه میلمستیا ورکړ له شوه چې ټول په اوله درجه ګاډیو کې چې د قوې اسانو په واسطه کش کیدې، د بهرنیو چارو د دفتر ماڼۍ ته، چې میلمستیا پکې جوړه شوې وه یووړل شول. د دوې د خوړلو په وخت کې طرزي ورته وویل: «افغانستان د نړۍ د نورو هیوادو په لړکې د خپل ژوند په صحنه کې دماشوم په شان ګامونه ږدي نو په دې اساس د خپلې ترقی او پرمختیا له پاره د برتانیې په شان د یوقوې هیواد مرستې ته اړتیا احساسوي.» د طرزي دې خبرې ته داسې ځواب ورکړ شو: «برتانویانو هیڅ کله داسې ماشوم ته د مرستې له ورکولو څخه ډډه نه ده کړې مګر ماشوم ډیر مضر او ناسپاس دی.» کله چې طرزي ته د یوملازم له خوا چې له افغانې هیأت سره راولیږدي ته تللی و د برتانیې د ښه سلوک په باب وویل شو هغه ځوښ او قانع شو.

سیف الله خان چې د توقیف د ستونزو د ډېرو وخت کې د افغانانو له خوا خوړې په خپل یادداشت

کی کښېله پوښتنه وکړه: «پر دغه شی باندي چی د کابل عوام خپله خوا خوږي څرګنده کړه، تو کله چی موقع مناسبه شی، زموږ حکومت به آیا د دغه خوا خوږي په اندازه احساس ونه ښیي؟ کله چی دا یادداشت لندن ته ورسید نو د یادداشت په حاشیه کی په پنسل باندي دا لیکل شوي شی ترسترګو شو: «په قطعي توګه نه.»

وروسته تر هغه چی دسیف الله بګاژ (کالی) د برتانیې له نمایندګی څخه وړل کیدل نو یونښان، دسرو زرو یوه توره او یوه کرتی چی په سرو زرو ګنډل شوي وه چی دامان الله سوغاتونه وو هم پکی وو هغه چمتوو چی په یو مناسب موټر کی کښېنی چی دسرو زرو ځینی هغه لوښي سکی یې هم ورلی چی دامان الله نوم وربانديوهل کیده. ناڅاپه دهغه د ډلی په وړاندي یوه بله ګاډي تیره شوه چی دامیر حبیب الله خان دوخت یو پخواني مامور شیر احمد خان پکی ناست و او حافظ مطیع الله یې چی دنمایندګي د کار کوونکو یوغړي و دلاس په اشاره را وغوښت. مطیع الله یې په خپله ګاډي کی ځان سره یو ګوښه ځاي ته بوت، شیر احمد خان هغه ته یو پیغام ورکړ او ویې ویل چی دسیف الله د راپورله مخی چی دمخور و افغانانو له خوا راغلی دي او ګل محمد هم پکی شامل وچی آماده ګی یې نیوله د برتانیې له نماینده سره هند ته لاړشي چی هلته به دي امان الله خان ته دنوي مستقل هیواد دلومړي استازي په توګه وظیفه اجراکړي.

په پیغام کی ویل شوي وچی: «خلک له امان الله او د هغه له واکمنی څخه خوښ نه دي او په دي انتظار کی دي چی څه وخت به کابل د برتانیویانو له خوا ونیول شی او افغانستان به دیو «معقول حکومتی سیستم» له خوا اداره شی. شیر احمد خان وویل چی زه به یوله هغو کسانو څخه وم چی په یو مناسب فرصت کی چی انتظار یې لرم امیر ووژنم.

وروسته هغه د سلطنتی کورنی او دهغه د نور و نژدي کورنیوتر منځ د لانجو او تریګنی لنډیز بیان کړ. دهند نوي استازي د هغی ښځی د اکا زوي و چی د امیر حبیب الله خان وروستی ښځه وه چی یې د بر سراقتدار محمد زایی له قوم څخه کړي وه، او کله چی له هغی سره چپ جنسی کمزور تیا احساسوله نویې ورته طلاق ورکړ. ګل محمد دخپلی کورنی په دي سپکاوي خپه شو.

ګل محمد دسلطنتی مهاجرینویو له هغو کسانو څخه وچی د امیر عبد الرحمن خان د پاچاهی په وخت کی په هند کی اوسیده. دهغه زوي فیض محمد، دامان الله خان دوست له خپل هیأت سره دي وخت کی په روسیه کی و. او کتونکو به ویل چی ده زیاتره

کار هلته کاوه. دغه نماینده یې له شکه د برتانویانو په باب ښه فکر کاوه مګر له ده سره یو مرستیال و چې هر برتانوي شی یې نه خوښیده او دده په باب داسې فکر کیده چې د ګل محمد په اداره کې دده له پاره فعالیت کوي، چې دهغه له پلانونو څخه امان الله ته راپور ورکړي.

دا غلام صدیق وچې د افغانستان له ډیرو مهمو کورنیو څخه یوې کورنۍ ته منسوب و. هغه درې ورونه درلودل: غلام نبي خان، غلام جیلاني خان او عبد العزیز، څلور واړه څه ناڅه د امان الله خان هم دوره، او دهغه نژدې دوستان وو، دهغوی پلار غلام حیدر خان نومیده چې دامیر عبدالرحمن خان د «سور جرنیل» په نوم یې شهرت درلود ځکه چې د سراو د ږیرې ویښتان یې سره وو. ونه یې له شپږو فوټو څخه زیاته وه او ۲۸۰ پونډه یې وزن درلود، او عبد الرحمن ورته امر کړي و چې پرآس باندې دې په کرار سره سپور شي ځکه دایي نه شو زغملی چې هغه دده له لاسه لاړشي. دهغه روحیه دده د وجود په شان قوي وه. په څرخ کې یې، چې د کابل په جنوب لویدیځ ی واقع دی او یوه قبیلوي ساحه ده، دخپل کور د دروازې په سر لیکلي وو: «څوک چې له دې ځای څخه تیریږي، او له ماسره ډوډۍ نه خوري زما دښمن دی.» دهغه زامنو هم د پلار ټول قومي خصوصیتونه په میراث اخیستي وو، چې نه یوازې سخاوت پکې د یادونې وړ دي، بلکې له امان الله خان، او یو له بله سره د دوي وفاداري یې هم پکې شامله وه. دې کورنۍ ځانته «څرخي» ویل.

د ځوان غلام صدیق خان له پاره چې غونډ منډ مخ یې درلود او منډلې سرې و دالومړي ځل وچې له هند څخه یې لیدنه کتنه کوله. دبرتانیې استازې په خوښۍ سره داسې یادداشت کړچې هغه د خیبر د استحکاما تولید وته په تلوسه کې و.

د هغوبرتانویانو په فکر کې لاتر اوسه دجنګ فکر موجود، وچې په دغو استحکاماتو کې یې ژوند کاوه. دمعاهدې د ترتیب له مخې، یوې ډلې افغانی څارونکو له لانجو ډک سرحد په نښه کړی و، چې له هغه څخه د غاړې غړونې په نتیجه کې جنګ شدت وموند. برتانویانو د تورخم ډاک (پوسته) یې په خپل لاس کې ونیوله. داګست په ۲۹ نیټه افغانانو تورخم ته نژدې کابل دسیند په غاړه یو میز ترتیب کړ، او له جنریټر څخه د لاس ته راوړل شوې بریښنا څخه یې استفاده وکړه او دلیندی په شان یې ګروپونه تښلولي وواو پنځلس برتانوي او هندي افسرانو ته یې د شپې میلمستیا ورکړه، کله چې دسیند په یو ټاپوکې د بوټولو منځه پردوې باندې ناڅاپي

ډزې وشوې، نوميلمانه په داسې حال کې چې افغاني جنرالانو دهغوی بدرګه کوله د لاټين له رڼا څخه په استفادې سره بيرته خپلو کيمپونو ته ولاړل.

وروسته يو څو نورې مرمۍ د دوی له سر څخه تيرې شوې. هيڅوک ونه لګيده او برتانويانو وويل چې دا پيښه د سرحدي کربنو داعلامولو له پاره ګټوره ده.

د يوې مخکنی اشارې په توګه، دا هم برتانيې ته ګټوره وه چې هغوی «په دوو برخوکې د ترون» د وروستۍ لاسليک څخه د مخه، د شپږو مياشتو د آزمايښتي دورې په تحميلولو باندې اشتباه کړې وه، دې کار، د ډيرو قبيلوي خلکو له پاره داسې معنی لرله چې وروسته له شپږو مياشتو څخه به جنګ بيا پيل شي نوولې بايد جنګ ختم شي؟

د مخه تردې چې قبايلي خلک پوه شي چې سوله ټينګه شوې ده څواوونی تيرې شوې وې. افغاني ماموريننو زورزوتوب وکړ، چې ورته ونه وايي ځکه چې نادر خپلو ملايانو ته ډاډ ورکړی وچې امير به دسولې ترون ونه کړای شي تر څو هغو سرحدي قبايلو ته چې د پولې څخه اخوا د برتانويانو په څنګ او دهغوی په مرسته د خپل حکومت په خلاف دي د عمومي عفوې تضمين ونه شي. د نادر قضاوت په دې برخه کې بې اساسه و. دهيواد او خلکو په برخه کې دافغانانو کړه وړه تردې حده انساني وچې برتانويانو ورته په سختۍ سره طبيعي او ساده ويلې شو او فکر يې کاوه چې دا يوچل دي لکه چې په کنفرانس کې به بې فکر کاوه، چې په هغه ځای کې يوه افغاني هيأت داسې وويل:

«موږ نه پوهيږو چې تاسو ولې د دومره شتمنی سره سره بيا هم زموږ دهيواد په ارتباط، چې له کانو پرته تقريباً نور هيڅ نه لري، او په هر متر کانې باندې وياړي، دڅومره کانو په باب دومره حريص ياست؟ »

د برتانيې نماينده په ځواب کې ورته وويل: «زه پوهيږم چې (طرزي) ويلې دي چې ډير ستر قدرتونه دی بايد د سرحد ډيره قوي برخه ترلاسه نه کړي. آيا دهغه مطلب دسخاوت د قانون له مخې دی او که د بين المللی قانون له مخې؟ »

طرزي به وايي چې: «ميليتونه له انسانانو څخه جوړ شوي دي او بين المللی قانون يو انساني قانون دي مورد حق او عدالت په لوري ځو. »

مګر برتانويان چې له يوې شګې څخه نه تيريدل، په هيڅ وجه حاضرنه ووچې قبايليانو ته چې تل يې دښه نيت راجلبولو له پاره هڅې کړې وې داسې يو دليل په لاسه ورکړ، چې د افغانستان له امير څخه خوښ و اوسي.

هغوي په خپله همداسي ستونزي در لودي دومره لويي نه وي او په زياتي سرگرداني سره به يي رفع کولي. يو شمير افغانان موجود و، چي له برتاني سره يي مرسته کړي وه. کله چي افغاني سرحد ته نژدي يوکلي، چي لال پوره نوميده د برتانوي قوا و له خوا خالي کيده او بيرته يو افغاني لوړ رتبه ، مامور ته چي له سلو تنو وسله والو کسانو سره ورغلي و، ورکول کيده د معطلولو يره بهانه داوه چي: «څوتنو ته چي له موږ سره يي مرستي کړي دي د تيښتي زمينه برابره شي.»

«دلته ردي حالته د بحث موضوع ده: جنگ، سوله او دوه اړخيزه بدگوماني.» افغانانو په هغه وخت کي له برتانويانو سره په بل کنفرانس کي وليدل، مجبور وچي مطلب په گوته کړي. په قبايلوکي د لومړي او دريم په منځ کي ويش په وضاحت سره تشريح شوي نه و. د وزير و او مسوود و.

قبايلي خلکو په سخت حالت کي ژوند کاوه چي فقط په خپله هغوي ته د توضيح وړو.

کله به چي په کافي اندازه پيسي پيدا کولي، ځان ته به يي بني تينگي کلاوي جوړولي چي جگ جگ ديوالونه او د مرچل په شان يي برجونه درلودل. دوي په دغو کلاگانو کي خپلي کورني، ماشومان لمسيان او مزدوران ساتل او اداره کول يي.

حجري او مهمانخاني به هم په دغو کلاوکي جوړ ولي او کتونه به پکي اچول. دا حجري د ميلمنوله پاره جوړيدي. يو ورځ کله چي د دغو کلا و ديو کور دبام په سر دوچ کيدو په خاطر کالي غوړول شوي و، يو ميله له دغو کاليو څخه يو پرتوگانۍ غلاکړ. په راتلونکي نسل کي دهغه سړي ځوي چي پرتوگانۍ يي غلا شوي و دهغه بل سړي زوي يي وواژه چي دده پرتوگانۍ يي غلا کړي و. په دي توگه هغه خپل دغلاکسات واخست. دغسي شخصي مسئلي د دغوقبيلو دايمي عادت و دايوه طريقه وه چي هغوي د گډ ژوند کولو په خاطر منځ ته راوړي وه او دا صرف د قران مطلب و. په چاپيريال کې، د دوي يوازي او تر ټولو او چت الهام ښښونکي، خداي (ج) او قران و. قران د ملايانو له خوا ورته ويل کيده، او ملايان يوازني کسان وو، چي په ليک لوست باندي پوهيدل.

يو وړوکي څيز ـ ـ دي يي د يرلږ علاقه مند گرځولي و، هغه د ډيورنډ کرښه وه چي افغانستان يي له برتانوي هند څخه بيلاوه. په «نه اداري شوي سيمه کي» د برتانيي د امپراتوري نفوذ کم و. په نورو مستعمره هيواد ونوکي دهند په شمول چي هلته برتانويانو د

ښځو د سوځولو قانون د خپلې واکمنۍ سره سم له منځه وړي و برتانويانو په دې باندي ویاړ کاوه چې دانګلو ساکسون عدالت يې له ځان سره راوړی دی. دامپراتوري زيات کسان ددې کار په خاطر له دوي څخه مننه وکړه. مګر انګريزانو دغه قبايلي خلک دومره په خپل دود دستور ټينګ وساتل چې د کابل يو افغان چې قبيلوي خصوصيات يې ګډوډ شوي و هغوي به يې په دې خاطر تورن کاوه چې ټول قبايلي خلک به يو بل ووژني.

يو قبايلي سړي ته دافغان ياد برتانيې حکومت داسې شی، چې په هغوي ی د اهليت او حرمت احساس ژوندي کړي وي، لې وړاندي کړي دي.

حکومت به په کال کې دوه ځلې ځان ښودلو يو ځل د ماليې د ټولولو او بل ځلې د عسکري له پاره د ځوانانو د جلبولو په خاطر او ژوند تر دې حده پوري په خطر کې وچې هيڅ بوه کورنۍ نه شواي کولاي په ارامه ژوند وکړي ترڅو لږ ترلږه يو نارينه په کور کې نه وي. حکومت به تل د خلکو نه شيان رانيول خو کوم شی چې خلکو غوښته چاته يې نه ورکاوه.

برتانويانو سر کونه تير کړل، مګر قبايليانو نه غوښتل. هغوي هر وخت چې غوښتل کولاي شول له خپلو کورونو څخه د غلا اولوټماري په خاطر ووځي او يا کولاي شول خپل نماينده ګان يا نورو قبيلو ته واستوي. او څو ک څه پوهيده چې د خارجيانو په موټرونو کې به څه شی د سرکونو له لاري دي سيمو ته راوړل شي؟ کله چې برتانويانو غوښتل سر ک جوړ کړي نو اول به يې له قبايليانو سره يوه ليکلې موافقت نامه تر لاسه کوله. اوس په ۱۹۱۹ ع کال کې هغوي تصميم ونيو چې د پخوانۍ نسل د موافقې له مخې په وزير وکې سر ک تير کړي. قبايليانو بغاوت وکړ.

برتانويانو افغانانو ته وويل: «سر کونه دتمدن نماينده ګی کوي.»

افغانانو په ځواب کې ورته وويل: «موږ ليدلي دي چې په سر کونو کې تل توپکونه چلول کيږي. زموږ په فکر توپک د تمدن تعامل نه شي کيدي.»

«هر کله چې توپک خپل ځای سولي ته پريښود، نو په هغه وخت کې به تمدن منځ ته راشي.»

ستاسې تمدن به د مسود و له پاره يو مناسب تمدن نه وي. ستاسو د تمدن نظريې زموږ په شان نه دي... زموږ دود داسې دي چې له جنګ نه وروسته هر شی هير کړو. ليکن مسود زموږ له پاره وجنګيدل او تاسو تر اوسه پوري له هغوي سره د دښمن په څير چلند کوي او نه يې بخښئ، موږ څنګه کولای شو ستاسو څخه د ښېنې توقع وکړو.»

او وروسته د افغانانو له خواد موضوع هسته داسی وه: «که تا سود شپږ و امتحانی دورو پـه ځـاي، پـو واري د دايمي دوستـي معاهده لکه چي موغوښتله کړي واي، نو دا کشاله به په خپله حل وي. امتحاني دوره داسي زمينه برابره کړه... چي مذهبي احساسات تحريک کړي. »

د سولي له معاهدي څخه دري مياشتي وروسته، هغه قبايليان چي برتانيي پوري مربوط و، دخپلو مشرانو قافلي چور کړي کـه يي داسي نه واي کړي نو پاکس بريتانيکا ته به په لږ اهميت سره ځانونه ښودلي واي. برتانويانو د افغانانو دسيمي وغندلي، په تيره بيا له هغه وخت وروسته چي امان الله خان دمسودو او وزيرو د قومونو غړي په کابل کي حضور ته ومنل و هغوي ته يي دخدمت په بدل کي انعامونه ورکړل او ورته يي وويل چي د وزيرستان قبايل به زماپت وساتي او دوي بوازيني پښتانه دي چي هر کار سرته رسولی شي، امان الله هريوه ته دسپينوزرو مدال ورکړ، چي آبي، ژير، او شني فيتي يي درلودي.

افغانانو به برتانويانو ته ويل چي : «په هغه وخت کي چي موږ ستاسو پر تصميمونو باندي شکمن و اوسو موږ به خامخا د هغي آماده گی نيسو چي زموږ له وسه پوره وي. موږ په اخبار وکی لوستي دي چي کـه څه هم تاسو و فرانسي سره دوستان ياستي بياهم تاسو د بين النهرين عربو ته پيسي ورکوي، او د فرانسي په ضديي راپاروئي دادي دنړي حالت. »

له الوتکی څخه بمباري برتانيي ته نجات ورکړي و چي له افغانستان سره په جنگ کي و. دا دياغي قبايلو پر ضد وروستي وسله معلوميدله. د بمونو د غورځولو عمل و ايسرا لارد چلسفورد په تکليف کړ، هغه په خپله بو غرني سړي و او تصوريي کاوه چي بمونه پرهغوبي دفاعو خلکو باندي اچول کيږي چي غرونو کي ژوند کوي. «زه نه غواړم چي دبمباري عليه بوازي دوزيرو او مسودو د کليوقوا وته محدوده پاته شي. زه حاضريم داسي عمليات د هوايي قواو په باب په هغه صورت کي ومنم! کله چي دا عمليات دهغوي په هيواد ی زموږ د قواو په واسطه د بو عمومي پاڅون جز تشکيل کړي. ليکن دا تريوی اندازي ماته غير انساني اوبي عاطفي برينبي چي خپل پيلوتان د کليو د بمباري له پاره ولیږ و په داسي حال کي چي زموږه نوري قواوي ځاي پرځاي پاته کيږي.

«همدا راز زه په دي متيقن يم چي زموږ د غلطي پاليسي په وجه به په قبايلو کي دبغض او کيني احساس پيدا شي. »

په سرحد کې د نظامي مرکزونو په قول سره چې اوریدل شوي دي چې: «زموږ سپاهیان له جنګ څخه بیخي ستړي شوي.» او د خپلو هغو دوو افسرانو په حواله چې په دووپېښو کې یې برخه اخستې وه چې پې د برتانیې عسکرو سخت ځوریدلي و، د شمالي لویدیځ ایالت عالیرتبه مامور چې په دې وخت کې هماغه سر هیډلتن ګرانت وچې په راولپنډي کې و، له وایسرا سره خپله عدم موافقه داسې وښوده:

په سرحد کې د نظامي مرکزونو په قول سره چې اوریدل شوي دي چې: «زموږ په دې باندې متردد نه وچې الوتکې د ماریس د بمباري له پاره ولیږو. او بیا وروسته کابل او جلال آباد بمباري کړي یې له دې چې چاته خبرورکړي، او موږ باید په وروستي سیمه کې ښځې وژلاي واي. دغه بمباردمان ښې اغېزې وکړي د امیر دسولې پیشنهادوو ته سرعت ورکړ او هیڅ یو واقعي خصومت یې باقي پرې نښود.

د الوتکو په واسطه د هغو اعلانونو خپرول چې پکې وزیرو او مسودو ته اخطار ورکړ شوی و، زما په نظریو خدر نک عمل دی ځکه الوتکې به په یقین سره وویشتلې شي: موږ به، یې له دې چې کومه ګټه کړی وي ځینې الوتکې به مو له لاسه ورکړي وی او په یو بیخي بیسواده سیمه کې به دغه پاڼې کومه فایده هم وانه ړي. زه فکر کوم دا به یوه اشتباه وي چې خپلې الوتکې او د هغوی راتلونکې اعتبار په خطرې واچوو او دغه یې ګټې هلې ځلې په ضمیر او وجدان ته ملهم ونه ګرځي.»

د ګرانت له پاره به دهغه په کړ وجنه نړي کې یری له هر شي نه په اسانه لاره کې و. هغه هڅه کړې وه چې دنر خوو د کنترول له لارې جایزې استفادې پاي ته ورسوي مګر له هغه څخه یې هم لاس واخست. «... موږ تردي حده له ستونزو سره لاس او ګریوان یو چې نه شوکولای له دې عهدې څخه ووځو چې دغې سوالونو سره علاقه ونیو. زه پوهیږم چې دلته زما ډیر مشکل په دی کې دی چې په عملي توګه داسې یو منصبدار نشته چې زه ورسره خپلو چارو په باره کې مشوره وکړم... که څه هم دلته په دې ایالت کې ډیر اعلی صاحبمنصبان شته.» دوي ټولو ابتکار له لاسه ورکړي وزه تقریباً باید ووایم چې دوي خپل اعتبار له لاسه ورکړی دی.»

قبیلې بمبارد شوي مګر ځینې نظریې خپرې شوي؛ له ټمونو څخه د مخه ځینې نسخې خپرې شوي وي چې پکې هغوي ته اخطار ورکړي شوي وچې ترد غې نیټې پورې خپل ټوپکونه تسلیم کړي او جریمه هم ومنې.

برتانويانو شکايتونه وکړل چې: «ام (قبايليان) له وخت څخه استفاده وکړه چې موږ ويلي و هغوي به بمبارد کړو. هغوي خپلې ښځې او ځاروي يو امن ځاي ته يو تلل او له بيرته راتګ څخه بې سر وغړاوه. وروسته موږ له هوا څخه پر هغوي باندي بمونه وغورځول ځکه موږ فکر کاوه چې دا کار له هغه څخه موږ ته ډير ارزان تماميږي چې خپل عسکر هغې خواته وليږو. مګر څرنګه چې هغوي په ښر ونوکې نه اوسيدل او غرونو ته ختلي وونو زموږ بمونو هغسې چې لازمه وه کومه ګټه ونه کړه.»

دغه وخت که بيا نظرواچول شي برتانويانو موضوع لاپسې کړ کيچه کوله: «که چيري د دوستي تړون سمدلاسه لاسليک شوي واى که څه هم افغانانو ممکن له هغه مودي څخه چې ښايي مناسب وي دهغه د دوام تصميم ونه لري، مازي دهغه خپرونه به... د افغانستان په مقابل ی د بالشويکانو بدګوماني زياته کړي واى. برسيره پردي ديو سملا لاسي تړو د لاسليک نتيجه په دا فغانستان له پاره دانا ممکنه ګرځولي واى چې بلشويکان به دبرتانيي د پيشنهادونو په مقابل کې استعمال کړي.»

د سپتامبر په ۳ نيټه د روسيي د بلشويزم استازي براوين په رسمي توګه د امان الله خان له خوا ومنل شو. هغه د خپلې پذيرايي په مورد ی وويل: «پرتمينه اما بي خونده.» له بلې خوا په ماسکوی روسانو اورګاډي دوي نيول شوي پټلې له لاري لومړنى اورګاډي واستاوه چې محمد ولي او دهغه ملګري مرکز ته بوزي چې هلته د دوي دښه راغلاست مراسم، نه يوازي مفصل نيول شوي و، بلکې ګرم هم و. معمولي مراسم داورګاډي په ستيشن کې تر سره شول او څو ورځې وروسته، داکتوبر په ۱٤ نيټه، په خپله لنين له محمد ولي خان سره لاس ورکړ او ورته وی ويل: «زه ډير خوښ يم چې د کارګرانواو بزګرانو دحکومت په سره مرکزی د دوست هيواد افغانستان نماينده ګان د امير ياليستي چغ کړا وونه زغمي او دهغه په ضد مبارزه کوي وينم.» دا هغه ډول خبره وه چې د بلشويک مشرانو په هر ځاي کې کوله او محمد ولي خان هم مشابه ځواب ورکړ چې: «زه تاسو ته د دوستي لاس درغزوم او هيله کوم چې تاسو له ټولو ختيځو هيواد ونو سره مرسته وکړي چې ځان د اروپا د امپرياليزم له منګولو څخه خلاص کړي.»

د افغاني قونسل د معلوماتو له مخې له تاشکند څخه روسيي ترکستان بهرنيو چار وزير مسکوته داسې تلګرام وکړ: «افغانستان هڅه وي چې له شوروي روسيي سره دانګلستان پر

ضد لاس پوکړي. زما په فکر د دغسې یوه ترون لاسلیک کېدل د افغاني هیأت له پره غوره تحرک دي.»

په دي توګه افغانان په روسیه کې معزز کسان وګرځېدل. په تاشکند کې یوې کورنۍ د خپل افغاني تابعیت د سند په ښود لو سره خپله پیانو ژغورله؟ حکومت ټولې شخصي پیانوګانې په دي خاطر ضبطولې، چې په ښوونځیو کې ورڅخه د پرولتاریا د زامنو د ښوونې او روزنې په برخه کې زیاته استفاده وشي. لیک دا به یو غیر مهذبانه کاروای چې که د یو افغان ملکیت ته لاس وروړل شوي واي، په داسې حال ی چې د هندوستان د جذبولو په لاره کې د افغانی مرستو هیلې موجودي وي.(۱)

په هر حال، په یوهیواد کې هم ټولو خلکو د دغه یووالي احساس نه کاوه. کله چې براوین له هرات څخه د کابل په لور روان شو د عسکري موزیک ډلې دهغې له پاره له غږولو څخه ډډه وکړه. په سرحد ی افغاني تجاراو د بلشوویستانو د روبل نوټونه، نه قبلول، او یو افغان چې د روسیې په سیمو کې په جګ آواز سره اعتراض کاوه، بندي شو.

د تزار په وختونو کې پرازي کروانونو روسیه او افغانستان سره نښلول. همدا تجارت وچې په افغاني چاي خانو کې د ژېړ وځلیدونکو سماوارو د موجودیت موجب ګرځیدلی و. له دي سماوارونو څخه به په هغو چینی چاینکوکی چاي اچول کیده، چې د ګلابو د ګل ښکلی رسم به ورباندي انځور شوي و. دا ګلان د فرانسې د نقاشې په خوو کې ایستل شوي وو، او دهغو روسانو له خوا کاپي شوي وو چې فرانسې د نقاشې په خونو کې ایستل شوي وو، او دهغو روسانو له خوا کاپي شوي وو چې فرانسې ته یې حسن نظر درلود. افغانانو به په خپلو قوي او زیږ و لاسونو کې دا چاینکې نیولې او په قرمزي پیالو کې به یې چاي اچاوه و څښلې به یې. او رلګیت او تو کران هم افغانستان ته وړل کیدل. خراوس کاروانونه درول شوي وو ځکه پر رایجو پیسو باندي دوي د سره جوړېدل.

د افغانستان په هغه شمالي پوله کې د هر شي له پره زمیه برابره وه حتی د شکایت له پاره او حتی د جنرال مالسن د ګرځنده ګانو له پوس پوسې نه پر ته هم. دلته خلک یوازې په خپلو افکارو منحصر وو. دي خلکو غرونه نه رلودل. هري خوته چې به تلل هواره ځمکه به یې مخې ته راتله افق ډیر لیري معلومیده او له نورو فضا و سره ګډینده دا د منځنې آسیا دښتې وې. افغانستان د روسیې په لور غزیدلی و او روسیه د افغانستان په لور. خلک یې او زبک او

تاجک وو. هغومره چی د ختیځ سرحد او سیدونکو چی له هند سره هم سرحد وو تکړه او د ستونزو په مقابل کی بی مقاومت درلود دوي هغسی نه وو. ممکن د دوي د سیمی خصوصیت دوي د غسی گرځولی وي. دلته هم سرحد پوازي سیاسی بنیه درلوده او سره ورته کورنی په د سرحد په دواړو خواوکی ژوند کاوه.

لیکن روسیی همدا اوس پوبدلون ومانه چی د هغه په تاریخ کی دي بدلون تر نورو بدلونو نوزیاته گډوډي درلودله، او د اسیایی روسیی په برخه کی، چی د ترکستان په نامه سره یادیږي د روسیی تر نورو برخو وارخطایی په کی زیاته وه. تقریباً د دي سیمی او سیدونکی ټول مسلمانان وو. د مسکو مرکزي حکومت چی تر اوسه پوري د خود ارادیت اعلام شوي پرنسیپو نو ته وفادارو، ټینگار کاوه چی مسلمانانو ته دي د هغوي د شمیر په تناسب نماینده گان ورکړل شی، حال دا چی د دې ځاي بالشویکان پوهیدل چی که پرنسیپونه په مکتوب تعقیب شی، نو د غه مسلمانان به هغه ډول حکومت ځان ته غوره کړي چی د بالشویکانو حکومت څخه ورته غوره بربنیده. په جنوري کی د سپین گارد له خوا د ضد انقلاب هلی ځلی روانی وي. د غی خاوري په کافی اندازه زحمت لیدلی و او اوس مسلحو افغانانو په بندرکی تگ راتگ کاوه د کشک او پنجدي د نیولو او د یوي گډي قشلی خبري کیدلی.

د روسی ترکستان په یوه غونډه کی د ترکستان د جمهوریت رئیس چی قوزاقوت نومیده په دې باندې تورن شوي و چی له افغانانو سره په کافی اندازه مرسته نه کوي چی له برتانویانو سره په جنگ اخته دی. د هغه دلیل په دې مورد کی، چی یوه برخه یی په محلی مطبوعاتو کی خپره شوي و داو، چی روسان له افغانانو سره د خپلی مرستی څخه په ویره کی دي چی هسی نه چی داوسله بیرته د هغوي په مقابل کی استعمال نه شی. په اخبارونو کی داسی یو شدید الحن مکتوب ولیدل شو: «کله چی انگلستان په سل گونو ټوپکوه کولچک (Kolchak) او دنیکن (Denikin) ته ورکړل چی د شوروي په ضد جنگ وکړي. آیا هغه هیواد به د همدي مقصد په خاطر افغانستان ته نوره وسله ورکړي؟ هو! یقیناً انگلیسی وسله او سره زر د برتانوی امپریالیزم له خوا ورکول کیده مگر رد شوي وو او له روسی کارگرانو او بزگرانو سره د دوستی لاس ورکړ شوي و.»

قزاقوف په خواشینی سره وویل چی کله چی پربراوین باندې د آمو په سیندکی برید وشو چی افغانستان ته بی وسله وړله، ممکن هغه وسله د روسیی د دښمنانو له خوانیول شوي وي،

ځکه چې انګستان غله او لارې وهونکې روزل، چې افغانستان ته د دغو وسلو دلېږلو مخنیوی وکړي.

قره خان له مسکو څخه، چې د جنرال مالسن استازي ونه رسید، تلګرام وکړ:

«داسې یوه خبره ګناه ده ځکه چې ماد ترکستان د بهرنیو چارو کومیساري ته هدایت ورکړی وچې افغانانو په دې پوه کړي چې زموږ به هغوی سمدستي په وسله سنبال کړو. د اکتوبنسک (Atiubinsk) خنډله منځه تللی دي...»

میلسن وویل: «افغانانو او برتانویانو دواړه زموږ د برتانوي پروپاګند په مقابل کې فوق العاده احتیاط کوي.»

بیا هم د کشک د بې سیم یو تخنیک کار د حکومت له مخابراتي دستګاه څخه په غیر قانوني توګه استفاده وکړه چې داسکند د بې سیم د دستګاه تخنیک کار ته یو پیغام واستوي. هغه ور څخه د تبدیلیدو په باب داسې پوښتنه وکړه: «په دې ځای کې د ځینو افغانانو له لاسه ژوند کول خطرناک معلومیږي ځکه هغوی به کشک او دهغې تولې ودانۍ ونیسي. د دوي تر اثر لاندې ژوند کول به د سپین ګارد تر اثر لاندې کولو څخه ډیر خراب وي.»

امان الله خان د شمالي نوي دوستانو او د ختیځ دسیمې د پخوانی دوستانو پر دوه اړخیزه شکاکیت باندې هڅه کوله چې له خپل نوي سیاست څخه کار واخلي.

«د سیاست له مخې په زړه پورې» دا هغه توضیحات وو چې... براوین پیشنهاد وکړ چې د کندهار او جلال اباد سرک ترمیم کړي چې خپله قونسلګري په هغه ځایونو کې تاسیس کړي امان الله خان ونه مانه. دا به برتانویانو ته د یو شمیر ستونزو معنی درلوده چې که روسانو ته رسماً اجازه ورکړي شوې وای چې هند ته دومره نژدې شي. براوین د تجارتي تړون په باره کې خبرې وکړې لیکن د افغاني لوري نظري تولې یواړخیزه وې روسي مالونه چې افغانستان ته راځي محصول دې ورکړي مګر که په بله لاره افغانستان ته راتله داسې یکې هیڅ نه لیده کیده او روسیه دې باید افغاني مالونه بیمه کړي که چیرې د روسیې په خاوره کې د غلوله خوا ورته کوم تاوان رسیږي دا تاوان د روسیه په غاړه واخلي. کله چې براوین وغوښتل پیسې ورکړي هغه مجهور وچې د برتانیې تضمین شوي نوټونه له ځان سره راوړي بالشویکي مروجه د اشتهار پاڼې ځړول شوې وې او یکې خلکو ته ویل شوي ووچې: «په مشهد کې د برتانیې د هیأت په

دوران کې اچول شوو درواغوته دي غوږ ونه نيسي چې د روبل د بې ارزښتي په باره کې يې کړي و.»

امان الله خان څوځلې براوين خپل حضور ته وماته. هغه نوم معلوميده مگر چالاک و. امان الله خان چې پرخيوا او بخارا باندي چې د مسلمانانو ايالتونه و د بلشويک د تجاوز کيسې واوريدې، نوبې له دې، چې بلشويکان پوه شي، څوتنه يې هلته واستول. براوين ژروپتيله چې په افغانستان کې دده د پروپاگند ونو د مرکز د تاسيسولو هيله کمه لري، نو هغه يې له اجازې څلويښت تنه په پټه توگه د هند سرحدي علاقوته د پروپاگند په نيت واستول.

براوين د نا اميدي په حالت کې و. هغه د يوسفير اساسي قدرت له لاسه ورکړي و چې دده د خپل حکومت اعتبار و. د ده پسې يو بل سفير د راتگ په حال کې و. دا سفير يعقوب سوريتز (Jacob Suritz) نوميده چې د سپتامبر په وروستيو وختو ی د توفان په شان تاشکند ته راورسيد. دده مسکو پوره واک او اختيار ورکړي وچې ممکن دا واک د اعتماد له مخې وچې پرده باندي شوي و. نودي د ترکستان د حکومت ناکراري ته په کلکه سره ساز و سامان ورکړ چې د مسکو له خوا د منلو وړو. هغه وپتيله چې دبخارا او خيوا په مورد کې بدگوماني زياته شوي ده او دي دهغه خارجي او ظاهري اړخونوته تغيير ورکړ. وروسته يې خپله زياته پاملرنه د افغانستان خواته وگرزوله.

هغه قره خان ته چې په مسکو کې وداسې تلگرام ورکړ «ويل کيږي چې زما تر راتگ دمخه د براوين تگ افغانستان ته يو اشتباه وه.» او پلان يې جوړ کړ چې په خپله هلته لاړشي. سوريتز مجبور وچې د براوين، چې دده تر لاس لاندي کيده، ځاي ونيسي. ولې هغه په خپله له مسکو سره ټينگه رابطه درلوده. دده له پاره دقيق خاص ترتيبات نيول شوي و. چې له کابل څخه معلومات وليږي ددې له پاره ممکن او امر ورته صادر شي او صرف هغه عملي کړي برتانويانو غوښتل دمخه تردې چې سويتز افغانستان ته ورسيږي هغه ونيسي.

د اکتوبر په ۳۱ نيټه جنرال ميلسن دس راپور ورکړ: «يو مخور ترکمن چې زما له خوا ليږل شوي و چې د يولاتان (Ulatan) دجنوب په کوم ځاي کې، د سوريتز د ډلې د نيولو پلان ترتيب کړي دلته بيرته راغلی دی. هغه ونه کړاي شو چې کومه نتيجه ترلاسه کړي زياتره په ټوله ساحه کې له مروي څخه ترکشک پوري د افغانانو د پوره تسلط په خاطر افغانان له هري ممکنې وسيلې څخه کار اخلي، چې ترکمنان پخلا کړي. هغه کسان چې د بلشويکانو له خوا بنديان

شوي وو خوشې شوي دي. تحميلي جريمې بخښل شوي دي او ستونزې د افغانانو په امرونو سره حل کيږي چې محلي بلشويکان دهغه در ناوړي کوي. هيڅ يو ترکمن په وضعه باندي خبر نه دي. يادا چې آيا بلشويکان او افغانان سره په ريښتيا دوستان دي که دښمنان؟ اما ټول د دې تشخيص کوي چې افغانان محلي وضعه او حالات د مسلمانانو د حامي په توګه اداره کوي. د سرخس (Sarakhs) په سيمه کې افغانانو له ترکمنانو سره پخواني خصومت ته شکل ورکړي دي او ټولو ته خبر داري ورکړي چې کله چې مساعد وخت را ورسيږي د اجرا تو له پاره دي تياره و اوسي. »

سوريتز چې د خپل اختطاف له هلوځلو څخه خبر نه و، د نومبر په ۱۱ نيټه د هرات په لور وخوځيد. تقريباً سمد لاسه هغه شي يې کشف کړ چې ترکمنان په ټولو باندي پوه وو چې افغانان د دوي دين حمايه کوي حتی له بدو الفاظو سره د افغانستان په بازارونو کې کنځا ويل جرم و. سوريتز يو قوي شخصيت و، هغه د هرات مامورينو ته په خپل لومړني ملاقات کې څرګندوني وکړي چې دهغوي پر مذهبي احساساتو باندي تعرض و. په هغه شپه هغه روسيې ته يو راپور وليکل چې پکې داسې خبرتيا ورکړي شوي وه: « موږ بايد د دې په مقابل کې سنګر ولرو. »

د خيبر په غانبې کې د سياسي صاحب منصب د اداري يو غړي، ځيني مخبران استخدام کړل. ده او استخدام شوي کسان د لارويانو په توګه ځانوه تيار کړل او د شپې له مخې په خلکو کې ګرځيدل. کاروانونو، د مخه تردې چې هند ته د تلو لاره خلاصه شي، په سرايونو کې واړول. که چيرې په دغو کاروانونو کې د کوم سړي له خولې څخه داسې يوه خبره وتله چې د غه مخبران يې يقيني کول چې هغه د يو ريښتيني سوداګر په څنګ کې يو بل شی هم دي، نو خبر رسووني به دا خبره پيښور ته رسوله چې هلته پوليسان د دوي د رسيد و په انتظار کې وو.

د هغوي له څارنې سره سره، سوريتز افغانستان ته اوښتی و، مګر د هند حکومت پيښور ته داسې تلګرام وکړ: « دشکمنو کسانو د امتحان کولو په خاطر په خيبر، کورمه، او چمن کې د استخباراتي دستګاه په پراختيا سره ممکن په هند باندي بري ډير مشکل کړي، او ځيني خلک به له ورتګ نه وويريږي. » د سرحد په ټولو برخو کې مسافرين د روړل کيدل او پوښتنې ورڅخه کيدي.

څنګه چې نري ډابس (Henry Dobbs) د بهرنيوچارو سکرتر په هند کې، د سوريتز له رارسيد و څخه خبر شو، نو يې افغاني استازي ګل محمدخان د بهرنيوچارو دفتر ته احضار کړ او

ورته يې وويل چې براوين تر اوسه پورې په کابل کې دي او له امير سره مصلحت او مشوره کوي.

گل محمد خان مداخله وکړه او ويل: «دا په دې خاطر چې امير آزاد او مستقل دی او د استقلال په لرلو سره د بهرنيو هيواد و نو استازو ته د راتلو اجازه ورکوي.»

ډا بس وويل: «دا يوه طفلانه استدلال دی ځکه تر کومه ځای چې پوهيږم، افغانستان په نړۍ کې يوازنی هيواد دی چې په اوس وخت کې د بلشويک نماينده لري. آيا ستا مقصد دا دی چې ووايې امريکا، فرانسې، ايتاليا او هالند ټولو خپله آزادي له لاسه ورکړې ده ځکه چې هغوی د بلشويک نماينده گانو ته اجازه نه ده ورکړې او يا د بلشويک له حکومت سره د اړيکو لرلو يې رد کړي دي؟ دا ښکاره بوازې دا ښيي چې افغانستان تر اوسه پورې د سياست په پرنسيپونو باندې پوه شوي ندي. د نړۍ ټول هيوادونه پرته له افغانستان څخه، د بلشويک حکومت د خپل دښمن په شان گڼي، بر عکس که افغانان د بلشويک حکومت د خپل دوست په توگه تاکي، ښه تر ښه ليکن تاسو به دا ونه کړی او په عين وخت کې به ادعا وکړې چې د برتانيې له حکومت سره خپله دوستي څرگندوي.»

په همدغو نژدې وختو کې د برتانيې د پارلمان يوغړي او گريډي (O, Gnady) کوپنهاگن دنمارک ته روان و چې د خپل حکومت د نماينده په توگه له روسي نماينده ماکسيم ام. ليتوينوف سره مصلحت وکړي. ماکسيم او. ليتوينوف د برتانيې د بهرنيو چارو د دفتر له خوا د يو غير رسمي، غير مقيم سفير په توگه منلی شوی و، او ورته اجازه ورکړې شوې وه چې په شفر کې پيغامونه واستوي. دا په هغه وخت کې صورت ونيو کله چې د بهرنيو چارو اداري بروس لوک هرټ (Bruce Lockart) د خپل غير رسمي او غير مقيم سفير په توگه مسکو ته سمدستي له انقلاب نه وروسته واستاوه.

او گريډي او ليتوينوف يو بل سره ليدنې کتنې وکړې چې د جنگ د زخمي بنديانو د تبادلې په هکله سره خبرې اترې وکړي اما هغوی د انگليستان له خوا د بلشويک د حکومت د پيژندلو او د روسيې او انگليستان ترمنځ د تجارتي تړون د لاسليک کولو په برخه کې هم امتحاني اشارې کولې. د دوی تر منځ د توافق په باب خبرې او کيسې روانې وې.

ډ ابس به تلگرام کاوه چې: «په داسې حال کې چې مونږ ډيرې هلې ځلې وکړې چې له بلشويستي جاسوسانو څخه افغانان وژغورو، مونږ به ساده په نظر راشو که چيرې مجبور شو

هغوي ته اجازه ورکړو. په دې لحاظ دا به زموږ په ګټه وي چې له افغانستان سره د وروستي بحث له پاره تر هغه پورې حاضر نه شو چې لـه بلشويک سره زموږ راتلونکې مناسبات معلوم شوي نه وي. »

سوريتز يو مشابه پيغام له مسکو څخه تر لاسه کړ چې داسې پکې راغلي و: « تر هغه پورې چې لـه انګليستان سره مناسبات مجمل وي نرم چلند دې وکړي. له هغې مودې څخه صرف ګومياشتي تيرې شوې چې امان الله خان خوښي ثرګنده کړې وه چې افغانستان د نوي خپلواکي په تر لاسه کولو کې د خپل سر نوشت اداره کول په خپل لاس کې لري او هم په دې باندې خوښي ثرګنده کړې وه چې تر دې وروسته به د هغه ګاونډيان پکې لاس ونه لري. هغه په دې نه پوهيده، چې نوي شوروي روسيه او د برتانيې پخواني امپراتوري د يوې داسې دوستي تمايل درلود لکه چې دده د پلار او د نيکه په وختونو کې داسې يو شي د افغانستان د هيلې په خلاف موجود و.

براوين د سوريتز له را رسيد و وروروسته کومه داسي وظيفه نه درلوده چې بايدبې ترسره کړي واي. هغه بايد روسيې ته تللی واي مګر خلک مرګ ته راضي شوي وو او دده له را رسيد و وروسته ډېر ژر دده د جانشين د تاکل کيدو خبره، دهغه د بريالېتوبونو د ثبوت ثرګندوي نه و. دسيمې د امتياز په خاطر هغه له افغانانو سره زياته سخاوتمندي کړې وه هغه په تاشکند کې خپلو امرينوته په ويلو کې بيړه کړې وه او ويلي يې ووچې: « تاسو به مازې په الفاظو سره د دوستي له ضمانتونو نه ستړي شي. » جنرا ميلسن به خپلې هيلي افغانانو ته داسې ثرګندولې: « براوين مړې تيره کړه. »(۲) دده اعمال، بې له دې چې دې وربانديې پوه وي، دبرتانيې له خوا رهبري کيدل او په دې توګه يې د برتانويانو په ګټه کار کاوه او دخپل هيواد، د مغلوبيدلو سبب شو. دده په ريکارډ کې داشي موجود وچې دې پخوا د برتانيې دجاسوس په توګه ثرګند شوي و.

پال الکساندر براوين دشوروي اتحاد له هغو لومړ نيوکسانو څخه و، چې له خپلې وظيفې څخه يې لاس اخستې و. هغه په کابل کې پاته شو او امان الله خان چې اسلامي پرنسيپونه دهغه مقدسه هيله وه، هغه يې د يوې افغاني تبعې په توګه ومانه. امان الله خان دغه پيشنهاد ته په تونديې سره ځواب ورکړ چې ګوندې دې له شوروي اتحاد سره داحسان کولو په خاطر براوين له منځه وړي.

براوین د افغانستان د نباتاتو او بوټو په برخه کی خاصه علاقه ښکاره کړه. د دغسی یوی علاقی ښکاره کول په هغو خلکو کی رواج لري چی په استخباراتی دستګاه کی کار وکړي. هیڅوک به له دوي څخه کومه پوښتنه ونه کړي که دوي هري خواته وګرځی، او له ځان سره څو بوټی د نمونی په توګه راوړي او براوین چی یو روزل شوي دیپلومات و، که چیري ورڅخه د دغو بوټو د نومونو پوښتنه شوي واي ممکن په دي باندي به موفق و چی د دغو بوټو نمونه یی ورته وبلی واي.

په افغانستان کی د ځمکی یوه کوچنی مربع شکله ټوټه د مسلمانانو د خاصو مبارکو کسانو د ښخولو په خاطر وقف کیږي، چی زیارت ورته ویل کیږي او په ګوټ کی یی یوه ډاګه ولاړه وي. د ډاګی په سر کی یوه ټوټه د مربع یا مستطیل په شکل د جنډي په نوم ټړلی وي چی شمال یی ښه رپوي. په دي ډاګو پوري نوري مزي هم تړلی وي. دامزي دهغو معتقدو خلکو له خوا د زیارت په جنډه کی تړل کیږي چی دښی عقیدي خاوندان وي او د دي کار په کولو سره دخپل د زړه مراد غواړي کله کله له تیمی قوطیو څخه یوه ټوټه پری کیږي او دلاس شکل ورځینی جوړیږي چی دشهادت ګوته یکی نیغه دروي او د زیارت د ډاګی په سر کی یی نښلوي. دا یوه نیغه ګوته دا مفهوم رسوي چی خداي (ج) یو دي او شریک نه لري. کوم زیارت چی ډیر مشور دي له هغه څخه د مسجد په توګه هم استفاده کیږي چی پنځه وخته لمونځ یکی ادا کیږي هیچاته اجازه نشته چی له بوټانو سره په دي ځاي کی داخل شی. مصلی یکی هواري وي او خلک خپل لمونځونه هلته کوي. څرنګه چی زیارتونه زیاتره دغره په لمنو کی وي نود آسمان په لور دهغو جګ بیرغونه سړي ته هغسی پاک او عالی احساس ورکوي لکه چی د لویو کلیسا ګانو جګی مناري یی ورکوي. د افغانستان ختیځ خواته، جلال آباد ته نژدي، په هډه کی یو ډیر نامتو مقدس زیارت شته چی دهډي داخو نزاده صاحب په نوم شهرت لري چی په یو وخت کی شینواري قبایل د امان الله دتیکه پر ضد راپاڅولی وو او امیر عبد الرحمن یی په داسی ویلو تحریک کړي و: «کله چی خلک پورته شی، او د بري شوق ورسره وي، هغوي د خلکو له اداري څخه وتلی وي.» د ملائی نفوذ، چی حتی په ژوندانه کی تقریباً خارق العاده و، دهغه له مرګ څخه وروسته ودمره زیات وچی دهغه د پیروانو زا منود هغه له نوم څخه کاراخسته او استفاده ورځینی کوله.

دجنوري په ۳۱ (د ۱۹۲۰ کال) نادر خان یوه لویه جرګه دهډي صاحب په زیارت کی دایره

کړه. د دې ورځی د تیارې نیولو له پاره دیوې مخروطی شکله غونډې په څنګ کی ځای جوړ شوی و چی نژدې پنځلس زره قبایلیان ورته مخامخ ولاړ وو. ښی کرتی او پتی لرونکی څاردرونه یې پراوړ وباندې اچولی وو. بهترینی خولی په سر، اوښی لونګی یې تړلی وې او تقریباً له تپولو سره تپوکی وې. هغه ځمکه چی دوې ورباندې ناست وو خامه وه، او د دوې ښکلی څپلی په ختو شوې، ځکه چی دافغانستان بارانی موسم و، او هغه جرګه چی د جنورې په ۲۷ نیټه دایریدله، د جمعی دورځی سره یې تصادف کاره وه دا د رخصتی ورځ وه ځنډول شوې وه زیاتره خلک د ننګرهار له پښتنی سیمو څخه راغلی وو اما د برتانوې سیمی افریدې او مهمند هم ورته راغلی وو.

د غونډې په سرکی یولوې تجیر درول شوې و. دتوپ دولس ډزې وشوې قبایلیانو پورته وکتل، نادربې ولید چی د دروجنرالانو او پنځو تنو عسکرو له خوا بدرګه کیده د تجیر لاندې په خپله چوکی کی کښیناست.

هغوې لاندې وکتل د غونډې په بیخ کی یوه اته ویشت کسیزه ډله، چی تکسی سرې اوږدې جامی یې اغوستی وې، اته ویشت تور بیرغونه یې په لاسوو کی وو، چی پکی سپین لاس، ستورې او داسلام هلال او مسجد خامکدوزې شوې وو. دجهاد تور بیرغ پورته شو. ورسپسی داسونو د توپخاې یونټ، د غرنی هاوا یونټ، توپونه، درې کنډ که سپاره سپاهیان او اووه کنډکه پلی سپاهیان روان وو.

نادر ودرید، هغه جګ سړې نه و، لیکن هغو مره ټیټ هم نه وچی خلک ونه کړاې شی هغه ونه وینی. «زه امیر د خپل استازې په توګه راالیږلی یم چی له تاسو سره خبرې وکړم. دغه اته ویشت نوې جنډې تاسو ته له مزار شریف څخه راوړل شوې دې چی هلته د سخی صاحب پر زیات باندې پرتی وې او برکتی دې.»

هغه په افغانستان کی د یو ډیر سپیڅلی زیارت په باره کی چی د حضرت علی په نوم باندې شهرت لرې، او د حضرت محمد (ص) زوم دې خبرې کولی. د دې زیارت شین ګنبد او په عربی سبک سینګار شوې رنګارنګ کاشی خښتی د مرکزې آسیا په دښتو کی شهرت لرې.

«امیر درې بیرغه افریدو ته، درې یې مهمندو ته، او درې یې شینوارو ته پیشکش کوې او پاتی نور یې دننګرهار پر نورو قبایلیانو باندې وویشل شی.

په سر د غو تکو باندې د سپین لاس خامکدوزې د وحدت او بووالی سمبول دې او د دې

نښان په احترام تاسو ته ويل کيږي چې اختلافات يوې خوا ته کړې ديو بل له لوټ کولو څخه لاس واخلئ او ټول يو موټي شئ. » نادر خان وويل چې. دا لاسونه د وحدت دوه نور ډولونه ښيي چې هغه د افغاني عسکرو، قبايلو او سني او شيعه طايفو په منځ کې يووالی دي او زياته يې کړه چې په راتلونکې کې دافغاني قبايلو سرنوشت د افغانستان له سرنوشت سره ارتباط لري.

نادر ادامه ورکړه: « د رواني قمري مياشت په اتلسمه نيټه به د افغاني او برتانوي هيأت په منځ کې دوهم کنفرانس جوړ شي... که چيرې د برتانيې حکومت د امير له غوښتنو سره موافقه وکړي نو د ټول اسلام به پاره به سوله منځ ته راشي، او که دا غوښتنې ونه منل شي جنګ به صورت ونيسي او تاسو به چمتو و اوسئ چې سمدستي پکې برخه واخلئ.

« د جنګ په صورت کې به حملې همزمان صورت ونيسي. هندونه پر شبقدر باند، افريد و به پر علي مسجد باندې او شينوارو به پرلنډ يکوتل باندې بريد وکړي او افغاني منظم عسکر و به د غو جبهو کې قبايليان تقويه کړي که مناسب وګڼل شي... په دغو حالاتو کې به زه يوه لويه قومي جرګه دايره کړم او تاسو ته به مفصل معلومات درکړم وروسته تر هغه چې کنفرانس رنګ او منحل شي، تر هغه وخته پورې تاسو بايد ارام کښيني او هيڅ بيړه مه کوئ.

« هغه مقدسه وظيفه هيره نه کړئ چې امير ستاسو په غاړه اچولې دد او له هغه څخه د غې مبارکې جنډې څرګندي نښې دي. » هرې قبيلې خپل ټاکل شوي کسان په درنښت سره وراندې کړل چې د نادر له لاس څخه جنډې را واخلي.

« امين خداي دي له تاسو سره مرسته وکړي. »

قبايليان بيا د غه جنډې د هډې اخونزاده صاحب ته يوړلې چې دوباره برکتي شي.

او هغه کيسه چې د قبايليانو په منځ کې کيدله داوه چې نادر په خبرو اتروکې ويلي و، چې روسانو څلور الوتکې اودري سوه زره عسکر استولي دي چې د برتانيې پر ضد له افغانستان سره مرسته وکړي.

نادر د اس په سورلې بيرته جلال آباد ته لاړ او له هغه ځاي څخه په موټر کې کابل ته لاړ. دري ورځې وروسته بيرته راغئ چې د افريد و مهمند و او برتانيې په قلمرو کې قبايلي مشران د خپل کور په بڼ کې راوغواړي. د هډې له زيارت څخه جنډې هم را وغوښتلې شوې او بيا خلکو ته ورکړلې شوې او افريدې چې بيرغونه يې له ځانه سره وړل په عسکرې تشريفاتو سره چې د موزيک ډله هم ورسره و له جلال آباد څخه د باندې مارش وکړل.

کله چې د برتانیې ترسیمي لاندې یوه کوچنۍ قبیله زخه خیل، خپل کلي ته ورسیدل پولاربنود سري برتانیې ته ولیکل چې اوس به دانا ممکن وي چې دولتي تپکوه را تپول کړي شي او یاد نماینده ګانو جرګه دي پینبورته راوستلي شي، داسې وویل: «تراوسه پورې غلا، لوټماري او داړه ماري موجوده وه مګر دا ټول دومره خطرناک نه دي اوس اسلامي بیرغونه افرید و مهمند و اوسوا تیانو ته ورکړي شوي دي او دا خلک د یوبل ملت تر سیوري لاندې راغلي دي. دا کومه معمولي خبره نه ده بلکې داسې ښکاري چې عمومي او دايمي اهمیت لري.»

ټول دغه شیان په پراخه اندازه پیښ شوي دي ځکه چې امان الله خان بیا هم د یو مکتوب د ځواب په انتظار کې و.

هغه په سپتمبر کې د انګلیستان پاچا پنځم جورج ته یو لیک واستاوه او ور ته د ځرمنو یو پیږ پوښ فرمایش ورکړي وچې طلایي کړښې، او لیکې یې درلودي. هغه پر یو ځلیدونکي کاغذ باندې په خپل قلم داسې لیکلي وو: «د یو محترم او دقدر وړ اعلیحضرت او زما ګران دوست جورج د لویې برتانیې معظم ټولواک او د هند امپراتور.» زه منته کوم چې ستاسو اعلیحضرت ستر حکومت د افغانستان د حکومت د بهرنۍ او کورنۍ خپلواکۍ او د هغه د حکومت له آزادي سره موافقه کړې ده او هغه یې منلې ده.»

په هغه ورځ محمود طرزي خپله په لندن کې د خپل کونترپارټ په نوم چې د بهرنیو چارو وزیر و یو لیک واستاوه چې په دې ډول و: «جلالتماب د بري او نیک مرغی مظهره... د تل له پاره برخورداره و اوسې... زه خپله زیاته خواشیني ځرګندوم او وایم چې که زما د پاچا لومړي او دویم لیک ته چې د هند د وایسرا په نوم په ډیره صمیمي فضا کې لیکل شوي و، د مخه ځواب ورکړ شوي واي او که له هغې لورې د دوستۍ لاس ورکړل شوي واي.

نووضعه به ترډې حده پورې نه خرابیدله ځکه چې د خپلواکۍ د لاس ته راوړلو له پاره چې د بشر له طبیعي حقوقو څخه شمیرل کیږي او افغانستان د هغه درلودونکی و او د دې ارزښت یې هم درلود، د شخړ و منځ ته راتلو ته کوم ضرورت نه احساسیده او په پوره میړانۍ سره به د دواړ وخواو د ګډې اداري او کنترول په واسطه ساتل کیده.

ټول هغه څه چې لندن ته معلوم شو، دا وچې پروتوکول خپل ارزښت له لاسه ورکړي و. په یوه ټولنه کې چې هغه د دې له امله بقا وه چې هرڅوک پکې «خپل موقف پیژني» افغانستان خپل موقف درک نه کړ. د اعلیحضرت حکومت په داسې حال کې چې د طرزي اختتامیه

جملوته غوږونه نیو ، نو دایی د ځان له پاره تحقیر وګڼلو چې امان الله خان هڅه کوله د دې پرځای چې دهند د حکومت له لاري خپلی چاري تر سره کړي راساً له لندن سره تماس ونیسي ځنګه چې یې نیکه دا کار کړي و. لارد کرزن چې د طرزي د مکتوب تر را رسید و پوري د بهرنیو چارو سکرتر مقرر شوي و ، وویل: « یوازنی لاره داده چې مکتوبونه اغماض شی. ترڅوچې امتحانی دوره پوره شوي نه وي، څومره چې ورته کم ووایو بهتر دي او په یقین سره به مور ځان دهغوي دوي موقف د ادعاګانو په پیژندلوکی مرتکب نه وي ګرځولی. زه وینم... چې زما په برخه کی ویل کېږي چې ماله محمود طرزي څخه مکتوب تر لاسه کړي دي. په دوسیه کی دهغه لیدنه دسندیوازنی شکل دي چې زه وربانديي خبریم. » د جورج پاچا په مستقیم امرسره امان الله خان ته یو شدید اللحن مکتوب واستول شو چې پکی ورته داعلیحضرت خطاب نه و شوي.

د ۱۹۲۰ کال په جنوري کی امان الله خان بیا جورج پاچا ته لیک واستاوه او پکی د یوهیأت د استولو پیشنهاد کړي وچې په عربی هیواد ونوکی دمسلمانانو د مقدسوځایونو لکه (مکه، مدینه) په مورد کی مشوره صورت ونیسي چې دبرتانیی په کنترول کی وي. دا لندن ته داسی یوه ضربه وه چې دجورج پاچا وزیران هم نه حاضریدل دالیک ورته وښیی. «امیر څه حق لري چې اعلیحضرت ته دمقدسو ځایونو د فیصلی په باب چې داعلیحضرت د قواو په واسطه نیول شوي سیمه ده خبري وکړي. »

مخبرین دنادر خان دجرګی خبر دهند حکومت ته ورساوه. لکه چې امان الله خان پوهیدلی وچې هغوي به دا کار وکړي. دهند حکومت ته دا معلومه شوه چې د نادر له خوا د کنفرانس نیته د لویدیزي کلیزي له مخی د فبروري اتمه نیته وعده ورکړي شوي وه ، د راولپنډي د معاهدي د لاسلیک کولو څخه پوره شپږ میاشتی.

دمخه د اګست په میاست کی دهند حکومت ته دا نه وه څرګنده شوي چې افغانان ممکن داسی وګنی چې شپږ میاشتی امتحانی دوره د دي په څنګ کی دیو اتوماتیک کنفرانس مفهوم درلود . هغوي په ویره کی وچې د فبروري په اتم تاریخ به نادر خان سرحد و نوته ورسوي او تصمیم یی نیول وچې بیرته به یی رخصت کړي.

هغوي د امان الله خان له خواد فبروري په لسمه نیته یولیک ترلاسه کړچې پکی صادقانه هغه وضعه بیان شوي وه چې دده د تکلیف سبب ګرځیده ، ځکه چې ده دبرتانیی له خوا کوم شی وانه ورید مګر رؤسان یی دخپلی دروازي په خوله ولیدل او غوښتل یی چې ور سره معامله

وکړي. «پرته د روسیې له حکومت څخه داسې کوم لوي او پر مختللی هیواد زموږ گاونډي نه و چې موږ ورسره په آزاد ډول تجارتي او سیاسي اړیکې ټینگې کړي واي... »

دا کار دهغوي له عقاید و، مذهب او کړو وړو سره کوم ارتباط نه درلود... د برتانیې حکومت له موږ سره د دوستۍ کومه علاقه ونه ښودله، نوموږ مجبور شولو نورو ته د دوستۍ لاس اوږد کړو. اوس هم وخت شته. که چیري گتیور او عاجله چاره په فکر کې نه وي، د دې امکان شته چې زموږد اوسنی دوستی د سړیدو په حال کې شی. »

کله چې امان الله خان ولیکل، دهغه په لیک کې دا موضوع مجمله وچې:

«زه غواړم هغه خلک تر کنترول لاندې راولم چې جهاد ته یې مخه کړې ده. » مگر دا بالکل ربښتیاوه چې : « که چیرې جنگ دوام وکړي او هغه قبیلې زیات فشار وويني، نو دا به ناممکنه وي چې غلزي تر کنترول لاندې راوستل شي. » د غلزي کوچي قبیلی تول د کابل له حاکمی طبقی سره دوستی نه ښیی د دورانیو قبیله هر کال د پسرلی په موسم کی کله چی له خپلو رمواو ښانو سره د افغانستان د غرونو او درو خوا ته مخه کوي د بی امنیتی او بی دسپلینی روحیه هم له ځانه سره راوړله.

و ایسرا چلمسفورد ته، چې له ډیرو مامورینو څخه زیات حساس و، دا مخه څرگنده وه، چی برتانویان دي چی د روسانو دموجودیت په صورت کی له افغانستان سره مفاهمه نه درلودله باید « د افغانستان د پالیسی لمر ښتیني اداره کوونکو، محمود طرزي او امیر سره په ډاگه او شخصي بحث وکړي. دوي هغه ځیري دي چی زموږ ته په اوسنی وخت کی بیخی نا اشنا ې... »

له لندن څخه دا احوال راغی: « د اعلیحضرت حکومت آماده نه دي چی دهغه گام پورته کړي چی غلط تعبیر شی او د هغه په ضعف دلالت وکړي. » د برتانیی په امپراتوري کی د آبرو، عزت او حیثیت عنعنه قوي ده.

سره له دي دهند حکومت د اپریل کنفرانس دایر کړ او تقریباً موفق نه شو چی افغانان هم ورته راوبولی.

امان الله خان او محمود طرزي هڅی کولی چی افغانستان ته د دوو فکتورونو، بلکی د دروفکتورو نو په نفوذ کی برابر وساتی. دوه له دغو فکتوروو څخه روسیه او لویه برتانیه وه چی په جغرافیایی لحاظ پردوي باندي تحمیل شوي وو. دریم فکتور امان الله خان له خپل زړه څخه وټاکه.

له امان الله سره له کوچنيوالی څخه د اسلام او دهغه د حمايه کولو احساس موجود و. په خپل مذهبی کارونو کی لکه دجمعی د ورځی لمانځه ته تلل او نور پنځه وخته لمونځ کولو کی د خپل نيکه په شان په تصادفی توگه عمل کاوه. د ده په نظر دغه شيان سرسري ښکاريدل او دي هغه کسان نه پيژندل چی د ده مسجد ته تلل دهغوي په احساساتو يی ترکومی اندازي اغيزه درلوده. يوشی چی طرزي له هغه څخه استنباط کړ، هغه داوچی دمذهب په باره کی هغو گډ عاقلانه روش درلود.

لکن هغوي دواړو له خطري څخه خبر کړي شول چی هغه هيواد ونه چی رسمی دين يی اسلام وي، په خپله اسلام د دوي د جوړيد و سبب شو، له دو خوا و څخه په تهديد کی وو. د ترکيی امپراتوري، دخليفه گانوتاټوبی، جنگ بايللی و او نژدي وچی د يوي معاهدي موضوع وگرځی چی ممکن د تجزيه کيدو سبب يی وگرځی په داسی حال کی چی د هري بلشويکانو د خپلو وعدو کولو سره سره کوچنی مسلمان هيواد ونه لکه بخارا، خيوه، او فرغانه يی يو په بل پسی ونيول د دي هيوادونو په خاطر امان الله خان له بلشويکانو او همدا رازله برتانيی سره خپله نوي دوستی په خطر کی واچوله.

دفرغانی له يوي ليري کسبه څخه يو مسلمان چی محمد امين نوميده د بلشويک د فتوحاتو مخنيوی کاوداو د دوو زروتنو قزاقيانو او ماشيندارو درارسيد و په انتظار کی و. مگر بيخی را ونه رسيدل. هغه له انگلستان څخه مرسته وغوښتله مگر اوس انگلستان د نوي روسيی په همکاري درانيولو او پلورلو په هيله کی و نو دهغه غوښتنی ته مثبت ځواب ورنه کړي شو.

يو افغانی هيأت د ترکيی د اذربايجان د افغانانو په نوم محمد امين ته لاړ او يو مکتوب يی ورته ورکړ چی پکی پيشنهاد شوي و چی له برتانيی سره دتولو همدرد يو دلاسه ورکولو وروسته هغه دي بايد په يو کنفرانس کی گډون وکړي چی دخپل هيواد راتلونکی پکی فيصله وکړي چي واقعی آزادي به وي. محمد امين ددي مغشوش ليک په ځواب کی وويل چی زه هم غواړم د بلشويکانو له غم څخه خلاص شم مگر داسی معلوميږي چی افغانستان له بلشويکانو سره همکاري کوي او هغه امان الله ته يو ليک واستاوه چی پکی يی غوښتنه کړي وه چی هغه دي په صحيح توگه اعلان کړي چی څه ډول پاليسی لري.

د ډلی يوغري چی پيغام يی کابل ته وړلو، د چين په کاشغر کی د برتانيی د قونسل يو

علي البدل نماينده و. د يلسن هيأت په مشهد کي، چي دوعده ورکړ شوو قزاقانو سر چينه وه بيخي راونه رسيدل د بلشويکانو په منځ کي سمدلاسه دا آوازه خپره کړه چي افغانانو پر هغو خلکو پس په دسيسو لاس پورې کړي دي چي دوي تر شاولاړ دي.

نو ځکه يلسن په دي باندې قادر وچي د هند حکومت ته د پيغامونو ليږل جاري وساتي. «بلشويکانو پر دوه مخي افغانانو باندي بخارا له انګليس پسند حکومت سره په خيرو اتروکي شکمن دي... » « دتاشکند تر يوعاجل امر لاندي د بلشويست يو مخصوص ګارډ په بند سلطان کي ځاي په ځاي شوي دي ځکه داويره موجوده وه چي افغانانو د او بودرسولو شبکي ته کوم زيان ونه رسوي... » « د پنجده په سيمه کي داسي ويل کيږي چي افغانان عجالتاً د افغانستان په باره کي په دي ويره کي دي چي د بلشويکانو له خوا و نه نيول شي. » او هند حکومت د برتانيي حکومت ته داسي راپور ورکړ: « مور له (امان الله ) څخه ځان ليري ساتو څو چي د (هغه) په توطئه کي مور هم تورن او شريک نه شو. »

د ۱۹۲۰ کال په لومړ نيو مياشتو کي بلشويکان پياوړي شول او متحدينو ته يي اړتيا لږه شوه. هغوي خپل سپين روس مخالفينو ته ماتي ورکړي او نوي ځمکي يي تر لاسه کړي. هغوي د تاشکند د اورن برګ اورګاډي لاره چي د انقلاب ضد له خوا نيول شوي وه، بيرته تر لاسه کړه، خود هغوي د فعالولو له پاره دسون مواد يي نه درلودل، نويي د اورګاډي خراب او له کاره لويدلي واګونوه ماتول او اورګاډي د بخارا په ديګونو کي يي له هغي څخه کار اخسته. د اورګاډي پتلي تردي حده زيا نمني شوي وي چي ۱٤٥ ميله واټن يي په څلورو يا پنځو ورځو کي واهه، په دي اورګاډي کي يوه افغاني رسمي ډله د اورګاډي له نا آرامي څخه شکايت وکړ او روسانو ددغه خبره واوريدله.

د جنوري په ۲۱ نيټه افغانانو په کابل کي خپل غوښتن ليکونه سوريټزته ورکړل. هغوي موافقه وکړه چي انګلستان جنګ بيا پيل کړي چي د هغې له حتمي پيښيدو څخه په ويره کي ووځکه د اتيازرو څخه نيږلي تر سلوزروټوپکو، پنځلس سوه ماشيندارو او د پنځوسو مليونو طلايي روبلو د پوره کيدوله نيټي څخه څلور مياشتي تيري شوي وي. بياهم دوي به دا شي په ليکلو کي نه راوړل. هغوي آماده ووچي په مختلفو شرايطو باندي ددوستي ترون وکړي چي دلسو مليونو د سرو زرو مرسته، د باروت جوړولو ماشين الات د تلګراف مزي اوله سرحدي قبايلو سره دوسلي مرسته هم پکي شامله وه. د دغي غوښتني ځيني شيان له هغو غوښتنو سره

گډوو چی امیر حبیب الله خان د نړیوال جنگ په موده کی له جرمنی هیأت څخه کړي وه. د هغو غوښتنې ډیري زیاتی وي. سوریتز او نور روسان اریان پاته شول. وروسته له هغه بل ډول پیشنهاد یی جوړ کړ. لس میلیونی غوښتنه یو ملیون شو. د توپکو شمیر زرو ته ښکته کړي شو او هغه په دي شرط سره پیشنهاد کړي شول، چی افغانستان دي خپله سرحدي لاره د دغو وسلو دوړلو په منظور بنده نه کړي چی له تاشکند څخه تر برتانوي سرحده پوري قبایلیانو ته وړل کیده، دولس الوتکی، اته د دافع هوا توپونه یود بی سیم د ستگاه او د باروت جوړولو سامان، جعبه یی ورته پوره کړه.

سوریتز چی فرمان یی له مسکو څخه اخسته، چی هلته په راتلونکی کی له برتانیی سره د یوي تجارتی تړون هیله کیدله، له افغانستان سره د نظامی تړونو نو پریکړي ځنډولی. برتانویانو چی دا فغانستان په باره کی د مخه د موافقولست جوړاوه، چی له روسیی سره خپلو مناسباتو ته ادامه ورکړي دا اټکل یی وکړ، چی تر اکتوبره پوري جنگ نه شی زغملی.

نود مارچ په میاشت کی یی امان الله خان ته یوه دعوت نامه ولیږله، چی د اپریل په میاشتی کی خپل یو هیأت دجرگی له پاره هندته واستوي خود امان الله خان له خوا کوم رسمی ځواب ورته ورنه کړي شوه سمدستی د اپریل په سرکی امان الله له روسانو څخه مخ واړاوه او د برتانویانو خواته شو.

کپتان ال. اي. بارتن L. E. Barton په لنډیکوتل کی د خیبر دسیاسی نماینده گی مرستیال د ۱۹۲۰ کال د اپریل د اوومی نیټی په سهار په خپلی وظیفی باندي حاضر وچی احوال ورته راغی چی دري موټري د تورخم بندرته راغلی دي او پکی ناست کسان غواړي چی سمدستی لنډیکوتل ته لاړشی. دغه کسان مهم غوندي ښکاریدل. کپتان بارتون خپل دگروال راوغوښت او ورته یی وویل چی د کفرانس د هیأت رارسید وته دي بیدار واوسی. دا خبره چی ورته کیدله ډگروال هغه لیک لوستلو چی باید ورته تیره شپه را رسیدلی واي.

محمود طرزي او دهغه هیأت په یوموټر کی ناست و. د دوي پسی دوهم موټو د ملازمینو و، او په لاري کی د دوي شیان و، کپتان بار تن تر بندره پوري د هرکلی کولو له پاره په پښو لاړ، او هیله یی څرگنده کړه چی که له محترمو ښاغلو څخه یوتن راشی او له ده سره وغږیږي. افغانانو ورته احوال ورکړ چی ښاغلی بارتن کولی شی افغانی خاوري ته داخل شی. بارتن موټر ته نژدي شو. افغانانو ورته لاس ورکړ خو ځانونه یی ورته معرفی نه کړل. کپتان بارتن وویل چی لیک همدا اوس را ورسید. د موټر ناست کسان حیران او په قهر تیر شول.

کپتان بارتن وویل: «مورږ نه پوهېږو چې زموږ دعوت منل شوي دي.» د موټر کسان احساساتي شول او وويل: «د کاسی لاندي نيم كاسه بايد وي.» «دا صرف داسی ښکاري چی برتانيه بل شی غواړي.» «که ته موږ نه غواړي موږ کولاي شو بېرته لاړ شو.» «موږ د سولی کنفرانس ته راغلی یو او د خپل راتګ په برخه کی مود مخه تاسو ته لیکلی و او داده ستاسو فوق العاده هر کلی.»

«عالي کمشنر غواړي له تاسو څخه په عزت او احترام، چی دبل هیواد د هیأت له شاه سره مناسب وي، پذیرایی وکړي خونن نه شی کولی ستاسو هر کلی وکړي.»

عبد الهادي چی یو ځوان سړي و او د محمود طرزي پر ځاي د سراج الاخبار مدير مقرر شوي و او وروسته له هغه سره دبهرنيو چارو په وزارت کی یو ځاي شو وویل: «تاسو د رواغ وابی او یا په هر شکل باندي درواغ به یو ځای کی ويل شوي وي.» عبد الهادي يو خاکسار سړي وچی دامان الله خان تر قيادت لاندي یی دمقام د حاصلولو چانس ورته برابر شوي وخو بیاهم په دي، پوهیده چی دمخه تردي چی خپلی نظر یی بيان کړي هغه ترتیب او منظمی کړي.

یو مسلمان ته چی درواغجن وویل شی په قاریږي او مسیحی کپتان بارتون هغوي ته په مسلمانی قهر سره ځواب ورکړ.

عبد الهادي وويل: «زه تاد درواغو په ويلو نه تورن کوم ليکن پاته موږ ته حقيقت نه بيانوي او يا جلالتماب وايسرا لازم نه ګنی چی تاسی له موضوع نه خبر شی ځکه هغه حتماً د امير ليک تر لاسه کړي دي.»

وروسته له دویم موټر څخه یو کاتب نژدي راغی او څرګنده یی کړه چی اته ورځی د مخه امیر مکتوب لاسلیک کړي دي او امکان لري چی وایسرا لاهغه تر لاسه کړي نه وي. طرزي يوه شیبه فکر وکړ او وويل دا بيخي امکان لري د هيأت وضعه دستی نرمه شوه. هغوي دوستانه څرګندونه وکړه چی د اپريل د پنځم تاريخ له پاره دعوت شوي و. ليکن باران او و اوره د دوي د ځنډيدو سبب شو، نو وروسته تر هغه چی موږ وليکل دَ اپريل په اتم تاريخ رسيږ و دستی موحرکت وکړ.

کپتان بارتون وويل: «د اخو اتم تاريخ نه دي اووم تاريخ دي.» افغانی ډله په داسی حال کی چی سګرټ او څنباک ورته راوړل شوي وو. ونه ځکل په خوښی سره بيرته لاړل.

په هغه شپه ګرانت د ناڅاپی د نيولو په باره کی زيات تشريحات وليکل:

« د جلال آباد په سيمه کې د پيښو په هکله زمونږ د خيبر استخبارېه په سختۍ سره اجرات کوي ځکه چې نادر ټول هغه کسان چې زمونږ نماينده ګان دي نيولي دي. زه پوهيږم چې همدا اوس زمونږ ځينې کسان چې شميريې دولسو ته رسيږي په جلال آباد کې بنديان دي. »

د اپريل په دولسه همغه هيأت له سرحد څخه راواوښت او د احترام د ګارد له خوايې هر کلي وشو. يو مخصوص اورګاډي دوي د څو ورځو له پاره په هند کې وګرځاوه. اورګاډي په هغو ځايونو کې چې افغانانو ممکن له هنديانو سره ملاقات کړي واي، توقف نه کاوه، مګر طرزي چې کوم شی د اورګاډي له کړکۍ څخه ليدل، هغه ورته په زړه پوري ښکاريدل. په هغه کال حاصلات ښه وو هغه په دي فکر کې لاړ چې په ځينو ځايونو کې چې حاصلات ښه وو خلک يې غريب ښکاريدل. افغانان د ميسوري په لور په حرکت کې وو.

دا کنفرانس د کومې معاهدي د لاسليک کولو په خاطر نه دايريږده، مازي خبري پکې کيدي. د برتانيې يو مامور ګاډي کې وويل: « که يو سړي په لوڅ لاس له بل سړي سره روغبړ کوي او ورته لاس ورکوي اعملي له هغه عملي څخه توپير لري چې که يو سړي په دستکلو سره بل سړي ته لاس ورکړي. » او طرزي دي خبرو ته غوږ نيولي و، د رسمي مراسمو په جريان کې هغه مجبور و خپل اهداف په داسې الفاظو څرګند کړي چې انګريزان يې په رسمي راپور کې دستوري په نښه ښوول. هغه وويل: « جنګ اوسوله. *** » زه غواړم چې د وروستي ناکام جنګ ټولي نتيجې له منځه يوسم. »

د دي کنفرانس دوي ډيري مهمې پيښې د دي جريان جزنه وي.

ميسوري د دي په خاطر ټاکل شوي وه چې ګوښه وه. د هند د هوارو او دارغوانې غرونو د څوکو په منځ کې ميسوري د همالي د غرونو په لمن کې داسې يوه سيمه وه چې په هند کې برتانيوي حکمروايانو د هند د زياتو ګرميو په وخت کې خپلې کورنۍ هلته ليږلې. د ميسوري جګوالي د کابل په اندازه وه اما سمسورتيا يې د کابل نه زياته وه او د غونډو له پاره يو ډراماتيک ځاي و. په اپريل کې چې ګرمي لاکمه شوي نه وه، نو ميمي بيرته نه وي راغلې او سيواي (Savoy) هوټل، د اروپا يانو د استراحت مرکز، د کنفرانس له پاره زيات ځاي درلود.

ليکن د سيواي په هوټل کې حتی په نامناسب موسم کې هم ځينې هندي ميلمانه وو. يو پکې د کانګرس د ګوند مشر او د هند د خپلواکۍ ګتيندوي، جواهر لعل نهرو و چې خپلې ښځې او موريې چې ناروغه وي، راوستي وي چې صحت يې ښه شي. اندیرا، د هغه څلور کلنه لورهم

ورسره وه. «هغه ناځاپي يوه شپه» وليکل چې: «ماد پوليسو له سرمامور سره ملاقات وکړ چې د محلي حکومت يو مکتوب يې راته وښوده چې پکې له ما څخه غوښتنه شوې وه چې تعهد وکړم چې له افغاني هيأت سره بايد کوم ارتباط ونه نيسم. دا زماله پاره يوه فوق العاده ضربه وه، ځکه دا يوه مياشت کېږي چې زه په دې هوټل کې اوسېږم ماهغوي نه دي ليدلي او نه يې دليدوچانس راته ميسردي. د پوليسو سرّ مامور په دې باندې پوه و ځکه هغه په ډېر وقت سره د افغاني هيأت څارنه کوله، او استخباريه هم په شاوخواکې زياته ليدل کيده... کله چې ما د تعهد نامې په رد ولوټينګار وکړ، له هوټل څخه د خارجيد و امر راباندې وشو او راته وويل شو چې له دې ځای څخه... د څلور ويشتو ساعتو په موده کې بايد ووځم.» (٤)

د نهرو دوتلو خبر په اخبارو نو کې خپور شو او څرنګه چې افغانانو ضمانت کړی و، نو طرزي د نهرو مورته هره ورځ يوه ټوکري ميوه او ګلان ليږل. دلږو او و شپو په موده کې نهروته اجازه ورکړې شوه چې بيرته هوټل ته لاړشي. هغه د سيواي هوټل په محوطه کې په خپلو پښو لاړ چې دافغاني ډلې يوتن ووينې په داسې حال کې چې ماشومه انديرا ورسره وه.

په رسمي راپور کې ويل شوي وو: «افغانانو د محرکينو د پيژند ګلوي په اساس چې په هغه ځای کې موجود وو چې دوي بې فايده کر کتېرونه چې، څرګندونې بيمعنی دي، او داسې هيله نه کېږي چې دوي ورڅخه کومه ګټه ترلاسه کړي.»

نهرو داسې ليکي و: «له ميسوري څخه اخراجيدو په نتيجه کې، ما نژدې دوي او ونې په اله باد کې تيرې کړي، او په همدې وخت کې وچې د کروند ګرو په جنبش کې ګير شوم. دغه ګيريدل په وروستيو کلوکې زيات شو او زما معنوي ژوند يې تر زياتې اندازې تراغيزې لاندې راوستلی و. کله کله تعجب کړي دي چې که له هوټل څخه ايستل شوي نه واي، او اله باد تللی نه واي، څه به راته پيښ شوي واي، په داسې حال کې چې په هغه وخت کې مې کوم مصروفيت هم نه درلود.» (٥)

په ميسوري کې د افغانانو موجوديت، نهرويې په خپلو اهدافو چې د يو خپلواک هند منځ ته راتلل و، يو ګام نور هم مخ په وړاندې بوتلل، او افغانانو د هند د دوو راتلونکو صدراعظمانو په محضر کې و.

دمې د مياشتې په پای کې کنفرانس وځنډيد، ځکه چې په سرحد کې وضعه له هر وخت نه زياته خرابه وه. عبد الهادي ډکی ته لاړ، چې راپور ورکړي ددې وقفې په موده کې هلته يوه

پیښېږي وشوه چې ځوان غلام صدیق پکې گرفتار شو. غلام صدیق خان چې ټولو نويو تجربو ته لیوال، او ډیو پراخه نظر درلودونکی و، له سفیر سره هندوستان ته تللی و، هغه د طرزي د اسیستانت په توگه له افغاني هیأت سره په میسوري کې و.

داهغه مکتوب دی چې برتانویان تحریک شوي و وچې طرزي ته ولیکي:

« تا ته د مخه د هغو شیانو په باب پوره خبر درکړي شوي وچې هند ته د (غلام صدیق) راتگ لازم نه گڼل کېده. بیاهم زه مجبور یم ستاسې مکتوب په رسمي توگه ځواب کړم او تا له موضوع څخه خبر کړم. « غلام صدیق، په هغه وخت کې چې په میسوري کې و، یوې واده شوې اروپایي ښځې ته بې احترامي کړې و او په هغې باندې یې لاس اچولی دی، او دا له تاسره زما شخصي مشوره ده چې د دې له پاره چې د غه سپکاوي له منځه وړل شوي وي، هغه دې له میسوري څخه ډکې ته په دې بهانه واستول شي، چې له هغه څخه هیله شوې ده چې عبد الهادي ته چې په دې وخت کې په ډکه کې و، یو مکتوب یوسي. پدې باندې ټینگار شوی وچې دی بېرته هند ته بېرته رانه شي. دې د خپل دغه ډول عمل په واسطه دیو مرستیال نماینده په توگه مناسب نه دي، او که ته دا فورمالیتې غواړې نو وایسرا به رسماً امیر ته ولیکي، او هغه به له حقیقت څخه خبر کړي. »

دبرتانیې په مستعمره ځایونو کې، جنسي حرکتونه هیڅکله د داسې حرکتونو او نخرو په ښودلو سره شوقیان او غربیان سره نه یوځای کوي. غلام صدیق ته چې حتی په افغانستان کې یې ممکن دبل سړي ښځه یې بېخي لیدلې نه وي، د غربي نړۍ دود دستور معلوم نه و.

د دغسې مسایلو د چوپ ساتلو قانون چې ممکن په انگلو ساکسو نیانو کې نافذ وي، پر محمود طرزي باندې کوم اثر ونکړ نو هغه په یو د رسمي غونډه کې شکایت وکړ چې: « زه له ډیرو ناوړو حالاتو سره مخامخ یم ځکه غلام صدیق چې زما د ښې لاس سړی او په لنډه لیکنه کې تکړه و پریوې داسې موضوع باندې تورن شوی دی چې زه ورته یو غلط تور لگول وایم، نور اجازه نه لري ماسره په میسوري کې و واسي. ما دخپل صلاحیت په چوکاټ کې د روغې جوړې شریفانه هلې ځلې وکړې امازه د دې موضوع په هکله خپل احساس نه شم پټولی. »

غلام صدیق خان هڅه وکړه چې بېرته هند ته واوړي او ممکن سرحدي گارد ورته اجازه هم ورکوله مگر د بندر ورڅنې تلاشي کېدل دده مانع وگرځېد. هغه په دې کارباندې تحقیر او خپه شو او د قبیلوي ټینگار با وجود چې دی یې په ټینگه سره صادق او مغرور گرځولی و هم ممکن و نه بخښل شي.

له کابل څخه د خبرونو وخت په وخت را رسیدل، په میسوري کی دافغانانو د مزاحمت سبب گرځیدلی و. طرزي و اوریدل چی له امان الله خان سره دده اعتبار ته خطر متوجه دي او په داسی حال کی چی دامان الله خان دپلار دگتیو په خاطر له لوړ ومدار جو څخه ټیټو مدار جوته دراتلو تجربه ورسره وه یاهم شوق من و، چی خپله وظیفه په بریالیتوب سره سرته ورسوي او یا وطن ته دراتگ بیره وکړي.

ډا بی په خپله طرزي ته وویل او خپل حکومت ته یی خبر داري ورکړ:

که امان الله خان قدرت له لاسه ورکړي نو حریص او سخت زړي نادر به قدرت تر لاسه کړي څوورځی دمخه ته روان شوي نادر اعلان وکړ چی له برتانیی سره جنگ حتمی دي، او له بلشویکانو څخه یی وغوښتل چی همکاري وکړي. لیکن نادریو نظامی سړي دي چی نظامی سړي طبعاً د جنگ په فکر کی وي. زه او تاسو... هغی سیاست مداران یاستو چی له جنگ څخه مخ اړوو.»

ددي په پوهیده و سره چی روسیه افغانستان ته پیشهاد کړي و، او له نادر څخه طرزي ته ترجیح ورکول، برتانویانو طرزي په خوشحالی او بري سره ولیږه. کله چی هغه د جولاي په ۲۹ نیټه له بندر څخه تیریده، له ده سره د هغوشیانو لست هم وچی برتانویانو افغانستان ته په دي شرط ورکول چی که امان الله خان ښه سړي شی.

له راولپنډي څخه وروسته هم همداسی قید او شرط موجود و او د برتانیی له نظره هغه په رښتیا سره یوبد سړي و. هغوي دا نه شوزغملی چی له هغه سره دهوبد سړي په توگه چلند وکړي. روس کیپل دهغوي ستونزي داسی تشریح کړي وي: «په یووخت کی دا نوم سخت غږیدل مشکلات.»

کله چی کرزن له نتیجو څخه خبر شو خپل عدم رضایت یی داسی وښود:

«افغانستان نه شی کولاي د وو میناتو فاحشه وگرځی.» سرارتر هرتزل (Sir Hrthur Hirtze) په ډیره پراخه سینه ولیکل چی: «موږ نه شو کولاي پرامیر باندي فشار وارد کړ وچی له بلشویکانو سره دي خبري اتري فسخ کړي له هغه څخه اصولاً داسی توقع باید ونه شی چی د مخه تردي چی بیا دوهم ځل خپله پخوانی مینه لاس ته راوړي، له خپلی نوي مینی څخه لاس واخلی.»

د کنایو له نظره د غوښاغلو هغه شی انتخاب کړ چی د هغه کولو په باره کی یی فکر کول.

# اتم فصل

## د ۱۹۲۰ کال له لومړیو وختونو څخه
## د ۱۹۲۱ کال د جنوري تر ۱۰ نیټې پورې

د افغانستان د خپلواکۍ د لاس ته راوړلو کالیزه وه او څو سوه افغانان د سیټج په مخکې د هند د تیاتر د هنرمندانو ننداري ته ناست وو، یو مداري د لاس په صفایي سره یوي خولۍ ته نژدې شو او په حرکاتو سره یې د یو بهرني هیواد بیرغ راوایست. ټولو ورته چک چکې وکړې. د حاضرینو له ډلې څخه یو سړي جګ شو او غږیې وکړ چې ننداره دي بس کړي. دا سړی امان الله خان و. لږو کسانو ته معلومه وه چې دی هلته و.

امان الله خان پوښتنه وکړه: «ولې لاسونه پړقوي؟ یو څو کسان چې چک چکس وکړي نو بیا تاسو ټول له هغه څخه پیروي کړئ؟ تاسو باید د هر کار په باره کې فکر وکړئ څه چې کوئ باید وربانديې پوه و اوسئ.» هغه په خپل ځای کښیناست او ننداري دوام وکړ.

له خولۍ څخه د برتانیې بیرغ راوایستل شو. چوپه چوپتیا وه، بیا مداري د افغانستان بیرغ راوایست. حاضرینوورته ګرم احساسات وښودل. د امان الله خان مقصد پوره شو.

امان الله خان داسې یو پاچا و چې د ختیځو هیوادونو ډیر لږ شمیر خلکو لیدلی و - او یا هم حتی د لویدیځو هیوادنو خلک هیڅ یو پخواني امیر بې له داسې مراسمو څخه چیري نه ته چې څوک وربانديې پوه نه شي چې امیر په هغه ځای کې له هغوي سره دی. نن که یو افغان په تصادفي توګه خپل شاو خوا ته نظر واچوي و به ګوري چې امان الله خان یې ترڅنګ ولاړ دی.

ځینې کسان ممکن دهغه له ځنګ څخه په لاره کې تیرشي او ویې دروي چې ورسره خبري اتري وکړي. هغه د پاچاهۍ په لومړیو وختو کې خپل ساتونکي رخصت کړي وو. کله چې دده کورنۍ وربانديي انتقاد وکړ ځکه دده دوژني له پاره هلې ځلې روانې وي او د بولرګین پل دده دموټر په مخ کې وران شوي ونوده په سره سینه ځواب ورکړ: «اولس زما ساتونکې دي.»

دامان الله خان یو اوښي وویل: «امان الله خان له افغان ولس سره په افراطي توګه مینه لري. دامان الله خان په فکر کې هم داخبره نه ګرځید له چې دده افراطي مینه ممکن بیرته ادا ه شي. هغوي چې دامان الله کړه وړه نه خوښوله په شمیرلږ، او غیر منطقي خلک وو. امان الله خان داغوره ګڼله چې زیات شمیر خلک یې پلوي کوي.

د امان الله خان خوش باوري اورضامندي خبر په ټول افغانستان کې خپور شو. امر د ټولو قوتونو منبع وګرځید. هغه دیو مطلق پاچا په توګه انتخاب شو. کله چې حکومت له موسم سره سم له یوځاي څخه بل ځاي ته لیږ دیده، داتګ دیو سړي دکور دکوچ کشې په شان معلومیده. دده اوامر قانوني وو، اوس د قدرت دغې سرچینې دومره حرارت درلود چې د افغانستان هر سړي ته بلنه ورکړي شوي وه چې ځان پکې تود کړي.

هغه په د کندهار خلکو ته ویل: «زه خوښ یم چې تاسو زما مشوري اوري. هغه به وري مشوري هم ورته ورکولې چې:» د نورولاسونه مچول یود ول غوره مالي ده، داسې کارمه کوي. مرسته یوازې له خداي(ج) څخه وغواړي. دي ته متوجه شي چې اول یوسړي ښه وپیژنې بیا یې احترام وکړي.»

امان الله خان هڅه کوله چې افغاناتو ته د ځان پیژندنې درس ورکړي. داکار په نورو ځایونو کې عمومیت نه درلود او د افغانستان په ډیرو خلکو کې دغه حس و ده نه وه کړي چې ځان باید وپیژني چې داکار د دې باعث ګرځي چې دهر چا عقیده او مفکوره مهمه ده. امان الله خان په خپل ځان باور درلود. د امیر په کورنۍ کې دده زیږید نه او دیوي حریص مور دنازولی زوي په صفت (که څه هم ورڅخه ډاریده) او دمحمود طرزي نوي افکارو ته چې له باند نیوسترو هیوادونو څخه یې له ځان سره راوړي وو، غوږ نیول ټول دغه شیان ددي باعث شو چې دي دیو فرد په توګه په خپل ځان باور ولري او دي ته وهڅول شي چې دخپل ځان له پاره جهت وټاکي. هغوي چې په سماوار ونوکې کیناستل هغوي چې په بازارونو کې کراچې چلولې او «خبر دار» ناري به یې وهلې دمخه تر دي چې دا ډول خلک ځان په لویو ډلو «اولس» پوري وتړي فکریې

کاوه چی په وړو ډلو (کورنی یا طایفی) پوري مربوط دي او ځانونه به یی خوار، حقیر او بی اهمیته حسابول. په هر حال دوي په دي عقیده ووچی ټول شیان دخداي په رضا باندي صورت نیسی او په دي حساب سره هغوي څنګه داهیله کولاي شوه چی په هرشی کی بدلون راوستی شی.

امان الله خان پر دغسی شیانو باندي په غصه کیده. په تیره بیاچی دقران په شهادت سره دفاع کیدله. په افغانستان کی زیات شمیر خلک بیسواده دي، کم شمیر خلکو پښتو او فارسی چی ژبه، به یی وه لوستلی شوه، عربی ژبه یی لوستلی شوه چی قران په هغه ژبه نازل شوي دي. ځکه داګناه ګڼله کیدله چی دالله(ج) په کلام کی لاس ووهل شی او ترجمه شی. الهی احکام دملایانو له خوا تدریس کیدل، او امان الله خان په دي کار باندي خپه کیده چی دخداي(ج) احکام دځینو نیمچه ملایانو له خوا په غلط سره تدریس کیږي.

دلویدیځ دګټیو هغو امید بښونکی هیواد چی امان الله ژمنه کړي وه خپل خلک په هغه لور بوزي، داسی یو هیواد وچی امان الله بیخی لیدلی نه و، دحضرت موسی په شان هغه صرف دشایعاتو له مخی ورباندي پوهیده. هغه په ډیرو هغو شیانو پوهیده، چی افغانستان په خپل تجریدي حالت کی ورته فقط سطحی کتل، اما داهغه موضوعات ووچی دده په سلطنت کی ډیر خلک له ده نه زیات ورباندي خبرو. دده دنیکه دځینې والی، او د پلارد نوم والی یو ځاي کیدل، دهیواد په ګټه تمام شوي و. عبد الرحمن په زور او تشدد سره ډیري مهمی کورنی تبعید کړي چی دهغوي ساحه کی دازده کړه د افغانستان له زده کړي څخه بهتره وه دحبیب الله په دوره کی دغو کورنیو له خپلو زامنو سره چی دبل هیواد رسم او رواج یی زده کړي وو بیرته راغلل. طرزي، مصاحبان، ذکریا، او دشاغاسی کورنی، چی علی احمد په هغه پوري منسوب وټول په هغو کی وي.

امان الله له کابل څخه بیخی ډیر لیري نه وتللی، غربیان چی دعصري توب په لور دده پرهلوځلو باندي پوه شول نو داسي به یی ویل: «امان الله خان باید په انګلستان کی تربیه شوي وي او زده کړه یی کړي وی.» که امان لله خان دهغوي خبري اوریدلی واي نوپه قار شوي به واي هغه دخپل عنعنوي رقیب انګلستان په لور د ډیروشیانو په خاطر متوجه کیده لیکن نه دحرص او جا طلبی په خاطر.

امان الله خان د اوریدوله لاري پوهه تر لاسه کړي وه، او چون ډیري خبري ورته محمود طرزي کولی، او طرزي خپلی ټولی څرګندونی او مفکوري په سراج الاخبار کی خپري کړي وي.

نو ټول د امان الله په شان نور و ټولو باسواده ځوانانو معنوي ذخیري درلودي. هغوي داورګاډي، مایکروسکوپ، تیلسکوپ لرغون پیژندنی، په علمي توګه د هیواد حالاتو اټکل کاوه دهغو کسانو په باره کې چې دهمکاري له مخي یې خپل سهامي شرکتونه تاسیسول معلومات ترلاسه کړي وو، هغوي په دې پوه وو چې همدا اسلام دي چې دعلم او پوهي منبع ده پوهان او ادیبان یې لویدیزي نړي ته ولیږل. د حوعددو عربانو له خوا کشف شوي یو ډېر پخواني تیلسکوب ترکستان ته نژدې په سمرقند کې دالوغبیک په رصد خانه کې موجود و. د پیړیو راهیسي ځیني مسلمانان په دې هڅه کې وو چې د علومو هغه پخواني واک او اختیار چې دمسلمانانو په لاس کې وبیا ترلاسه کړي، ځینو فکر کاوه چې دلویدیځې نړي اوسني اختراعات دمسلمانانو دمغزو او تفکر زیږنده ده، چې دصلیبیانو په واسطه ویوړل شول. ډېرو خلکو به دا ویل چې که چیري دکافرانو له خوا داسې ښیګڼي اونیک مرغي موږ ته رارسیږي، موږ یې هیڅ نه غواړو او طرزي خپل تسل په دې خبرو باندي کاوه چې: «که الماس په خټو ولړل شي بیاهم الماس دي.» هغه داسلام داساساتو دعاقلانه تطبیق په باره کې خبري وکړي.(۱)

د شلي پیړي په زیاتو برخو کې دافغانستان ځوانان په دې هیله کې وو چې هغه شان او شوکت بیرته ترلاسه کړي چې افغانستان په تجریدي حالت کې له لاسه ورکړي و.

په دې وخت کې د دوي له ډلي څخه یوهم امیرو.

د ۱۹۲۰ په سر کې یوه ورځ جارچیان دکابل په کوڅو کې ګرځیدل ډولونه یې وهل او په جګ اواز سره به یې ناري کولې، چې د امیر په امر سره ټول مریيان له دې وروسته ازاد دي. کوچیان چې په بازار ونو کې ګرځیدل دهغوي غږونه یې واوریدل. ځیني کوچیاني ښځو دافغاني اصولو په مقابل کې ګستاخانه سلوک کاوه. خپل مخونه یې نه پټول. چیري چې یې زړه غوښت هغې خواته به تللې او په داسې حال کې چې دوي پوهیدي چې دښار خلک دوي په بهرنۍ ټولنې پوري منسوبوي کوم شي یې چې په خوښه وه، هغه به یې کاوه.

اوس دغي ښځي شخصي کورونو ته ورننوتلې او خوشاله وي دخوشالي ناري به یې وهلې چې ټول مریيان آزاد شول چې د دروازو محافظین ورته اریان پاته شول. هغوي له خپلو چمبو سره سندري ویلې او څنګه چې به یې کومه وړه مینځه پیدا کړه نو سملاسي به یې له کوره څخه و ایستله او په کوڅه کې به یې له ځانه سره روانه کړه.

په افغانستان کې لږ شمیر مریيان پاتي وو. دامان الله نیکه یوه اعلامیه خپره کړي وه چې

په راتلونکې کې يې مريتوب منع کړي و او د اوسنيو مريانو د ساتنې اجازه يې ورکوله ليکن دي کارهم کومه گټه ونه کړه.

ډير مريان هزاره گان وو. داسې عقيده موجوده وه چې داخلک د چنگيزخان له اولادي څخه دي، څه د دوي سترگي تنگې او قواري يې دغلو په شان وي. دا کيسه ډيره واضحه او دهيرو لونه وه. که څه هم حتی پوهاند وروسته دهغې صحت تربحث لاندې ونيو. هزارگانو دعبد الرحمن په مقابل کې بلوا وکړه چې په شدت سره وځپل شول، او دي له هغوي څخه زيات متنفر شو. په دي وخت کې هغوي يا په مرکزي افغانستان، هزاره جاتو کې چې يوه ناهمواره سيمه وه په مالداري بوخت وو، او يا کابل ته دهغې کار او غريبي له پاره راتلل چې نورو خلکو ورته زړه نه ښه کاوه، پاتې نور مريان له کافرستان څخه وو. دا سيمه د افغانستان په شمال ختيځ کې يوه ليرې او گوښه سيمه ده. کله چې دعبد الرحمن هغه ځاي ته پام شو ددي سيمې ښايسته او جگو خلکو ډير ابتدايي ژوند درلود چې د تاريخ له مخې دلرگو عصر ورته ويلی شي ژيړيې لانه وه کښت کړي، او په ونو اوويالوکې يې دارواگانو عبادت به يې کاوه، چې ممکن داشې دلوي سکندر څخه ورته په ميراث پاتې وي. عبد الرحمن داخلک په زور او تهديد سره مسلمانان کړل او دکافرستان د نوم په عوض د «نورستان» نوم وربانديي کيښودل شو.

په خپله دامان الله په کورني او خيلخانه کې ځيني کافرمريان موجود وچې د پلار له وخته ورته په ميراث پاته وو. امان الله هغوي آزاد کړل که فرضاً هغوي غوښتي واي چې بيرته نورستان ته لاړشي نو دلاري کرايه هم ورته ورکول کيده.

په پخوا وختونو کې ډير نارينه مريان موجود وو. د عبد الرحمن خان داعلاميې يو شرط داوچې دهلکانو دخصي کولو عمليې ته چې په حرم سراي کې يې د دوي له پاره خدمت کاوه خاتمه ورکړه، اوس په حرم کې نارينه کارکوونکې يا به واړه نا بالغ هلکان وو يا به ډير سپين ږيري سړي او يا به هغې ښځې وي چې خپل ښځينه احساس يې په قطعي توگه ترديحده له لاسه ورکړي وچې يوه شپه دعبد الرحمن هغه ښحه چې ورباندي ډيره گرانه وه ناروغه شوه نو امير له دغو وينځو څخه يوه واستوله چې انگليس ډاکتر ورته راولي دابنځه دډاکتر پربستري باندي کښيناستله او ډاکتر چې خپله دريشي اغوستله دي به ورته کتله. (۲) ځيني مشهور افغانان هم غلامان وو، ليکن دبادارا نو يې دومره اعتماد ورباندي ووچې دهغوي دزامنو په حيث وگرځيدل. ځيني وينځي هم دخپلو با دارانو د زياتې توجه وړو گرځيدي دوي دکور دځينو

نورو هلکانو په تسبت له ټولو لقبونو او افتخار اتو ځینی خوند اخستل. سره له دې، په ۱۹۲۰ کی نژدې ټول مربیان یاوینځی ښځې وې چې محلی مزدورانی وې. له دوې څخه ځینی چې داحساساتی کوچی ښځو په واسطه ازادې شوې له خپلی نوې ازادې څخه ویریې هغوې په هغه ځای کی چې وې پاتی شوې، یوازې دهغوې موقف د اصولو له مخی بدل شو.

ځوانو وینځو ولیدل چې دنوې ژوند د جوړولو امکانات برابر شوې دې. افغانستان له هغه ډول نارینه وو څخه ډ ک وچې یې ښځی نه درلودې ځکه هغوې په دې باندې قادر نه وو چې دوده پیسی دنجلی کورنی ته ورکړې دغې ځوانی نجونی وینځی په رښتیا سره ازادې شوې هیڅوک نه و، چې ورڅخه ددې وینځو د قیمت غوښتنه وکړې او هغوې کولی شی له هرچا سره چې یې زړه و غواړې واده وکړې. وروسته له هغه چې امان الله مربیتوب له منځه یووړ ملایانو به په یوه اوونی کی ډیرې نکاحګانی وتړلی.

دامان الله خان یو قونسل چې دهغه لومړنی سیاسی نماینده واود ۱۹۱۹ کال په وروستیو وختونکی مشهد ته استول شوې و، پر پارسیانو باندې تورولګاوه چې ښځی یې مخ لوڅی دباندې ځې او هم میلمانه منی. مشهد په آسانۍ سره بد نام شو. مشهد ډیر زیات د پخوانیو روایاتو تابع و د یو خاص مسجد له موجودیت څخه پوره باخبر وچې طلایی ګنبدیې درلود، او تقدس جنبه یې درلوده او پنځوس کاله وروسته ممکن دښځو له خوالیدل شوې وای حتی د لویدیځی نړې ښځی یوازې په هغه صورت کی له دې مسجد څخه لیدنه کولی شوه چې چادرې ګانی به یې په سر کولی او په یوه لیرې فاصله به ورته ودریدلی.

په خپله امان الله دې ته پوره آماده نه و چې پرښځو باندې یې امر کړې وای چې مخونه دې لوڅ کړې. که څه هم دکار دهغه له هیلو څخه و. د ده له خویند وڅخه یوې تنی موټروانی زده کوله. دشاهی کورنی دعصرې توب تروږانګی لاندې دامان الله خان کورنی لومړنی کورنی وه چې د دغی وږانګی لاندې وځلیده. په دغه کورنی که ثریا ته ځانونه ورسوې. دوې دخپل کورڅخه دباندې دخلکو دود دستور ته احترم کاوه، لیکن دښار دنورو ښځو په شان به یې چادرې ګانی نه په سر کولی. شاهی کورنی به دلندن او پاریس په شان جامی اغوستی. هرنوې لباس چې دامان الله په کورنی کی اغوستل کیده اول د امان الله له نظره تیریده او که چیرې لباس ساده غوندې و نودې به په قاریده. خارجی ټوکران منع وولباسونه به افغانی ټکرانو څخه جوړول. دوې معمولاً له هغو ټیګو وریښمینوټوکرانو څخه ځان ته جامی جوړ ولی چې په هرات

کې اوبدل کېدل. د ګنډلو له پاره به یې خپلې جامې انګلستان ته نه لیږلې، ځکه چې دوه اروپايي ګنډونکي په قصر کې اوسېدل چې دوي ته جامې وګنډي.

د شمالي سرحد په اخوا روسانو هڅې کولې چې د مسلمانانو له ښځو څخه حجاب ایسته کړي. پر حجاب باندې په هغه ځاي کې بنديز زيات و حجاب په هغه ځاي کې داس دو ښتانو توره پرده وه چې د مخ له خوا د ښځو مخونه به يې د سرنه ترزنګنو پوري پټول. يو ډېر استر لرونکي خولي به ورپوري ترلې وه چې د ناري نه د بې لستوني کرتې په شان معلومېده. ښځې پکې داسې معلومېدې چې تا به ويل په بېرې سره داسې يو شې چې ورته ډېر نژدې و، پرسر باندې اچولې دي. د ترکستان په يو کلي کې د نور علي ښځې د بالشويکانو په تشويق جرأت وکړ او بې له حجابه د باندې ووتله. نورعلي په داسې حال کې چې ځوتنه پرهيزګاره مسلمانان دوستان يې موافقه وکړه له خپله ښځې يې ووژله. کله چې نورعلي د پنځو زرو کروند ګرو په حضور کې محکمې ته احضار کړي شو، دا پوښتنه ورڅخه وشوه چې آيا د ښځې په مقابل کې چې ستا کورنۍ ته يې په سپک نظر کتلې دي ستادا عمل قهرمانانه عمل دي او که د دي عمل په مقابل کې ځان مجرم ګڼې؟ څرنګه چې دا محکمه د مرکزي شوروي له خوا يوه «نمايشي» محکمه وه او د نورعلي دوبرو لوله پاره په دې مقصد دايره شوي وه څو نوري قربيې و ويروي نو د محکمې له خوا ورته د جرم فتوي صادر شوه او په دې معامله ی د ده مهربان دوستان هم تهديد شول. د ښځو قاتلانو لا هم په پوره زړ ورتوب سره خپل عمل ته دوام ورکاوه. د روسي ترکستان محلي قاضيان د مخ لوڅوښځو په هکله د نور علي په شان احساس ښود د نو چندان علاقه يې نه ښودله چې دا عمل د يو مهم جرم په څېر غلا نه کړي. د بالشويکانو له پاره دا مهم وچې موضوع ته سياسي اړخ ورکړي، او د غسې يو قاتل «د انقلاب په مقابل کې يو تروريست اجنټ» معرفي کړي. بياد وي ګولي شول چې د قصاص په مقابل کې د قصاص غوښتنه وکړي. (۳)

د سرحد په دې غاړه افغاني ترکستان خلکو د خوشبختی احساس کاوه، د هغوي بې سنجشه امير هغو مره جدي ه ولکه چې په روسي ترکستان کې و.

امان الله چې برياليي شو، د ده ميري، د حبيب الله د حرم متعدد دې ښځې ورڅخه راتاوي شوي. امان الله هغوي ته وويل چې تر دي وروسته ضرورت نشته چې د عمر پاته برخه په قصر کې تېره کړي، لکه چې تاسو د هغه توقع کوله ليکن هغوي چې اولاد نه لري ممکن له خپلو کورنيو سره يوځاي شي او څه بې چې زړه و غواړي ممکن هغه وکړي. ډېرو له سره ودونه وکړل.

امان الله خپل ناسکه ورور کبیر چې ځوکاله پخوا تبتیدلی و بیرته راوست. کبیر یو خوش طبع امالالهاند او بوالهوسه سړي و؛ امیر حبیب الله یه خپل هر زوي د دولتي ادارو په مختلفو شعبو کې د امر په توگه مقرراوه، خو کله چې کبیر د داسې وظیفې د اجراکولو مناسب سن ته ورسید، امان الله پر هغه باندې اعتماد ونه کړ چې په خپله وظیفه کې کارو کړي او ورته یې وویل چې له عنایت الله سره دې د مرستیال په توگه کار وکړي. په انقلاب کې کبیر په یو دولتي موټر کې سپور شو او دهند په لور یې حرکت وکړ او بې له دې چې دبندر مقررات په نظر کې ونیسي توقف یې ونه کړ او ګړندي تیر شو. برتانویانو هغه برمته واستاوه چې هلته هغوي سیاسي بندیان توقیفول خو پوه شول چې ده کوم سیاسي هدف نه درلود، نو دهغه په مقابل کې دومره له نرمۍ رویې څخه کار واخستل شو چې د کمشنر سکرتر ورسره دګلف لوبه وکړه. کبیر په خپلې کورنۍ پسې خفه شوي و، او د استقلال د جنګ نه وروسته برتانویانو داسې کوم سند په لاس نه درلود چې داسې یو بې ضرره انسان خپل کورته له ورتګ څخه منع کړي.

هدایت الله چې د امان الله دلومړي واده (۹) کلن زوي و، د ډیرو نورو هلکانو په شان په یابو باندې سپور مکتب ته تله کومه بدرګه ورسره نه لیدل کیده، یوازې د ده اکا امین جان به ورسره و چې دده همزولی و. په ټول افغانستان کې هلکان ښوونځي ته تلل چې مخکې ورته ددې زمینه برابره نه وه. دمکتبي هلکانو شمیر دهیواد نفوس په تناسب لږ و لیکن د کابل څخه دباندې هیڅ ښوونځی نه و، نو دښوونځیو شمیر په ټولو مرکز و نوکې ځلوېښتو ته رسیده. ټول ښوونځي ابتدایي وو ځکه چې زده کړه له اول ټولګي څخه پیل کیده. دټولګیو شمیر به کال په کال زیاتیده. اوه کلن هلکانو به هم تعلیم له اول صنف څخه پیل کاوه.

په خپله امان لله به په هره اوونۍ کې یو واري دمازیګر له مخې د شاه دوشمشیري(رح) جومات ته په پښو ورته، چې هلته د لویانو له پاره دلیک لوست دکورسونو اداره اولارښووه وکړي. هغه په داسې حال کې چې د توري تختې په څنګ کې دریده پر خپلو شاګردانو باندې یې الف، ب، ت، په پارسي زده کول او دخپلو پنځوسو تنو شاګردانو پوښتنو ته به یې ځواب وایه، چې که دهغوي په قرائت پوري اړه لرله او که نه لرله.

امان الله مخ کې له وختـه یوه طریقه تجویز کړه چې دهغې په اساس به ویل، چې یو سړي باید سواد آموزي اساسات په در ۲۳ ویشتـو ورځوکې زده کړي. امان الله خان په داسې حال کې، چې دژبې په زده کړه کې دانګلیسي میتود لنګوافون (Lingu a Phone) څخه اوریدلي وو، خپله اختراع یې دغازي فون په نوم یاد کړه، غازي دهغه لقب و.

په دې وخت کې شاګردان غوره او ممتاز وو. هغوي د راتلونکې له پاره وو. دهغوي د خولیو له پاره د مشوانیې. توره او قلم خاص نښانونه جوړ شوي وو. د دې معنی داوه چې توره او تعلیم یو ځاي پرمخ ځي مګر د علم ارزښت د توري په نسبت دوه چنده دي. کله چې د کابل پرسیند باندي نوي پل جوړیده، د قلم او مشوانیې نښان هم په کانکریټ کې پکې کار شوي و، او په کوم وخت کې چې شاګردانو د امان الله له پاره په پغمان کې د هغه د زیږیدنې ځاي ته نژدې منار جوړاوه هم د توري او قلم نښان یې پکې وکارول.

امان الله پنځه ویشت ناسکه خویندې درلودې چې د هغه د پلار له صورتي ښځو څخه وې. په دوي کې ډیره وړوکې ښوونځي ته تله، دا په افغانستان کې د نجونو لومړني ښوونځي و. امان الله مجبور شو چې په کندهار کې یوي تولنې ته ووایي، «که تاسو سواد او تعلیم نه لري، نو ډیر کوښښ وکړي چې ستاسو ماشومان تعلیم یافته شي. یو بې تعلیمه سړي هیڅ نه شي کولې. دا تعلیم یوازې ستاسو زامنو ته ضرور نه دي باید ستاسو میرمنې او لوڼې هم، د دې له پاره چې د خپل ژوندانه او مذهب په مفهوم پوه شي، باید زده کړه وکړي. ډیر بد شي په افغانستان کې هغه دي چې خلک فکر کوي عین حقوق چې نارینه یې لري، ښځې یې نه لري. زموږ پیغمبر (ص) فرمایلي دي چې ټول انسانان یو ډول حقوق لري. نو تاسو پر خپلو میرمنو باندې هم زده کړه وکړي. که ستاسو میرمنې تعلیم یافته نه وي نو ستاسو ماشومان به هم تعلیم یافته نه وي. زموږ په مذهب کې دا قانون شته چې یو سړي حق لري څلور ښځې وکړي. تاسو خپل ځان د مثال په توګه فرض کړي که تاسو څلور ښځې ولري او هره یوه یې پنځه اولاده ولري، څنګه کولې شي ټولو ته رسیده ګي وکړي؟ نو تاسو باید یوه ښځه ولري څو وکولي شي په ښه وجه د هغې رسیده ګي وکړي او ښه تعلیم ورته ورکړي.»

د نجونو په ښوونځي کې په هر کال یو ټولګې زیاتیده او هر ټولګې به ځان ته د لباس رنګ انتخاباوه. د هغو افغاني ښځو له پاره چې باسوادې وې، هره پنجشنبه به شین کاغذ باندې اخبار چاپیده چې د نارینه و له اخبار څخه یې توپیروشي.

ملایانو په تیرو وختونو کې زده کړه منع کړي وه، او داسې مذهبي رنګ یې ورته ورکړي وچې که ماشومان زیات درس ووایي نو هغوي به ملایانو ته په کلکه احترام و نه کړي د ملایانو د زده کړي طریقه ګټوره نه وه، هغوي به ماشومان په جوماتونو کې سره راټولول او هغوي به یې

مجبوروول چې قران شریف چې په عربي ژبه دي، بې له دې چې د هغې په معنی باندې پوه شي، د طوطي په شان زده کړي، هغه شاګردان چې تدریس یې د خارجیانو له خوا صورت نیوه، ملایانو له هغو څخه کرکه کوله، بالاخره هغوي په خپله د تدریس طرحه جوړه کړه چې د امان الله په ډېرو عصري ښوونځیو کې دا طرحه تطبیق شوه: د دې طرحې له مخې درسونو ټکې په ټکې زده کېدل- نه د منطق له مخې.

دځو کلونو په حدود وکې ځینې ملایانو له فرانسوي ښوونکو سره وکتل او د پروګرام په برخه کې یې ورسره خبرې وکړې، او یوې موافقې ته سره ورسېدل چې دا موافقه یوازې په هغه وخت کې وشوه چې ملایانو دوه څیزه ومنل: هغوي به یوازې غږیز موسیقي تدریس کوي نه دموسیقی اله، او د سماوي اجرامو په زده کړه کې دې هغوي دځمکې دشکل او دهغه دحرکت په برخه کې څه ونه وایي. داکارد جان سکوپس (John Scopes) له محاکمې وروسته صورت ونیوه جان سکوپس په دیټون (Dayton) کې چې دامریکې دمتحده ایالاتو تنسي (Tennessee) ی موقعیت لري، د داروین د تدریجي تکامل د نظریې په تدریس کې محاکمه شوي و.

امان الله تقریباً خپل ټول وخت دکارونو دسرته رسولو په خاطر وقف کړي و. هغه مجبور و دکارو نو دعملي کولو په خاطر ځان ته یو تقسیم اوقات جوړ کړي، چې ددې تقسیم اوقات له مخې د قصر شاوخوا نه يې په پښوتله یا پربوآس باندې. پرته دجمعې له ورځو څخه به دې هره ورځ دسهار په اتوبجو دخپل کار پرمیز ناست و، هر څوک چې دغرمې د ډوډې په وخت کې په هغه شاوخوا کې لیدل کېده، ده به هغه ته بلنه ورکوله، چې پر یو میز باندې ورسره دغرمې ډوډې په خوړلو کې برخه واخلي. امان الله له نور و افغانانو څخه وریجې کمې خوړلې، خوبیا هم وزن یې لېغوندې زیات و. چاې دماسپښین له خوا په دفتر کې ورته راوړل کېده. دلیکلویا دخبرو کولو په جریان کې به یې خپل چای څښلو. بر خلاف هغه یوازې دلمانځه له پاره وخت ځان ته تعیین کړي و. دده په دفتر کې به کمسیونه تازه په تازه ساتل کېده مګر که چاورته نه ویل خپله دریشي به یې په دوو یادریو میاشتو کې هم نه بدلوله.(٤)

امان الله خان ټولې اداري له سره ترتیبولې. دهغه هیواد یوداسې هیواد و چې په څوبرخو ویشل شوي وچې یوه برخه یې له بلې برخې سره علاقه نه ښودله. رسمي ژوند د کابل، جلال آباد او قندهار په شاو خوا کې برقرارو. شمالي برخه یې چې دمزار شریف تر حدود و پورې

رسیدله، هغه هواري ځمکې دي چې په ژمي کې یې ارتباط له مرکز سره هندوکش د زیاتو و اورو له امله د ځومیاشتو له پاره په قطعي توګه شکیده، په لوېدیزه برخه کې له ایران سره وصل کیږي د هرات د سیمې خلک چې ځمکه یې ترمه خاوره لري، خپل ژوند په خپله سرلو. هرات د افغانستان په ښارونو کې یو با کلتوره ارستوکرات ښار دي. په یووخت کې شاعران دومره یکې زیات ووچې له هغوي څخه یوتن له یوي ډلې سره په غ ړلې کې پللتې وهلې و سوړ اوسیلی له خولې وویست او وویل: «خلک دومره نژدې سره ناست دي چې که پنبه وغوزوم د یوشاعر په شابه ولګیږي.» ددې خبرې په مقابل کې بل شاعر ځواب ورکړ: «بېرته یې ټولولې هم نه شې.» په داسې حال ی چې نور زیات افغانان سني مذهبه دي دلمانځه د اداکولو په وخت کې به یې خپل لاسونه ترنامه لاندې ترې زیاتره هراتیان شیعه مذهبه دي. سنیانو به ویل چې حضرت محمد (ص) پیغمبر دي او شیعیه کان وایي چې حضرت علی (رض) پیغمبر دي. کله چې هغوي په ځینو کارونو کې له خداي څخه مدد وغواړي مثلاً په ختیو کې د یوي بندي پاتې شوي کراچې د کشولو په وخت ی به د خدای (ج) د نوم د یادولو په ځاي وایې: «یا علی!» کله چې لمونځ کوي خپل لاسونه به ازاد د خپل وجود سره موازي ځړوي. سره له دې دغه په مذهب ټینګ خلک دومره جرأت کوي چې د پیریانو داسې رسمونو باسې چې ته به وایې چې بنیادم وزرونه ولري.

د ټوټې ټوټې افغانستان په ټولو برخو کې محلي والیان چې تقریباً یې ټینګ کړي وهغه زمامدار چې والي یې تاکله په کابل کې و چې ډیره لیري سیمه وه او دومره ګوښه وه چې مداخله یې نه شوه کولی.

د تیلفون یوازنۍ مزي هغه مزي وچې کابل یې له جلال آباد او پغمان سره نښلولی وچې امیر ورځینې د رسمي چارو په ترسره کولو کې استفاده کوله. اوس امان الله تصمیم ونیو چې په ولایاتو کې زیات کنترول ولري او د تیلفوني مفاهمې دسیستمونو پلان یې ترتیب کړ، هغه په بې خبرۍ سره د هغه قوي سازمان نمونه کاپي کړه چې څوځانګې یې درلودې او داد جاسوسۍ شبکه وه چې دهغې په واسطه څو مختلفې څانګې یوله بل سره ارتباط نشونیولی، مګر یوازې دڅانګې له آمر سره نیولی شو. هغه پردې باندې اعتراف وکړ چې داکاریې ددې له پاره کړي دي چې دسیسې او توطئې حنثې کړي، و همدا پرنسیپ یې دسرکونو په جوړ ولو کې هم د تطبیق وړو ګرځاوه.

دوزیرانو یوه ډله امان الله خان ته مشوره ورکړه، امان الله دخپل پلار په خلاف به تل دغه ډله راغونډله او دهغو مشوروته به یې غوږ نیوه، ددې ډلې ټول غړي له معتبر وکورنیو څخه وو، دهغه دکرنی وزیر هغه سړي وچې د شاهي باغونو حفاظت به یې کاوه. عبد القدوس چې یوزوړ سیاستمدار او د دولتي چارو ماهر سړي و اواوس د امیرانو په دریمه دوره کې خدمت کاوه، مگر محمود طرزي د بهرنیو چارو وزیر یوه عامله قوه وه. نادر چې په دې وخت کې دعمومي قومندان په توگه مقرر شوي و، د حربیې وزیرو. د طرزي یوه نظریه چې په مخکې کلونه کې څرگنده شوي وه داوه چې حکومت دي باید دسلطنتي کورنی په انحصار کې نه وي ټولی طبقې دي پکې برخه ولري. یوازې امان الله خان یونژدې خپلوان علی احمد خان په جرگه کې ناست و، دامان الله او علی احمد په منځ کې مدام اختلاف موجود و او امان الله خپل داکا زوي چې دداخلي وزیر و دیو شخصي عناد له مخې له کاره برطرف کړاو دکورنی یوازنی اړیکی یې وشلولی. دهغه پرځاي یې شیر احمد مقرر کړ. داهغه سړي وچې دبرتانیې په نماینده گی کی یې داخبره په پته کړې وه چې امان الله او دهغه دحکومت سیستم له مخه وړي.

سلطنتي کورنی دخپل نوي مشرله خوا تر منتر لاندې راوستل شوي وه لیکن ارامه نه وه. ځینو کسانو ته داسی ښکاره کیده چې امان الله خان دهغوي رواحق غصب کړي دي. دهغوي خوښیده چې لاسونه یې نور خلک ښکل کړي. متواضع افغانانو د امیر دلاسونو دښکلولو په خاطر ځانونه ټیټول تل به یې دې ټکی ته پام اړول کیده چې امیرته دې دروغږ په وخت کې یوازې لاس ورکړي اوبس.

طرزي دبهرنیو چارو د وزیر په توگه خپل لومړنی لیک یو سردار ته ولیکلو چې هند ته تبعید شوي و او ورڅخه پوښتنه شوي وه چې د هغه وخت راهیسی چې هرکال له حکومت څخه یې د تقاعد پیسی اخیستی دي خپله گوزاره څنگه کوي. دامان الله خان کاکا محمد عمر یوکارته دوام ورکړ: دي چې دلوي امیر عبد الرحمن او د مشهور بابوجان له اولادي څخه و هغه امتیازې وساتل. هغه دومره چاغ وچې یوه ورځ چې پر چوکی باندې کښیناست چوکی ماته شوه او خبري یې دومره بی تاثیري وي چې که فتنه آمیزې خبرې یې هم کولی کوم ضررورته نه رسیده ځکه چې خبرو ته یې چا پام نه کاوه. اوس محمد عمر د دې له پاره چې ورته معاش ورکړي شي باید ددکورنیو په وزارت کې دخدماتو مدیر مقررشی. د دې کار معنی داوه چې هره ورځ یو دفتر ته لاړشي او داسی وښیی چې گوندې د مراجعینو کارونه اجراکوي. هغه له دې څخه نفرت کاوه

او یوبې فایدې شي و ،امان الله دخپلو نیکه ګانو دا کار له منځه یووړ چې دشاهي آشپزخانې ځخه د خپل کورنۍ ټولوغړوته ډوډې لیږله. حتی یو سلطنتي سردار هم د دې له پاره چې ډوډي وخوري باید کار وکړي.

سني مذهبه مسلمانان هم کوم زیات اتوماتیکي نفوذ نه درلودل. امان الله په دکندهار ټولنې ته داسي ویل: ماتاسو ته تل ویلي دي چې اتحاد ښه شي، او ازارول بد شي دي. نژادي توپیر د دوراني او غلزي معنی نه لري. موږ ټول مسلمانان یو ، ټول انسانان یو ټول یوه قبیله یو زموږ خداي یو دي، پیغمبر مو یو دي اوهیځ توپیر زموږ په منځ کې نه شته. زما مقصد دادي چې تاسو سره متحد شي څوبهرني یاداخلي دښمان پرتاسو برید ونه کړي. زما له پاره دافغانستان ټول خلک یوشي دي. »

دهغوي له پاره چې لوړ موقف یې درلود ، او نه یې غوښتل چې دامتوقف یې بدل کړي دامان الله خبري کټ مټ هغه خبري ورته منعکس کړي چې کرزن د ټولو شرقیانو په احترام دټولو اروپاییانو په منځ کې کولې: « د نیشنلیزم متجاوزه روحیه... دغه خلک یې داسې رهنمایي کړي چې فکر کوي چې دوي یوازي زموږ په شان ښه نه دي بلکه بهتر دي. » دا یوه زړه خبره وه چې یوسړي له بل سړي ځخه په مساویتوب کې زیات مساوي وي.

امان الله د هندوانو جزیه یې چې دخپل هند وتوب په خاطریې ورکوله نیمه کړه ، او هغه زوړ قانون چې هندوان دي باید ژیړ پټکي وتړي ، له منځه یووړ چې په دي توګه زیات شمیر هندوان سره پټکي واخیستل. یوازنی قید چې وربانې کیښودل شو « قشقه » یا « تلک » وچې هندوان یې په خپلو تند یووهي او په دي کار سره دوي پیژندل کیدل چې هندوان دي او دمسلمانانو له خوا نه ازارېدې چې ولي کلمه نه وایي یا پنځه وخته لمونځ نه کوي. او هم ځنګه چې مسلمانانوته ویل کیدل چې « خداي یو دي او محمد یې پیغمبر دي » دوي ته نه ویل کیده. یو ورځ یوه هندوه ښځه د یو شمیر خلکو له خوانیول شوي وه چې وربانديې کلمه ووایي او دستې یې مسلمانه کړي مګر دمحلي حکومت له خواد په زور سره دغه هندوه له مسلمانولو ځخه وژغورل شوه.

امان الله ځینې داسې کارونه وکړل چې ډیرلږ شمیر افغان مسلمانانو کول. یو له هغو کارونو ځخه د هندوانو په مذهبي مراسمو کې ګډون کول و . همدا راز هغه دشیعه مسلمانانو په خاصو مراسمو کې هم ګډون کاوه او خپلو مامورینو ته یې ویلي و چې دهغوي د کارونو په اجرا کولو کې تش د دي په نامه چې شیعه ګان دي اغماض ونه کړي.

دافغانستان ملایانو په دغوتپولو دوروکی داسی احساس کول لکه چی په خپله په اسلام کی دغسی احساس موجود و.

هغوي اسلام تردي اندازي پوري په کلکه سره حمایه کاوه چی دنورو مذاهبو هیڅ یو مبلغ افغانستان ته داخل نه شو مگر یوازي دیو نفر توم ثبت شوي وچی په هند کی له مسلمانی څخه عیسوي مذهب ته اوښتی و او کله چی بیرته خپل هیواد ته راغی ووژل شو. اوس دوي ولیدل چی اسلام دهغو لوید یځوبی دینانو له خوا تهدید کیده چی پخوا به یی صلیبیان (Crusador) د مسلمانانو د وژلو له پاره رالیږل. اسلام په هغه وخت کی طلایی دوره وه علوم او فنون د دوي په لاس کی و او په مقابل کی غربیان بربریان وو، ملایان پوهیدل چی که هر څوک لیک لوست زده کړي، دهغوي نفوذ، او قدرت کیږي او هم یی ویل چی ممکن خلک داسی خبري زده کړي چی دپیغمبر (ص) له تعلیماتو څخه مخالف وي.

له هغه اندازي څخه چی دوي فکر کاوه خطر ژر پیښیدونکی و، امان الله هغسی چی دشاهی کورنی په عایداتوکی بدلون راوستی و په ملایانو کی هم دغسی بدلون راوستل او دوي ته هم وویل شو چی باید کاروکړي. هغه همدا راز فرمان صادر کړي وچی هغه پیسی چی دشکرانی په توگه مقدسو اماکنوته دمومنانو له خوا ورکول کیږي او ددي مقدسو اماکنو مجاوران دهغو پیسو په بدل کی ځانونه مسوول نه گنی، باید دي د دولت خزینی ته تحویل شی. حتی عبد الرحمن چی یو غیر روحانی سړي و او په جگ آواز سره یی ویلی وو چی ملایان ناپوه دي او یو ځلی دوه تنه یی له زیري تړلی و، چی دغسی برید یی هیڅ کله پرروحانیونو باندي نه وکړي.

دهیواد ډیر اوچت روحانی شخصیت ملا دامان الله خان دملگري په توگه پاته شو. شا آغا دحضرتانو دکورنی مشروچی د شور بازار د پوښل شو و تنگو کوڅو ترشا په اپارتمانونو کی یی ژوند کاوه. هغه به په ټولو مراسموکی دامان الله خان تر څنگ دریده لکه چی په یووخت کی دده تر څنگ ولاړ و او د امیري پټکی یی دهغه پرسر کیښود.

هغه دومره زیاته پوهه درلوده چی غوښتل یی نوروته هم څه ور زده کړي او کوم شی چی امان لله کاوه، ده به هغه تصدیقولو.

د شور بازار د حضرتانوټوله کورنی دومره سخی او مهربانه نه وه. شا آغا دوه وروڼه نورهم درلودل چی شیر آغا او گل آغا نومیدل.

سره له دې چې په افغانستان کې زياتره کورنې نومونه ته استعماليږي ځينو کسانو زيات نومونه درلودل. د کورنيو له خصوصيتونو څخه يو هم دادې چې پر ماشوم باندې د زيږيدنې په وخت کې يو تيا کلې نوم ايښودل کيږي چې دانوم د کورنيو په خوښه انتخابيږي. کله کله به دا ډول نومونه د سن تر پوخوالي پورې په خپل حال پاته کيږي. داکارد شا اغا پردو و ورونو باندې صدق وکړ او مور او پلار يې چې په هغه کورنې کې نومونه ايښودل د غه بزرگې درلود له څکه چې مسلط او مشرشخصيت، فضل عمر همغه شير اغا وچې د «زمري» معنى وركوي په عين حال کې د ده په ورونو کې تابع ورور چې يو ښکلې او غلي سړي و، محمد صديق نوميده چې په گل اغا باندې مشهور و او د دوې د کورنې د مشرنوم شا آغا و چې د «ښاغلې پاچا» معنى ورکوي. شا آغا چې په پوره ايمانداري سره د امان الله حامي وو ممکن په ۱۹۲۳ کال کې وفات شوي وي څکه که ژوندي واي و افغانستان به ممکن بو بل ډول تاريخ درلودلی واي.

امان الله او د هغه راتلونکې پلانونه، چې حتى له موجوده بدلونو څخه هم زيات خواشينی کوونکې و. د هغه دوو ځوانو ورونو په فکر خطرناک او د بې دينې پلانونه وو. شير اغا، چې د زمري په شان زړه درلود، د امان الله له خوا په ډيرو ننبانونو ښکلې کړي شوي و او د «وليانو څواغ» لقب يې ورته ورکړي و، څکه چې هغه د استقلال په جنگ کې دقبايلو په ارا مولو کې غټ خدمت کړي و. دا کار دهغه ددې اعلان مخنيوي ونه کړ چې افغانستان د بې دينی په لور روا ندې او هغه د غوښتل چې پکې پاته شي، دخلکو او دحکومت په منځ کې حالت دومره بې خونده شوي و، چې يوه جرگه دهغې د سمولو په خاطر دايره شوه، هغه کسان چې مکې معظمې ته د حج له پاره تللي وو بيرته را نغلل. شير آغا له مکې څخه هند ته لاړ - او په سرهند کې پاته شو. هلته دخپلې پوهې او دينداري له امله دومره مشهور شو چې مريدان يې ورته خواړه او تحفې په زوره ورکولې او يو کور يې هم ورته جوړ کړ. په کال کې به دوه ځلې غلزي کوچيانو دهند او افغانستان په منځ کې تگ راتگ کاوه دې په هغوي کې وعظ کاوه او مشوري به يې ورته ورکولې، او دهغوي خيموته به تللو. په هند کې کوچيانو ته پوونده ويل کيږي، دافغانستان په شان ورته کوچي نه ويل کيږي. يو مشهور ملا چې د پوونده و په ملا باندې ياديده، تازه وفات شوي و کله چې به کوم سړي په هند کې ويل «پوونده ملا» دخلکو په فکر کې به شير آغا شو.

گل آغا چې په خپل باغ کې پاته شوي و په ډيره خاموشې کې ناراضه معلوميده او دمحمد

عثمان خان په شان انډیوال سره دخپلې ویرې په باب ډیرې زیاتې خبرې کولې. محمد عثمان د کندهارد والي په توګه خپل اعتبار په هغه وخت کې له لاسه ورکړي وچې دامان الله په واده کې چې له ثریا سره کیده هغه ډله یې خلکوته معرفي کړه چې خلک یې سرګرم ساتل او ددې ډلې مشرې یوې ښځې په غاړه درلودله چې د کابل د معیار له مخې یې کالي په سلیقې سره نه وه اغوستې، دډیرو کسانو په شان چې وایي: «دوباره بیخي نه!» هغه دبلې زیاتې سختې لورته مخه کړه، امان الله خان هغه په کابل کې د دیني مدارسو په یوه ښوونځي کې مدیر مقرر کړ داکار دولایت دکار په شان ښه کارنه و مګر دا زمینه یې ورته برابره کړه چې په افغانستان کې نوي ملایان تر تعلیم لاندې ونیسي.

شا آغا، سره له دې، چې له هغوي څخه ډیر زیات اعتبار درلود. یوه ورځ په کابل کې د جمعې دلمانځه لاداکولو وروسته، د ۱۹۲۰ کال دنومبر په ۱۹ تاریخ پر ممبر باندې وخوت او خلکوته یې وویل څرنګه چې یوازنی مستقل مسلمان چې په نړۍ کې پاته دی امان لله دی اوس هغه داسلام مشر دی. مسلمانان دي هغه ته باید دخلیفه په سترګه وګوري او خطبه دې هم باید په هر مسجد کې دامان الله په نوم ولوستل شي.

امان الله چې په هغه ځای کې حضور درلود، چوپه خوله ناست و.

دعثماني ترکانو امپراتورۍ تجزیه شوه، او ورسره د اسلام اساسات هم. د ترکیې سلطان چې دخلیفې په نوم یاد دېده او دهغو مقدسو اماکنو اداره یې په خپل لاس کې درلود، چې زیاتره مکه معظمه او مدینه منوره پکې شامله وه، مکه او مدینه دوه ښارونه دي او حضرت محمد (ص) په ۶۲۲ میلادي کال کې له مکې څخه مدینې ته هجرت کړي وچې همدا کال د مسلمانانو د تاریخ مبدا شمیرل کیږي. خلیفه چې دمې په میاشت کې هغه شرطونه اعلان کړي وچې دسورس (Seeres)[1] په تړون کې به ورته ځای ورکړي د انګلستان او دهغه دمتحدینو له خوا ماتې خوړلې و. ترکیه تباه شوې وه، خلکو داسې فکر کاوه چې داناتولیې له یوې ګوښې او دقسطنطنیې نه پرته به بل شې ورته پاته نه شي او نورې برخې یې باید د متحدینو په منځ کې په مختلفو طریقو سره وویشله شي. د هند حکومت تر ورو ستې شیبې پورې ددې ویرې په لرلوسره د ترکیې په خا٫ر د حالاتو په نرمولو باندې بحث وکړ چې نه ویل کیږي دهند مسلمانان دکسات اخستلو په منظور پوه ته شي. کله چې شرایط اعلان شول په هند کې احتیاطي خاص

---

۱- په فرانسه کې د (سو) ښار دی. (ژباړونکی)

امنیتی تدبیرونه ونیول شول مگر کومه مهمه پېښه صورت ونه نیو، او امان الله خان خپله اندېښنه څرگنده کړه چی ولی پېښه منځ ته رانغله، په هغه وخت کی د کنفرانس رخصتی وه، برتانیی په دي موقع کی محمود طرزي ته یوه موضوع ترتیب کړه چی ممکن هغوي یو نرسره شوي عمل په کنفرانس کی د دي له پاره ورته وړاندي کړي چی هغه غوښتل د ترکیی د میلمه پالنی او د اسلام په هکله د هغوي د احساس سوال په کنفرانس کی طرحه کړي. دا موضوع د کنفرانس په اجندا کی شامله نه وه، طرزي په میسوري کی دا سوال طرح کړ: «د مکی او مدینی خلک چی هیڅ شی نه تولید وي څنگه به ځان حمایه کړي؟» برتانیی ورڅخه پوښتنه وکړه: ستا مقصد دا دی چی د تکیې په شان د یو مقتدر قدرت پرته به دا امکان ونه لري چی محلی خلک له لوږي څخه وساتل شی او د زایرینو له پاره مواد برابر شی او هم د دي امکان نه وي چی زایرین زیارت وکړي.

«که ته په عراق کی یو مسجد له سرو زرو څخه جوړوي خود خلیفه نوم یاد نه کړي هغه به د مسجد په نوم یادنه شی مازي یو تعمیر به ورته وویل شی، تاسو وایی چی د دي ځای د خلکو له پاره مومسجد ونه جوړ کړي دي و ډیري مرستی موور سره کړي دي. که تاسو د سرو زرو مسجدو ته ورته جوړ کړي او مسلمانان یی له ختیو څخه جوړ کړي، د هغوي د ختیو مسجدونه به ستاسو د سرو زرو له مسجد ونو ته ورته اهمیت ولري.

طرزي وویل: «دخلیفی د درلودلو مسئله د کعبی په شان (په مکه معظمه کی مقدسه بنا) چی له نیړۍ خاورو اولرگو څخه جوړه شوي ده، مذهبی صبغه لري او د ټولو مسلمانانو قبله ده. په دي وجه افغانستان د خلیفی له موضوع سره اړیکی لري.»

د مخه په ۱۹۱۶ کال کی د خلیفی له منځه تلل د برتانیی د نماینده کرنیل تی. ای. لارنس (T. E. Lawrenee) له خوا پیشبینی شوي و. داسړي د عربستان هغه مشهور لارنس وچی کوم وخت عربانو د خپلواکی د گټلو له پاره پورته شوي وو ده ورسره په دي پاڅون کی د یولارښود په توگه وظیفه اجراکوله.

«که دا جنگ هیڅ کومه نوره نتیجه ورنه کړي د (ترکیی) سلطان خوباید په مطلقه توگه له مذهبی قدرت څخه وغورځوي» لارنس زیاته کړه: «د جاپانیانو په نسبت چی ویی کړای شول د رومن کاتولی د کلیسانوي پاپ پرځان تحمیل کړي انگلستان به په دي بریالی نه شی چی نوي خلیفه وټاکی...»(۵)

سره له دې هم په ۱۹۲۰ کال کې انګلستان د خليفې د منځ ته راوړلو مخنيوي کاوه. د دريوتنو په باره کې خبرې شوې وې او يوله هغو څخه چې انګلستان دهغه په تړال کيد وسره وارخطا و، امان الله و. دې دهند په مسلمانانو کې لاپخوا ښه قهرمان معرفي شوې و. حتی له څنګه چې شا آغا څرګنده و ايسرا لندن ته مخابره وکړه چې : «په هند کې دافراطي مسلمانانو تريخوالي... داسې دې چې هغوې به دامير تاکل کيدنه ومني... زموږ له پاره دا ضرور ده چې ووايو چې دامير انتخابيدل به هند د نابودې په لور بوزې او دا به بهتره وې چې ددې کارد مخنيوي په خاطر ګټور ګام واخلو... »

په پيغام کې دا عبارت هم ذکر شوې و: «جمال پاچا به د بلشويکانو ترسيوري ژر کابل ته را ورسيږي او د ـ ې امکان شته چې هغه به ددې موضوع په ارتباط کوم پيغام له ځانه سره را وړي وي. »

جمال پاچا، دسلطان د حربيې، وزير له برتانيې څخه ډيربدوړل ، ممکن يو دليل داوې چې دې په يووخت کې له هغوي څخه د دوستۍ هيله کړې وه او دا هيله يې نه وه منل شوې. ترکان تر اوسه پورې دانګليسانو دښمنان وڅکه يونانيان چې له دوې سره په جنګ وو له متحدينو سره اخته وه چې زياتره يې له دې کار څخه پښيمانه و.

جمال پاچا کابل ته ددې په خاطر تله چې دافغاني عسکرو په روز لوکې مرسته وکړې ليکن برتانويانو فکر کاوه چې دې نور اهداف هم لرې چې په بلشويکانو پورې اړه لرې. بلشويکان لومړنی کسان وچې د مصطفی کمال حکومت يې په رسميت پيژندلې و. کله چې به دبرتانيې نماينده له جمال پاچا سره په کابل کې دهغه د موتړوان دهغه د مو ر دارابۍ په بدلولوکې ورسره مرسته کوله نو جمال پاچا وويل: «تاسو انګليسانو ډيره اشتباه موکړې ده چې ويلې مودې چې د اناتولۍ نوې حکومت د بلشويکانو تر تاثير لاندې راغلې دې دهغې ښمنۍ له مخې چې تاسو نړۍ يې له ترکيې سره لرې ترکيه مجبوره شو د چې کومې خواته د مرستې لاس اوږد کړې حتی هغو خلکو ته چې د مرستې امکان ورڅخه نه تصور کيده. »

يو خبره مخصوصاً د برتانيې په امپراتورۍ کې ټکان ورکوونکې و: هغه د «سرتاسري اسلامي کولو» خبره وه. که دنړۍ ټول مسلمانان سره متحد شوي واې نو هغوي به دبرتانيې په مقابل کې ديوويرووونکې دښمنۍ په توګه خپله ټوله انرژي په کاراچوله. البته برتانيې هم

پرزیات شمیر مسلمانانو باندي حکمروایی درلود له. بلشویکانو د «سرتاسري اسلام» موضوع تسریع کوله.

یو افغانی سفیر په ترکیه کی به ژربوي فرانسوي ژورنالیستی ښځی ته ویلی وچی: «اسلام یوه غټه تنه ده چی ترکیه ددي تنی سر، اذربایجان یی او ربړ فارس یی ټټر، افغانستان یی زړه، هندوستان یی نس، مصر، فلسطین، عراق او ترکستان یی لاسونه او پښی دي. که تاسو د دي تنی سرته سخته ضربه ورکړي څنګه کیداي شی چی ددي تنی نوري برخی احساس نه کړي.» دغه افغانی سفیر به هره جمعه میلمستیا درلودله د ده په مهمانخانه کی به میلمانه له پتکسیو چینو او پوستینونو سره راتلل چی داکار د اسلام د موقتی اتحاد معنی ورکوله.[٦]

په ۱۹۲۰ کال کی افغانستان د ډیرو هندي مسلمانانو په نظر د اسلام زړه و. له هغه سره د مینی دلرلو په احساس په زرګونو مسلمانانو د سرحدي پیچومولو لاري افغانستان ته لاړل او دخپل هیواد له حکومت څخه یی پنا یووړه.

امان الله خان له ورکتوب څخه د اسلام د حمایه کولو قوي احساس درلود. اوس بنی اسرائیل د یهودانو په شان مسلمانانو د ظلم او ستم له خاوري څخه وکوچیدل. امان الله په ربښتیا سره د هغوي پاچا شو چی ددوي دهیواد په لوید یخ کی پروت و.

امان الله د غه خلک را ونه بلل. سره له دي هم په هند کی د ګرامو فون ریکارد ګرد چاپیر غزول کیده چی پکی په سند روکی علانونه کیدل چی په هغه وخت کی چی یوه خاوره د کافرانو له خواتیوله کیږي خلک حق لري چی یوبنه ځاي ته کوچ وکړي. په ریکارد ونوکی د غه سندري ویل کیدي: «د اسلام رڼایی ته راشی. د افغانستان امیر تاسو غواړي.»

په هند کی دهجرت کولو په خاطر کمیټی جوړي شوي چی د مهاجرینو یو منظم جنبش و. په سر کی امان الله خوښ وچی هغوي ورته راتلل. دهغه ایډیالیزم دهغوي دناخوښی ځواب ویونکی و او امان الله به لیدل چی هغوي افغانستان ته هوښیاري او سرمایه راوړي. مګر دغه کسان چی راغلل زیاتره یی سرمایه یا پوهه او هوښیاري نه درلود له. له برتانویانو سره د کرکی په ښود لو او خپل مهاجرت ته د خوشبینی په درلود لو سره هغوي خپلی دارایی په هند کی په کمه بیه خرڅی کړي او یوازي خپلی هیلی یی ترسره کړي. هغوي د خیبر د غاښی له لاري راغلی چی بیر غونه ورسره وو او ډولونه یی هم غږول. امان الله ژر داسی درک کړ چی ممکن د دوي راتګ یو اشتباه وي او په پیښور کی یی خپلی تجارتی نماینده ګی ته امر وکړ چی د غو مهاجرینو ته دي

د افغانستان د داخلید و اجازه ورنه کړي ځکه په دي کار سره به په هند کی د ناآرامی منځ ته راتلل دده د حکومت په غاړه شی او هم که برتانویان دمهاجرینو د راتگ په برخه ی بند پیزونه ولگوي نودي به په سخت موقف کی قرار ونیسی. داهلی ځلی بی ځایه وي برتانویانو دمخه امان الله ملامت کړي و او داکار دهغوي د پالیسی جزو چی په داسی حالاتو کی به د دغسی خلکو مخنیوي ونه کړي چی افغانستان ته اوړي دهغوي مامورینو ته امرور کړ شوي و.

تیولی کورنی او د کورنی ډلی به سره یو ځای حرکت کاوه. یوه کورنی په پیښور کی چی خپله تیوله دارایی په ډیره ارزانه بیه خرڅه کړي وه. د دي اوږد او خطرناک سفر په نسبت د خپلی ځوارلس کلنی لورد روغنیایی حالت په برخه کی په تشویش کی وه. یو نفر هغوي ته د یو سړي په هکله چی هغه هم دافغانستان خواته روان و، وویل: «بنه سړي دي مگر هیڅ پیسی نه لري.» هغوي داسړي پیدا کړ او ورته یی وویل چی که د دوي له لور سره واده وکړي او ژمنه وکړي چی دهغی ساتنه په ښه وجه کوي نو اوده به ترهغه پوري معطلوي چی هغه سړي پیس پیدا کړي. هغوي له یوي لوبی ډلی سره چی ځینی یی په خروسپاره وو او ځینی یی په کراچیو او ځینی په پښو روان وو او خپل ځاروي یی مخ ته کړي و د کابل په لور وخوځیدل.

دوي د کابل په شمال کی، په یوه ساحه کی، چی امان الله مهاجرینو ته ورکړي وه خپلی خیمی ودرولی. یوه شپه په داسی حال کی چی دوي تول ویده ووهغه او به چی په دي سیمه کی دورځنی اړتیاو دلیري کولو په مقصد په لښتیوکی رابهیدي خپل اصلی مسیرنه را وا وښتی او د دوي په خیمو کی ننوتی. دوي تول را وینښ شول گوري چی بستري بی تولی لمدي شوي دي که له دغو او بوڅخه په صحیح توگه استفاده کیدله ډیره گتیوره به تمامیدله. دوي به آینده نسل ته کیسی کولی چی داکار انگلیسانو کړي و. هغوي به ویل ددي له پاره چی امان الله وارخطا کړي انگلیسانو په دغسی عملونو لاس پوري کولو.

امان الله په ربښتیا سره وارخطا شوي و. دامهاجرین هغه کسان وو چی له امان الله ځینی د اسلامی اساساتو له مخی دهغه د مهمان نوازي ادعا کوله. هغوي چی لږه زده کړه درلودله دهغوي له پاره د امان الله په حکومتی دستگاه کی د کاتب یاد دیوي تیتی رتبی مامور په صفت ځای پیدا کیده. امان الله د غسی اشخاصو ته ضرورت درلود که څه هم هغه د بهرنیو اړیکو دساتلو په خاطر دهغوي د ضد برتانوي تعصباتو څخه ځان ساتل.

کابل له هغو کسانو څخه ډک شو چی له هند څخه راغلی وو چی نه یی پیسی درلودي او نه

د اوسید لو ځاي، و پر ته له هغه خوراکی مواد و څخه چی امان الله ور ته په چټکی سره ورکاوه چي په کانتینونو کی ذخیره وو نور دوي هیڅ شی دخوراک له پاره نه درلودل. داگست په لومړ یووختنوکی دمهاجرینو دوه لوي کاروانو نه دخیبر له لاري افغانستان ته راوا وښتل چی نوي ژوند پیل کړي اولس زره نور مهاجرین په جمرود کی دخپل نوبت په انتظار کی وو. ځینی مهاجرین پخوا له بلی لاري تیر شوي وو او ځانونه یی بی غمه کړي وو چی په دوي کی هغه کورنی هم شامله وه چی څوارلس کلنه لور یې درلودله او د هغوی زوم (ښه سړی) هم ورسره و. د هغو لسو زرو مهاجرینو په حال باندي چی په جمرود کی دانتظار په حال کی وو کومه توجه ونه شوه. دابوه مذهبی زیارت کوونکی ډله وه. داگست تر دولسی نیتی پوري نږدي پنځوس زره کسان چی ناریینه، ښځی او ماشومان پکی شامل وو افغانستان ته وا وښتل.

امان الله دغو کسانو ته په قطغن کی ځینی اعلی ځمکی ورکړي او ځینی نور د کابل په نږدي سیموکی میشته شول. لیکن زیاتره دغه کسان په هند کی ښه کارونه کول او ممکن په هرځاي کی ښه کارونه ونه کړي. کوم شی چی دوي ورڅخه ځانونه لیري کول که څه هم دوي هغه شی نه پیژندل برتانویان نه وو بلکی په خپله د دوي غربت او بی چاره گی وه. حتی ودي ته چی دهغوي د غریب هیواد په پرتله په افغانستان کی ډیري ښی ځمکی ورکړي شوي بیاهم په دوي کی کوم بدلون ونه لیدل شو. ځینی مخور افغانان له دوي سره ښه سلوک کول دمالیی د وزیر مرستیال، میرزا هاشم، د دغو خلکو له جملی څخه درو سوو تنو ته په خپل باغ کی ځاي ورکړ. داسی معلومه شوه چی دوي له ځان سره د طاعون مرض راوړي وو دا باغ یو خواشینی کوونکی ځاي او د مرگ خپسکه وگرځید. لیکن وزیر څو چی کولاي شو، له دوي سره د مرستی څخه ډډه ونه کړه، دمهاجرینو ډلی افغانان چی په ټیټه طبقه کی بی قرار درلود ددي پیښی په نسبت کومه خوا خوږي ونه ښودله. هغوي بوازي په هغه ډول ژوندکی سیالی او رقابت کاوه چی په کافی اندازه سخت ژوند و.

امان الله خان په خوا شینی سره د اگست په دولسم تاریخ خپل سره حدي مامورینو ته امرورکړ چی افغانستان ته دمهاجرینو د داخلید و مخنیوي وکړي. افغانی وکیل تجار نماینده په دي مورد کی د مسلمانانو مشرانو ته په هند گی خبر لیکونه وویشل.

په هغه ورځ په داسی حال کی چی دامان الله فرمان ته کوم اهمیت ورنه کړي شو یوه ډله چی شمیریې اووه زرو تنو ته رسیده دجمرود له کلا څخه په وتلو پیل وکړ. دوه ورځی وروسته

هغوي ځانونه سبا يې د وخته هغه خار دار سيم ته ورساوه چې د هند او افغانستان تر منځ سرحدي کرښه يې تشکيلوله. هغوي وليدل چې لاره بنده وه او پنځوس تنه افغاني مسلح عسکر د هغوي مخې ته ودريدل چې تيرنه شي. د هغوي مخنيوي ممکن د سفر په پاي کې چانه کاوه چې د پيچو مواد لارو د سختو گرميو تکليفونه يې تير کړي وو او ځانونه يې تر کرښې پورې رسولي وو. هغه يه په جگ اواز سره وويل چې که زمونږ په مقابل کې له قوي څخه کار اخيستل کيږي نو موږ به هم مقابلتاً په عين عمل لاس پورې کړو. د افغاني ټوپک څخه يو ډز به ممکن په اسلام کې خانه جنگي يا داخلي جنگ پيل کړي واي. د اپنځوس تنه عسکر چې له او وه زروتنو مهاجرينو سره مخامخ شول نو يې هغوي ته اجازه ورکړه چې تر جلال آباد پورې لاړ شي. دا د هغه اورد احساساتي سفر پاي و چې په شوق او هيلې سره پيل شوي و.

تر اکتوبره پورې بوازې دوه زره تنه لاهم په افغانستان کې وو او زياتره پر هغو ځمکو باندې ژوند کاوه چې ورنه ورکړې شوې وې. حکومت نژدې يوسل و شپيته تنه يې استخدام کړل. نورزيات کسان يې بيرته هند ته لاړل چې له پخوانه ډير بد حالت درلود. هغو کسانو ته چې د مخه د هند په دولتي دستگاه کې يې کار کاوه وويل شو چې تاسو ته په دې رژيم کې کارنه درکول کيږي ځکه چې ستاسو د علاقې ورنه دې اوورڅخه وتښتيدئ. نور کسان په دايمي توگه تر اشتباه لاندې وو په برتانيوي مراسلاتو کې د «مهاجرين» لغت مدام په تحقير آميز شکل سره ذکر کيده.

نژدې دوه سوه مهاجرين چې ټول سرتمبه ځوانان وو، دلويديځ خواته مخه کړه او ځانونه يې روسيې ته ورسول. هلته دوي په مينه ومنل شول. د روسيې د پروپاگندې اهدافو په برمخ بيولو کې چې په هند پسې کيدې د اخلک به د خداي (ج) له لورې در استول شو و کسانو په شمير کې را تلل که چيرې روسانو پر خداي باندې اعتقاد درلودلې. دوي د هند اصلي خلک چې په هغه ژبه خبرې کولې ايډيالي نماينده گان وو. رؤسانو ځينې د غو کسانو يې په هوا نوردې کې ونيول نور کسان يې د هغوي په عسکري تاسيساتو کې شامل کړې شول. هغوي چې ډير اميد بخښونکي وو د تاشکند په تبليغي ښوونځيو کې شامل شول او ډير خاص کسان يې باکوته واستول شول چې د کمونيستي اساساتو د زده کولو په کورسونو کې شامل شي. ليکن يو مسلمان سړي چې ډير مذهبي وي په آساني سره کمونيست کيدې نه شي، او هغو کسانو ته چې تغيير پکې نه راوړل کيده اجازه ورکړله شوه چې له روسيې څخه لاړ شي، زياتره يې خپل هيواد

هندوستان ته لاړل. دهند برتانويان به البته هيڅ کله په دي نه پوهيدل چې ايا دغه کسان واقعي مسلمانان دي او که چالاکه عناصر دي.

دهند حکومت داسې وکښل: «موجوده پاليسي داسې ده چې کوم مهاجرين چې خطرناک په نظر راځي بايد وپيژندل شي او هم داچې د پوليسو تر څارنې لاندې خپلو کورونو ته واستول شي. په هغه ځاي کې دوي تر جدي څارنې لاندې ونيول شي نو ځکه موږ په دي قادريو چې بې ارزښته معلومات ترلاسه کړو د پټو فعاليتونو مخنيوي وکړو او پوهيږو په هغه سيمه کې چې له دي منبع څخه کوم تکليف پيدا کيږي هغه څنګه له منځه يوسو.

کله چې محمود طرزي له ميسوري کنفرانس څخه بيرته هيواد ته راتهنو د دي له پاره چې د ده نور ملګري هم راورسيږي په خيبر کې يې توقف وکړ څو تنه افريدي په لاره کې روان وو. طرزي له خپل موټو څخه کوز شو او دغو خلکو ته يې دستري مه شې په ضمن کې وويې چې زه د سولې له کنفرانس څخه راغلی يم او خپل هيواد ته دتګ په حال کې يم. يو سپين ږيري سړي ورته وويل چې دمهاجرينو تولې ستري ډلې چې په دي لاره تيريدلې زما پر قوم باندې ژوري اغيزي کړي دي او وويل چې موږ او دهند اتلس ميليونه مسلمانان په دي متفق يو چې د ترکيې دسلطان قدرت دي خوندي وساتل شي. طرزي دخپل سفر دبيا پيل کولو په وخت کې دخيبر سياسي نماينده کرنيل همفريز ته وويل: «ددې سپين ږيري خبرې داسې څرګند اوه چې دتورې وربځې په شان زموږ دخبرو اترو فضايي تياره کړي ده او مشکلات يې رامنځ ته کړي دي.»

د ۱۹۲۰ کال د سپتمبر په مياشت کې اسلام يوه بک ضربه وليدله. بالشويکانو دقوي په زور خيوا او بخارا ونيوله چې دمسلمانانو تر واک لاندې وو.

امان الله خان په بې خبرې سره څو مياشتې دمخه له دي کار څخه مخنيوي کړي و. هغه دبخارا د بالشويکانو پررويې باندې انتقاد کړي و او سره له دي چې دکود تا پلانونه د پرمختګ په حال کې وو وځندول شو حال دا چې بالشويکانو نوري هلې ځلې ونه کړي چې هغه څه په لاس راوړي چې يې له افغانستان څخه غوښتل.

په کابل کې دروسيې نماينده سوريتز هڅه کوله چې معلومات تر لاسه کړي چې په ميسوري کې څه وشو. کله چې طرزي ورته وويل هيڅ کوم تړون صورت ونه نيو چې حقيقت يې هم درلود سوريتز ګومان وکړ چې خطا ايستل کيږي. کوم شې چې سوريتز په خاص ډول غوښتل او له مسکو څخه يې فرمان هم ترلاسه کړي و هغه په کابل کې دهند پر ضد د تبليغاتي مرکز د

پرانیستلو اجازه ترلاسه کول و. افغانانو څرګنده کړه چې دا کار له برتانیې سره د جنګ کولو معنی لري چې په دې ترتیب سره روسیه هم باید په جنګ کې شامل شي.

سوریتز پوهیده چې امان الله په ځینو مسایلو ګې د بخارا له امیر سره ګیرو مګر ښه نه پوهیده چې څنګه.

علیا حضرت ته د بخارا امیر ته داسې لیکلي وو: «زما رښتینې زړه ته نژدې زویه، د بخارا معظم اعلیحضرته، زموږ د ښمنان زموږ د کورنۍ له بې اتفاقۍ څخه استفاده وکړه... زما په شان زرونه چې د اسلام د نامعلومې آینده د پردې ترشا په فکر کې ډوب ناست دي. مات شوي او د مرګ په انتظار کې د... زما د زړه ماشوه، امان الله، له شوروي روېيي جمهوریت سره د دوستۍ لومړي شرط تري هغه د بخارا آزادي ده.»

امان الله د بخارا امیر ته یو نظامي لاربنود، دوه د کارتوس جوړولو متخصصین او شپږ توپونه واستول. همدا ډول یوشوقي توپک یې ورته د تحفې په توګه ورکړ چې ور څخه شخصي استفاده وکړي. څو توپه کشمیري سپین شالوه یوه مصلي انګلیسي بوټان، او یو طلایي رنګه آس ورته د تحفې په توګه ولیږل شو. دا شیان د امان الله له رسمي نماینده سره ورته واستول شول. له دې نماینده سره یو جاسوس هم د چاي پلورونکي په بڼه ولیږل شو. وروسته به دا جاسوس خپله جامه ایسته کوله، او په بخارا کې به دافغانستان، سفیر کیده شاید دا جاسوس په تاریخ کې لومړي جاسوس وي چې ډیر ژر ورته د سفارت چوکۍ ورکړله شوه داسې یو امتیاز د روسیې یو جاسوس ته هم ورکړ شوي وچې سورج نومیده او عکس یې د پوستې په ټکټ کې چاپ شوي و.

ځینې نور افغانان هم بخارا ته په بله بڼه لاړل، دوي نظامیان ووچې د بخارا یانو د روزلو په خاطر تللي وو. د بخارایانو ښار د اسلامي مرکز په توګه شهرت درلود او ملایانو به پکې په سیالۍ سره قران شریف لوستلو مګر په جنګ کې دومره وروسته پاته وو چې په کوم وخت کې به چې کوم افغان په یوه عادي فاصله کې نښه ویشتله دوي به خندل او پوښتنه به یې کوله چې له دې لیرې مسافې څخه څوک نښه ویشتلی نه شي. بالاخره په سپتمبر کې سوریتز له دې کار څخه تیر شو چې تبلیغاتي مرکز په کابل کې تاسیس کړي او مسکو ته یې اطلاع ورکړه چې دا مرکز دې په تاشکند کې صرف موقتاً جوړ شي. «زه ویاړلرم څنګه چې ترون صورت ونیو نو دا مرکز به په کابل کې جوړشي مقصد یوازې په کابل کې تر سره کیداې شي.»

د رؤسانو طالع مخ په جګیدووه سپین روسان او د مخالفینو د ارو دسته د سقوط په حال

کی وه. نو معاهده وشوه. د دې معاهدې له مخې له افغانستان سره يو ميليون روبله او څه تخنيکي او تجارتي مرسته وشوه. دا مرسته د هغه په بدل کې وشوه چې افغانستان خيرخواهانه بې طرفي اختيار کړه او هم د افغانستان په پنځو ښارونو کې روسيې قونسلګرۍ ومنله شوه چې دوې قونسلګرۍ ګانې په غزني او کندهار کې جوړې شوې چې هند ې سرحد ته ډېرې نژدې وې.

امان الله موفق شو چې دا خبره يې ومنلې شوه چې په خيوا او بخارا کې دې داسې حکومت منځ ته راشي چې د هغه ځای د خلکو له خوا جوړ شوی وي مگر روسانو دلته هم يوه لاره پرېښودله او هغه داسې وه چې: «کيدای شي چې دا حکومت هرډول وي.»

پر معاهدې باندې موافقه شوې وه خو پر بخارا باندې تقريباً سمدستي د طيارو ټانکونو او زرهپوشونو په واسطه بريد وشو او بخارايان چې بې عسکر ليرې فاصله نه شوو يشتلی د بالشويکانو د قواو په واسطه ونيول شول. همدا راز هغوی څو تنه افغاني عسکر هم ونيول او هغوی يې د خپل برې د نبود لو له پاره په کوڅو کې وګرځول. هغوی له خزانې څخه درې واګونونه سره زر او نور قيمتي جواهرات يوړل. امير چې د نړۍ له غني کسانو څخه و او کله چې د خپل هيواد ختيځ خواته وتښتيد په دې بريالی نه شو چې دا سره زر او قيمتي جواهرات له ځانه سره يوسي. امير له دې ځای څخه د هند وايسرا ته خواشينی کوونکی ليکونه استول چې بيخي ورته ونه رسيدل.

امان الله دمې په مياشت کې د کابينې په يوه غونډه کې وويلې وچې روسان د اطمينان وړ نه دي او په خپلو هغو وعدو باندې يې وفا ونه کړه چې له ما سره يې کړې وي او هم دا چې د هغوی اصلي مقصد دا و چې په افغانستان کې وراني منځ ته راوړي. په سپتمبر کې ټول افغانستان د دې شي ثبوت وليد.

د هند حکومت وليکل: «د بخارا د امير سقوط په کابل کې د کلکې پاريدنې سبب شوې دې او د دې کار په نتيجه کې به يو افغاني هيأت ډېر ژر هند ته واستول شي چې له موږ سره د وروستي موافقې د نتيجې د لاس ته راوړ لو په باره کې خبرې وکړي.»

ليکن له هغه څخه چې برتانويانو توقع کوله دامان الله عکس العمل ډېر دروند و. داکتوبر په ۲۳ تاريخ د برتانيې حکومت د روس کيپل له خوا ليکل چې: «د هند حکومت اټکل کړی و، چې افغانستان په داسې حال کې چې د بخارا له تباهې څخه په ويره کې و په دې باندې

په تېنګار وکړي چې له موږ سره سملاسي اتحاد وکړي او له موږ څخه مرسته وغواړي نو که زموږ له خواد هغوي غوښتنه ونه منل شي نو په بې ميلي سره به له بلشويکانو سره اړيکي ټينګې کړي. يوه مياشت تيره شوي ده هيڅ کومه خبره معلومه شوي نه ده... په حقيقت کې اسي کومه نښه نښانه نه ليدله کيږي چې د بلشويکانو له وېرې څخه داسې څرګند شي چې امير زموږ خواته ميلان ښيي » داکتر عبد الغني چې دامان الله په دوره کې د پوهنې مديرو خپله وظيفه پرې ايښې وه او د خيبر له لارې له افغانستان څخه اوښتي و داسې معلومات ورکړ چې نه امان الله او نه افغانان له بلشويکانو سره همدردي ښيي دواړه له برتانيې سره د دوستي هيله لري او هم داچې د بخارا پېښه افغاني حکومت ته دومره ټکان ورکړي دي چې امان الله يې په فکر کې اچولي و چې له بلشويکانو سره يو دوستانه تفاهم وکړي.

روسانو نه وايسرا پوښتنه وکړه چې آيا امان الله په ريښتيا سره دهند سرحد ته نژدې د قونسلګري د پرانستلو اجازه ورکړي ده که نه « که چيري د غسې يوه موافقه په ريښتيا سره صورت نيولې وي نو داکار به افغانستان او برتانيې په دوستانه مناسباتو کې ناممکنات منځ ته راوړي. » دهند حکومت د دې له پاره چې امان الله ته ددې له ويلو څخه ډډه کړي وي چې هغوي د سوريتز د پيغامونو محتوی کړي دي چې خپل حکومت ته ليږل مجبور وچې د بې سيم د مبارکيو د پيغام کيسه کشف کړي. » او ددې يادداشت چټل نويسي په خپلې کاغذ داني کې واچاوه چې په دې توګه دا يادداشت د يو رسمي سند په توګه د انګليسانو لاس ورغی.

امان الله په آزادي سره ځواب ورکړ. هغه يو اديبانه غولوونکي سړي و او برتانويانو ته يې يلنه ورکړه چې کابل ته راشي.

مګر دلته يو ګام وچې هغه يې په اخستلو ډاريده. دي دهند د انقلابيونو له خوا چې له مسکو سره يې اړيکي درلودې د اسلام د خليفه په توګه منل شوي و. دا به دروسانو د مقصد په تر سره کولوکې ګټور تماميده.

د نومبر په ۲۳ نيټه څلور ورځې وروسته چې شا آغا ورته ويلي وچې خليفه کيږي امان الله په يو آزاد دربارکې اعلام وکړ چې يې دهغې رسالې د دوران ممانعت کړي دي چې په دې باره کې ليکل شوي وه او اخواهش يې وکړ چې زياتې په دې مورددې څه وانه وري. هغه وويل چې نه غواړي د برتانيې پر ضد په هغه دسيسه ګې ګډون وکړي چې دي ورنه د افغانستان د زوال د زمينې د برابرولو نسبت ورکړي و.

په دې وخت کې امان الله ټولو افغانانو ته داسې فرمان صادر کړ: دا به دهندوانو او مسلمانانو څخه هیره شوې نه وي چې د مخه تردې د روسیې د امپراتورۍ په هکله په افغانستان کې د عوامو خلکو له خوا بدې اوازې خپرې شوې وې. د افغان او شوروي د حکومتونو تر منځ کلک اتحاد او پیوستون تر لاسه شوی دی دا پوره ثابته شوې ده چې روسانو پر مسلمانانو باندې دومره ظلم نه کوي چې د عبادت کولو په وخت کې د هغوی ژبه پرې کړي او یا یې مامورین خپل پابوګان او خره په مسجد ونو کې وتړي. اوس روسان له افغان حکومت سره ټینګ پیوستون او خلوص نیت لري او هر څه چې افغان حکومت ور څخه وغواړي رد به یې نه کړي او دا غوښتنه د روسانو له مذهب، عقیدې او قانون سره ارتباط نه لري. «تردې د مخه روسانو له انګلیسانو سره هم دا ډول دښمني نه درلوده مګر انګلیسانو د هغوی اتباع په هند کې خطا ایستل او ټولې پیسې او دارایي یې په خزانه کې ورته ساتلې. د انګلیسانو اشتباه ګانې د کابل په سلطنت کې هم د نفوذ ځینې ورې نښې ښودلې وې. د روسانو اتحاد باید د نیک مرغۍ په توګه وګڼل شي.»

برتانویانو تصمیم ونیو چې بهتره ده په کابل کې خپل یو هیأت وغواړي، او ځان یې قانع کړ چې په دې ترتیب به د دوی غرور ته کومه صدمه ونه رسیږي.

د برتانیې د اسیاست عاقلانه نه وچې غوښتل یې له افغانستان سره مرحله په مرحله موافقې وکړي چې د هرې مرحلې له مخې زماني وقفه موجوده وي. د برتانیې د معامله کولو حالت په بې ساري توګه مخ په خرابید وو. د ننه په هیواد کې د اقتصاد له مخې د شیانو نرخ له جنګ څخه وروسته دومره اوچت شوي وو چې نژدې وژرد رکود حالت ځانته غوره کړي. د ایرلینډ کاتولیکان بغاوت وکړ او د ایرلینډ جمهوري غوښتونکي عسکر هم د انګریزانو له پره یونوي خطرو. مصطفی کمال په اناتولیه کې کامیابیده او ایتالویانو ورسره د یوې بیلې سولې د منځ ته راوړلو په فکر کې و. په بین النهرین کې لانجه موجوده وه. له بلې خوا د روسانو له پاره، چارې ښې شوې وې. د انقلاب ضد کسان چې متحدین لا د مخه ور څخه تللي وو، له ماتې سره مخامخ و.

د هند حکومت وویل، «دا بهتره ده، د مخه تردې چې موضوع سره شي، د بالشویکانو په مقابل کې د افغانانو له کرکې څخه استفاده وشي چې بخارایي نیولې وه،» او د برتانیې حکومت وویل، «یو مهم حقیقت شته او هغه دادې چې هندې عسکر د یوې اوږدې مودې له پاره سوله او ارامي غواړي، که دا کار وشي، دا به یوه لویه ګټه وي.»

کابل ته دبرتانیې د یوهیأت په لیږلوکی یو سملاسی ستونزي پیدا شوي. دا مشکل هغه طریقه وه چی دهیأت غړي باید له امان الله سره په هغه طریقه غږیدلی واي.

د برتانویانو دوي ردونی افغانانو ته په بشړه توگه تعجب آوري وي. یو دامیر حبیب الله پر حساب باندي دهغه پیسی بندول وچی حبیب الله فقط د خپلی مریضی دمخه د هغه غوښتنه کړي وه، او بله خبره امان الله د «اعلیحضرت» په نوم مخاطب گرځول و. دغه شیان لومړي له گناه څخه منکریدل او دوهم له نزاکت او ادب څخه لیري کاردي.

«که زموږ هیأت دا صلاحیت ونه لري چی امیر په هغه نوم مخاطب کړي چی هغه ځانته غوره کړي دي، نود نا امیدي له موانعو سره به مخامخ شی، او دا د احتمال نه زیاته ده چی ټولی خبري اتري ممکن پر دغه جزوي موضوع پوري منحصر وي، چی دامیر غرورپکې په څرگند ډول په نظر کی ده.» دا دهند دحکومت استدلال وچی دبرتانیې له حکومت سره وکړ او دبرتانیې حکومت دهغه په ځواب کی داسی وویل،

«زه فکر کوم دانوم باید وسائل شی چی دمعاهدي دبریالی جوړیدو په وخت کی دیوي تحفی په توگه ورته ورکړشی او په نتیجه کی به د پاچا له پاره مناسب فرصت برابر شی چی ددي لقب په اعطا سره به امیرد پاچاهانو په ډله کی د یو غړي په توگه وپیژندل شی.»

په واقعیت کی بوازي یو سړي دلقب څخه مخالفت کاوه دانفر جورج پاچاوو چی دامفکوره بی نه شوه زغملاي چی امان الله ته، «صاحبه، زما وروره» ووایی، د برتانیې د پاچا داسی عادت وچی هغو پاچاهانو ته چی دمتمدنو پاچاهانو په حلقه کی یی ځاي درلود، ځان به په مستقیمه توگه یاراساً ورته پاچا معرفی کاوه، د مثال په توگه د یوسفیر په معرفی کولو کی به هغه داسی لیکل، «زه د انگلستان پاچا دغه سړي تاسو ته د سفیر په توگه معرفی کوم. مترجم» په دغوکی د ایران پاچا شامل و، د جنگ نه یو کال د مخه د سیام پاچا دي کتگوري ته رسول شوي و، لیکن د چین امپراتور هیڅ کله په دي کتگوري کی نه وستل شو حال دا چی هغه یو داسی سړي وچی په هغی خلکو باندي بی حکومت کاوه چی نه مرکیدونکی هنر به یی تخلیق کاوه په داسی حال کی چی په دي وخت کی برتانویانو پرته له هغو شکلونو څخه چی په خپل وجود باندی رسمول بل هیڅ شی نه رسول، «غیر متمدن ټولو اکان» چی د برتانیې پاچاورته د دریم سړي (هغه) په صفت خطاب کاوه، د مراکش امپراتور او د حبشی ټولواک پکی شامل وو، چی وروستی سړي له لومړي سړي څخه لږغوندي صمیمی او احتراماته مخاطب

کیده داځکه چی دهغه عیسوي مذهب یو متمدن شی ګڼل کیده، که څه هم ظاهراً په بشپړه توګه دغی ته و.

دامان الله «وړاندي والی» دمتجاوز جورج پاچا په شان، چی د فاتح ویلیم، دریم ریچارد او اتم هنري جانشین و، ښودل شوي و، لیکن دیوه خوا خوري مامور په فکر کی داسی ګرځیده چی: یوه ورځ کله چی «تولوا کـــانو وروري» دهومنزولونز (Hohenzollerns)، هابزبرګز (Habsburgs) او رومانی (Romanoffs) له خوا له منځه وړل شوي و، جورج پاچا د دي کار ممانعت کاوه، چي دده په خاص کلپ کې د مرکزي آسیا یو «غیر مدني شـول سړي» ته ځای ورکړشي.

دهند د حکومت د بهرنیو چارو سکرتر هنري ډابس (Henry Dobbs) ددي له پاره تومول شوي وچی کابل ته دبرتانیوي هیأت دلارښووني وظیفه ترلاسه کړي خو د لږومیاشتو په موده کی چی هغه دمیسوري د کنفرانس د مشرتوب په وظیفه په ښه توګه کړه، په بدل کی ورته د سر (sir) لقب ورکړ شو چې دده د نوم لاندي استعمالیده.

ډابس یو ایرلینډي و، او هغو افغانانو ته چی دایرلیند دستونزو په هلکه څه لوستی وو، دي دیوي عجیبې څیري په توګه وپیژندل شو او دي هګ پګ پاته شول چی په داسی حال کی چی هغه په خپله د ایرلیند له مظلومانو څخه و، دظالمانو په جګه حلقه کې منصب ترلاسه کړ. هغه مجبور و دیوایرلینډي غریب کاتولیکی په مقایسه د یوایرلینډي ملاک موقف، چی دي وه تشریح کړي، ډګرمن جنرال اس، اف موسپرات (S. F. Musprat) دومره برتانیوي مامورین پی جه جی پپان (P. J. G. Pipon) او جه جی اچلستون (J. G. A Cheston) او د هند یو مخور نواب سر شمس شاه (Sir shams Shah) د دده دهیأت غړي وو. هغه له ځان سره یوطبی صاحب منصب، یوه نظامی اتشه، یوه ډله موټو سایکل سواره له موټر سایکلونو سره، چی پیغامونه ورباندي یووړل شی، او دشفر رسولو یو صاحب منصب بی سیم له مکملی دستګاه سره راوستی و. د کابل یوازنی د ستګاه دیوه روسی له خوا په کار واچوله شوه، او سره له دي چی هغه شفر استعمالاوه هیڅ چانس به ورته نه ترلاسه کیده.

په ۱۹۲۱ کال دجنوري د پنځمس نیتی په نیمایی سهار، ډابس په سهارنی رسمی لباس کی له سرحد څخه تیر شو او د برتانیی لومړیی مامورو چی د امان الله خان په پاچاهی کی ومنل شو. دهغه د امنیت له پاره امان الله خان ډیرښه پلانونه ترتیب کړي وو، ډا بس په خپل موټر په هغو سرکونو کی چلاوه چی دخلکو او حیواناتو تګ راتګ پکی نه وځکه دغه شیان تول د پنځو

يارد وپه واتن ليري د پيره دارانو او محافظينو ترشا ساتل شوي وو. هغه د برتانيي د هيأت پنځم داسي مشرو چي افغانستان ته داخل شو، له پخواني څلورو تنو څخه دوه تنه بيرته تللي وو، د ده چانسونه هم هماغسي وو.

په جلال اباد کی تشدد پاي ته ورسيد. هر چا به دخپل شاوخوا خلک په اداره کی تيل وهل چي بهرنيان وويني. کله چي د شاهي باغ دماني له دروازي څخه رهنما موټر داخل شو، د توپ د يارلس ډزي وشوي. داماني آبي رنګ او جګي ستني درلودي او همدا رنګه په باغ کی ګلان او د اوبو فواري وي. پر زينو باندي سر افسران ولاړ ووچي هاشم د نادر وروربي په سرکی و او ددي سيمي ملکی او نظامي افسرو. په داسي حال کی چي به سالون کی شربتونه تعارف کيده، هاشم د بحث په ترڅ کی دخپل ميلمه د مليت په باره کی خبري وکړي او د ايرليند موقف او هغه اهميت په بين المللي پاليسي کی بيان او دهغه ستاينه وکړه، ډابس وروسته وويل، «هاشم پرتيولو خلکو باندي چي بي وليد، اغيزه وکړه، خبري بي سپيني او ډيري احترامانه وي.» بله ورځ سهار د سبا ناري په وخت کی هاشم له انګليسي هيأت سره وليدل او د افغانستان دټيټي طبقي دنوي نا آراميو پر روحيي باندي چي مخ په زياتيدو وي، خبري وکړي او هغه مفکوره بي په ګوته کړه چي منشابي په فارس کی وه، هغه وويل، زه په خپله د بلشويکي مفکوري له خپريد و څخه خواشيني يم.

ډابس غوښتل چي د حبيب الله خان مقبره ووينی، هغه دمخه د حبيب الله مينه له جلال آباد سرک دسرو او د چينارونو په کتارونو ی ليدلی وه چي دښار په نژدي کی ترسترګوکيدل. په دي وخت کی هاشم هغه يو باغ ته بوت چي ګردچاپير ورنه ديوالونه ولاړوو او په يو وخت کی د حبيب الله د ګولف ميدان و، د ګلانو د پټيو په منځ کی پاک او ښايسته کاره واړه سرکونه موجود ووچي په دواړ وخوا وکی بي د سروي او پارسي جنغوزي ونی ولاړي وي، د مقبري د پاسه يو ښکلی ګنبدو. د زيارت څلور خواوي خلاصي وي او هره خوايي زينه درلودله چي خلک ورته د دي زينو له لاري تلل. زيارت دهيواد په عادي ډول سره جوړ شوي و، دکانکريټ نيم استوا نه يي ډول پايي پکی دريدلی وي چي په پورته برخه کی يي مرمري تيږي په کاروړل شوي وي چي بندونه او نقشي په کی ويستلی شوي وي. دحبيب الله نوم د زيارت په يوځاي کی هم نه معلوميده، هرڅوک پوهيده چي څوک دلته ښخ دي. څنګه چي ډابس راورسيد، يو خلاص قرآن شريف پر زيارت باندي ايښودل شوي و، او څلور ملايان د لمانځه د ادا کولو په حال ليدل کيدل. هغوي عادت درلود چي په هغه ځاي کی داسي لمونځونه وکړي د برتانيوي هيأت هر سړي د يوې

دقیقی له پاره د زینې پراخرې پټ باندې چوپ و دریدل. ملکی کسان سرونه د تعظیم په خاطر لوڅ کړل او نظامیان رسم او تعظیم په ځای کړل.

د سفر د بیا پیل کیدو په وخت کی، ډ ابس د ایرلیند په باره کی د دو ونورو افغانی هر کلی کوونکو د ډلی له خوا زیاتې مباحثی و اوریدې، یوځلی بیا لاري له نورو لارویانو څخه پاکې شوي، لیکن یوه لاره ونه شوه، دا د کابل دروازي لاره وه چی پاکول یی غیر ممکن و او مخور کسان د ترکمن د او ښانو په شان مجبور وو په دي لاره کی انتظار ویستلي واي.

د دلکشا مانی د حبیب الله له خوا درسمي پذیرایی له پاره دهغه د اجرااتو په تناسب ډیر رومانتیک جوړ شوي و، دجنوري په لسم تاریخ، ډابس او ورسره کسان په غیر رسمی لباس کی د دلکشا مانی ته ورداخل شول او یوې لوي کتاري لرونکی زینی ته مخامخ ودریدل. د دي زینې پر کتارو باندي برقی شمعه دانونه قطار وو او په دوارو خواو ی دڅیر و یوډول لوښي ایښي وو چی د گلدانونو په شان معلومیدل او زړه وړونکی نقش او نګار پکې شوي وو، ډابس، دمحمود طرزي په واسطه چی ورسره و، نادر ته وړاندي کړي شو. سالون د کابل له مخورو کسانو څخه ډک و، د ډا بس په فکر ی داخبره راغله، چی په ۱۹۰۵ کال په دربار کی د دنمارکی هیأت استقبال یوازي دو وکسانو له خوا په دروازه کی شوي وو، دغه هر کلي کوونکی افغانان داسی یونیفورمونه اغوستي ووچې سرد بخملي رنګونه یی درلودل او طلاکاري هم پکې شوي وي، طرزي پکی یوازي ملکی شخصیت و.

نادر، چی د طرزي جانشین شوي و او د یواوچت منصبدار په توګه یی چاري سرته رسولی، ډابس یی د کتاره لرونکی زینی له لاري چی په کی د پنجده غالی سرترپایه غوړیدلی وي، پورته لارښوونه وکړه پنجده هغه سیمه وه، چی افغانانو غوښتل بیرته یی له روسیی څخه لاس ته راوړي، هیأت خپل ځایونه په نوي تشریفاتی سالون کی اشغال کړ. دهریوه په مخ کی واړه میزونه، چی میوي او خواږه شپان ورباندي ایښی و، لیدل کیده، پریو میزباندي، چی د سالون مدخل ته نژدي ایښی و، د جورج پاچا او ملکه ماري لولوي عکسونه ایښودل شوي وو.

رئیس، په داسی حال کی چی یوه همسا ورسره وه او په سری یی طلایی ستوري و، راننوت او امیر ته یی خطاب وکړ.

امان الله، چې ډرا ماتیکی زره کښوونکې جامې اغوستې وې بخملی سره دریشی چې طلا کاري هم شوي و، اغوستی وه او ساده توره دریشی یې په تن کی وه او سموریوه لویه خولی یې په سر کړې وه چې طلایی ستوري پکی تومبول شوي وکله چې امان الله اول خبري کولی، هغه په احتیاط او رسمی شکل سره غږیده، لیک وروسته چون ورته معلومه شوه چې تولة ډله په دري باندي پوهیږي، او ترجمان ته کوم ضرورت نه لیدل کیږي نو ارامتیا ورته حاصله شوه او خبري به یې په خوښی سره کولی، هغه وویل چې برتانیوي هیات به ژر د دري ژبی د « ق » د توري پ تلفظ باندي پوه شی ځکه د قناعت لغت به په کنفرانس کی زیات اوریدل کیده. هغه د میسوري د کنفرانس په باره کی دومره معلومات درلود لکه چې په خپله په هغه ځای کې وه چې د « ملنگ » نوم یې هم په برکی درلود چې د برتانیې د هیأت وتن ته ورکړ شوي و، هغه د ایرلیند له موضوع سره هم تماس ونیو او پوه شوي وچې په دې اووه کسیزه ډله کی څلور تنه یې ایرلیندیان دي.

ډابس راپور ورکړ، « د امیر خوي، رفتاره کړه وړه آمرانه او غرور امیزه دي. هغه ډیر ظریف، خوش طبع سړي دي او په جگ آواز سره خاندي، دهغه پخوانی افراطی رسمي کړه وړه یې نه لیدل کیږي، په ورین تندي او ژوند بښونکی عمل یې لاس پوري کړي دي او داسی عادت یې ځانته غوره کړي دي چې خپل مقصد دژرژر حرکاتو او اشارو په کولو سره تشریح کوي. »

امان الله ډابس ته وویل، چې طرزي یې له ځینو اسیستانتانو سره گومارلی دي چې په خبرو اترو کی دي برخه واخلی.

هغه په خندا سره وویل، « زه نادر په دې کارکی نه شاملوم ځکه هغه یو محاربوي سړي دي. جنرالان هیڅکله د موافقی په کولو گټور نه تمامیږي. د سردار محمود طرزي او سر هنري ډابس پیوستون، چې دواړه د قلم خلک و دواړه د بهرنیو چارو وزیران دي، یو ښه فال دي. زه ستاسو د پوره بریالیتوب هیله کوم. »

نادر تقریباً په سختی لهجی سره چې یوڅه جدي غوندي معلومیده، ځواب ورکړ چې « بی د توري د خاوندانو څخه د قلم خاوندان گټور کیدي نه شي. زه په خپله د دواړو شیانو د لیاقت په درلود لو سره مدام خدمت ته چمتویم. »

دربار ختم شو. هغه انگلیسان چې د بی سیم دستگاه یی نصب کړي وه، بیرته هند ته

لاړل، او پنځه تنه هغه ځوان افغانان يې په خپل تش موټر کې له ځان سره کښېنول چې د تلګراف په برخه کې په کراچي کې زده کړه وکړي. د دې پنځسو تنو په تن کې خړنوي بالا پوشونه او په سرونو کې يې خړنوي خولې وې چې امان الله توري او قلم د پوهنې نښانونه په کې ټومبلي شوي و.

امان الله په خپل هيواد ی د برتانيې امپراتوري کور به وچې په مخالفتونو کې بريالی شوي و.

# نهم فصل

## د ۱۹۲۱ کال د جنوري له ۱۳ څخه د جون تر ۱۵ پوري

امان الله خان د جنوري د دیار لس نیټې په سهار د برتانیې له امپراتور سره ملاقات وکړ او مخامخ خبري یې ورسره وکړي. و اوره په شدت سره ورید له او امان الله خان کله چې له ډا بس سره روغبړ کاوه، ذکام و، امان الله خان خپله رسمي دریشي اغوستې وه چې یوه لنډه خړه وړینه کرتۍ ډوله شی او تورپتلون و. ډا بس هم خپله سهارنی رسمي لباس اغوستی و. طرزي او سرشمس شاه یوازنی نورکسان ووچې حاضرو و.

ډابس، په خبرو داسې پیل وکړ: «که زه ستاسې دوست نه وای، ما باید هغه شیان پټ کړي وای چې غواړم اوس یې تاسو ته څرګند کړم. دغه شیان مازې ډیرو لږو کسانو ته معلوم دي. مونږ هغوي له خپلو سري دفترونو څخه د باندي ساتو، هغه شیان چې زه غواړم د هغوي په باره کې له تاسو سره وغږیږم، هغه دادي چې د افغانستان او د نورو ډلو ترمنځ لکه د بلشویک د حکومت، جمال پاچا، او مصطفی کمال له حکومتونو سره اړیکې لري او زمونږ د استخباراتي شبکې له خوا کشف شوي دي... زمونږ استخباراتي شبکه په نړۍ کې بهترینه شبکه ده او که زه خپل اطلاعاتي منابع تاسو ته افشا کړم هک پک به پاتې شی.»

امان الله خان غوښتنه وکړه، «تاسو خپل اطلاعات له کوم ځای څخه ترلاسه کوي؟ که تاسو له ما څخه کومه خبره پټه وساتی زه به هم له تاسو څخه شیان پټ وساتم.»

«خواهش کوم زما معذرت و منی ممکن زه ونه کړای شم د خپلو مخبرانو نومونه تاسو ته ووایم.»

«هغوي به له ماسره محفوظ وي»

«فرض کړه خداي دي نه کړي يوه ورځ ناروغ شي سخته تبه وکړي او اپلاتي ووايي، ته به ددغه نومونه افشا کړي او زموږ مخبران به ووژل شي. پوهيږي په مسکو او تاشکند کی څه پيښيږي.»

ډابس وويل چی برتانيه پوهيږي چی افغانستان له بلشويکانو او له مصطفی کمال سره معاهده کړي ده چی دهغه په باره کی افغانستان برتانيی ته هيڅ نه دي ويلي، موږ نه شو کولی کنفرانس ته پټيی سترګی لاړشو.»

امان الله خان دهغو ملتونو د وحدت په باب پوښتنه وکړه، چی دهغوي د قانون له مخی ټولی معاهدي بايد علنی وي، او غوښتنه يی وکړه چی کوم هيوادونه پکی لاسليک کړي دي. هغه په خاص ډول غوښتل چی پوه شی که امريکا پکی لاسليک کړي وي.

ډابس وويل، «ځينی خاص دلايل شته چی امريکا په اوس وخت کی ځان ګوښه کړي، اما که لاسليک وکړي که ونه کړي، يوشی چی دهغه په مقابل کی ټول امريکايان ځير دي هغه پټه ډيپلوماسی او پټی موافقی دي.»

وروسته ډابس د ميزپر سرباندي د برتانيی د خبري منابعوله مخی له روس سره افغانستان د موافقی او پر هغو موافقو باندي د سوريټز د تبصري، له ترکيی سره د افغانستان اړيی او د جمال پاچا د فعاليتونو په باب اسناد کښيښودل.

هره پاڼه چی پورته کيدله، امان الله خان او طرزي زيات عصابی کيدل. امان الله خان د دواړ لاسو په ګوتو پر ميز باندي په ډول وهلو پيل وکړ تا په ويل چی پيانو غږوي.

طرزي پوښتنه وکړه، «دجمال پاچا په باره کی دي معلومات له کوم ځايه ترلاسه کړي دي؟ زه فکر کوم له هغه وخت څخه راهيسی چی دلته راغلی يی داکار دي کړي دي.»

«ته ټولو هغو احتياط کاريو ته متوجه شه چی زموږ د ټولی ډلی د امنيت له پاره ورڅخه کاراخلی! آيا ته په ريښتيا سره فکر کوي چی ماپه کابل کی پوښتنی او پلټنی کړي دي؟ نه، ما د داسی يوکار د کولو خوب هم نه دي ليدلی، زموږ خفيه اداره دا معلومات له کوم بل ځاي څخه ترلاسه کړي دي.»

ډابس دهغه تلګرام فارسی ترجمه په جګ او ازسره ولوستله چی سوريتز مسکو ته استولی و او برتانيه دهغه مخنيوی کړي و، په تلګرام کی ويل شوي و:

« لـه اتـوميـاشتـو خبرو اتـرو وروستـه ، دافغـان او روسيـې معـاهده د سپتـمبر په شپاړسمه نيټه لاسليک شوه ، معاهده موږ ته ديوې خير خواهانه بې طرفه ضمانت کوي. دمعـاهـدې له مخې افغـانستـان به هم په سياسي او هم په نظامي ساحه کې پرموږ باندې متکي وي. »

کله چې ډا بس آخري جمله وويله ، امـان الله خـان په جګ آواز سـره وويل ، « زه د هيـڅـا تر لاس لاندې نه يم! زه د روسيې ترحمايې لاندې نه يم. » ډ ابس لوستلو ته ادامه ورکړه تا به ويل چې هغه هيڅ خبري نه وي کړي ، سوريتز داسې تلګرام ورکړي و ، « د معاهدې تر تصويب پورې ، وضعه ډېره خسته کنه ده ، په تيره بياد بخارا د پېښې په مناسبت ، دا ضرورده چې هر هغه علت چې وضعه لا پسې خرابوي ، له منځه يووړل شي ، او په خاصه توګه دې په سرحد ونوکې د پېښو په له منځه وړلوکې توجه وشي ، هره سرحدي پېښه ممکن ټول حالات کړکيچن کړي ، مثلاً له موږ سره به دافغانانو له خوا داړيکو د شکولو په بهانه عمل وشي ، نه د مجلس چارو په بهانه ، ممکن دا کار په ختيځ کې پرټولې پاليسي باندې اثر واچوي ، موږ د معاهدې ترتصويب پورې په هيڅ صورت سره دا نه شو زغملي چې افغاني ديپلومات تحريک کړو. هر تشديد عمل به دمعاهدې تصويب ناممکن وګرځوي.

وروستـه ډابس دجمـال پاچا او ديوسـرې کـمـيـسيـون د فـعـاليـتـونو په باره کې چې هند ته د تبليغـاتي مـواد و درسـولو له پاره مـوظف و ، څـه ولوستـل ، « تاسـو هيله لرئ چې په کـابل د مصطفی کمال له خوا په دې نژديو وختوو کې يوه جرګه درشي او هغه ته هم يو هيأت واستوئ. »

امان الله خان پوښتنه وکړه ، « ښه نو څه مطلب؟ »

« زمـا هـدف ددې څرګندول دي چې داسې ښکاري تاسو له څلورو مختلفو ډلو سره غواړئ پر مـخ لاړ شـئ : بلـشويكـان ، برتانيـه ، جمـال پاچا او مصـطفی کـمـال اوس بـه هغه کوم ځای ونيسي. »

امـان الله خان وويـل ، « زه غواړم په خپل و ارسره په ډاګه وغږېږم. زه به تاسو ته هغه شيان ووايم چې نورو ته مې نه دي ويلي ، تا سود دې جنګ په خاطر په ټوله نړۍ کې شـايع شوي يې ، مګر داشي ستاسو په واقعي عظمت دلالت نه کوي. په دې ضمن کې بلشويکانو ځانونه تقويه کړي دي. هغوي په سرعت سره خپله غير منظم توب تنظيموي او خپلې فابريکې بيرته فعالوي او نظامي تجهيزات په چټکۍ سره منځ ته راوړي. »

وروسته امان الله خان په خپلو ځانګړو فعالیتونو باندی رڼا واچوله او وویل «کله چی زه په هغه ځای کی یم، زما شخصی بیرغ به د ټولو عمومی دایرو د پاسه ولاړوي. »

ډابس وویل، «اجازه ده پوښتنه وکړم څه قسم رنګ لري؟ »

امان الله خان وویل، «سوررنګ لري. » طرزي ته یی مخ واړاوه او شکایت یی وکړ، «خدای دي وکړي تاسو او سرهنري ډابس د زړو ډیپلوماتو په شان دسترګو او وریځو لاندي یوله بل سره کراري سره خبري وه کړي، زه پوهیږم تاسو دواړه په دي فکر کی یاستی چی سوررنګ د بلشویکانو د بیرغ رنګ دي، اما اجازه راکړي چی تاسو ته په ډاګه کړم چی د افغانستان د پاچاهی د بیرغ رنګ د بلشویکانو څخه ډیر د مخه ټاکل شوي و او زه نه غواړم چی هغه ته اوس تغییر ورکړم. »

امان الله خان ډابس ته وکتل او دومره ژرژر خبري یی وکړي چی مطلب ورڅخه نه اخستل کیده.

«زما یاد دیږي چی په وړو کتوب کی به مور ته تل ویل کیده چی روسان د اسلام دښمنان دي، د مسلمانانو نارینه وژنی، ښځی یی بی حرمته کوي، مسجدونه ورانوي، تاسود اسلام وستان وي، تاسو قسطنطنیه د خپلو بیړیو په ذریعه له روسانو څخه وژغورله. »

«اوس ټول هغه شیان تغییر موندلی. تاسو د ټولو مسلمانانو زړونه وران کړي دي، نه یوازي د ترکیی، بلکی په مصر، بین النهرین، هند او ایران کی هم تاسو هیڅ دوستان نه لري. فرانسویان ستاسو دوستان نه دي. زه ستاسو پرضد د ایتالیی له دسیسو څخه پوره خبریم. اوس تاسو د دي چانس لري چی افغانستان خپل دوست وګرځوي. که تاسو ورسره مرسته وکړي چی په یولوي قدرت بدل شی، دنړي د ټولو مسلمانانو زړونه به ستاسو په لورشی، ځکه هغوي به ووینی چی تاسو له یو مسلمان قدرت سره مرسته کوي، او هم و به وینی چی تاسو له ترکیی سره چی کوم شی وکړ هغه سیاسی جنبه درلودله نه اسلام سره ستاسو دکرکی په خاطر. له افغانستان سره ستاسو مرسته البته ستاسو په ګټه تمامیږي او ستاسو تشویش به دهند په مورد کی کم کړي.

«مهم شی دخلکو زړونه لاس ته راوړل دي او واقعی قدرت هم په همدي کی دي. »

«زما موقف ته فکروکړي. زه له خپلو ورونو څخه کشروم... او له خپل تره څخه هم. پرځی قدرت دعنایت الله خان په لاس کی و، سره له دي هم دخلکو زړونه زما په لاس کی و، نه یوازي دخلکو زړونه بلکې د عسکرو هم، نو همدا وجه وه چی زه پرتخت کښیناستم.

« د افغانستان موقف ډیر مهم دی. ټول دغو نماینده گانو او را لیږل شوي کسانو ته فکر وکړی چی له بلشویکانو، جمال پاچا، مصطفی کمال له خوا دلته ماته راغلی دی، ستاسو نماینده او شوکت علی (دهند د مسلمانانو مشر) هم دلته ماته راغلی دی او غواړي له افغانستان څخه لیدنه کتنه وکړي. اوس که تاسو د سخاوت مندی له مخی افغانستان خپل دوست وگرځوی، ټولی هغه ستونزي به دواره حل شی چی تاسو یی ناراضه کړي یاستی، تاسو وایی چی ماله بلشویکانو او له جمال پاچا سره کومه موافقه کړي ده. په دي توگه، ماته کوم ضرورت نشته، چی په دي مورد کی زیات بحث وکړم او یا ووایم چی ستاسو معلومات صحیح یا غلط دی. راځی چی ژر د معاهدي پر مسودي باندي کار وکړو. دا کار باید له پنځسو پاشپږو ورځو څخه زیات وخت ونه نیسی. وروسته له هغه که افغانان راضی شول دبدگمانی زمینه به ټوله له منځه لاړه شی. »

ډابس وویل، « زه بیخی منم چی تاوویل د مسلمانانو زړونه له موږ څخه بد دی. که چیري دخلیفه سوال نه وای مطرح، افراطیون به ځینی نوري پوښتنی را منځ ته کولی. »

« داسی کومه نوره پوښتنه یا داسی غټ سوال به مطرح شوی نه وای. »

« په هند کی کارونه مخ په ښه کیدو دی. جرمنیانو په قطعی توگه مطمئین وچی موږ به په جنگ لاس پوري نه کړو، ځکه چی ټول هندوستان به زموږ پر ضد راپورته شی. ددي په عوض هند له موږ سره مرسته وکړه.

« داځکه چی تاسو هغوي ته، دغو نویو قونسلگریو او نورو ته د خاصو آزاد یو وعدي ورکړي. »

ډابس ورته وویل، « تاسو باید داخبارونو، مخبرینو او افواهاتو په تبلیغ باندي ونه غولیږي. »

امان الله خان پس زیاته کړه: « له ترکیی سره دخپلو مناسباتو په هلکه څه فکر کوي؟ آیا غواړي هغه ته تغییر ورکړي؟ تاسو باید دا کار وکړي او د مسلمانانو زړونه بیا لاسته راولی. »

ډابس وویل، « زه نه شم ویلی چی زما دحکومت وروستی تصمیم څه دی. دبرتانیی صدراعظم او د فرانسی او ایتالیی د بهرنیو چارو وزیران تر اوسه پوري پر موضوع باندي بحث کوي او دهغوي خبري اتري علنی شوي نه دي. »

امان الله خان په تعجب سره وویل: « اها! دملتونو د وحدت په باره کی موځه راته وویل چی سري د ډیپلوماسي له منځه وړي؟ »

«ما وویل، پتیه موافقه، نه له موافقې څخه دمخ پتیه مباحثه.» په دې وخت کې امان الله خان پرنچیده، حال دا چې نورو خلکو هڅه کوله په دې یخه کوټه کې ځانونه ونه لړزوي. دمخه تردې چې سره جلاشي، امان الله خان بابس ته وویل، «ستاسې نوم، اوستا له حکومت سره ستا اعتبار په دې پورې اړه لري چې دبېرته ستنید و په وخت کې معاهده په خپل جیبب کې ولري، ته نه شې کولاي بې له کومې معاهدې بیرته لاړشې.»

«برعکس، هغه آخري پیغام چې وایسرا ماته، دمخه تردې چې له بندر څخه واوړم، واستاوه، یو تلګرام و، چې په کې راغلي و، چې هغه هیله کوله هغه شی به زما په یاد وي... هغه به ژه نه ملامتولم که چیرې زه بې له کوم پیغام څخه بیرته ستون شوي واي.»

«نو وایسرا، ته له توره خلاص کړي یې.»

واوره دربدلې وه ولی، د تود وخې درجه له صفرنه ټیټه وه، دانو دلړي مودې خوشحالي وه.

کله چې امان الله خان او طرزي په رسمي غونډ وکې خپل لومړي مخالف بحث کاوه، او د دې مخالفت خبري نوروته ورسیدې حتی سربازانو او افسرانو ته او د کوڅو او بازارونو خلکوته، نو هغه صمیمت چې برتانویانو ته کابل ته دراتګ په وخت کې شوي و کرار کرار له منځه لاړ. ځینې سربازان و افسران به چې په غیر رسمي توګه د دوي له څنګ څخه تیریدل یوازې د سریو، اشاره به یې ورته کوله چې داکار برتانویانو ته یوډول سپین سترګي تلقي کیده، لارویانو چې پخوا په کوڅو کې ورته احترام کاوه، نور یې نه کاوه، هر چیرې چې به هغوي تلل بوه رسمي بدرګه به ورسره تله، دوي په دې باندې پوه شول چې روسان یوازې دباندې ګرځیدل، دوي په دې خبرنه وو چې روسان د آزاد و ګرځید لو آزادي په دې خاطر درلودله چې افغاني نماینده ګان په روسیه کې د غسې آزادي درلودله، هغه لاربنود چې برتانویانو ته ټاکل شوي و، په انګلیسي باندې پوهیده، نو دا لاربنود دهغوي له خوا تر څارنې لاندې وچې دهغوي خصوصي خبروته غوږونه نیسي، دهغوي دتیرو وختونو زده کړه ورته دنجات سبب وګرځید او دوي دستي په فرانسوي ژبه په خبرو پیل وکړ، کله چې ګونبتل کوم سلماني یا کوم حوالي ته دهغوي د یوکوچني خدمت په مقابل کې څه پیسې دبخشش په ډول ورکړي، له دې کار څخه منع کیدل او په خپل لاربنود دابخشش ورکاوه، سیاسي کنون وایي لازم نه ګڼل کیده چې دوي زیات شهرت ترلاسه کړي، برتانویانو ته د اهمیت د نه ورکولو آخري نښه داوه چې افسرانو به د ملاقات په وخت کې زیاتره د روسانو د ښیګنو په باب خبري کولې.

په رسمي خبروکی نادر چی د سرحدي موضوعاتو په بحث کی برخه اخیستله، داخبره یی سمه بښودله چی انګلیسان ورته «سخت زړي» ویلی و، هغه دبرتانیی په مقابل کی تقریباً دټولی نړۍ د دښمنی عمده مطالب داسی بیان کړل:

«که افغانستان له لویی برتانیی سره دوستی وکړي، نو دقبایلو او هندي مسلمانانو له کلک تنفر سره مخامخ شی.» طرزي د کنفرانس منظري ته چی کومی موافقی ته ونه رسید، نا ارامه و، لیکن نا در اعلام وکړ، «حتی که طرزي هم د میسوري د کنفرانس په ارتباط کومه موافقه لاسلیک کړي وي، زه به یی له منلو څخه انکار وکړم.»

د انګلستان دحکومت عکس العمل داسی و، «که دنړي کوم بل حکومت (حتی جرمنی دجنګ څخه دمخه) زموږ په مقابل کی د داسی لهجی څخه کار اخستی واي، موږ به... سمدستی بحث ته به خاتمه ورکړي واي.»

براوین، د روسیی پخوانی ماتی خوړلی استازي، چی افغانی تابعیت یی منلی و، دجنوري په نیمایی کی له خپلی ښکلی ښځی سره له کابل څخه غزنی ته لاړ، هر چا داسی فکر کاوه چی هند ته ځی، او هلته به د تزار او د بلشویک په مورد کی ټول هغه شیان په ډاګه کړي چی دروسیی د یو رسمي مامور په توګه ورته معلوم و، ځینو به ویل چی دي به په افغانستان کی دیوي اوږدي مودي له پاره په دي خاطر وظیفه اجراکوي چی له دي ځاي څخه یوه ورځ په اسانی سره هند ته وا وښتی شی. فقط د میسوري دکنفرانس څخه دمخه، برتانویانو اوریدلی و، چی امان الله خان په دي فکر کی دي چی براوین خپل نماینده کړي.

په غزنی کی، کله چی براوین د ګلانو د ټولولو په سفر روان و، چاوواژه، یو افغانی عسکر چی په دي عمل لاس پوري کړي و اعدام شو.

د کابل خلکو بیا هغو برتانویانو ته چی په بازارونو کی ګرځیدل په احترام کولو پیل وکړ... دخدمت په حال کی افسرانو دکار په مقابل کی دوړو بخششونو عمل پر مخ بیولو. ډا بس خوښ وچی دیوافغان ډګروال له خولی څخه یی د بلشویکانو بد اوریدلی و او امان الله خان، نادر خان او طرزي دري کسیز قدرت دهغه دصحت دښه کیدو وروسته ورته یولیک واستاوه چی پکی دهغه د صحت دوستانه پوښتنه شوي وه، ډ ابس ټول دغه نوي شیان د انګلستان حکومت ته خبرو کړ، چی هغه یی «زرنګ» وباله.

ډ ابس واوریدل، چی دا محبوبیت فقط له افغانستان سره د روسیی دمعاهدي د تصویب پر څنډ ولوپوري اړه لري.

هغه په خپله د معاهدې په مناسب خبري اتري کولی، ډابس د انګلستان د حکومت له خوا له دې امتیاز څخه محروم ګرځول شوی و. هغه د تنفرور ګرځیدلی و، په آخر کی د انګلستان حکومت دي تقویه کړ چی امان الله خان ته هغو مره مرسته ورکړي چی پلاریې ترلاسه کوله، دوه لکه روپی، «که چیرې ډابس ترشلو لکو پورې ځان تر فشار لاندې احساس کړي، مور فکر کوو هغه باید هم همغه اندازې ته پورې لاړ شي. ځکه هغه د موفقانه حل او فصل ضمانت کولای شي، په دې سختو وختونو کی ... به هغه بهترین کار کړی وي... مګر بیا هم د سرحدي چارو د سمولولو پاره دغه اندازه پیسی یو وړوکی او جزوي شی دي چی په سرحد کی د سولی د برګزارولو د چارو په خاطر تادیه شی.»

فبروري په ۲۷ نیټه امان الله خان د خپل بري دوهمه کالیزه و لمانځله د شپی ډوډي ترنیمی شپی پوري ورننه کړې شوه، ځکه چی شدید توفان ټولی خیمی چپه کړې وي، چوکی، میزونه، قابونه او دري سوه ګروپونه یی ټول مات کړي وو، د دلکشا د ساعت او رډ برج وران او ځوړند ولاړوه، مګر شنه او سره برقی اشاري امیر د صحت غوښتلو په منظور چی بلیدې او مړې کیدې او دلندن د کوڅود فیشنی شیانو څخه وي، چالانی وي.

دامیر په تن کی یوه اوږده کرتی وه چی بخملی سوررنګ یی درلود او په غاړه کی یی دلمرقیمتی الماس ستوري نښان ټومبلی و چی ده په خپله منځ ته راوړي وه او په سریی یوګنبدي شکله قره قلی خولی وه چی د نیکه د الماسو ستوري پکی ټومبل شوي و، او یوه ساده خړ رنګه کرتی او پتلون یی هم اغوستی و. هغو کسانو چی د سرداری اعلی درجه درلودله (چی یوه لوړه رتبه ده) او قره قلی خولی ګانی یی په سر کړي وي، چی د شتر مرغ قرمزي بڼکی یی په منځ کی ټومبلی وي او افسرانو نوي ښی توري دریشی ګانی اغوستی وي، یولږ شمیر سیدان چی پوستینونه یی اغوستی وو او پټې یی تړلی وو، داسی ښودل چی د پیغمبرانو زوزات مادي نعماتو ته د حقارت په ستر ګی ګوري.

کوم وخت چی هغوي د ډوډي خوړلو دوران شوي میزتر جوړید وپوري منتظره وه، امان الله خان له خپلو ځینو خپلوانو سره قطی کولو او ځینی ملایان، چی شا اغا هم د دوي په ډله کی و، په دلچسپی سره ورته کتل. دلته روسانو له خپلو سرو سره چی په اقلیت کی وومرسته وګړه او ورسره خبري یی پیل کړي، حال دا چی برتانویانو په سالون کی ګرم مجلس جوړ کړي و. ډابس

او ورسره کسان قطې او شطرنج کاوه او ښه گپ شپ یې لګولې و، حال دا چې روسانو د سائون په یوه خوا کې خپه ناست وو. هغوي به په یو حالت کې خپه نه کښیناستل چې د جمال پاچا له خوا یوه ضمنې خبره را منځ ته کیده.

په میلمستیا کې د هغو ماشومانو له خوا سندرې ویل کیدې چې پلرونه یې په جنګ کې شهیدان شوي وو او دوي اوس د حکومت پاسداران وو، هغوي داسې سندرې ویلې:

«موږ ه یتیمان په بد حالت اخته او خپه بو،
خپل پلرونه مو له لاسه ورکړي دي لا لهانده یو
کاسه چې زموږ پلرونه شهیدان شول،
موږ له غمونو او مصیبتونو سره مخامخ شو.
مګر د غازي پاچاد مهربانی له مخې
اوس موږ غرور او عزت تر لاسه کړي
او فکر کووچې موږ ټول د پاچا زامن یو.»

بله ورځ روسانو له افغانستان سره خپله معاهده تصویب کړه، مګر خبر یې د مارچ تر اوومې نیټې پورې کابل ته را ونه رسید. کابل یوازې پدې باندې خبرو چې د پنجدې شاوخوا سیمې چې وعده ورکړي شوې وه د افغانستان حق دي، او بیرته ورته مسترد یزي، په سستې پر مخ تله.

نو ډابس، د مارچ په دوهمه نیټه د یونوي حرکت تصمیم ونیو.

په هغه ماسپښین ډابس له امان الله خان، طرزي او نادر سره په بیخې یوازې صورت ولیدل. یوازنې سړي چې په هغه ځای کې حاضرو، یو کوڼ او ګونګی سړي او له هغو کسانو څخه وچې هر ختیځ در بارد داسې حالاتو له پاره ساتلو، ډابس حتی د کوټې په منځ کې د میزو نو دا یښود لو اټکل وکړ.

وروسته ډابس افغانانو ته د هغو ټولو معلوماتو منابع بیان کړل چې په لومړي کنفرانس کې یې څرګند کړي و: د برتانیې خفیه استخباراتي دستګاه اتلس میاشتې به هر هغه عادي تلګرامونه لوستل چې د مسکو، تاشکند، کشک، کابل او د نورو ځایونو تر منځ تبادله کیدل، هغوي د روسانو شفر کشف کړي و، داسې څرګندونه اوس بې خطره وه ځکه روسانو په راز پوه شوي وو او خپل شفر ته یې تغییر ورکړي و.

امان الله په جګ اواز ووېل، «د غه د بې سیم تلګراف ډیر زیات خطر ناک دي. مختلف

حکومتونه دده په استعمال سره غواړي د نورو هیوادونو په اړیکوکی تر یخوالی پیدا کړي، ز باورلرم چی بلشویکانو د غه تلګرامونه ستاسو د نابودي له پاره په کاراچولی دي. هغوي پرو سږ کال هڅه وکړه چی د غسی مشابه چل پرماباندي هم وکړي. له تاشکند څخه یواوږد تلګرام راغی چی پکی د معاهدي بحث او بیان شوي و او هم پکی ښودل شوي ووچی ولی خان زما نماینده له بلشویکانو سره پکی لاسلیک کړي دي چی په دي کار سره به افغانستان په بشپړه توګه د روسانو تر پښو لاندي کیږي، زه ډیر په ویره کی لولیدلی وم. ما ولی خان ته د معاهد و د لاسلیک کولو هیڅ صلاحیت نه وورکړي او زه دا نه شم منلی چی هغه له ما سره خیانت کړي وي، ما په شپو شپو خوب نه شوکولی، او زما مشاورین هم همدا سی ځوریدل. په اخر کی دولی خان له خوا یو پیغام ترلاسه شو چی پکی لیکل شوي وو هغه هیڅ کومه موافقه له چا سره نه ده کړي او ما نادر ته، چی په جلال آباد کی و او محمود طرزي ته چی هغه هم لیري وتلګرام وکړ او ورته می څرګنده کړه چی اوس می فکر په کرار شو.

« بلشویکانو په دي فکر کی ووچی همداسی چل په تاباندي هم وکړي. زه به د کابل د بی سیم دواړه دستګاوي ماتی کړم. دا دستګاوي ضرر رسوي. دواړه په ماپوري اړه لري. »

ډا بس افغانانو ته وویل چی زه له تلګرامونو څخه پوهیږم چی نادر تیر کال له برتانیی سره د جنګ غوښتنه کړي وه، « ما په میسوري کی تاسوته یوه اشاره کړي وه چی موږ دهغه په باره کی پوره پوهید و او سوریتز، ستاله تګ څخه وروسته تلګرام وکړ چی تاسو ورته خبرتیا ورکړله چی موږ د هغه په باره کی آګاهی حاصله کړي وه، موږ له دغو تلګرامونو څخه پوه شولو چی بلشویکانو دبخارا د له منځه وړلو نقشه څنګه طرحه کړي وه... دبخارایانو تجارت د سوریتز د مشوري پر خلاف د بلشویکانو له خوا په دقت سره پلان شوي و. سور تیز څرګنده کړه چی په اوله کی تا سو دهغه په باره کی ډیر په قهروي، او څرګنده کړي دي وه چی د دي په خاطر ته به په مسلمانانو کی خپل شهرت له لاسه ورکړي، لیکن دایی هم وویل چی وروروسته تا سوډ یر پخلا معلومیدي.

« بل شی چی موږ ورباندي پوه شو دا وچی صرف یوه ورځ دمخه چی زموږ هیئت کابل ته راورسید، امیر صاحب سوریتز ته وویل چی هغه په خپله له موږ سره د دوستی د تړون مخالف دي، او په دي هیله چی روسی معاهده به تصویب شی، هڅه کوله د امکان ترسرحده پوري خبري اتري وځنډوي. »

امان الله خان وویل: «هغه تلگرام وابي چي ماله تاسو سره دمذاکري دځنډولو وعده کړې ده، اوس يې څوک ځنډوي؟»

ډ ابس وويل: «موږ پوره دامنوچي تيرتير دي، او تياريو چي ټولې دغه بدگوماني هيري کړو، که تاسو صرف له خپلو سترګو څخه ګرد ايسته کړي او زما سپيڅلي نيت درک کړي.»

ملتونه مدام دي ته چمتو دي عيبونه وښي چي ممکن هغوي په خپله په کې ژريا وروسته ايسارشي، امان الله خان وويل، «ټول هغه شيان چي تا راته ويلي دي، صرف زموږ په منځ کې د دوستی دمنځ ته راتلو اهميت څرګندوي. که واقعي دوستي منځ ته راشي، ټول هغه شيان چي په دي کاغذ ونوکي شته درک کيږي. ترڅو چي موږ يوه معاهده لاسليک کوو، زه حق لرم چي په خپله برخه کې څه وغواړم هغه کوم، ته د کومې مناقشې حق نه لرې، او ته هم په خپله برخه کې همداسي حق لرې اوزه نه شم کولی مناقشه وکړم... همدا ځنډول دي چي زموږ په منځ کې د کارونو د خرابوالي سبب ګرځيدلی دي. تاسو بايد په راولينډي کې وروستي تړون کړي واي. وروسته بيا په ميسوري کې کنفرانس جوړ شو چي په کې هيڅ تصويب ونه شو، که چيري کارونه دغسي وي، پاي به بي زموږ په منځ کې جنګ وي، او زه په ټوله نړۍ کې سوله غواړم په تيره بيا له هغو هيوادونو سره چي له افغانستان سره هم سرحد دي... دځنډولو ګناه ستا په غاړه ده، ماتاسو ته دمخه ويلي دي چي دغه شيان چي ته ورياندي مناقشه کوي، ممکن سم شي، که څه هم زه ډير شکمن يم چي آيا وبه کولی شم چي بي له کومې نظريي څخه مې دمخه د خپلې معاهدي په مسوده کې ورکړي دي تيرشم که نه.»

ډابس وويل چي دده په معاهده کې به وعده ورکړله شوي وي چي پرته له لويي برتانيي څخه به هيڅ يوقدرت د دي اجازه ونه لري چي په سرحد کې حد او حدود تعيين کړي، او هم يي وويل چي په برتانيوي برخه کې به يو ګډتړون وشي چي دهيڅ يو قدرت قونسلګري ته به اجازت نه وي چي دهند په سرحدي ساحه کې تشکل وکړي.

امان الله خان په جګ آواز سره وويل: «ددي کارګټه موږ ته څه شی دي؟ زه تا ته کوردرکوم او ته ماته تيږي راکوي، ته به پوهيږي چي ته پيښور او نوروځايونو کې خارجي قونسلګري نه غواړي، تاسو هيڅ شی له لاسه نه ورکوي يا کوم متقابل امتيازات موږ ته نه راکوي. موږ بايد د داسي يو امتياز په بدل کې يوربښيتني شي ولرو.

ډابس وويل: «د جمال پاشا په مورد کې هغه راته وويل چي هغه زياته له تاسو سره ضميمه دي. وروسته په خبرو اتروکې، کله چي لېغوندي عصباني شوي و، هغه وويل چي هغه

په طبعاً زموږ سخت دښمن وي او که مورږ د ترکیې په مقابل کې خپله رویه بدله نه کړو او ځان دهغه دوست و نه ښیو، تر هغه چې کولاي شي په هند کې به زموږ له پاره ستونزي پیدا کړي. »

امان الله خان په قهر سره وویل: « آیا هغه ترکیې ته دوست وویل که افغانستان ته؟ »

ډابس ځواب ورکړ: « ترکیې ته، دهغه زړه ټول د ترکیې پر گټو پوري بند دي، زه یې په دې کارباندي نه ملامتوم، دهیواد مینه مدام ښه وي. »

امان الله خان پوښتنه وکړه: « نو ایرلینډ ولی ستاسو نه خوښیږي؟ »

طرزي وویل: « زه فکر کوم تا سو هم زموږ ټول شفرونه لوستلی دي. ښه ده، که دي لوستلي هم وي، پروانه لري، کوم مضریت په کې نشته. »

« زه باید هیڅ کله دا دي هڅې په فکر کې ونه اوسم چې ستاسو له دفترونو څخه د شفرونو گیلې ترلاسه کړم. » کله چې ډابس وروسته خپل راپور هند ته واستاوه، دهغه همکارانو یادداشت کړ چې هغه د « ستاسو له دفترونو څخه » د عباراتو په اضافه کولو کې محتاط و. »

اوس هغه د افغانانو په گټه داشي زیات کړچې، « زه دلته د یو دیپلومات په توگه راغلی یم نه د یو جاسوس په توگه. »

ډابس له خپل ورځنی کار څخه خوښ و، هغه دماغي گړېږ تیا چې یې لرله، ډېري خوشالوونکي نتیجې توقع یې کوله.

څو ورځي وروسته هغه دمسکو دلاسلیک کولو څخه خبر شو. « دي داسي معنی لرله چې افغانستان به قادر نه وي چې زما غوښتنو ته غاړه کیږدي. زه به څه وکړم؟ »

د ډابس په تلگرام کې ډېر سخت یاد داشت دومره چې د هغه خپلو امرینو ته چې دانگلستان خوا خوږي حکومت او دهند حکومت ته، چې د یو حایل په توگه و، که متوجه و، افغانانو ته هغو مرد نه و. دانگلستان حکومت دمخه د افغان او دروس د معاهدي په شرطونو باندي پوه و، برتانیوي جاسوسان فعال وو، بیاهم هغوي غوښتل چې دافغانانو له خوا ورڅخه وویل شي. که روسیه مرسته ورکوله هغه دومره دستاینې وړ نه گرځیده چې دانگلستان د حکومت مرسته گرځیدله. « دجنگ پیل کیدل په یقین سره د رایو په اتفاق قبول شوي نه و. » دا د انگلستان د حکومت خبره وه، په داسي حال کې چې دهند حکومت دامحاسبه کوله چې دهوا ترسرېد وپوري څنگه کولاي شي په ښه توگه جنگ وځنډوي.

چلمسفورډ چې دوایسرا په توگه یې مودهٔ پوره شوي وه داسي ولیکل، « موږ باید

دانگلستـان له حکومت څخه وغواړو چې حقایق دي په ذهن کې په هغـه شان په نظر کې ولري، لکه څنگـه چې موږ يې وينو. افغـانسـتـان تصـميم لري خپله بشپړه آزادي په رسم گذشت سره و لمانځي. ليکن دغـه شی به پرته له جنگ څخـه بل شی په راتلونکی کې ونه لري... آيا مـوږ په نژدې ختـيځ او منځنی ختـيځ کې د عـمومی حـالاتو له نظره د افغـانسـتـان له کوم جنگ سـره، مخامخ کـيدي شو؟ هند نه شی کولی، او موږ بايد جرئت وکړو چې د انگلستـان حکومت پوه کړو چې دا پر هند او هندي منابعو پوري مربوط دي چې دا حمله به صورت ونيسی... دا زمونږ لپاره مهمه ده چې که امکان ولري د مخه تردي چې د ډابس د څرگندونو د بې اغيزي توب وخت راځی، خبري اتري دي بندې شی.

چلمسفورډ هم تلگرام وکړ چې، «بياټينگار وکړي چې برتانيويان ادعا نه شی کولی چې افغانانو ته د توښی رسولو بوا زنی منبع دي. د افغـانانو له نقطه نظره دا بايد په ياد ولرل شی، چې زموږه مرستـه د افغانی عسکرو په مياشتنی تنخوا کی ۲۰۸ زياتوالی ښيی، له بلی خوا دنرخونو دجگوالی په تناسب ظاهراً لږترلږه د دغی اندازي پيسی دوه چنده غوښتنه شوي ده.»

دانگلستـان حکومت، چې شکايت يې کړي وچې ډابس په دي کارباندي پيل کړي وچې، «دافغان له عينکو څخه وگوري،» وويل نه.

ډابس خپله توجه د يوي لاري د مـوند لوله پاره واړوله چې مـشق وکړي څو چې د برتانيې دعوامو په نظر دغه دريز عادلانه څرگند شی.

هغـه په خپله نارضـايتی کی مجبور و يوخواشينوونکی تلگرام واستوي چې په دي ډول و: «يوستـراو با ارزښتـه برجانده (Bir jand) غـالی، د څلورو زرو روپيـو په ارزښت، همـدا اوس د امير له خوا بې لـه کومی مخکنی څرگندونی څخه له يو پيغـام سره مـا تـه راليږل شوي ده چې په کې ليکل شوي و، چې دا کومـه رسمي تحفـه نه ده بلکې دهغـه لـه خوا مـاتـه يوه شخصـي تحفـه ده. په مـوجوه شرايطو کی تحفـه ورکول زيات وارخطا کـوونکی کـار دي مگر د بيرتـه ردولو امکان وجود نه لري.» بله ورځ ډابـس په ډيري بيچاره گی سره تلگرام وکړ چې ورتـه معلومـه شوه چې غالی ۱۲۰۰۰ روپی ارزښت لري.

د مارچ په ۱٦ نـيټه په خپله برتانويانو له روسيې سره يوه معاهده لاسليک کړه چې تجارت بيـا سره پيل کـړي، په مـعـاهده کی دي مطلب ته هم ځـاي ورکړ شوي و چې يو دبل پر ضـد له خصمانه تبليغ څخه لاس واخلي. روس کيپل دخبرواترو په موده کی تبصره کړي وه چې، «موږ

صرف پیشنهاد کوو چې دواړه خواوې دې له پروپاګند څخه لاس واخلي، داکار به د دواړو خوا و دجاسوسی کولو مخنیوی ونه کړي چې ممکن دایم به دوام ولري. »

په ټوله نړۍ ی دغه نوي پر مختګ دامپراتورۍ ډیر مامورین په تعجب واچول، چې ورته امر شوی و د روسیې پر ضد پروپاګند وکړي. د هند حکومت هیله څرګنده کړه چې دانوي مفاهمه به ممکن د انګلستان حکومت و هڅوي چې له روسیې څخه غوښتنه وکړي څوله خپلو مزاحمو قونسلګریو څخه دي صرف نظر وکړي. طرزي که سوریتز سره تماس ونیو او ورته یې خبر داري ورکړ چې برتانیه ممکن دغسې مشابهې پوستې روسیې پولې نه نژدې جوړې کړي، سوریتز ځواب ورکړ چې برتانویان ممکن لس قونسلګرۍ ګانې ولري چې ماورباندې فکر کړي دي.

ډا بس خپل کالي ټولولې چې خپل هیواد ته لاړشي.

هغه له طرزي او امان الله خان سره دهغه شي په مورد کې ملاقات وکړ چې هڅه کیدله وروستی ځل لپاره دي وي. امان الله خان ډا بس ته، چې په شخصي توګه خپل احساس سهیم وګرځول، وویل، «زه نه شم یو هیدلی، په داسې حال کې چې دواړه هیوادونه په اخلاص سره دوستي غواړي، څنګه تاسو پر جزوي اختلافاتو باندي خبري اترې قطع کوي. »

«ما د قونسلګریو په باره کې روسانو ته اطلاع ورکړې دي، او سخته ده چې خپلې خبرې بیرته واخلم، که څه هم اصولاً، زه اوس هم کولاي شم د معاهدې له متلو څخه انکار وکړم. ته دیو دوست په صفت راته ووایه چې زه څنګه له دې څخه وباسم...

که چیرې د قونسلګریو له متلو څخه انکار وکړو، ممکن روسیه هم د معاهدې له متلو څخه ډډه وکړي او خپلې پیشنهاد شوې مرستې بیرته واخلي او د پنجدې له بیرته تسلیمولو څخه منکرشي، او هم به پر افغانستان باندي برید وکړي او یا بې د پروپاګندونو په واسطه وران کړي. »

ډ ابس وویل زه فکر کوم د پنجده بیرته مستردول یو ډیر خیالي شی دي. طرزي پوښتنه وکړه، «که افغانستان د روسیې له دښمنۍ سره مخامخ شي، آیا تاسویې په مطلق توګه حمایه کوي؟ ډا بس وویل شاید ددې امکان موجود وي ځکه کله چې له منځه لاړله، دغسې یو شي په فکر کې و.

د بخارا امیر، وروسته له هغه چې په خپل پخواني پاچاهي کې لالهانده ګرځیده، کابل ته د استراحت له پاره راغلی و. دهغه د خزانې زیاته برخه ورکه شوې وه، روسانو د خزانې یوه

برخه، د حرم سراي له پوشميرشيانو سره، د اورګاډي په واګونونو کې يووړل. يو شی چی ده د تحفی په توګه هغه هيواد ته له ځانه سره يووړچی په کی پناه وړي وه، دقره قلی پسونو يوه رمه وه چی په نړي کی ډير اعلی وه او د افغانستان په رموکی همدغه عالی جنسيت منځ ته راغی. همدا راز هغه له ځان سره يو صندوق دبخارا خاوره راوړله. ده دا خاوره دهغه کور په څنګ کی کوته کړه چی امان الله ورته په پغمان کی ورکړي و، او په کی دسپينو زرو دوي پايی ودرولی چی دبخارا دوه ښکلي خامکدوزي شوي بيرغونه ورپوري تړلی شوي او جګ رپيدل.

اما الله دبخارا نوي روسی حکومت ته عبد الهادي د خپل نماينده په توګه واستاوه چی يو سپين سړي و. د روسانو له خولی، عبد الهادي په هغه ځاي کی دومره نازره سواند او بی علاقی ولکه چی يو دپيلوماتکی کڅوره د پيغامونوله پاره استعمال شي او هغو خلکو ته يووړل شي چی تر اوسه پوري هم دروسی حکمروايی په مقابل کی مقاومت کاوه.

لا هم امان الله خان له يو بل هيواد سره معاهده کوله. دفبروري په ۲۸ نيټه ولی خان په مسکو کی د مصطفی کمال له ترکی حکومت سره يوه موافقه لاسليک کړه.

کله چی ډابس د دي په باره کی پوښتنه وکړه، امان الله خان منکر شو، مګر وويل چی زه د ترکيی له نيشنلستانو سره ديوي معاهدي په فکر کی يم. «ترهغه پوري چی د برتانيی له حکومت سره کومه موافقه صورت نيسی زه داحق لرم چی له نورو هيواد و سره موافقو په باره کی فکر وکړم او بايد آماده ګی ورته ولرم ځکه احتمال لري چی له تاسو سره زموږه رابطه وشليږي. » ډابس دسياست په وجه په دي قادر ه وچی امان الله خان ته درواغجن ووايی. «هغه دوکتورين، چی وايی داد ستاينی وړ شی دي چی دبو سړي دحکومت پسی سړي دروغ ووايی د طرزي او جمال پاچاله خوا په تدريجي توګه تبليغ کيده او دا احتمال نه لري چی امير به يوه پوره سياسی روحيه ولري. » دا خبره ډابس په يو تلګرام کی وکړه، چی دبرتانيی د امپراتوري ګټو ته هميش دقيق نه و.

ډابس له کابل څخه خپل له ويري ډک سفر ځنداوه.

د اپريل په ۱۶ نيټه طرزي هغه ته غرمنی ميلمستياور کړه او د «نوي دپيلوماسی : خارق العاده نوي ميتودونو په باره کی يی خبري وکړي او وويل چی د مقابل لوري له حريف څخه غوښتنی به دځان سره ولري او، ستاسو دغوښتنو په همزمان خپرولو سره، دهغه له پاره به د منلو زمينه سخته کړي. »

اوس دهند په سرحد کی د روسیي قونسلگری څخه تیوله نړي خبره و، چی په افغاني معاهده کی وه سر رابرټ هورن (Sir Robert- Horne) چی د انگلستان له خوا د تجارت د موافقی په مورد کی له روسانو سره خبري اتري کړي وي، له عامه غوښتنو سره یو ځای د روسانو دعقب نشینی اعلام ېی وکړ. ډا بس د داسی عقب نشینی تولی هیلی له لاسه ورکړي وي ځکه اوس « داشی زموږ او د روسیي ترمنځ دقوت یو علنی امتحان گرځیدلی دي. » لومړي ځل نه وچی هورن ډیري زیاتی خبري کړي وي، همدغه سړي وچی، د روسانو د داخلی چارو د زیاتو معلوماتو په ورولو سره برتانویانو ته د روسیي اسرار بیان کړ.

هغوي د پسرلی په ښکلی موسم کی خپلو خبرو اترو ته دوام ورکړ، بو ډول ژیړ گلان چی یوازي په پسرلی کی راووځی، وغوړیدل او بیا ورژیدل. داستالف جگی غونډۍ (گل غونډۍ) د ارغوانونی له گلانو څخه ډکی شوي چی ډیر ښایسته معلومیدل. استالف هغه ځای دي چی پکی کلالانو د کاشی کاسو دجوړولو په وخت کی خپلی دستگاوي. په کار اچولی چی د اکاسی یوازي په مرکزي آسیا کی استعمالیږي. دشفتالو، ناک او منوونی هم گل شوي وي. ددي سببی د ځلاندډي فضا او شین آسمان په منځ کی لیري غرونه ځیږه او نصواري رنگه ښکاریدل چی دیو دتیرو په حال کی ښکلا او دبل پاینبت زیاتول. وروسته له دي چی پسرلی مخ په ختمید وشو، بارانونه ودریدل، دغرونو د واورو ویلیدل، چی په ویالو او سیندونو کی به دسیل په شان او به روانی وي، بس شوي، دکابل ډنډونه وچیدوته نژدي شول. کوچیانو چی دژمی په موسم کی خپلی رمی لیري ځرځایونوته د پوولو په خاطر بوولی وي، اوس بی خپلی رمی په دغوډنډونو کی، چی او به بی نه درلودي، خوشی کولی چی وڅري. هوا ډیره وچه او سوزوونکی وه. هر چا به پیشگوبی کوله، چی حاصلات به قناعت بخښه نه وي. دغذایی مواد وبیه جگیدله.

د نرخونو د جگیدو له امله له سپاهیانو څخه هیڅوک ډیر ناراضه نه وو. هغوي غوښتنه وکړه چی تنخواي یی زیاتی شی، هغوي ډیرلږ معاش درلود. په دي وخت کی هغوي په خپلو پیسو ناکافی خرڅ اخستی شو. پخوا بی کفایته او بی کاره رژیم کی هغوي به په نور ځایونو کی هم کار کاوه او نوري پیسی یی ترلاسه کولې خو ترکی افسران او صاحب منصبان چی دامان الله خان له خوا غوښتل شوي و، غښتلی او با انرژي معلومیدل او د وظیفی د اجرا کولو په ساحوکی ورڅخه ساعت پر کار اخستل کیده.

د هند دوایسرا په هستو ګنځی کی وضعه ښه نه وه. نوي وایسرا رفس ایساسکس، لارډ ریډنګ (Rufas Issacs, lord Reading) مشهور قانون پوه، هند ته په دي مقصد راغلی و، چی دخپل سرحد جزوي تشنج، افغان ستونزي حل کړي. د می دمیاشتی تر پنځم تاریخ پوري هغه داسی تلګرام ورکړي و «د هند چارو په باب زما موجوده خصوصی پوهه مادي ته هڅوي چی له افغانستان سره معاهده وکړم، که څه هم زموږ له شرطو سره نه برابریږي... د افغانستان په باره کی کومه بشپړه مشوره نشته... »

مهاتما ګاندي په ځوان هندوستان کی ولیکل چی: «ترکوم ځاي پوري چی زما دعدم تشدد پر عقیدي پوري اړه لري زه... فکر کولی شم چی افغانی حمله به یوه شدیده حمله وي... هغوي خداي ترسه خلک دي.» په هند کی د مسلمانانو دوه لیډران، چی امان الله خان ته یې لیکونه استولی وواو په کی ورځیتی غوښتی ووچی پر هند باندي حمله وکړي، بندیان شوي وو. ګاندي په اله آباد کی وویل، «مابه هم یو لیک استولی و چی امیر پوه کړم چی که هند ته راځی نو ترکومه ځایه چی زما له لاسه د مرستی کولو امکان پوره وي، له حکومت سره به دا مرسته وکړم چی هغه بیرته وشړي.» ډا بس ته دا صلاحیت ورکړي شوي و چی له امان الله خان سره په کال کی ترڅلوېښتولکو روپیو پوري مرسته وکړي.

هغوي لاتر اوسه ونه شو کړي چی موافقه وکړي. شا آغا امان الله خان ته زاري کولی چی د هغو قبایلیانو دحمایه کولو پرته، چی له ده سره یې مرستی کړي وي، معاهده ونه کړي. دا یو ټکسی وچی د هند حکومت به ورته غاړه نه ایښودله دا د هغوي حاکمیت په بر کی لرل.

له روسیی څخه یو نوي نماینده راغله چی یوه معاهده هم ورسره وه چی په هغه ځاي کی لاسلیک شوي وه، امان الله خان د هغه د تصویب نیته وځنډوله.

دجون په څلور مه نیټه یو له هغو چانسونو څخه تصادف وکړ چی حسن نیت ممکن ګرځوي. د امان الله خان کره زوي وشو. دهغوي لومړنی زوي د کولرا په مرض مړشوي و، دا هلک چی درحمت الله نوم وربانديې کیښودل شو، دهغوي وارث و، نه یوازي امان الله ته له هري خوا څخه مبارکی راتلی- بلکی محمود طرزي ته، چی دهغه نیکه و، هم راتلی.

بیاد کمکی اختر دخوښی ورځی راغلی، کله چی څلور دولتی هاتیان چی په ذري توکرا نوښکلی کړي شوي و او پرشایی د سپینوزرو سایوان لرونکی چوکی ایښودل شوي وي چی څوک په کی ناست نه و، خاندانی سوار کارو عسکرد لیکو په منځ کی، چی ممکن یونیفورم یې

اغـوستی و ، تیـریدل، نژدې شل زره خلک يې دليـدوله پاره ولاړوو. دايوه خـوشـاله تپولنه وه، شـیـرینی پلورونکی به نارنجی شـیـرینی گـانی خـرڅولی چی په حلقوي شـکل جوړې شـوې و، ماشومانو به وړې توري پیسی ورکولی او پرما نیچغ باندې سپریدل.

امان الله خـان پر اس باندې گرځیده، چی یوه ډله خاندانی سپـاره عـسـکر به ورپسی روان وو. کله به چی د مسجد دروازې ته ورسید، ويې ليدل چی د برتانیی نماينده گان، د بلشويکانو يو لږ شمیر ټيټ رتبه مـامورين او درې ارمنی ښځی لـه يوې غونډې څخه دوې تـه گوري چی په مقابل لوري کی وو، امان الله خان تصمیم ونيو پر هغې غونډې باندې د بهرنيو نماینده گـانو له پاره د دغسی مراسمو دليدو په خاطر يو دايمی ځاې جوړ کړې او د مخه تر دې چی مراسم پاې ته ورسیږي، امريې ورکړې و.

له هغه وخت راهيسی چی امـان الله امير شوې و، په دې باندې کار کاوه چی دافغـانسـتـان له پاره نوې قـوانين وباسی، چی پرته له شریعت څخه، په افغـانسـتـان کی بـل ډول قانون نه و. شريعت يو مذهبی قانون وچی په کی قاضـيانو ته پوره قدرت ورکړ شوې و او داقـاضـيـان به هر وخت ملايان وو. د شـریعت قـانون ډير سـخت و او ډير کم به پیښـیـده چی يو نفر مـعـاف شی. دا قـانون د پخوانی وختـونو قانون و. د ترکیی يو قـانون پوه چی له جمال پاچا سره راغلی و او بدري بی (Bedri Bey) نوميده، چی پخوانی پولیس د قسطنطنیی مشرو، د افغـانسـتـان له پاره د قـوانينو مـجمـوعـه وليکله، چی د ترکیی له قـوانینو سره يې شباهت درلود، چی د فـرانسی د ناپليونی قوانینو د مجموعی پر اساس و.

له دې ځايه وروستـه امان الله خـان په مسجد کی پر منبر باندې وخوت او اعلان يې وکړ چی دا د قوانينو نوې مجموعه به نظامنامه نوميږي. سمدستی به قانون شی.

په هغه ځاې کی خوشحالی ولیدله شوه.

هغـه اعلام وکړ چی له خپلو هغـو مـامـورينو سره به چی په ولاياتو کی کـار کوي، ملاقات وکړي او وويل، چی د ولاياتو خلک بـايد راشی چی له مـامـورينو څخـه پوښتنه وشی چی دخپلو کارونو په باب اطمينان راکړي.

خلکو تر هغـه پوري خوښی کـوله څوچی امان الله خـان له مـسجد څخه لاړ اويوه نوې مخـابره دسهيل ارتفاعـاتو ته يوه اشاره ولیږله چی دده دوتو په وخت کی د احترام ډزې وشی.

امـان الله خـان تصـمـیـم ونـيـو چی هغـه طريقه چی دغـه نوې تپولنه، چی دده جوړوله، خـوندي

وساتی، هغه طریقه داوه چې ددې ټولنی بخت او نیک مرغی د برتانیې په بخت پورې وتړې. د پنځو میاشتو له پاره هغه په دې باندې بریالی شوې و دبرتانیې او د روسیې خلک مشاهده او څارنه وکړې.

سوریتز امان الله خان ته یو لیک واستاوه او په کې ورڅخه غوښتنه شوې وه چې سمدستې معاهده تصویب کړې. په عوض کې امان الله طرزي ته وویل چې له ډابس سره وګورې او له روسیې سره پر مختلفو حالاتو باندې د رابطې دشکولو پیشنهاد وکړې چې دبرتانیې له خوا د سملاسي وسلې تحفه بې هم په برکې لاره چې صرف د بوې دریمې قوې دناڅاپې حملې د کیدو په خاطر وعده ورکړله شوې وه. هغه طرزي ته وویل چې د روسیې بخششونو لست جوړ کړې چې دهغه تاوان ورکړې: پنجده افغانستان ته بیرته ورکول، د تلګراف مزې، د باروتو جوړولو فابریکه، پنځه زره ټوپکونه، توپونه، د طیاري ضدتوپونه، او دولس طیارې.

طرزي ډابس ته وویل. «که تاسو زموږ پیشنهاد ومنې، موږ به یې سمدستې لاسلیک وکړو او سوریتزته به اطلاع ورکړ و چې نور موږ له روسیې سره کومه معامله نه لرو. موږ به ورسره په غوڅه توګه وشکوو. لیکن موږ د برتانیې د جنګې تجهیزاتو د تحفې په باره کې (د روسانو د بې موجب محتمل الوقوع پربرید باندې) ډیره نا آرامې احساسوو، ځکه چې داتجهیزات د شمال لیرې سرحدونو له پاره غوښتل کیږې، او که چیرې روس ناګهانې حمله وکړې، نو افغانان به ونه شې کړې دا تجهیزات خپلو عسکرو ته دهیواد شمالې برخې ته د ضرورت په وخت کې ورسوې. ممکن شمالی افغانستان د بیچاره، بلجیم په شان ترحملې لاندې راشې، او دا به زموږ د بنه تسل موجب ونه ګرځی چې فکروکړو د برتانیې نظامی مرسته به ممکن موږ په دې باندې قادر کړې چې روسان ترفشار لاندې راولو چې عقب نشینی وکړې، موږ د سمدستې نظامی مرستې په غیر نه شوکولې د تهاجم د سخت خطر مخه ونیسو، دغه نظامی اخلاقی مرسته به موږ ته د دې قدرت راکړې چې د روسیې پر مخ بریالی څپیړې ورکړو.

زه بې له دې چې د قونسلګرې سوال مطرح کړم، پر سوریتز باندې د روسانو له خوا په خیوا او بخاراکې دعکس العمل د ښودلو د شکایت په واسطه به داړیکوشکول تحمیل کړم»

ډابس ددې پیشنهاد د منظورې مشوره ورکړه. دهند حکومت تعجب وکړ چې ولې افغانان دومره توپکونو ته ضرورت لرې، ځکه دا اندازه دهغو ټوپکونو د اندازې درې چنده وه چې روسانو به ورکولو، مګرو ایسرا له شرایطو سره موافقه وکړه او هندې سپاهیان دهند له وسله

تونو نو څخه د افغانستان له پاره د مهماتو د تحفې په برابر ولو لاس پوري کړ چې په دې ډول وې: شل زره عادي ټوپکې، دوه سوه اتوماتیک ټوپکې، دولس غرني توپونه، دوه اتلس پونډه توپچي بطريې او د کابل، کندهار او هرات ترمنځ د تلګراف دلين د غزولو سامان.

بیاهم، امان الله خان تش په وعد وباندي قناعت نه کاوه، هغه غوښتل چې داتجهیزات باید نه یوازې ورته تسلیم شي، بلکې د مزار شریف او د هرات عسکرو ته تسلیم شي، د مخه تردې چې هغه روسانو ته ووایې چې ورسره هغه معاهده فسخ کړې ده چې بې له کومې کشالې څخه د مخه لاسلیک شوې و.

د هند حکومت به پر افغانستان باندې تردې اندازې اعتبار نه کاوه.

«هیڅوک دا پیشبیني نه شوکولای چې د معاهدې د لاسلیک کولو او دوسلې د رارسید و ترمنځ به د افغان او روس په سرحد کې څه پیښیږي. وقفه... په کې متصور وې، زموږ دعسکري صلاحیت لرونکو مقاماتو له خوا داسې اټکل شوي دي چې په ښومساعد وشرايطو کې به لږترلږه شپږاووني ورته ضرورت وي. بله دا چې افغانان په نن او سبا کولو او وخت ضايع کولو شهرت لري، او له روسيې سره داړيکود شکولو په مورد کې به هغوي له ډيرو بهانو څخه کار واخلي.»

ټوپکې او حربي مهمات آماده وو چې په سرحد کې په يوه اوني کې تسليم کړل شي او بطريې په درواوسيو کې. يو ځلې چې دالويه جبه خانه په لاره کې وه په دواړو هيوادونو کې به دهغه په باره کې آوازه خپره شوه، معاهده هم بايد په همدې وخت کې اعلان شوې واي. دانګلستان حکومت ستونزو سنجش وکړ او خپله يوه ستونزه يې معرفي کړه، يوه قوه چې انګلستان د حکومت او هند د حکومت له قدرت څخه هم زيات و. هغه قدرت د برتانيې دعوامو نظريه وه.

«موږ ته به اجازه نه وي چې په ښکاره توګه هغه لاره تعقيب کړو چې د افغان او د روسيې په اړيکوکې د درز د پيداکيدو باعث (زموږ زياته مرسته) ګرځيدلې ده. افغاني پيشنهاد دادې چې دخيوا او بخارا د درزو نو سوالونه طرح شي... په خپله د معاهدې خپرول به د صحيح عوض په توګه څرګند نه شي، او تر هغه چې له روسيې سره قطع را بطه صورت نيسي، د برتانيې د معاهدې سخاوتمندانه شرطونه به څرګند نه شي.»

د برتانيې عوام د مخه دراولپنډي دمعاهدې دسخاوتمندانه شرطونو په وجه ځوريدلي وو.

« که چیري افغانان په وروستی وخت کی له روسانو سره داړیکو د له منځه وړلو وعده تر سره کړي تاسو به د پارلمانی په دفاعی حالت کی دمعاهدي د خپرونی او څرګندي قطع علاقی په منځ کی ، له ستونزو سره مخامخ شی. او که چیري دمعاهدي له خپرید و او د جنګی مهماتوله تسلیمولو وروسته افغانان داخبره رد ، کړي چی له روسیی سره اړیکی وشلوي ، موږ به په بد حالت کی قرار ونیسو . »

هیڅ نه غوښتل چی په یل ځا باندي اعتبار وکړي ، مګر بر تانویانو پوره ، مطمئین وچی د یولیک مسوده پیل کړي چی په کی جورج پاچا به په نزاکت سره د «اعلیحضرت» لقب امان الله خان ته اعطا کړي ، چی په کی د غیر متمدنو هیوادونو اصول په کاروړل شوي وي ( دهغه مامورین د دي جرائت نه شو کولی ، چی د «متمدن» ؛ اصول پوښتنه مطرح کړي. » دجون په ۱۵ نیتیه دلندي هندي دفتر استعماري دفتر ته ولیکل چی په کابل کی مباحثی وروستی مرحلی ته رسیدلی دي ، او دمعاهدي خبر دي باید په فکر کی ونیول شی.

کله چی انګلیسان داجراا تو په لور روان وو ، نور انګلیسان دټري په نورو برخوکی په داسی اعمالو لاس پوري کاوه چی امان الله خان به یی د غو کسانوله او هامو څخه خلاصول چی امان الله خان آما ده و پرهغو باندي اعتبار وکړي.

# لسم فصل

# د ۱۹۲۱ کال څخه د ۱۹۲۲ کال د فبروري تر ۲۵ نیټې پورې

د مارچ د میاشتې راهیسې یو افغانی هیأت د نړۍ په چارچاپېر سفر وتلی و چې دافغانستان استقلال ټولو حکومتونو ته اعلان کړي او د دوستی هیله ورڅخه وکړي.

د امان الله خان خوب لیدل د هیواد په هکله له ټولو پایتختونو سره د دیپلوماتو تبادله کول، دهغو تجارانو تګ راتګ چی په افغانستان کی سرمایه ګذاري وکړي د افغانستان مالونه واخلی او خپل مالونه خرڅ کړي، او په تکنالوژي کی، چی په دې رشته کې افغانان وروسته پاته و، دهغوي د روز لوموضوع په سرکی درلود.

څرنګه چی افغانستان په وچی پورې تړلی یو هیواد، هیڅ یوه بېړۍ خبرونه نه وړل او نه یی را وړل، نویوا زنیی اقدام دا و چی په خپله افغانستان کاروکړي د باندې دي لاړشي او خبرونه دي را وړي.

دولي خان هیأت چی مسکوته تللی و، بین المللي حیثیت یی ځا تته غوره کړ. دا یوه ډله غلی کسان وو چی که یی اصلی کالی اغوستی واي نوپه لوېدیځ کی به دخلکو زیاته توجه یی ځان ته جلبوله، لیکن برعکس په لوېدیځه وضعه ملبس وو حتی یوژورنالیست چی ورته بنه ځیر شو د ولی خان آبی رنګه واسکټ او دهغه د نکټایی کلپی ستن یا ګیرا په مطبوعاتو کی

ثرگنده کړ، له ولی خان سره ځوان غلام صدیق فیض محمد خان، دو تجارتي اتشه او یو ملازم ملګري وو.

برتانویانو له هیأت څخه کرکه وکړه، او دهغوي دیپلوماتان دوي یې څارل چې هیأت د نورو هیواد و نو درهبرانو له خوا ښه هرکلي ونه شي. لکه څنګه چې دبرتانیې سفیر په پاریس کې فرانسې ته وویل چې، «که څه هم افغانستان په ظاهر کې مستقل دي، خوموږ یې تر اوسه هم تر خپل نفوذ لاندې فکر کوو... موږ هیله کو وچې په نژدې راتلونکي کې له افغانستان سره موږ ډیر نژدې اړیکې ولرو.»

هیڅ یو هیواد دا چانس ځان ته نه ورکاوه چې دافغانستان د کوچني پاچاهي دهغو کسانو په خاطر چې دلته هلته په ګرځیدو دي د برتانیې پیاوړي حکومت سپک او تحقیر کړي. ایتالیا یو استثنایې هیواد وچې ولی بریالی شوي و د تجارتي اړیکو موافقه ورسره وکړي. دجولاي دریمه نیټه د ایتالیې دهیأت له پاره ټاکل شوي وچې کابل ته سفر وکړي. امان الله خان افغانستان ته د بین المللي ژوند دو ړپه برخه کیدو په پیل باندې خوښ و.

لیکن برتانویانو، چې له دې موافقې څخه خبر شول، پر ایتالیا باندې فشارو اچول شو او دهیأت تګ وځنډول شو او هغه یې کوله چې موضوع سره کړي. ددې ماهرانه اداره کولو په موده کې برتانوي دیپلوماتانو د ایتالویانو په مقابل کې دومره له شدت عمل څخه کار اخستل چې دا حتمي بریښیده چې ایتالویان انتقام واخلي. هغوي هغه افغانان چې په دې وخت کې په پاریس کې وو له موضوع څخه خبر کړل.

د جون د میاشتې د اولسم تاریخ په سهار په کابل کې هرشې دیوي ژرکیدونکې موافقې په لوراشاره کوله. وروسته «ډاګې» چې خپل وړوکې زنګ یې شرنګاوه، پوسته یې را وړله، او امان الله خان پوه شو چې بیرته د تجرید او تابعیت خواته بیول شوي دي. هغه ډا بس ته په دې هکله هیڅ ونه ویل، لیکن دمعاهدې ټول پرمختګونه بند شول.

په همدې وخت کې افغانی هیأت چې دجولاي په دویمه نیټه د امریکې متحده ایالاتو په لور د بیړي په ذریعه روان شوي و، نیویارک ښارته درسیدو په حال کې و.

په همدې وخت کې له بل لوري څخه، یوه بله افغانه متحده ایالاتو ته را راسیدونکې وه، دا نفر شهزاده ګې فاطمه سلطانه وه، چې د شاه شجاع د نژدې خپلوانو له اولادې څخه وه. شاه شجاع د ۱۸۳۰ کال په حدود کې د انګلیسانو له خوا د کابل پر تخت باندې کینول شوي و، چې

په دې وسیلې سره دافغانانو د لومړي جنګ خپګان له منځه ویسی. کله چې شاه شجاع دیو زمامدار په توګه کابل ته داخل شو، هیڅ یو افغان نه دهغه خواته کوم ګل وغورځاوه او نه ورته په موسکا شول. کله چې بیرته لاړ نو دشپې په تیاره کی وتښتید او خپل دجواهراتو خزانه یې هم په خپله وړله چې بالاخره ووژل شو او هلته پرېښودل شو، دهغه یو نجیب دوست چې له جواهراتو څخه خبرو، جواهرات یې له هغه څخه واخستل، او په دې توګه دا جواهرات دهغه دبختور دوست د کورد شان او شوکت وسیله وګرځیدل. په ټولو جواهراتو کی ډیر اوچت جواهر پنځه څلویښت قیراطه الماس وچې «دریاي نور» نومیده.

فاطمه سلطانه او د هغه میړه یعقوب خان له امیر حبیب الله سره جنګ وکړ، فاطمه سلطانه به تل خلکوته ویل چې زه په دې ویره کی یم، چې امیر به زما الماس واخلی، هغې مکی ته دتګ په بهانه په ډیرو سختو لارو له افغانستان نه ووته او د هند په امرتسر کی میشته شوه.

اوس پوه کونړه، فاطمه سلطانه چې دبرتانیې په پاسپورت یې سفر کاوه سانفرانسکو ته ورسیدله، او دبرتانیې د جنرال قونسل له خوا چې ددې او ددې د دوو تنو زلمو زامنو له پاره د هوټل بندو بست وکړ او نیو یوپارک ته یې واستاوه، د دوی څارنه او ساتنه صورت نیول.[1]

په نیویارک کی فاطمه سلطانه د مطبوعاتو له لارې معرفي شوه، کوم سړې باید دا راپورورکوونکو ته بخششی ورکړي واي، ځکه هغه ډیره بی تجربی وه چې دا کار په خپله وکړي، او څنګه چې راپور ورکوونکو ویل هغه «ساده» ده، هغسی وه، هغه په داسی حال کی چې مطبوعات یې هیڅکله دمخه نه ولیدلی، نمایشی او نمونه بی حرکتونه او عکس العملونه، لکه دیو سینمایی لوبغاړي یاد یو سیاست مدار په شان هم نه وبرابر کړي، کوم شی به چې دده فکر کی ګرځیده یا یې احساس کاوه هغه به یې ویل. د نیویارک د لوستونکو ډلو په فکر، هغه ظاهراً یو ګوښه ګیره بریښیدله. هغه په داسی حال کی چې یوه پخه میانه حاله ښځه وه، په خپله پوزه کی پیروان، چې هندي سینګارو، کړي وه چې یې دهغې د نیکونو یو غټ غلاشوي یاقوی پیزوان و.

د هغې نورکالی د راپورورکوونکو له خوا داسی تشریح شوي وو، « پاسنی برخه هندي اولاندنی برخه یې غربی ده » په یو اخبارکی داسی ویل شوي وو، « هغه یو وریښمین او زد خط لرونکی بالاپوش، چې ټوکریې د نارینه و د کمیس په شان و، اغوستی و. د بالاپوش غاړه یې جګه ولاړه وه او په غاړه کی یې پوه داسی زړه ګلابی رنګه نکتایی تړلی و، چې غوټه یې سسته وه او ځوړنده معلومیدله. هغه دمعمول په شان ځان په حجاب کی تاوکړي و. داخلی چې

دحجاب رنگ آبی پیکه رنگ و. یوګلابی مصنوعی ګل دهغی د طلایی وېښتانو د سینګار غوندي د هغی د کوځیو د ښکلا باعث ګرځیدلی و، په خپله جامه کی سپین ګلابی رنګ لیس لګولی و چی باید هغسی لګول شوي نه واي، او طلایی خنځیرونی په غاړه اچولی و چی محمدي مقدس لیکنی پکی وي. هغی خپل فیشن د تورو وړ دوجرابو او د اکسفور په ښویو ټانوپاي ته رسولی و دځرمنو سلیپران یی چی طلایی رنګه ګل میخونه درلودل ترمیز لاندي ایښی وو. »

یوه افغانی ډله دومره زیات افغانان درلودله چی دنیویارک مطبوعات کله نه ولیدلی، ددي افغانی ډلی دومره له نا دراتو څخه وي چی هر څوک په شعوري توګه د مطبوعاتو ددي جملی په مقابل کی چی « اخبار تفریحی برخه » ورته ویل کیده، دا پیشګویی کولاي شوه چی په اخباري تفصیل کی شهزاده ګی فاطمه سلطانه او د ولی خان په مشري رسمی هیأت سره به اړیکی ولري، او هم داچی شهزاده کی به دافغانستان د کیسو دیو غیر حقیقی کتاب وانمود کړي چی برتانویانو غوښتل هغسی وي.

له ولی خان څخه پوښتنه وشوه چی شهزاده ګی فاطمه سلطانه پیژنی که نه؟ که څه هم په کابل کی هر چاته معلومه وه، چی دا څوک وه، دولی لومړي عکس العمل داو چی دا فراري چی دهغه له اهدافو سره بی کوم ارتباط نه درلود، ورتی. هغه وویل چی زه یی نه پیژنم.

له شهزاده ګی فاطمه سلطانی څخه پوښتنه وشوه چی ولي پیژنی که نه؟ هغه وویل چی زمونږ نیکه ګان سره ورونه دي. شهزاده کی ته معلومه شوي وه چی ولی دهغی له پیژند ګلوي څخه منکر شوي دي، نوبی په قهرسره ځواب ورکړ، ولي ویلی چی دهغی له ماسونو څخه کوم معلومات نه لري. شهزاده ګی او دهغی زامنو یو بل ته وخندل او څرګنده یی کړه چی نور د ویلو کوم شی نه لري، او زیاته یی کړه، « حتی کوچیان هم ددې جواهراتو په باب خبر دي »

دجولاي د ۱۳ نیټی دنیوریارک ټایمز اخبار چی ولی هیله درلود له دامان الله خان دلوړ وهیلو په باب څه وواپی، په عوض کی بی داسی وویل، « دوی د شاهی کورنی افغانان سره بلد نه دي. »

په مطبوعاتو کی له احتیاط څخه کار اخستل شوي وچی د شهزاده ګی په باره کی له برتانیی څخه د پښتنی مسئله وه. هغوي وویل، بلی، دا یوه ریښتینی شهزاده ګی ده، په حقیقت کی شهزادګی له ځان سره د پنجاب له څوتنو ما مورینو څخه لیکونه وړي و، چی دده اصلیت یی ثابتول.

هیأت په هر حال، برتانویانو د دې هیأت په باره کې هیڅ کوم معلومات نه درلودل، د نیویارک ښاروال جان اف. هیلان (John F. Hylan) شهزادگۍ حضور ته ومنله او شهزادگۍ خپل د دره نور الماس چې په ځنځیر کې و، غاړې ته واچاوه، او خبریالانو ته یې وویل چې غواړي خپل الماس خرڅ کړي.

له بلې خوا، هیأت لږ شکمن غوندې ښکاره شو. دا د برتانیې له خوا، چې د نړۍ په هغه برخه کې په هر څه باندې پوه و - تصدیق نه وه شوي او د یوې ښځې په مورد کې په غیر مودیانه توګه خبرې کولې. د هیأت موضوع د شهزادګۍ د نیمایې هومره هم ښه والی نه درلوده، غږ یې هیڅ «ښکلې جامې» وانه غوستې.

د نیویارک ټایمز له خوا له ولي خان سره مرکه وشوه چې د فیض محمد له خوا یې داسې ترجمانی کېدله:

د افغانی کورنی ژوند په باب پوښتنه وشوه چې آیا د غسې چې نور افغانان حق لري څلور ښځې وکړي امیر هم څلور ښځې لري؟ نماینده له کړ ی څخه د باندې په موسکا سره نظر واچاوه، منشي ترجمانی وکړه، چې (جلا لمتماب وایې چې امیر فقط یوه ښځه لري او د زیاتو ښځو شوقمن نه دی.)

«کله چې ته دې هیواد ته راغلې آیا د امریکایي ښځو لمنو ته متعجب نه شوې؟»

منشي وویل: «مونږ په پاریس کې وو، او دا د موضوع د ختمولو له پاره پوره وروستی ځواب غوندې ښکاره شو.»

سفیر چې د خپل ترجمان له لارې خبرې کولې وویل: «زه امریکا او اروپا یې هیواد و نوته خاص د دې له پاره راغلی یم چې د افغانستان استقلال اعلام کړم او هم جمهور رئیس د امیر له برې او د هغه له کړنلارې څخه خبر کړم. زه د خپل هیواد او امریکې ترمنځ داړیکو د ټینګولو په خاطر واشنګټن ته ځم.»

د لږو تعمیرونو، د نقلیه وسایلو د خطر ناک سرعت، د کار او فعالیت په ساعتونو کې د خلکو د نامطلوبې بیړې، او امریکا یانو نورو اجرااتو په باره کې، اروپا، افغانی هیئت اماده کړی و، او هغوی یې پوه کړي وچې داګپ نه دي.

بیا هم هغوی په خپل وروستي اهداف نه تر سره کول، چې جمهور رئیس او د بهرنیو چارو وزیر ته د مکتوبونو ورکول و، که چیرې د شهزادګۍ فاطمه سلطاني او د ځینو نورو شرایطو په

خاطر نه واي چي د امریکی دمتحده ایالاتو حکومت یی د نورو خلکو له تصور څخه ډیر مسخره معرفی کړي و...

برتانویانو، البته اندیښمن ووچی افغانستان باید له امریکی سره هیڅ اتحاد ونه کړي. هغوي په قارو چی هغه ماشینداري چی دایرلیند د سن فین (Sinn fein) د شورشیانو له پاره په نظر کی نیول شوي وو چی په امریکا کی رانیول شوي و، دامریکا د گمرک له خوا، ددي مقرراتو له مخی بند شوي ووچی دهغی له مخی اجازه نه وه د دوستوقوا و په مقابل کی داستعمال په منظور دا وسله صادره شی.

د انگلستان حکومت په نظر کی درلود امریکی ته ووایی چی هغه اسلحه چی افغانستان ته استول کیږي ممکن د سرحدي قبایلو په لاس ولویږي چی برتانیویانو باندي استعمال کړي لیکن هغوي ځانونه هغه مکتوب ته منحصر وگڼل چی په پاریس کی دامریکی سفیر ته ورکړ شوي و.

نو هغه یادداشت چی د جولاي د میاشتی په ۹ نیټه د متحده ایالاتو د بهرنیو چارو د وزارت د نژدي ختیځ د چارو د اداري له خوا چارلس ایوانس هیوز (Charles Eans Hughes) د بهرنیو چارو وزیر ته لیکل شوي و، داسی ویل. « کله چی موږ د هیأت د حرکت په باره کی لومړي تلگرام ترلاسه کړ، نو دا هیأت (افغانستان) د مخه د متحده ایالاتو په لور خوځیدلی و... که چیري وخت وي، نوما باید د تلگرام مشوره ورکړي واي او هغوي می له دي سفر څخه رامنع کړي واي، په هر حال هغوي اوس خپل سفر ته دوام ورکوي. په پاریس کی د برتانیی دسفارت سلوک له نظره، چی زه فکر کوم بهرنی دفتر احساسات منعکس کوي، دا به ماته داسی معلوم شی چی موږ باید هغوي و منو او دامکان ترحده پوري ورسره سرسري عمل وکړو، ممکن تاسو فکر وکړي چی هغوي باید ضرور ومنل شی، جمهور رئیس هم ممکن دغسی فکروکړي، لیکن زه فکر کوم دا به ضرور نه وي چی دجمهور رئیس یاستاسو با ارزښته وخت له دي هیأت سره ضایع شی. زما په عقیده موږ له افغانستان سره کومه خاصه دلچسپی نه لرو او دي هیات اهدافو ته د برتانیی دکړو وړو له نظره، ده به ماته داسی معلوم شی چی ممکن موږ دهغوي غوښتنی و منو او ترڅو چی کولاي شو په یو خاص مهارت او نزاکت سره هیأت ته کومه اعتناونه کړو.

وروسته کوم سري د بهرنیو چارو په وزارت کی د راولپنډي معاهده اوله هغه سره ضمیمه،

مکتوب ولوست چې په کې افغانستان ته بشپړه خپلواکي ورکړله شوي وه، «دامطلب به له هغه مطلب سره ډیر لږشباهت ولري چې ما د برتانیي د سفیر له خوا چې په فرانسه کې و، تر لاسه کړي و او زما په پخواني یاد داشت کې درج و.»

هغه د جولاي په ۱۳ نیټه و. دجولاي په ۱٤ نیټه همدغه څانگه (بهرنیو چارو وزارت) د فاطمه سلطاني په باره کې یو یاد داشت ترلاسه کړ، «دبهرنیو چارو وزارت» ته د کوم دیپلوماتیکي اداري یاد کومي قونسلگري له خوا خبرنه دي ورکړ شوي چې شهزادگۍ فاطمه سلطانه هڅه کوي له متحده ایالاتو څخه لیدنه کتنه وکړي. هغې صرف په شخصي او ځانگړي توگه دلته راغلې ده او په خپلْ تلگرام کې هم داخبره نده ذکر کړي چې کوم مکتوب، سپارښت لیک یا کوم بل ډول سند لري که نه د نیویارک د اخبارونو د ځینو پرېِکړل شوو ضمایمو به داخرگنده کړي چې دهغې اړیکې له افغاني هیأت سره چې دسه شنبې په ورځ دلته راغلل، احترامانه نه دي. نیویورک دا یونینگ پوست اخباربیانوي چې شهزادگۍ شپاړس کاله د مخه له افغانستان څخه وتلې ده او دهغې مودې راهیسې په هند کې دبرتانیوي حمایې لاندې بې ژوند کاوه. دا ممکن د ډلوتر مینځ دعدم صمیمیت څرگندوي وي، ځکه چې اوس افغانان لیوال دي چې دخپلې بشپړي خپلواکۍ ادعا وکړي، په بویا دداشت کې (د نژدې ختیځ د چارو څانگه) په دې نظریې باندې ړیا واچوله چې ددې ضرورت نشته چې جمهور رئیس یا سکرتر هیأت ځان ته ومني، که هیأت نه منل کیږي نو د شهزادگۍ د منلو ضرورت هم نشته، برسیره پردې دهیأت او شهزادگۍ په منځ کې به یو خپگان احساس پیداشي که چیري دشهزاده گۍ هرکلي وشي او دهیأت ونه شي.

«له بلې خوا، که چیري مصلحت وگڼل شي چې دهیأت هر کلي وشي؟ نو دهرکلي اهمیت به یو څه کم شي. که چیري له شهزادگۍ څخه هم هرکلي وشي، داسې یو جریان که دسکرتر په موافقه صورت ونیسي، برتانویان به خوښ کړي.»

بله ورځ د بهرنیو چارو د وزارت د بهرنۍ تجارت ددفتر د مشاورله خوا یو داسې نوي نظروړاندي شو، «دا په پاریس کې دبرتانیي د سفیر له پاره گستاخي غوندي بریښي چې دکوم پر مختگ مخنیوي وکړي.. زه حتی د امریکې دگټوله پاره دا ډیر مهم گڼم چې که موزون وي دا امتیازدي سمدستي ترلاسه شي. په دې توگه، زه عقیده لرم چې دا به ښه وي چې مونږ هیأت ته خپله خاصه همدردي ښکاره کړو.» دبهرنیو چارو وزارت په آساني سره موافقه وکړه، چې د

شهزادګی په موجودیت سره چی نه یوازي دغه هیله یی درلودله ورڅخه ښه هرکلی وشی، بلکی په خپل سلطنتی اعتبار سره باور درلود چی ورڅخه به پذیرایی صورت ونیسی، د بهرنیو چارو وزارت له پاره موافقه په آسانی سره ترلاسه کیداي شو. وین برګ- ویمین- وایمن (Weinberg- Weyman Wyman) دداسی شیانو د ترسره کولو قوي درک درلود. جمهور رئیس هارډنګ ته دهیوز (SS Hughes) مشوره داسی وه، (زه د برتانیی د اړیکو له نقطه نظره فکر کوم دا به ښه وي چی په هغه وخت کی چی له هیأت څخه هرکلی کیږي، له هغی څخه ي هم وشی.

شهزادګی ته د نیتیی د ټاکلو اختیار پیشنهاد شو، او هغی له ټولو نه لومړي وخت وټاکه. کله چی دبهرنیو چارو وزارت پوه شوچی دهغی نوم دهیأت څخه د مخه لیکل شوي و، مشوره ورکړه چی داتقیسم اوقات ته دي تغییر ورکړ شی، لیکن سکرتر هیوز (Hughes) موضوع په خپل حال پریښودله.

د جولاي په ۲۰ نیته هیوز (Hughes) له ولی او د هغه له هیأت سره خبري وکړي او په نزاکت سره دهغه دکابل دهمکاره طرزي، یو لیک ورته وړاندي شو. هغه جمهور رئیس هارډنګ ته داسی راپورورکړي و:

«دوي مازي د یو خاص هیأت په توګه دلته راغلی دي چی له موږ سره سیاسی اړیکی ټینګی کړي. اوس چی لویه برتانیاله خپل قیمومیت څخه لاس اخیستی دي، موږ له افغانستان سره پرته له مستقیمی خبري اتري بل څه نه لرو... تر اوسه هم (له لویی برتانیی سره) ځینی حساسیتونه له افغانستان سره دکومو خاصوموا فقود کولو په شان شته، او زه پوهیږم دهغه حقیقت له مخی بوڅه احساس موجود وچی ایتالیا په داسی یوي موافقی کی داخله شوه. زه فکر کوم خاص سفیر د امیر له خوا کوم مکتوب تاسو ته راوړي دي چی غواړي تسلیم یی کړي، زه پوهیږم، دامکتوب، به عین مطلب ولري چی زما په مکتوب کی و، او هیڅ کومه سپار ښتنه ستا په برخه کی نه لري.» جمهور رئیس هارډ نګ افغانی هیأت او مکتوب خپل حضور ته ومانه. هغه دامان الله خان په ځواب کی چی د امیر حبیب الله خان د مړینی په مناسبت ورته ډاډ ګیرنه ورکړه شوي وه، او هم دهغی زیاتی علاقی په باره کی ورته کښلی وچی امریکاییان تل ځانونه په افغانستان کی محسوسوي او همدا رنګه یی لیکلی و چی په کابل کی د امریکی

نماينده ګي پوازې د کانګرس دراېوله مخې تاسيس کيداي شي، چې به دې اجلاسيه کې داسې رايه ورکړله شي.

د هيأت ملاقات له جمهور رئيس سره په مطبوعاتو کې تقريباً غير مرئي غوندې و، مګر کله چې د املاقات له فاطمه سلطانې سره صورت ونيو، واشګټن پوست ورباندې تبصره وکړه او د هغو تحفو په باره کې هم څه ليدلي وو چې شهزادګي فاطمه سلطانه جمهور رئيس او دهغه ميرمنې ته ورکړي وي. د پايتخت شاوخوا ځايونه دميډل مکارميک (Medill Mccomic) له خوا هيأت ته وښودل شول، ميډل مکارميک دالوناېتود ايالت سناتورو. شهزادګي فاطمه سلطانه ديوې ښتنې په صفت معرفي شوې وه، او هم ليکل شوي وو چې دې دخپلې کورنې پوازنۍ غړې ده چې مخ نه پټوي. فاطمه سلطانه، په مصاحبو کې ځان ذکي او يوه جذابه ښځه وښودله، او هغو مامورينو چې ورسره ليدلي وو دهغې تراغيزې لاندې راغلي وو. دواشنګټن ايونينګ ستار نومي اخبار دشهزادګۍ، دهغې دزامنو، او دال تي. راډنې ويمن (L. T. Ron-ey. Wyman) عکسونه چاپ کړي و.

هيأت په داسې حال کې چې د امريکې له سلوک څخه ترخه خاطره درلودله، بيرته دبيړې په ذريعه خپل هيواد ته ستون شو.

ليکن هيأت هيڅ کله نه پوهيده، اوعوام به په څلوېښتو کلو کې په هغه کيسه پوه نه شي، چې پوازې له فاطمه سلطانې سره پيل کيده...

درې ورځې وروسته شهزادګۍ وليکل چې ويمين (Wyman) ته شپږ سوه ډالره ورکړي دي، چې دهغې دواشګټن په سفرولګولي شي، او ليکلي وو چې دهوټل دبلونو پيسې نه وې تحويلي شوې که څه هم ماورته پيسې ورکړي وې او هم يې ليکلي وو چې هغه اوس له ما سره اړيکې شکولي دي.

وروسته د بهرنيو چارو وزارت ته دا معلومه شوه چې يو تيرايستونکي تفر يې ميلمه کړي دي. او په نتيجه کې هغه څومره يو مشهور تير ايستونکې نفرو. يوه خاصه نماينده ار. سي بينرمين (R. C Banner man) يې په خپل کورکې دهغه د وين برګ (Wein berg) د ريښتيني نوم په وجه تعقيب کړ، او دفاطمه سلطانې له خوا ليزل شوي دوه دستر خوا نونه يې دهغه په کورکې پيدا کړل. د ۱۹۲۲ کل په اپريل که ديا کار و يمين دسمندرې افسرد يونيفورم په اغوستلو سره چې په غير قانوني توګه يې د افغانې فرا ريه توګه يې په تن کړي و – په فدرالې دارالتا ديب کې د دوکالو په بند محکوم شو.

مگرد ۱۹۲۲ کال په مارچ کی شهزادگی فاطمه سلطانه بیاد بهرنیو چارو وزارت ته داسی ولیکل: «دي هیواد ته په رسید و سره، پرته له هغه بودجی څخه چی زما په فکر زما دشخص اړتیاوو د رفع کولو له پاره کافی وه، ما سره یو پنځه ځلوینیت قیراطی الماس هم و چی زیات طبیعی او تاریخی ارزښت یی درلود. ماته ویل شوي و چی زه به وکړي شم دخپل الماس دپلورلو ښه بازار دلته پیدا کړم. په اټکلی توگه زما د الماس ډیره کمه بیه به دسلوزرو ډالرو په حدودو کی وه. زه اوس ځان بی وسیلی او بی پانگی احساسوم او اوس زما الماس د نیویارک د حاکمانو په لاس د دوو رزو ډالرو د پور په بدل کی لویدلی دي.»

شهزادگی ښکار شوي وه. مگر څنگه چی ښکاره شوي کسان تل وارخطایی ښیی، نوله دي سره هم داسی چلند کیده لکه چی دا مجرمه وي. امریکا بیان او برتانویان دواړو غوښتل چی داله امریکی ځخه وباسی. په جنوري کی بلس (Bliss) یو داسی یادداشت ولیکل. «د برتانی د سفارت مشاور ښاغلی چلتن (Chilten) نن سهار تیلفون وکړ او دامعلومات یی را ته راکړل چی دده حکومت غواړي هند ته د شهزادگی فاطمه سلطانی او د هغی د زامنو دبیرته لیږلو چاري په غاړه واخلی... یوه بیړي... نشته چی د مارچ په ۲۵ نیټه له نیویارک ځخه سیخ بمبیی ته ځی، په هر حال دده حکومت غواړي چی شهزادگی دي څومره ژر چی ممکن وي، له نیویارک ځخه لاړه شی؛ نو په دي توگه د ده محکومت ممکن شهزاده گی د سانفرانسکو یاد اروپا له لاري هند ته واستوي، چی د مدیترانی په بند رکی به خپله بیړي بدله کړي.

«هغه وویل زه پوهیږم، د شهزادگی مشر زوي غواړي کوم چل جوړ کړي چی د خپل مور پاته شوي جواهر برمته کړي او دگرو په نوم یی تر خپل کنترول لاندي ولري، چی په نیویارک کې د برتانی جنرال قونسل د شهزادگی او دهغی د چارو ځارنه کوي. ما ښاغلی چلتین ته وویل چی شهزادگی بحرانی حالت ځان ته غوره کړي دي او داچی زه د یوي سپار ښتنی په فکر کی وم. چی شهزادگی دي انگلستان ته واستوله شی، تر هغه ځایه چی زه معلومات لرم هغی د انگستان پر پاسپورت سفر کوي. ما بیا لږ په وضاحت سره تشریح کړه چی په نهایت کی دهغي مالي وضعه قناعت ښبونکی نه ده، او داچی په نیویارک هغي له یوسړي ځخه دوه زره ډالره و غوښتل، چی هغه سړي ورته دهغی دالماسو تضمین په بدل کی دوه زره ډالره پور ورکړ، او هم داچی دي په خپله دغه ادعا باندي بریالی شی، ځکه چی دهغی ادعا په قطعی توگه برحقه ده.

ښاغلی چلتین وویل چی ماته په دي نژدي وختوکی په دي مفهوم لارښوونی شوي دي. چی

د برتانی حکومت به نور په چین کی افغانانو ته کومه دلچسپی و نه ښیی، او وویل چی زه فکر کوم داد دي لـه پاره وي چـی د ده تلگرام ته چی یی (دلندن) ته کړي وه کوم خـواب نه و ترلاسه کړي.

«ما دا موضوع په گوته کړه چی تر هغه ځایه چی موږ پوهیدو، دا ښاحه چی دانگستان پاسپورت په لاسه درلود، دلویی برتانی تبعه وه، چی موږ غوښتل په متحده اپالاتو کی دهغی د پاته کیدو په ارتباط هره ناوړه پیښه له منځه یوسو، او داچی دا ډیره بده وضعه وه، ځکه موږ د هغی او د هغی د کورنی له پاره کومه پانگه او وسیله نه درلوده. ما نور هم پس وویل چی له هغی سره مرسته نه کیدله او وضعه یی د ترحم وړ وه، او داچی ما په ربښتیا سره فکر کاوه برتانوي مقامات باید هغی ځارنه کړي واي، په تیره بیا چی ده سانفرانسسکو له لاري د امریکی خاوري ته داخله شوه او د برتانیی د جنرال قونسل له خوا یی د هوټل ترتیبات نیول شوي و، هغي وروسته نیویارک ته واستوله شوه، او د هغی مودي راهیسی د نیویارک برتانیی قونسل له هغی سره د هر ډول مرستو سر غړونه کړي وه او یا ورته مشوره ورکوله، چی که نوره چاره نه وي نو دا به بهتره وي شهزادگی دي خپل الماس خرڅ کړي او خپل پوردي له سود سره ادا کړي.»

د هند له حکومت ځخه غوښتنه شوي وه چی دشهزادگی د بیرته ستنیدو پیسی ورکړي او یا له افغانستان ځخه و غواړي چی دا کارو کړي. دهغی د سفر ترتیبات د بیړي په ذریعه نیول شوي وو، چی در مارچ په نیمایی کی په خپل سفر پیل کاوه...

شهزاده گی مود بانه له تگ ځخه انکارو کړ. الماس یی دلیلام په بیه ( ۵۵۰۰ ) ډالره خرڅ شوي و، لیکن هغی حتی دغه مقدار پیسی هم پوره تر لاسه نه کړي، ځکه چی متحده ایالتونو ( ۱٤۰۰ ) ډالره دالماسو محصول ورځخه غوښته. په دي ادعا کی لانجه داوه چی آیا شهزادگی دغه الماس خاص د خرڅلاو له پاره امریکی ته راوړي و، یا د هغی د کالیو له اجزا و ځخه و؟ او مطبوعاتو د الماس د خرڅولو په باب دهغی دهیلی په خلاف نشریی کولی. شهزادگی یو قانون پوه وگوماره، چی ادعا یی وکړه چی د بهرنیو چارو دوزارت استازي بینرمین (Bernner man) هغی ته مشوره ورکړي وه. چی محصول تا دیه کړي، او وعده یی ورسره کړي وه چی دا پیسی به بیرته ورته ورکړي شی، چی بیا بیخی ورته ورنه کوي شو. قانون پوه په دي بریالي نه شو چی ۱٤۰۰ ډالره بیرته تر لاسه کړي.

یو کال و روسته د کلکتی افغانی قونسل د الماس د لیلام په باره کی پوښتنه وکړه او

داخستونکې نوم چې جان ار کېم (John R. Keim) نوميده : الماس له قيمت سره ورکړي شوي و . او يو بل کال و روسته يو بل افغاني هيأت نيويارک ته لاړ ، چې د دې هيأت مقصد دومره زيات د جواهرو پيرو دل نه و ، دافاطمه سلطانه يې له هغه بدبخت کاروان سره مقايسه کړه چې په بيابانونو کې لوټ کيږي ، او دې چې په امريکاکې لوټ شوي ده ، خاموشه ناسته ده. شهزادګۍ د جمهور رئيس هارډنګ د مړينې په مناسبت د هغه ماندينې ته د تسليت يو لېک واستاوه ، چې غوښتل يې يوه شې دچاله خوا دا تسليت ليکل شوي ، ليکن پته يې پيدا نه کړه. هغه څرګندونه چې افغاني هيئت يې وارخطا کړي و ، فاطمه سلطانه يې هم تباه کړې وه.

د جون په مياشت کې برتانيې دا هيله کړې وه ، چې بايد په بله مياشت کې ټول روسان په بشپړه توګه له افغانستان څخه ووځي ، مګر بر عکس د جولاي په مياشت کې يو بل نوي روس وزير را ورسيد ، چې راسکولينوف نوميده او تزار پخواني سمندري افسرو . دې يو خوش قواره سړي و ، چې له دېرشو څخه يې عمر لږڅه زيات و . هغه له خانه سره هغه امانت (سره زر) را وړي و چې په معاهده کې يې ژمنه شوي وه . همدا راز هغه له ځان سره خپله ښکلې ښاحه هم را وستلې وه ، چې نوي شکل کلنۍ ته رسيدلې وه . رنې شنې سترګې ، ګرد ګلابي مخ يې درلود . په سريې يو ډول خولۍ وه چې سپکې نوي ښکې يې درلودې او د پسر کولو په وخت کې يې ښاېست لازياتيده . کله چې په خپله مرسيدس ګاډي کې د کابل په بازارو نو کې ، يو نيم کال دمخه د ميرمن براوين پ توګه تېريد له ، خلکو به ورته په تعجب کې شول او د هغوي پام به يې ځان ته اړولو . ميرمن لاريسا راسکولينکو (larisa Raskdnikova) په خپل اصلي هيواد روسيه کې لږه موده تيره کړې وه ، ځکه چې پلار يې داسې سخت انقلابي سړي و ، چې دهغه زيات عمر په تبعيد کې تيرشوي و . تبعيد شوي انقلابيون نور زيات کارنه لري چې اجرا يې کړي ، فقط د بيانيې ورکولو فن ته وده ورکوي ، او ميرمن راسکولينکوا په خپلو بيانيو سره افغانانان ځان ته جلب کړل . چې د دې غږ د نورو ښځو له غږو نو څخه چې دوي ورسره آشنا وو ، ډير توپير درلود . په تيره بيا چې يې غږله ښکلا سره يوځاي و . د کمونېزم په موضوع باندې به له خپل ميړه څخه له ولولوډ که بيانيه ورکوله ، مګر هغه نوري موضوع ګانې هم درلودې او د بهرنيو چارو د وزارت په يوه ميلستيا کې چې هغې د وېليام شکسپير پر فعاليتونو باندې بحث کاوه ، محمود طرزي ځان ته جلب کړ . همدارنګه په يوه روسي ګدا کې چې يې دامان الله خان او ملکه ثريا په خاطر اجرا کړه ، دامان الله خان او ثريا توجه يې هم ځان ته واړوله. (٤)

د بهرنیو چارو د وزارت په میلمستیاکی چی له سورتیس سره مخه ښه او له راسکولینکوف څخه هر کلی وشو، طرزي یوه بیانیه ورکړه، چی پاي یی داسی و: «که د دوه هیوادو نو اړیکی ښه ښه ځان ته غوره کړي وي، دا به د سورتیز د کوښښو له برکته وي.» څنګه چی عبد الهادي، چی تازه له بخارا څخه راغلی و، وویل، «ژوندي دي وي د افغان او روس دوستي!» ډابس چی ورسره نوره مرسته نه کیدله، لاهم له طرزي څخه د حقایقو په مورد کی پوښتنه کوله.

او به چی په افغانستان کی ډیري کمی دي، په دغه کال کی له هر وخت نه زیاته وچکالی وه، تقریباً هر ما سپښین به جکړو او دوړي به پورته کیدي، او خلک یی دي اړ ایستل چی دخپلو پتیکیو په شملو خولی، بندي او سترګی پټی کړي که څه هم دمندتی حاصل به نه وو او دکوچیانو مزدور نیول کیدل چی مندتی ټولی کړي، لیکن دغنمو حاصلات قناعت بخش نه وو او زیات شمیر پسونه په ختیځ سرحد کی له منځه تللی وو. په دي کال کی افغانستان مجبور وچی دخوراک له پاره له هند څخه غله وارد کړي، په بدل کی په هند ته وچه میوه ورکوله.

دولوزي مستقبل داسی یوه موضوع وه، چی برتانیه کولاي شو پوره یی کړي. دراولپنډي په کنفرانس کی داسی ویل شوي وو، «د لاري په بند ولو کی مور قوي وسله لرو.» اوس ډابس په دي فکر کی وچی د دوه هیواد ونو ترمنځ لاره بنده کړي، نه یوازي دسوداګرو په مقابل کی، بلکی د کوچیانو په مقابل کی هم.

«کوچیان معمولاً د سپتمبر په پاي او یا داکتوبر په نیما یی کی هند خواته کډه کوي، او په داسی یو کال کی چی د افغانی سرحد په سیمو کی سخته وچکالی وه، نو هغوي به ممکن تر نورو کلونو لږ څه د مخه، دغلو دانو او به او دخپلو حیوا ناتو له پاره دواښو د برابرو لو په مقصد کډه کړي واي، نو دوي باید خپل دغه پلان ته تر سپتمبره پوري عملی ښه ورکړي واي.

«زه فکر کوم، مور باید په یقین سره څه چی موږ په قدرت کی وي د اعلانو نو په واسطه دهغوي د مهاجرت مخنیوي وکړو. ځکه که بو ځلی د نارینه وو، ښځو، ماشومانو، او ښانو او خرو کاروانونه ښکسته خواته وران شی، بیا به دهغوي مخنیوي کول خطرناک تمام شی او د ترحم وړ په یوشی به بدل شی.

که چیري په خبرو اترو کی نقض منځ ته راشی، نو ممکن امیر به خپله و غواړي د دغو مهاجرتونو مخه ونیسی. ځکه هغه به ونه غواړي چی د ژمی په یخ موسم کی د برتانیه له خوا ټولو او ښانو ته تاوان و رسول شی، ځکه چی دهغوي په ذریعه له یو ځای څخه ویل ځای ته

عسکرو ته مواد وړل کېده لیکن افغاني مقامات پر (گرچیانو) بائدي تپنگ بندیزنه لري، او دو چکالی فشار ښه ممکن دومره زیات وي، چې ممکن دهغوي او امرو ته غوږ، ونه نیسي.

«موږ باید له یو احتمال سره مخامخ شو... چې د اعلانونو خپرول به مهاجرین ونه دروي. سږ کال دا حرکت ډیر قوي بریښي په دي صورت کې به قوي ته ضرورت احساس شي. (کوچیان) له ښو وسله والو ډلو سره ښکته کوچ کوي. کله کله دقوي کسانو شمیر په کې په زرگونو تنو ته رسیږي، او د دي آماده گی به رلري چې له وزیر او له خپلو نورو دښمنان سره مقابله وکړي. هغوي په ب ه لنده خبرتیا خپله لاره بدلوي او که خبر شي چې دگومل لاره بنده ده، ممکن اساس قوي د ژوب، لورالی اوښا حتی د پشین د غاښو له لاري لاړي شي باید د استخباریو ښ سیستم تجویز شي، چې دمهاجرو دپیښو احوال دوخت په سرکې ورکړي او د عسکرو کوچنی ډلی دي باید آماده وي چې هغی سږ مې ته لاړي شي ترڅو هلته لاره بنده کړي.

«د افغانی مزدورانو په مقابل کې دي هم باید همداسی شرایط په نظر کې ونیول شي، چې معمولاً په یخ موسم کې مهاجرت کوي. د سند دکانال د ویالو (همدا رنگه ممکن د پنجاب د کانال دویالو) خړي هر کال همدغه خواریکښ افغانان پاکوي او دخپل دغه کار په مقابل کې ډیري پیسی گټي... په همدی توگه هغوي هر کال ژمی دسرحد په اوږدو کې د سرکونو د جوړلو په خاطر استخدامیږي. د دوي د پیسو یو؛ زیاته برخه هر کال په مشروع یا غیر مشروع توگه یاد افغانی ماموریتو جیبونو ته ځي یاد ځمکی د مالیی په نوم ورځینی اخیستل کېږي. د دي کار علت دادي چې یو بیوزله افغان بزگر دخپلو غلو دا نوزیاته برخه چې دبزگري له لاري گټي، خپله مصرفوي. نو د مالیی پیسی د خپلو کورنیو د غړو له هغو پیسو څخه تحویلوي، چې په بهرکې کار کوي او پیسی گټي.

«که چیري ضرورت وي، چې افغانستان په کراري سره پوه کړي شي، چې په څه ډول دخپل ژوند د دبقا په خاطر پرهنه باندي اتکا کوي، نو دا پوهه باید ځومره ژرچې امکان ولري په پوره توگه ورته ورکړله شي او د دي کار له پاره همدا سږ کال ښه کال دي چې وچکالی ده.

دهند حکومت ډابس ډیر خرشبین سړي وگاڼه او دا پیشنهاد یې رد کړ:

« طبیعي قوي چې دغه کلنی تگ دهند هوا روځمکو خواته تشویقوي، تر دي حده نه زغم کیدونکی دي، چې دهغه پر ضد د امیر یاد هند دحکومت له خوا هیڅ کومه خپره شوي اعلامیه ممکن په واقعي توگه دهغوي په اداره کولو کی گټور واقی نه شي، په تېره بیا په سږني کال

غونډي يو کال د حاصلاتو او غلو دانو کمښت ليدل کيږي... د افغانستان د دې عنعنوي ويري له نظره چې زمونږ له خوا به د جنګ په حلقه کې ايسار شي، کله چې (کوچيان) له خپلو او ښانو سره زمونږ ترلاس لاندي يرغمل دي، نو په هغه صورت کې سړي په آزاده توګه فکر کولی شي، چه هغوي به د (کوچيانو) د مهاجرت د مخه يا و روسته دلارو په بند ولويانديو ځوريږي. »

دجولاي په نيوله هغه ګرمه موده کې هغوي خبري اتري وکړي. دقبايلو له پاره د عمومي بخښني اعلام بيا يوه مهمه موضوع وه. ډا بس وکښله، « کـه داسي نه واي شـوي نو (افغانستان) به د مسود و دخپلواکي په خرڅولو باندي تومتي کيده. زه فکر کوم دا تصميم به زياتره دهغې طريقي له مخي وي چې د نادر شخص اعتبار په کې متصور دي. بيا هم افغاني پوهي نه بايد زيات د رنسبت ورکړشي، چې يوازني حربي قوه چه هغه کولی شي، زمونږ پر ضد ورڅخه کار واخلي، هغه زمونږ خپله سرحدي قبايلي قوه ده، او داچې که اوس افغانستان هغوي خپل تقدير نه پريږدي، نو هيڅ کله به د هغوي په مرسته اتکار ونه شي کړي، حتی دا چې هغوي به ورڅخه واوړي. »

د جولاي په ۳۱ نيټه، ډا بس هند ته د پوستي ګڅوره وليږله، چې د نورو مکتوبونو په ترڅ کې د روسانو د ميلمستيا په باره کې دده د پروتست بيان هم موجود و. ګڅوره ورکه شوه، هغه سړي چې ګڅوره يې وړله، وويل چې کڅوره سيند يو وړه. برتانويانو پلټينه وکړه، خود سيلاو کومه نښه يې پيدا نه کړه.

وروسته د بهرنيو چارو وزارت، قضيه داسي بيان کړه چې بر عکس د پوستي ګڅوره خپل قانوني پراو سرته رسوي او د يو سپاره عسکر په لاس، چې يو تيلفون يې هم د ترميم له پاره ځان سره وړلو، ورکړي شوي ده. په لاره کې پنځه تنه وريانديد بريد وکړ او دي يې په ونې پوري وتاړه. هغه ورته وويل چې زه يوازي مکتوبونه او د تيلفون صندوق له ځان سوه لوم، ليکن د الاري و هونکس وويل. چې مونږ پوهيږو په کڅوره کې يادداشتونه او په صندوق کې سره زر دي. لږ وروسته عسکر په چل ول سره ځان خلاص کړ او په پښو د جلال آباد په لور راهی شو، چې ځان هلته له شره خلاص کړي، هغه د سيلاو کيسه بيان کړه، داګست شپږمه نيټه وه، د مخه تردی چې د بهرنيو چارو وزارت د ورک کيد و له موضوع څخه خبر شي. وروسته د بهرنيو چارو د وزارت يو تن دسيمي څو تنه مشران پيدا کړل او ورته وظيفه ورکړله چې په درو ورځو کې ياد

پوستی کښوره پیدا کړي یا یې غله هغوي د حکومت د عمومي بېښنې د اعلام په خاطر هم د پوستي کښوره او هم د هغوی غله پیدا کړل او رایې وستل، خو کښوره خرابه شوي وه.

ډا بې د دي کیسي یوه خبره هم ونه منله. د هغه عقیده داسي وه چي امان الله، د دي له پاره چي زما دا راپور او د روسانو د میلمستیا او د نورو شیانو په باره کی معلومات ترلاسه کړي وي. امر یې ورکړي و، چي د پوستي کښوره دي غلا شي. هغه دا خبره و نه منله چي د کښوړی پسی دي سري واستول شي، بلکي په دي ټکي باندي یې اصرار کاوه، چي په رسمي توګه دي د هغه کورته ولیږل شي.

د ډا بس د بدګوماني یو دلیل په یو افغاني یاد داشت کی یوه ټاکلې فقره وه، چي دا فقره د هند د حکومت ... و خصوصي یادداشت له فقري سره زیات شباهت درلود، چي ډا بس ته استول شوي و. بیـ هـ ډینیس بري (Denys bray) د هند د بهرنیو چارو سکرتر هغه ته بیرته ډاډ ګیرنه ورکړه او وي ویل،

« دا افغاني پالیسي زمونږ خپل توضیحات (کـه چیري صحیح او ټکي په ټکي زما په یاد وي، نه ربښتینی افغاني مواد و څخه اقتباس شوي دي، چي هغه زمونږ لاس ته راغلي دي. »

نو کښوړه که د هر چا له خوا غلا شوي وي، د برتانویا نو له خوا په نرمي سره استقبال شو. برتانویانو هغـه په خپله ګـټـه واړوله. د هند حکومت د برتانیـه حکومت ته وویل، «داسي معلومیږي چي زمونږ بهترین پلان به داوي چي له دي قضیي څخه اعظمي ګټه ترلاسه کړو. د قضیي د حل لو په خاطر ورڅخه کار واخلو او د دي په خاطر چي د نړي نوي حقایقو ته انکشاف ورکړو، او په ربښتیا سره خپل خپګان وښیو، او هم وریاندي فشار وارد کړو. چي زمونږ ... ضونو ته غاړي کښیږدي. زه فکر کوم دا کار به ګټېو رواقع شي. کـه تا سوو غواړي ماته تلګرام وکړي چي د ډابس په ذریعه افغانانو ته وښودل شي، نو د بهرنیو چارو له نظره داسي وانمود کړي د قضیي بربریت په کی څرګند شوي وي او دا شی د یو متمدن هیواد په توګه پر مونږ باندي تحمیل شوي دي. »

د نړي نوي حقایق د ترکانو او یونانیانو ترمنځ نوي جنګ و، چي ترکان په دي جنګ کی مغلوب معلومیدل او افغانان وریاندي خپه کیدل، او د روسـي سختـه وچکالي کـه چیري له آسیایي توي فتحه شوي شورشیانو سره یو ځاي کیدل، نو داسي معلومیده چي د روسیي له قدرت څخه به کموله. ډا بس د اګست دلومړیو و ختونو په یوه غونډه کی ځان حق په جانب باله چي افغانانو ته «ډیري ساده خبري کولي، خوخبري یې تقریباً د بي نزاکتي خواته میلان درلودي. »

په عین وخت کی دولی خان هیأت له نیویارک نه راسا ء لندن ته دبیړي په ذریعه لاړ، چی داگست په اتم تاریخ لندن ته ورسید.

د هغه وخت نه را په دې خوا چی د امان الله خان نیکه، عبد الرحمن خان نصر الله خان یی انگستان ته استولی وو، چی غوښتنه وکړي، افغانستان ته دې اجازه ورنکړل شی، چی ددې پر ځای چی دهند دحکومت په ذریعه له انگلستان سره خبري وکړي، مستقیماً دې له لندن سره خپلی معاملی وکړي. دا دافغانستان لومړنی هیأت و، چی د انگلستان خاوري کی یی قدم کیښود. په دې وخت کی هماغه زړه موضوع مطرح وه. ډا بس خبرتیاورکړله چی، «افغانان په دې ټکی باندې په افراطی توگه حساسیت ښکاره کوي، او فکر کوي چی دنورو هیوادونو په پرتله لکه د سیام هیواد، د دوی په برخه گی دانا مناسبه چال چلند لري.

ولی خان له رسیدو ځخه یوه ورځ وروسته اعتراض وکړ، چی دهند د بهرنیو چارو د وزیر لیدو ته ځی او غواړي چی یوازې د برتانیه دبهرنیو چارو له وزیر سره ووینی.

د ملاقات کولو دوعدې له پاره بیړه کول ضرورو، ځکه چی جورج پاچا وروسته له دوو ورځوله لندن ځخه بالمورال ته روان و، و لارد کرزن په پاریس کی و. محمد ولی خان دهند د بهرنیو چارو له سکرتر سره، چی ادوین اس مونتیگ نومیده د معاملی له کولو ځخه انکار وکړ. که څه هم ممکن مونتیگ په هغه ورځ له ولي خان سره دلید و وعده کړې وي او مونتیگ به هغه دجورج پاچا حضورته بیولی واي.

ولی خان وویل، «زما لارښوونی مطلق او صریح دي، زه نه شم کولاي چی ډیر لږ انحراف ورځینی وکړم. حق که زه په نتیجه کی دي ته اړ کیږم، چی له لندن ځخه لاړشم» ولی خان خپلو خبروته دوام ورکړ اووي ویل، چی دهند دحکومت په ذریعه معامله کول دافغانستان غرور ته زیان رسیږي، حال دا چی جاپان، چین او ایران د انگلستان له حومت سره مستقیماً معاملی لري.

«د راولپنډي د معاهدې نه وروسته افغانستان فکر وکړ چی له هند سره خپل ټول ارتباطات شکولی دي.»

د هیأت غړي داسی وویل، «داچی موږ دلته راغلی و مقصد یی عیناً هماغه د برتانی د بهرنیو چارو له دفتر سره اړیکی دي. که موږ داسی فکر وکړو چی موږ ته له واشنگټن نه وروسته دانگستان دلیدو دعوتنامه د هند د دفتر له خوا لیږل شوي ده، نو موږ به دادعوت نه قبلاوه.»

په پای کې هیأت داگست په ۱۷ نیټه د لارد کرزن د لیدو له پاره د بهرنیو چارو وزارت ته په خپله وعده ورورسید. دمرکې دمخه کرزن دهغوي نماینده چې ستیوارټ پیرز (Stewart pears) نومیده خپل دفتر ته د ننه را وغوښت او ورته یې وویل چې ولي خان په هیڅ صورت ددي حق نه لري چې ورته د «جلالتماب» لقب استعمال شي.

څوشیبسي وروسته پیرز، هیأت معرفي کړ او دهغوي هیأت ته یې یوازي «جنرال محمد ولي خان» وویل.

لارد کرزن، داسي په خبرو شروع وکړه: «زه په خاص ډول ډیر خوښ یم چې یو ځل بیاله افغانانو سره وینم، په دي چې زه یوله هغو ډیر لږ شمیو انگلیسانو له جملې څخه یم چه افغانستان ته ورغلی دي، هغه وروسته دخپل وخت د یو شمیر مامورینو پوښتنه وکړه. او دلچسپي یې لرله چې پوه شي، چې غلام صدیق خان دهغه جنرال غلام حیدر خان زوي دي چې هغه امیر عبد الرحمن بدرگه کړي وه.

شخصي تیري خاطري خلاصې شوي او ولي خان هغه مکتوب دبرتانیې د بهرنیو چار وزارت ته وړاندي کړ چې د طرزي له خوا یې راوړي و. کرزن، مکتوب دهغه له لاسه واخیست او بې له دي چې خلاص یې کړي، هغه یې پر میز باندي کیښود.

ولي خان دوهم مکتوب ورته وړاندي کړ چې وربانديې په فارسي لیکل شوي وو «د اعلیحضرت امیر د مکتوب نقل». هغه وویل چې دالیک د امان الله خان د هغه لیک انگلیس ترجمه ده چې جورج پاچا ته لیکل شوي و. کرزن دالیک هم و مانه او بې له دي چې خلاص یې کړي، دلومړي پاکټ په څنگ کې یې کیښود.

لارد کرزن وویل، «زه په تعجب کې یم او نه پوهیږم چې دا د کابل خبري اتري په څه وځنډیدې.» لارد کرزن بیاوویل: «ددي کار علت به دافغاني مامورینو متداوم عدم ثبات وي.»

ولي خان دافغاني نکتې په مورد کې په تشریحاتو پیل وکړ، وروسته له کرزن څخه په افغاني چارو کې دهغه د استثنایي پوهې له نظره دښو دفترونو غوښتنه وکړه.

کرزن دهغه خبري پرې کړې او وې ویل، «زه نه غواړم چې فعلاً پر هغو موضوعگانو باندي بحث وکړم چې اوس په کابل کې وربانديې بحث صورت نیسي او دهند د بهرنیو چارو د صلاحیت لاندي دي.»

ولي خان وویل، «څرنگه چې تا سود خبرو اترو دځنډیدو پوښتنه کړې ده، نو هڅه مې وکړه چې ددي علتونو په باره کې توضیحات وړاندي کړم.»

کرزن وویل، « ترهغه پوري چې دمعاهدي نتیجه معلومیږي، دا امکان لري چې جنرال محمد ولي صرف د یوسرشناس افغان په توگه و منو نه دافغانستان د یونماینده په صفت. »

وروسته له څو غیر رسمي خرګند و ونو څخه افغانان رخصت شول. کرزن هغه دوه نه خلاص شوي مکتوبونه پیرز (pears) ته ورکړل او ورته یې وویل چې دهند دفتر ته دي تسلیم کړي.

ولي خان ددغې غونډې راپور هیواد ته مخابره کړ.

هغه مکتوب چې ډا بس داگست په ۲۸ نیټه له محمود طرزي څخه ترلاسه کړ، په کې داسې لیکل شوي و: « که چیرې ډا بس فکر کوي چې افغانستا دکومې دښمنۍ یا دوستۍ په خاطر له خپل استقلال څخه سترګې پټوي، نو لویه اشتباه کوي. موږ ممکن داڅرګنده کړو چې ډابس دانګستان د پاچا په نماینده ګۍ په کابل کې خبرې کوي، نه دهند دحکومت په نماینده ګۍ. نوزما حکومت داغیر دوستانه چال چلند ته په زیاته خواشینۍ سره ګوري، نو په قوي احساس او په جګ آواز سره غواړي هغه هیواد یا قوم په جزوي یا کلي توګه د افغانستان د بشپړي ازادي په ضدوي. »

هغه القاب چې طرزي به په خپلو مکتوبونو کې ډا بس ته استعمالاوه، « جناب ډا بس » و. ډابس خپل حکومت ته وویل، چې دا په ظاهر کې بې ضرره القاب په خپل مورد کې ډیره کاري ضربه لري. « د آسیایي طرز تلقي په مطابق، که د مرسل الیه نوم دمکتوب په متن کې د (هغه مهربان ملګري) په عوض لیکل کیږي، دا یو زشت عمل ګڼل کیږي » کوم شی چې ډا بس د هغه له ذکر څخه ډډه وکړه داوچې په عربي کې « ډابس » « خرس » ته وایي چې له خوګ سره په یو ردیف کې راځي او کله به چې یو افغاني هلک پر خپل کوم دوست باندي په قار شونو خوګ به یې ورته وویل، چې داکاردسوک وهلو دجنګ پیل ګڼل کیږي. ډابس په دي پوه وچې طرزي پوهیده چې هغه په دي باندي پوه دي.

افغاني هیأت د سپتمبر تر ۱۷ نیټې پوري په لندن کې پاته شو، په کوم وخت کې چې هیأت اروپا ته دخپل بري دپل د تعقیب په هیله لاړ. پېرز یوازنی سړي وچې دوکتور پاستیشن ته له هیأت سره دمخه بنې له پاره راغلی و او دامې راپوریې ورکړ، « که څه هم ولي خان او دهغه ډله ډیره ښه معلومیدله، خو دلیدنې کتنې په وخت کې ټول یوډول مود بانه معلومیدل. ولي خان بیخي یو خوش طبع سړي و او باید و وایم چې یو باپرنسیپه سړي و.

غلام صدیق خان د مخه د کابل په لور حرت کړي و، څو د هیأت د اجراآتو را پورډ نړۍ د سفر په باره کې راوړي.

امان الله خان په اگست کې له روسانو سره معاهده وکړه. د راسکو لینکوف پنځه سوه زره روبل ومنلې، چې داد کلني یو ملیون روبل د مرستې لومړنی ورکړه وه. دوې الوتکې ورته ورکړې شوې، لیکن دا الوتکې په کریتیونوکې راوړې شوې وې، نه د پرواز په واسطه او که سړي د کنایې له مخې ووایي نو دا هغه زړې الوتکې وې چې په یو وخت کې د روسي هیواد له برتانویانو څخه تر لاسه کړې وې.

له لارد کرزن سره د افغانستان مخامخ کیدل، امان الله خان قانع کوي و، چې له انگلیستانو سره اړیکې تینگولې پرته له دې چې دده پوخ دریځ ته په نړۍ کې زیان ورسوي، بل کوم کار نه کوي، هغه داسې تشخیص کړ چې له برتانویانو سره یو خاص تړون د پیش بند هغه بند دي چې د هغه په واسطه یو مورخپل ماشوم په ځان پورې وصلوي. هغه په یو جهان شمول حقیقت باندې پوه شوی و، چې:

«تاسو به بیا ونه شی کړی هیواد ته لاړشی.» خپلواکی امان الله خان مجبور کړ چې خپل دوه ستر گاونډي قدرتونه یو د بل په مقابل کې موازنه کړي نو یې له روسانو سره معاهده وکړه.

روسانو په خپله په لندن کې د معاهدې یوه نسخه د خپل تجارتي هیأت د مشر له لارې چې ال. بي. کراسین (L.B. Krassin) نومیده برتانویانو ته ورکړه. هلته برتانویآنو هغه مطالب ولوستل چې ورباندې دومره موده مناقشسه کوله. هغه مطالب په کندهار او غزني کې د قونسلگریو پرانستل وو.

ډا بس شکایت وکړ: «زموږ له پاره به بي فایدې او د برتانیې نماینده گانو ته به بي احترامي وي که موږ د دې مکتوبونو د څرگندونو په خاطر دلته له افغانانو سره د زیاتې مودې له پاره پاته شو.»

امان الله خان غوښتل چې د افغانستان دوه کلن استقلال په برم او دیولوې جشن په جوړولو سره د کابل ښار څخه د باندې د پغمان په ښکلې دره کې و نمانځي په پغمان کې په اوړي کې هوا نسبتاً معتدله وي، که څه هم چې غونډې گانې یې سره نژدې دي او سړي داس احساس کوي چې که لاس وغزوي په بله غونډۍ کې به د بل چا لاس ته ورسیږي.

امان الله خان په هغه ځاي کې په شل ایکره ځمکه کې یو باغ جوړ کړي و، چې پراخه ساحه

او چوتره یې درلودل. د شنو کښلو زینې یې په کې جوړې کړې وې او تل به یې او یه کولي چې شنې پاتې شي. په روسي قالبونو کې جوړ شوي مجسمې د ځ اي په ځاي کولو له پاره آماده وي. پغمان د مرفه ژوند له پاره یو آرام ځاي و . اوس د امان الله خان د وزیرانو له پاره د دبدبې ځاي وه چې په پغمان کې د کورونو خاوندان شول. دا کورونه له لرګو څخه جوړ شوي وو چې له معمولاً افغاني کورونو څخه چې له تیرو اوختیو جوړیدل، تو پیر درلود . د دې کورنو معماري د سویس د باندو په شان وو ، چې یووړو کې بالکن یې هم درلود . جې سرې کولاي شي له هغه ځاي څخه د باندې غونډې او د میوو ونې وویني ، د کوټو د ننه برخه دیوالونه قالبي نقاشي شوي وو چې د اروپایي ۱۹۲۰ کال په سبک نقاشي شوي وو چې غیر افغاني نه معلومیدل.

امان الله خان یو تفریحي سالون د یوې غونډې پر سرباندې جوړ کړ چې د «ستوري» په نامه سره یا دیده او پنځه خونې یې درلودې ، او سړي کولاي شول د دې مانۍ له کړکیو څخه هره خوا وویني. د ماڼۍ د تولو خلکو د استفادې له پاره وه چې د امان الله خان لومړنی هدف و . امان الله خان هغوي ته د موسیقي دغږولو په خاطر له لرګو څخه جوړ شوي اروپایي ډوله ځایونه جوړ کړي وو او یو هوټل په هم دې ځاي کې جوړاوه. په کابل کې بوازي څو میاشتې د مخه یوازنی سړک چې دبرېښنا په رڼا تنویر شوي وه. هغه سړک وچې دارګ له عمومي دروازي څخه شروع کیده او د یادګاري څلي څخه تیریده او د کابل د سیند عمومي پل په لور تللی و . په دې وخت کې د عبدګاه مسجد او د حضوري چمن تر منځ په سړک کې هم ګروپونه ځړول شوي وو . حضوري چمن هغه لویه ساحه ده جې معمولاً جشنونه په ساحه کې کېدل. د دواړو سړکونو په څنګ کې د نارون « ELms نبالګي ایښودل شوي وو چې شنه کېل او ګلدانونه هم ور سره لېدل کېدل. د شپې له مخې ، کله چې دا ګروپونه بوازي سړکونه رڼا کړي وو . نه دهغه تر شا غرونه چې د ختیو کورونه په کې جوړ شوي وو ، نو داسې معلومېدل چې سړي د اروپا به پراخو جادو کې وي.

امان الله خان هیله کړې وه چې هو ښمېر خلک به کندهار ، غزنی ، هرات او له ترکستان څخه کابل ته راولي ، چې د کابل په تنوېر شوو جادو کې وګرځي او په پغمان کې د لېندي په شان جوړو شوو ځایونو کې وګرځي ، د خپلواکي جشن ونمانځي او پر چوترو باندې کښیني او د موسیقي غږونکي ډلې موسیقي واوري. دا به دد ې پرتمېنو مراسمو یوه سیایي ننداره وه او امن الله خان هیله لرله چې له دې وزوسته خپل اړیکې تینګې کړي.

د مرکزي آسیا یو ویروونکی مرض، کولرا په کابل کی ولګېده او د امان الله خان پلانونه یې وځنډول. مرض دومره په شدت کی و چی د میوو خرڅول بند شول او هغو خلکو چی د میوو باغونه درلودل او په دي کال کی چی وچکالي هم وه، دخپلو میو له حاصلاتو څخه خوشاله وو. زیات زیانمن او ژوبل شول.

په هغه ورځ باندي چه خپله د جشن مراسم پرانستل، هغه په پغمان کی یوازي له یو څو تنو مشاورینو سره و. ډابس ورسره په هغه ځاي کی ولیدل، امان الله خان په دي وخت کی د یوي خیمه په څنګ کی چی شاوخوا یې خلاصه وه، دیوي جنغوزي وني لاندي ناست و او د ابو کوچنی مخزن ته یې کتل چی دري فواري یې درلودي. عبدالهادي او محمود طرزي هم ورسره وو. امان الله خان په ورین تندي سره د ټوکو ټکالو هغه کیسه کوله چی دده ترکی ډاکټر ورته کړي وي، چی د کولرا دمرض د پېچکاري کولو په وخت کی دی له احتیاط او دقت څخه کار واخستل شی. ترکی ډاکتر د کابل د لیدنی کتنی په موده کی ورته داخبري کړي وي. کله چی امان الله خان ګپ شپ لګولی و. مالګینه خوشبویی پزي ته کش کړه. دابو له احتیاطو نو څخه و.

دابه ملاقات په هغه وخت کی سرته ورسید، چی هیأت یوه ورځ دمخه په لندن کی له لارد کرزن سره ملاقات کړي و، او دیوي شیبی له پاره به له برتانیی سره یوه ښه و روستی ضمنی پېښه وه.

د ډابس دراتلونکی او ونیو توضیحات داسی و، «هغه ګډ وډ ي، چی په کی د امیر پارید نه خبري اتري شاته وغورځولی.» طرزي ورته احوال ورکړ، چی څو غلام صدیق له راپور سره له لندن څخه را نه شی، زه به کوم تصمیم ونه نیسم. ډابسی وویل، «زه فکر کوم چی دهغه راپور به هم یوه نه خوښوونکی اغیزه ولري»

لیکن طرزي زباتی په ناګهانی توګه مهم سړي نه و. امان الله له خپل خسر څخه لاس واخیست، چی زوړ سلاکاریی و، او ورته ویل به چی ترڅو کولی شی له دواړو خو اوڅخه دي کار واخلی، ډا بس تلګرام ورکړ چی، «نا دراود هغه ډله مشهور شوي دي، او په موقتی توګه یی امیر قانع کړي دي، چی طرزي په غلط آس باندي سپور شوي دي.» د نادر ډله په هر قیمت سره غواړي چی د طرزي پلان، چی د مساوي ګټو پلان و د دواړو خواو څخه بی اعتباره کړي او دهغوي ټولی پیسی یادي خواته کړي یابلی خواته.»

جمال پاچا بخاراته لاړ، چی دافغانی مال التجارت د بیرته ورکولو په باب خبري وکړي، چی د بخارا د له منځه تلو په وخت کی نیول شوي و. دي کار طرزي له یو ملګري څخه محروم کړ، همدا رازدي کار نادر وهڅاوه، چی د روسانو خیانت رسوا کړي، چی مال بیخی را ونه رسید او د بندرله لاري تجارت منع و، که څه هم د قره قلی پوستکی، غالی او و ریښم افغانستان ته او چاي، رنګونه او نیل روسیی ته زیات قاچاق کیدل. په کابل کی دبخارا دپخوانی پاچا موجودیت په منظم ډول دهغه دقسمت یادونه کوله چی دروسانو له لاسه ورته رسیدلی و. دبخارا پخوانی امیر له برتانویانو څخه و غوښتل چی که دپاچا یی دبیا ترلاسه کولو په مورد کی ور سره مرسته وکړي، مګر په مود بانه توګه داغوښتنه رده شوه. امان الله دخپل د سره مقرر شوي بلشویک څخه پوښتنه وکړه چی هغه د برتانیه په شان چی په مود بانه توګه ځواب ورکړي و، ځواب ورنه کړ.

سره له دي، په ترکیه کی مسلمانی چاري د پرمختګ په حال کی وي. د کمال پاچا لښکرد تاریخ په یو ډیر اوږد جنګ کی چی دري ویشت ورځی دوام یی وکړ، یونانیان یی لاري ته برابر کړل، مصطفی کمال د امان الله خان په شان لقب، چی غازي و، وګاټه.

په دغه ګډ وډي کی امان الله خان ډابس ته وویل، چی دي په ورسره مستقیماً معامله وکړي، او ورڅخه هیله یی وکړه چی د دي خبر و اترو یوه خبره هم د طرزي غوږ ته ونه رسیږي. که چیري ډا بس لیکلو ته مجبور شی، نو باید خپل مکتوب د بهرنیو چارو د وزیر په آدرس ولیکی، لیکن مکتوب امیر ته ورسید.

غلام صدیق خان، چی په یوه کښتی کی دهیواد په لور روان و، له یو سړي سره په کښتی کی خبري وکړي، چی دبرتانیه نماینده و. هغه وویل چی ولی خان ماته لارښوونه کړي ده چی له برتانیه سره دمعاهدي په کولو ټینګار وکړم، ځکه افغانستان یوازي د برتانیه په اتحاد سره کولاي شی دچارو په نړي کی قوي مقام ځان ته ونیسی. دهغه د هیأت غړي د روس له وهم څخه خلاص شول او خوشبخته وو، چی له هغو سره کومه معاهده ونه کړه که نه نو بالشویکانو به دوي پاک خوړل. «روسیه په یوه ناوړه حالت کی ده، او خلک یی له ابتدایی انسانانو ځینی لیږښه دي.»

هغوي په هغو حالاتو باندي خپه و وچی په انګلستان کی منظم اوسم شوي وو، سره له دي چی هغه هیواد چی پردوي باندي زیات تاثیر درلود، جرمنی و. به کابل کې ځوان سړی چې له

برتانيې څخه يې بد ووړل امان الله خان ته مشوره ورکړه چې له برتانيه سره دي بايد دده معاهده صورت ونيسي.

د سپتامبر په ۲۸ نيټه امان الله خان له ډا بس سره په يوازي صورت ملاقات وکړ چې نه ورسره کوم مشاور او نه کوم شاهد وجود درلود او پيشنهاد يې وکړه چې څنګه دي وګرځي. هغه به پيسې، وسله، مهمات او الوتکې چې دمخه له روسي څخه ترلاسه شوي دي، بيرته ورته ورکړي او نور به ورڅخه وانه خلي ليکن برتانيه دي بايد په وضاحت سره ووايي چې څومره مرسته دجنګ د پيښيدو په صورت کې کولې شي که له روسي سره دا جنګ صورت ونيسي او د نورو شيانو په ترڅ کې هغه دولس الوتکې وغوښتلې چې له دي جملې څخه دي څلور بايد سمدستي ورته تسليم کړي شي، ددې له پاره چې د خلکو اعتبار حاصل شي.

ډا بس وويل: «زه فکر کوم دا غير ممکن دي.»

امان الله ځواب ورکړ: «ما پردغو موضوعاتو باندي دقيق فکر کړي دي او بوه ته هم عاړه نه شم ايښودلې، افسوس چې زه خپل دزړه احساس د ايکس دشعاع په واسطه هم تا ته نه شم ښودلې. ته بايد پرما باندې اعتماد وکړې.»

امان الله خان، د خپل هيأت د لندن د چلند په مناسبت وويل، چې که روسيه خپلي خبري اترې ختمې نه کړي، نوزه به ددي واک ولرم چې ورسره د ديپلوماتانو او تجاري محصولاتو د تبادلې په باب نوي معاهده لاسليک کړم.

امان الله خان کټ مټ هغه شيان پيشنهاد کړل. چې برتانويان يې دري مياشتي د مخه غوښتل، ليکن اوس هغه په ډاګه سره خپل روسيي ترون لاسليک کړ او پيسې يې قبولې کړي. هغه لوبه چې امان الله خان هڅه کوله اجرايې کړي، دهغه د پلار او نيکه له اويو څخه ډيره سخته وه، په دي چې هغوي په بشپړه توګه د بوقدرت ترلاس لاندي وو. هغه په انګلستان کې، په ډابس کې د يو پلار څيره وليد له چې له هغه سره به دي په امن کې و، او هغه په ساده ګې سره فکر وکړ چې دي کولې شي، بيرته پخوانی محفوظ کور خواته وګرځي. کله چې افغانستان د انګلستان ماشوم و. هغه اوس يوځل بيا داشي زده کاوه چې ته نه شي کولې بيا کورته لاړشې، هغه نه شو کولې دزمري له شاڅخه ښکته شي.

ډابس خپلو آمرينو ته خبرتيا ورکړله چې، «دافغان روسي تحريک او لمسون به بدنامه شي.» او زه به امان الله خان پري نه ږدم چې له پوخوالې څخه ووځي.

دختیځ خواته، هند لاتراوسه دخپل آزادي په خاطر نا کرارو، او مسلمانان تر هند و اتوزیات سر گردانه معلومیدل، ډا بس وویل. « په دي دلیل سره زه په موجوده حالت کې د تیروو ختونو په پرتله داړیکو د شکولو په مورد کې زیاته خواشیني ښکاره کوم... له افغانستان سره داړیکو شکول به خطرناک عواقب ولري. »

هغوي د یوي میاشتی نه د زیات وخت له پاره مناقشه وکړه. امان الله خان یو ځلی د برتانوي هند نماینده، سر شمس شاه ته د ملاقات وعده ورکړه او تر هغه پوري یې په مهمانخانه کې یې انتظار پرینبود. چې د نادرله وروړ، هاشم سره، چې د جلال آباد والی و، دهغه د لوړ آواز تیلفوني مناقشي خلاصي شوي، او په پاي کې کله چې سرشمس شاه یې ځان ته را وغوښت، ورته ئې وویل چې همدا اوس مې په تیلفون کې هاشم ته په مباحثه کې ماتې ورکړه، هغه د ډیرو بس ربطو مطالبو په مورد کې خبري وکړي، د ملایانو په مورد کې هم خبري وکړي او هغوي یې په دي تومتې کړل چې له مذهب څخه د خپلو شخصي عواقبو په خاطر کار اخلي. هغه د اسلام په باره کې، چې دبشرپه گټه دي دملایانو په گټه، ډیري خبري وکړي. مگر هغو سوا لونوته راغې چې دده ته یې تکلیف ورکاوه. هغه خپلو پوښتنوته دوام ورکړچې، « ولی » برتانویان موضوع ځنډ وي؟ »

برتانویانو د ډیرو شیانو پیشنهاد ونه کړل، مگر دنقدي مرستو پیشنهاد یې نه کاوه، دنقدي مرستي پیشنهاد یې یوازي دروسانو دایستلو په صورت کې کاوه، چې نه یې غوښتل نور هغوي دلته وي، ډ ابس او دهغه هیأت د تلو آماده گي نیوله.

دمخه تردي چې ډابس رخصت شي، امان الله خان هغه څو ځلی، د ملاقات له پاره خپلی مانۍ ته را وبلل، یوازي محمود سامي ورسره و. وروسته، څنگه چې امان الله خان پرطرزي باندي اعتماد کول بې بس کړه، هغه به د مباحثې له پاره یوتل زوړ سړي، چې محمود سامي نومیده، او په یو وخت کې یې دهغه ډیر احترام کاوه، راوست محمود سامي دهغه دحربي ښوونځي استاد و هغه چې دخپلې مورله نفوذ څخه بیل شوي و، تر او سه یې د یوقوي پلار هیله نه لرله.

عصبي دردونو، نه ویشت کلن امیر ته تکلیف ورکاوه، آرام خوب به یې شوکولی، هغه په یو مجلس کې یو غرپ چاي څښلو او وچ کرپند وکي به یې په غابښونو شکول او له چا یو سره به یې خوړل او ویل به چې نن مې هیڅ شي نه دي خوړلی، ډیر مجلسونه ، یوازي له محمود

سامي، ډابس او دهغه له همکار پسپون (Pipon) سره صورت ونیوه، امان الله خان دغه نظر ته دوام ورکړچې طرزي دموضوعاتو په باره کې هیڅ نه پوهیده. ډا بس په دي کې شکمن و.

د نوامبر په ۱۵ نیټه د شپې په لسو بجو او پنامه ځلوېښتو دقیقو دیوې خاص ورځې له یوولس ساعته خبرو اترو وروسته امان الله خان وویل چې له معاهدې سره خوښ یم. لا سونن وپرقول، محمود سامي، ډا بس او پیپون هم لاسونه وپرقول.

بله ورځ محمود سامي وغوښتل چې نوې ښځه وکړي. امان الله خان په ارګ کې د شپې میلمستیا ترتیب کړه چې دي کارد محمود سامي لوړوالی او سلطه ځرګندوله، ځکه چې امان الله خان دخپلی زده کړې د دورې عسکري یونیفورم و اغوست، ناوې امان الله خان خوښه کړې وه، چې محمود سامي بیخي لیدلې نه وه. امان الله خان خپل استاد جنرال ته وویل چې ناوې په پوه پښه ګوډه او سرېې بیخي ګنجي دي هر وخت به چې زوم دمسخرګی او نا امیدي داخبرې اورېدلې، خپل لاس به یې پر تندې واهه، زګیروې به یې کول او سترګی به یې د آسمان په لور پورته کولې.

ډېرو خلکو فکر کاوه، چې محمود سامي یوبې ذوقه انسان دي، طرزي ته دداسې یو سړي دواده د مرا سمو نندارو کول، چې موقف یې ورڅخه اخیستی و، دردونکی و. طرزي په دي واده کې خپه ناست و، او کله چې له برتانوې هیأت سره یې خبرې کولې، نا ارامه غوندې معلومیده. متاسفانه چې طرزي د ډوډې په وخت کې له محمود سامي سره په یومیز سره ناست وو. زوم د نادر هم نه خوښیده، لیکن هغه او ورونه یې راغلي وو او له ډا بس سره یې ګپ شپ لګولی وو. د هغوې د کورنی دړه تنه ډېر سخت ناروغان وو او د برتانیه د هیأت ډاکتر دهغوې علاج کړې و. نادر ډېر زیات خوښ و.

هیأت درناوې په باره کې پوښتنه وکړه، چې برتانویانو غوښتې وه، امان الله خان وویل چې د ارناوې دورکولو په مورد کې پرما باندې فشار وارد شوې و، چې ویې منم. ارناوې یوه سرحدي سیمه ده چې د امیر عبد الرحمن له خوا د تورخم په عوض چې په خیبر دره کې دي، له چترال څخه نیول شوې و،

هیأت ډېر زیات په غصه شو، دهغه ځینی غړې امان الله ته وویل چې تا په هره نقطه کې لاره ورکړې ده.

د نوامبر په ۲۲ نیټه ډا بس او طرزي معاهده لاسلیک کړه. هغه چې له طرزي سره خبرې

کولی، دخبرو په ترځ کي ورته دهغه یو طنز څرګند کړ چی دمبارکی په واسطه امیر ته ویلی وو، چی وکولی شو، د بهرنیو چارو د دفتر د مرستی په غیر تر آخره پوري د معاهدي ملاتړ یې وکړي و. ډا بس په خپلو خبرو کی وویل چی د تورخم او ارناوي د تخلیه کولو کار به په یووخته کی تر سره شی. افغانی هیأت وویل چی موږ په دي مورد کی هیڅ معلومات نه لرو. هغوی په مناقشه پیل وکړ - مګر ډا بس وویل چی امیر په ځانګړي توګه دارناوي په مورد کی له خپل ادعا څخه تیر شوي و، تیول د باندي ووتل، چی عکسونه یی واخستل شی.

طرزي تینګار وکړ چی هغه اوډا بس دي باید له امان الله سره خبري وکړي. امان الله، هغه موافقه رد کړه، چی د ډابس پښنه په کی وه، هغه وویل: «ما خپل هیأت پوه کړي و، چی د افغانستان په مورد کی دار ناوي په ساتلو کی به هیڅ کومه مناقشه صورت ونه نیسی، پر ددي تفاهم سره ما دټولی معاهدي په باره کی دهغوي رضامندي حاصله کړي ده.»

امان الله خان له یوه امتیاز څخه تیر شوي و، چی ممکن له هغه څخه کار اخیستل. د هغه مطلقه حکمروایی، دهغه پلار ده، او نیکه ځان ته دومره تکلیف نه ورکاوه، چی د چا رضامندي حاصله کړي.

امان الله خان ډا بس ګوښه کړ او خپلی ستونزي یی له هیأت سره ورته بیان کړي اووي وویل، «ترڅو چی تا سو ما ته مکتوب رانه کړي، چی په کی دارناوي سوال حل وي، نوزه به دا معاهده په ربښتیا سره بی اغیزي او بی ارزښته اعلان کړم، که څه هم چی معاهده می دمخه خلکو ته خپره کړي ده.»

وروسته محمود سامی د امان الله خان په نماینده ګی له ډا بس سره خبري وکړي، او ورته وویل: «که چیري امیر اوس له خپلی هغی موافقی څخه اوړي، چی موږ په ډاګه ورباندي پوه یو... د برتانیی د حکومت ټولی هیلی به، چی له هغه سره د پراخی پالیسی په مورد ګی مرسته کوله، او هغه هم ورته زړه ښه کړي، له منځه لاړي شی... برسیره پردي د افغانستان حیثیت ته په داسی موتی کی چی د نړي سیاست ته د داخلید و په لومړي پړاو کی دي، بی احترامی وشی»

دهیأت په ویاړ، د مخه ښی میلستیا ترتیب نه شوه، طرزي د معاهدي په باره کی تشویقی خبري پیل کړي، او د تجارت وزیر، چی ږډ غړید و نکی غلام محمد و، په خبرو کی مداخله وکړه او وي ویل، چی زه تر دي معاهدي جنګ ته ترجیح ورکوم داسی یی وښودله چی فکر کوي دا یوه

تیوکه ده. هغه په هرحال د طرزي پر تبصرو باندي شک کاوه، هغه دامناسبه گڼله چی طرزي به په دي خوښ شي، چی معاهده له خطر سره مخامخ شی، په دي خاطر چی امان الله خان ته وښیی چی دي بی له هغه څخه کارونه پرمخ نه شی بیولی. دابس وکښله، «له بلې خوا، د نادرخان د ورونیو تپوله ډله له لاري گرځیدلی دي چی په معاهده کی خوښی څرگنده کړي او په دي وروستیوکی په تکرار سره شخصی مخابري کوي. دا زماله پاره غیر ممکن دي چی له څوو رځو څخه زیات تم شم، ځکه چی ددا سی یوي هیلی نښی نښای شته دي چی د تلونکی میلمه په مورد کی له بیړي څخه کار اخیستل کیږي، او که چیري مورږ د لازم حد نه زیات تم کیږو، نو خپل ځان به سپکوو. دغه حرکت چی پیدا شوي دي، یوازي تر او سه د یوي وړي حلقی خلک وړباندي پوه دي او هغوي چی ددي حلقی څخه د باندي دي، په دي قادرنه دي چی د تگ په معطلی باندي پوه شی. » برتانوي هیأت نژدي یوولس میاشتی په کابل کی و.

د امان الله خان د ستونی تکلیف، چی پرسوب یی ښکاره معلومیده، دومره بد حالت یی ځان ته غوره کړي و، چی ډاکترانو دهغه د عملیات تصمیم وتیو.

په هغه وخت کی چی امان الله خان عملیات شوي و، دارناوي تپولی پوښتنی د ځینو قبایلو بانو له خوا دهغه له لاسه واخیستلی شوي، چی امان الله دهغوي دهوساینی لیوال و. داقبایلی کسان هغه وزیرو و. چی له برتانیی څخه یی پناه راوړي و، او په افغانستان کی یی دځمکی غوښتنی کړي وي، یوازي یوه میاشت د مخه امان الله خان هغوي د شاه جوي په سیمه کی میشته کړي وو. په دي وخت کی ددغو خلکو له جملی څخه دوه سوه او پنځوس تنه لازمه وگڼله چی دبندر په آخوا په بار شورکی د برتانیی پر سیمی باندي برید وکړي. څلویښت تنه سربازان او دوه تنه برتانوي افسرن یی ووژل، یوه کلا او ځینو کلیو ته یی اور واچاوه او بیا په ډاده زړه بیرته خپلو کورو نو ته واپس لاړل.

امان الله خان دخپل معالج ډاکتر د مشوري پرخلاف، ډا بس ځان ته را وباله، دي پر یوه بازو داره چوکی باندي ناست و، او پرده چپن یی په تن کی اوستونی یی تړلی و هغه په یوه نرمه لهجه وویل، چی ماشپه او ورځ کاروکړ، څونړي ته وښیم چی افغانستان یو متمدن او دعزت خاوندیو هیواد دي، خودي قضیی زه تقریباً د هغو خلکو او مامورینو څخه دلسرده کړي یم، چی نه پوهیږي گټه یی په څه شی کی ده، هغه له ارناوي څخه په دي شرط سره لاس اخیستی و، چی هیڅ ډول استحکامات دي په هغه ځای کې جوړ نشی. هغه وویل، زه به خپل شاهانه خبرې خندا له لویی برتانیی سره به دخپلی دوستی د پالیسی په تعقیبولو کې ثابت قدمه و اوسم. »

دیوي وقفي په جریان کی کله چي ډابس له کوټي څخه ووت په هغه اثنا کی چي امان الله په تیلفون کی خبري کولی، محمود سامی له ډابس څخه وغوښتل چي دهغی لومړي بهرجی الوتکی د تحفی وعده دي ورکړي، چي د امان الله خان زړه په کی بندو. هغه وویل چي ﻻ دي او نادرشکمن دي چي دا روسی بخ شش الوتکی خوش اوپخوانی دي، چي د پیشکش کولو په خاطر ورته رنگ ورکړشوي دي، لیکن بیخی بی فایدي دي. ډابس وویل داشی بیخی په پام کی نه ونیول شوي، فضا، لکه څنگه چي دي توضیح کړه، په «ه تشریح د یدونکی توگه دوستانه» پاته شوه.

هیأت په یو دربارکی خداي په امانی وکړه، چي امان الله خان په کی یوه قبا اغوستی وه، چي په دو افغانی ستوري ډولونبا نو نو سره ښکلی کړي شوي وه. هغه ډا بس ته یوه دسرو زرو پیاله او یو نالبکی او یوه سرو زرو ساعت سره له بنده ورکړل. یو ساعت پسی خبري وشوي. وروسته امان الله خان سمد ستی پورته شو، او په داسی حال کی چي بی د یاد داشت له مخی خبري کولی، وویل، «په دي کی شک نشته چي دغه اړیکی دوستانه نه دي، لیکن د دوستی او گاونډیتوب له مخی دي... تاسو باید هیڅکله فکرونه کړي، چي افغانستان به ستاسو دوست وي، په هغه صورت کی چي نور اسلامي هیواد ونه له تاسو سره په ستونزي کی وي، یا داچي که تاسو زمونږ دمقدسه اماکنو د دودو تو پرضد عمل وکړي، نو دافغانستان دحکومت او سیدونکی به بی تفاوته پاته نه شی. په هند کی هم باید تاسو خپلو کړوړو ته متوجه و اوسی.»

دانگستان حکومت په غضب شو او وي وویل: «امیر به په دي باندي پوه شی چي خپلواک زمامداران د نورو زمامدارانو پر داخلی سیاست باندي انتقاد نه کوي.» او: «زه په پراخه توگه فکر کوم، چي د افغانستان دنوو چارو په سمولوکی، دا پوره یوه تحقیر آمیزه تجربه ده، چي مونږ باید د افغانستان د امیر توضیحاتو ته غوږ ونیو چي زمونږ حکومت دي په هند کی څه رنگ سلوک وکړي.»

د ۱۹۲۲ کال د فبروري په شپږمه نیټه معاهده په کابل کی تصویب شوه.

افغانانو غوښتل چي ډا بس دهغوي لومړنی برتانوي وزیرشی، مگر ډا بس دا خبره په دیپلوماتیکی جملو سره رد کړه، چي دا هم حقیقت درلود: هغه یوي اوږدي رخصتی ته ضرورت درلود. ستوارټ پیرز ( Stewart pears ) تاکل شوي و، لیکن امان الله خان وویل، «د غلام

صدیق خبري او را پورونه ددي باعث ګرځېدلي دي، چې دولي خان نوم، په دیپلوماتیک انعکاس سره، زما او زماد خلکو په غوږونوکي دومره نه شلیدو نکي اړیکي ولري، چې ولي په لندن کي هغه تأیید کړي، که څه هم زه دهغه ډیر افسوس کوم، زه باید د یو بل نود پېشنهاد هیله وکړم. »

ډا پس توضیحات ورکړل چې، « پیرز یوازي امرونه اجرا کول. »

امان الله خان په توندي سره وویل، « زه به په هیڅ صورت سره دهند د ملیت نماینده ونه منم، دا به داسي ښکاره شي، چې زه تر اوسه پوري دهند ترلاس لاندي یم. »

څو تنه برتانوي مامورین په فکرکي ونیول شول. هغه چاچي دا وظیفه زیاتره غوښتله، ډیر لږ کفایت یې درلود او یوازي یوډ ګروال و، لیکن په پاي کي فرانسس همفریزه د خیبر پخواني سیاسي نماینده، په افغانستان کي دلویې برتانیه لومړني مختار وزیر مقرر شو، هغه د ۱۹۲۲ کال د فبروري په ۲۵ نیټه له بندر څخه راواوښت، هغه او دهغه د دفتر غړي باید په دي مناسبت یوه میلمستیا ورکړي واي، چې یې له دي چې ووژل شي په کابل کي شپږ اووني پاتي شي. (۵)

عبد الهادي د امان الله خان د مختار وزیر په توګه لندن ته معرفي شو، برتانیویانو هغه ډیر زیږ او مخالفت امیزه سړي په توګه ونه مانه، کرزن وهڅول شو چې د پیرزدنه منلو په خاطر هغه ونه مني، لیکن دلار دریډنګ خبرتیا خپره شوه چې، « په افغانستان کي پدي مورد کي کوم مناسب سړي زموږ په نظرکي نشته. » دوه خپلواک هیوادونه مختار وزیران سره تبادله کړل.

258

# يوولسم فصل

## ۱۹۲۳، م كال

امان الله دي ته اړو، چې سرحدي قبايلو ته دخپل صلاحيت په هكله يادونه وكړي، او ورته ووايي چې ده د افغانستان له پاره څه په فكر كې لري. هغه چې پټكې يې تړلي و، افريدي څوكه وربوتان يې په پښو كړي وو، څادر يې پر اوږو باندي اچاوو، په ۱۹۲۳ كال دفبروري په ۲٦ نېټه د جلال آباد په يوبڼ ى دخپل پلار د مقبرې په شاو خواكى څلور زره تنه افريدي او مومند راټول كړي وو، وويل، «په ربښتيني ځايونو كې دي بايد ربښتيني وعدي صورت ونيسى.»

هغه په پښتو ژبه خبري كولى، چې د ختيځو قبايلو ژبه وه، او په څو مياشتو كې يې زده كړي وه او اوس يې په ښه وجه محاوره كولاي شوه، هغه وويل چې پښتو دي بايد د ټول افغانستان ژبه وگرځي، د درباري فارسي ژبې ځاي دي ونيسي چې قبايليان سره متحد كړي، پښتو يوه پېچلې ژبه ده، چې په خپله د افغانستان په شان د ډيرو هغو ژبولە اجزا وڅخه متشكله ده، چې په غرونو كېورباندي خبري كيږي.

امان الله خان په ربښتيا سره ځان وقف كړي و، چې د خپل قدرت په چوكاټ كې به د خپلو خلكو د دين او آزادي په مقابل ى ودريږي. د هغو كسانو په وياړ، چې د دې په سيمه كې د استقلال په جنگ كې برخه اخيستى وه، نوي يادگاري ځلي جوړ كړ، هغه يوڅه گلان پر دغه ځلي باندي وشيندل او قبايليانو هم داكارو كړ.

امان الله خان په جګ آواز سره وویل، «الله اکبر، الله اکبر!» دا د افغانانو د جنګ شعار و، هغه وویل، «زما و رونو، که څه هم زه غواړم له تاسو هریو سره بیل بیل روغبړ وکړم، مګر وخت اجازه نه راکوي او له بلې خوا تا سو ته هم تکلیف کیږي، نو په دې اساس د هغه کار پرځای ستاسو له مشرانو سره روغبړ کوم او هغوي ښکل کوم او تاسو په خدای سپارم.»

بله ورځ امان الله خان په قصر کې یوه جرګه جوړه کړه، چې په کې دا توسوو په شاوخوا کې د شینوارو، افریدو، مومند و، خوګیانو، غلزي، او د ننګرهار د وزیرو د قبیلو منتخب استازي سره را ټول شوي وو. په دې جرګه کې څلور جاسوسان، چې برتانویانو په خاص ډول سره، له هند څخه راغوښتي وو، هم ګډون کړي و، چې د هغوي دعا دې جاسوسانو کارونه بشپړ کړي، هغوي دې کار ته خاصه توجه وکړه، ځکه هغوي ډاریدل چې چون په دې جرګه کې د هغوي د سیمې قبایلیان هم ګډون درلود، چې د هغوي په کارونو کې د کوم عکس العمل د پیدا کولو موجب ونه ګرځي، هغوي په تیره بیا دې کار ته متوجه وو، چې امان الله خان هغه قبایلي سړي، چې د برتانویانو یو صاحب منصب او د هغه میرمن چې وژلي وه، څه قسم پاملرنه کوي.

امان الله اعلان وکړ چې نظامنامې به لولي، چې د افغانستان د قوا نیو د مجموعې په توګه د یو کال څخه څه زیات د مخه ترتیب شوي وه او د لومړي ځل له پاره په رسمي توګه هغه ډول قوانین یې منځ ته راوړي وو، چې د مذهبي قوانینو په شان نه وو. هغه وویل، زما مقصد دادې چې ستاسو له خوازه یوه شم چې آیا زما مامورین په راتلونکې کې زما لارښوونې به تعقیب کړي که نه.

امان الله دري ساعته نظامنامې ولوستلې او هغه به یې تشریح کولې.

یو برتانوي قبایلي سړي چې د یاغیتوب سابقه یې لرله په خبرو کې مداخله وکړه او د خپلو قبایلي ملګرو له پاره یې د مرستې غوښتنه وکړه.

امان الله خان وویل، «دا له نظامنامې سره کوم ارتباط نه لري.» او لوستلو ته یې ادامه ورکړه.»

وروسته یو حضرت چې د چارباغ د یو مشهور حضرت و رورو، په خبرو کې مداخله وکړه او وي ویل، «داسې ښکاري چې دا نظامنامې اسلامي شعایر زیانمن کوي.» امان الله خان خپلو لوستلو ته دوام ورکړ.

کله چې له لوستلو څخه خلاص شو، هغه پوښتنه وکړه چې که پرده او دده پر ماموړینو

باندي کوم انتقاد موجود وي، مهرباني وکړي راته يې ووايي، لومړي سړي چې خبري وکړي، پاچاګل نوميده، چې له درو زامنو څخه يو سړي و، تېلود ترنګزو مشهور حاجي، بوشانتي نومونه درلودل. د ترنګزو حاجي اته کاله د برتانيي پر ضد فعاليت وکړ، دهغو خلکو کوروتو ته به يې، اورا چاوه چې په زياتي خوشحالي سره يې له فاتحينو سره همکاري کوله، پاچاګل پيشنهاد وکړ، چې څومره چې امکان ولري د قبايلي جرګی سره دي بايد مرکي وشي. امان الله خان موافقه وکړه چې دابه کاردي.

يوبل سړي پيشنهاد وکړ چې څرنګه چې افغانستان اوس يو خپلواک هيواد دي، د هغه واکمن بايد د سلطان لقب ځان ته حاصل کړي، امان الله خان ځواب ورکړ چې زه دغازي امير لقب ته ترجيح ورکوم، ليکن که چيري خلک غواړي چې زه سلطان و اوسم، نو سلطان به يم.

يو افريدي غوښتنه وکړه چې دهغوي د ماشومانو دښووني او روزني ترتيبات دي ونيول شي. امان الله خان ورته وعده ورکړه چې زه دا په فکر کې نيسم.

د دي مجلس په پاي کې، حتى ځيني قبايليان چې له امان الله خان ځني يې له برتانويانو څخه د عمومي بخښني د غوښتني د ناکامي په وجه ترخه خاطره درلودله، د دي نوي واکمني له پاره خپله ليوالتيا څرګنده کړه. امان الله خان په ظاهر کې ځان د افريدو په شان ګرځولي و، که څه هم د هغه د پام وړبريتونه او دهغه تيزکتل داسي څرګندول چې هغه افريدي نه دي. هغه احترامانه خبري کړي وي او په خوا خوږي سره يې هغوي ته لوته د ميراني او وقار درجي ورکړي.

بله ورځ نا درپرخلکو باندي پيسي وويشلي، ځيني ضميمتونه له منځه لاړل. ځکه چې پيسي د پخوانه کمي وي. يوه ډله ديو افغاني مامور د تنبتو لوپه وجه خپله نارضايتي وښودله، چې هغه يې وروسته خوشي کړ. امان الله خان په داسي حال کې چې خپلي افريدي جامي يې اغوستي وي، دقبايليانو په ځينو وړو کنفرانسونو کې يې ګډون وکړ، يوازي يوملا هغه وپيژاند.

بله ورځ چې امان الله په سرحدي سيمه کې په سفر پيل وکړ، برتانويانو په خيبر کې داورګاډي پټلي غزوله، چې دانجيري يوه ماهرانه کار نامه وه، ځکه چې د اورګاډي پټلي به يوځاي کې په غرونو کې پټه پاته کيده او وروسته به څرګند يدله او د غرونو په څنګ کې به معلوميده، دا داورګاډي هغه لاره وه، چې برتانويانو غوښتل د خپلواکي دجنګ څخه دمخه

افغانستان ته تیره کړي، داکار بوازي له هغه څخه وروسته پیل شوي وکله چي امان الله هغوي ته وښودله چي دخپل پلارپل نه تعقیبوي. »

د اورگاډي زیات کارونه دهغو کارگرو او خوار یکښو له خوا ترسره کیدل، چي د سرحدی په دواړو خواو کی يي په ټیټه طبقه کي قرار درلود. او وظيفه يي داوه چي دشتمنو خلکو مالونه له یوځاي څخه بل ځای ته یوسي. امان الله خان چي بیا يي خپلي افريدي جامي اغوستي وي له کرښي څخه وا وښت او د برتانیه سیمی ته داخل شو، دغوکارگروته لاړ او ځان يي ورته معرفي کړ، له هغوي سره يي روغبړ وکړ اولاس يي ورته ورکړ، له هغوي سره هېڅ کله د داسي يونامتو سړي له خوا داسي وضعه نه وه شوي، ځينو ته له خوشحالي نه ژړا ورغله.

په دي کار سره برتانوي مقامات خپه شول او وي ويل چي دافغانستان امیر پروتوکول تر دي حده له نظره وغورځاوه چي بي له کومي خبرتیا څخه زموږ سیمي ته داخل شو، لیکن هغوي ته معلومات حاصل شوي و، چي امان الله خان خوشحالیده چي هغوي خپه کړي.

څه موده وروسته، امان الله خان دسهار په دري نیموبجو، له ملکه ثریا، عنایت الله او خپل سکرتر سره په موټرکي کښیناست او بي له دي چي چیري توقف وکړي، دکابل په لور روان شو چي خپل هغه مامورین سر زنش کړي چي دامان الله خان توقع يي نه کوله. امان الله خوښ و، چي هغوي هم له موازني څخه وغورځوي.

دامهمه خبره وه چي نظامنامي په جلال اباد کي ددوه دلیلونو پر اساس ودرولي شوي، چي یوبي دښمن او بل يي نه گټیور توب و، په نظامنامو کي یو معمولي افغان ته زیات حق ورکړشوي و، ځيني شيان په نظامنامو کي هغو خلکو ته ورته وو، چي په لویدیځي نړي کي خلکو د حق دغوښتلو په خاطر له پاچاهانو سره مخالفت او جگړه کوله. قانوناً، یو افغان ترهغي شیبي پوري هيڅ حق نه درلود.

ځيني شرطونه په کي داسي وو:

« د میلو او نوروشیانو په واسطه شکنجه ورکول په مطلق ډول منع دي، داسي عذابونه صرف دملکي او نظامي دجزایي قوانینو دمجموعي په حکم تحمیلیدي شي. »

« دټولو افغاني اتباعو کورونه او دهغوي هستوگنځي له تعرض څخه مصئون دي او هېڅوک دحکومت یاد عوامو له خوا په زور سره دچاکورته بي له اجازي دننوتلو حق نه لري، مگر په یوشرط سره چي قانون ورته اجازه ورکړي وي. »

«درغا یاو آزادي له هر قسم تعرض څخه مصئونه ده. پرهیچا باندي به تهدید او محدودیتونه په زور سره باید تحمیل نه شي، مگر په یو شرط سره کیداي شي، چي په اسلامی او اداري اصولو برابر وي. په افغانستان کی غلامی په مطلقه توگه منع ده او هیچا ته داحق ورنه کړل شی، چی کومه ښځه یا نارینه د غلام په توگه استخدام کړي.»

«افغانی اتباع کولی شی په گډه سره یا په ځانگړي توگه د یو مامور یا کوم صاحب منصب پرخلاف حکومتی ادارو ته شکایت وکړي، که چیرې پوه شی چی داما مور یا صاحب منصب د اسلامی او حکومتی مقررا تو پر خلاف عمل کوي. اما که چیري حکومت د دوي شکایت ته کومه توجه ونه کړي، نو داخلک دي باید دهغوي لوړو مقامونو ته مراجعه وکړي، که هغوي هم د دوي شکایتونه وانه وري، نوراساً دي پاچا ته مراجعه وکړي.»

دغسی قوانین او دهغو تطبیقول، په روم کی افغانی وزیر مختار، سردار عظیم الله خان یی دي ته وهڅاوه، چی د برتانیه د سفارت په یوه مرکه کی، په خواشینی سره د «امیر عبد الرحمن ورځی را یادي کړي کله چی هرسهار شل دیرش تنه وژل کیدل او وروسته به د مجرمینو پر اوږو، پښو او لاسونو باندي زنځیرونه باریدل، حال دا چی اوس یوازي یو ساده زنځیر په پښو کی اچول کیده، چی په څرگندډول ډیر تفاوت یی درلود.»

په بازارو نوکی هم دامیر عبد الرحمن په وختونو باندي د تاسف خبري کیدي، زیات جرمونه کیدل، ځینو کسانو ددي کار تاثیر هغه شي گڼلو چی امان الله په اردو کی کمښت منځ ته راوړي و، «داد قلم وخت دي نه دتوري،» دا هغه خبري وي چی امان الله خان به عام او خاص ټولو ته کولی- د دي له پاره چی ډیر کسان بیکاره وو، لیکن زیاتر و کسانو ته، او ټولو هغو کسانو ته چی دقانون دجاري کولو له پاره یی کار کولو، دادټولو اصولو او مقرراتو ثمرو، چی لږي ظالمانه تیروتنی یی درلودي او په دي توگه یی له مجرم څخه یو نه ویریدونکی سړي جوړ کړي و.

چور، چپاول او داړه ماري زیاته وه. دهزاره جاتو دغرځایونو په سر باندي د هزاره گانو او غلزیو ترمنځ پخوانی دښمنی پیدا شوه. په کابل کی ترهر وخت زیات دبازارونو او دوکانو نو لوټ کول پیل شو، دیغمان په لاره کی د امیر یو محافظ ووژل شو.

کله چی په کندهار کی یوه ځوانه ښځه دهغه ولایت د حکومت په مقابل خپله دغلو ډله جوړه کړه، نو په هغه ځاي کی سختی غلاوي شروع شوي. هغی ځان ته د «اسحق زي» لو رویله،

او والي ته يې احوال ورکړ چې ستا حاکميت ختم او زما پيل شوی دی. هغه منطقه چې دي ښځې له هغه ځای ځخه والي ته پيغام استولی و، ځلورميله د کندهار دشمال خوا ته ليري پروت و. دي ښځې د حربي، مالياتي، عدالتي، او د عمومي مصئونيت ځانګي تاسيس کړي، او داسې برياليتوبونه يې ترلاسه کړل، چې د ېرژرد پنځوسو و ځوانانو نارينه و مشره شوه، او په داسې حال کې چې د مصر د ملکي د افکار وپيروي يې کوله، چې ږيره يې ځان ته جوړه کړې وه، چې د نارينه و په تمثال کې خپل قدرت وښيي، خپل نوم يې بدل کړ او پرځان يې د ( سردار پاچا ) نوم کېښود. په پای کې د کندهار مقاماتو تصميم ونيو چې ګرفتاره يې کوي، مګرد پوليسو او عسکرو ترمنځ نښته وشوه چې څوک د اعمل اجرا کوي، دهغې سيمي يونظامي صاحب منصب په سمه توګه اعلام وکړچې، «داد عسکرو له وظيفو څخه نه شميرل کيږي، چې په ښځې پسې ولاړ شي.»

په پای کې يو پوليس راضي کړي شو چې په بدله جامه هغې ښځې ته لاړشي او ورته ووايي چې په باند کې يې شامليږي، او بيا دا ښځه (سردار پاچا ) ووژني، دهغې ورور، چې نيول شوی و، په توپ کې والوزول شو، چې توټې توټې شو، دا هغه ډول جزا وه چې برتانويانو په ۱۸۵۷ کال کې هغوی ته د هند د شورش په مقابل کې ورکوله، او دامان الله په اسلافو کې تردې حده پوری يې عموميت پيدا کړی وه چې هر کله به چې په کابل ی د غرمې نه پرته د توپ غږ اورېدل کېده، نو خلک به پوهيدل چې کوم مجرم په توپ کې والوزول شو، سره له دې، د توپ غږ نوروته ويرونکی نه و، ځکه چې دا ښځه يوازې له هغې وروسته چې ميړه يې کټ مټ په همدې توګه ووژل شو، خپل دا ډول مسلک يې پېل کړی و.

دکندهار نايب الحکومه، چې د پوليسو له اعتصاب سره مخامخ و، پر هغو قيودا تو باندې بحث کاوه، چې دامان الله خان دنظامنامو له مخې ورباندې تحميل و، چې ترڅو پوري چې عيني شواهد وجود ونه لري، څوک چا ته جزا نه شي ورکولی، حال دا چې پخوانی اختيارات يې زيات وو. داشې هغو سوداګروته چې يې شکايت کړي وو، قناعت ورنه کړ. هغوي والي ته وويل، چې که وضعه ښه نه شوه، نو اميرته به مراجعه وکړي.

خلکو، امان الله ته عرض وکړ او هغه خپل ملايمت لږ تر لږه د يوځل له پاره وځنډا وه، د برتانيې د نظامي آتشې په يادداشت کې دا نه هيريدونکې پيښه داسې تشريح شوې وه:

« نژدې درې میاشتې د مخه د خزانې یو صندوق چې په کې له یو لک روپو څخه زیاتې پیسې وې او د خوست کمېسارۍ ته وړل کېده دلوګړ په لاره کې ورک شو.

« پنځلس تومنې کسان لاس تړلي کابل ته راوړل شول. د جرم کشفونکو موظف سړي وروسته راپور ورکړ چې د دې قضیې په مورد کې د نظامنامو تطبیقول موضوع غیر ممکنه کړې ده. وروسته امیر په بې میلې سره موافقه وکړه چې د پخوانې طریقې څخه دې کار واخستل شي، بازارې خبرونه داسې وو، چې یو له هغو پخوانیو طریقو څخه داوه چې مجرم دې تیل داغ شي، چې د دې خبرې په نتیجه کې ټوله خزانه سمدستي د پولیسو د قوماندان دورا ره په باغ کې پیدا شوه. »

ملایانو له نظامنامو څخه بدوړل. هغوی فکر کاوه چې داهیڅ د یوتن کار نه دی چې هغه قوانین جوړ کړي چې په خدای (ج) پورې اړه ولري. هغه قانون چې د پیغمبر (ص) له خوا جوړ او دسره ترتیب شوی و، د شریعت په نامه سره یادیږي، او ملایانو داقانون ترجمه کړی و. د نوی قوانینو مجموعه د هغوی قدرت کم کړی و.

د همدغې ورځې په ماښام، د جلال آباد په یوه مانۍ کې، امان الله قبایلیانو ته په یوه وینا کې وویل چې زه به ستاسو مذهب له هر یو دښمن سره مقابله کړم- هغه د یوې ډرامې ننداره وکړه چې د ښوونې او روزنې او له خوا رانو سره د مرستې په منظور ښودل کېده او ګڼ شمیر مامورین او کورد یپلوماتیک ورته د سلو روپیو د ټکټ په بدل کې راغلي وو.

دا موضوع چې د ترکبې قانون پوه بدرې بې (Bedri Bey) له خوا، چې نظامنامې یې هم تالیف کړې وې، د یوه شهزاده معنوي سقوط پورې اړه درلوده، چې خپله مسلمانه ښځه طلاقه کړې وه، د دې له پاره چې یوه اروپا یې لوبغاړې ځان ته نکاح کړي. د ښځې لوبغاړې رول د یوې جرمنۍ ښځې له خوا چې په حکومتي دستګاه کې یې کار کاوه اجرا کېدله، مسلمانې ښځې چادرې په سر کوله.

په یوه صحنه کې، یوه ملا د یوغټ شریر ملا په څیر انځور شوی و، چې په څرګندېدول د ټولو ملایا نو د تخریبولو د اصلي نمونې په توګه اجرا کېدله. امان الله خان دغه صحنه خوښه کړه او خپله خوشحالي یې وښودله. نورو ننداره کوونکو هم دا صحنه خوښه کړه. ایرانی وزیر په ځانګړې توګه خپل تعجب څرګند کړ، چې داسې نمایش به په تهران کې غوغا جوړه کړې وای، او افغانستان چې د تعصب سرچینه ده دلته باید ونښودل شي.

بله ورځ ملایانو د جمعې په ورځ له ممبرونو څخه، د ډرامې پر هغې صحنې باندې، چې

مذهب ته یې په سپک نظر کتلی و، وعظ وکړ، په پاي کی امان الله خان ځوتنه ملایان پیدا کړل چی تردي حده پوري دهغه دسیاستونو پر خلاف په آزاد ډول خپل مخاصمت ښودلو. امان الله دهغوي نه ځوتنه بندیان کړل. دغوملایانو دوه سترشکایتونه درلودل: د اروپاییانوله خوا د ځوانانو روزنه چی داکار د مذهب اساساتو ته کلک تاوان رساوه، او دښځو دنامنا سبو ازاد یوله پاره هلی ځلی، کله چی امان الله په جبل السراج کی د بریښنا له مرکز څخه لیدنه کتنه کوله، دکوهستان یوشمیر مشهور و ملایانو سره یې هم ولیدل او هڅه یې وکړه چی د خپل سیاست په مورد کی هغوي ته یوځل بیا ډاډ گیرنه ورکړي اووړته وي ویل چی زه په دي فکر کی نه یم چی اسلام تخریب کړم.

دامان الله د نظرتیکی داو چی هغه په خپل لوظ ولاړو چی دقبایلو د مذهب پرضد به هیڅ کوم اقدام نه کوي. دهغه له پاره، دغه ملایان مذهب نه و.

په ۱۹۲۳ کال کی دجون دمیاشتی په یوه ورځ د کابل د مسجد پردیوالونو او دیوسماوارد دوکان پردیوالونو باندي دچاله خوا اعلانونه ځړول شوي وو چی تول کټ مټ یو شان وو، په اعلانونوکی پر امان الله باندي تورلگول شوي وچی امان الله له خپلو خلکو سره بی لوظی وکړه او هغې وعدي چی له برتانویانو سره د جنگ د اعلام په وخت کی کړي وي، تر اوسه تر سره شوي نه دي. دهغه پرضد مهم او بد مرغه اخطار و نه لیکل شوي وو.

محمود طرزي لیکلی و: «عام خلک یوازي پرخپلو ښکاره او موقتی گټو فکر کولی شی. هغوي پر خپلو واقعی او دایمی گټونه پوهیږي.»

هدایت الله خان چی دامان الله د لومړي واده زوي، او دولس کلن و، دهغو پنځو دیرشو افغانی هلکانو په ډله کی ډیر کشر و چی دفرانس د میچلټ (Michelet) په لیسه کی د تحصیل له پاره تللی و. کله چی رسمی عکس گیري وشوه، هغه بیرته تکیه کړي وه، پښی یې غزولی وي، او دنړي د ډیرستړي سړي په شان یې ځان ښودلی و.

د فرانس جمهور رئیس ارستاید براینډ (Aristid Briand) په پاریس کی د برتانیه سفارت ته ډاډ ورکړ چی لارښوونه یې کړي وه چی په مطبوعاتو کی دي کوم خاص اعلان خپور نه شی. سره له دي دپاریس ورځپانه دهغوي دغذا په باره کی چی د خوک غوښه په کی نه وه، او د هغوي د لمونځ اوداسه په باره کی ځرگندونی کړي وي.

څه شی هغوي ډیر زیات په تعجب کی اچولی وو؟ گرندیتوب، هغوي د خلکو په ژرژر

اخوادي خوا تللو باندي نه پوهيدل. سکرتر ذولفقار خان چې له دوي سره و دغه وضع يې داسې تفسير کړه، چې نجيب زاده ګان په افغانستان کې دا غوره ګڼي چې په کرا رکرا را خوادې خوا لاړشي. ژر ژر حرکت کول د ټيټو طبقو له خصوصياتو څخه شميرل کيږي... کوم شی چې ډېر زيات پردي باندي تاثير کړي و، د ناپليون مقبره و... »

د ۱۹۲۲ کال تر نيمايي پوري، په جرمني کې اته څلويښت تنه افغاني محصلين په فرانسه کې شپږ ديرش، او په ايتاليا کې شل تنه وو. د طرزي زوي. عبد الوهاب داکسفورډ په پوهنتون کې د خپل پلار په لګښت زده کړه کوله، چې د کال ۶۰۰ سترلين پونډه کيدل، او دا ډيري زياتې پيسې وي، چې د پر شتمن افغان له اندازي څخه زياتي وي. داشې په دي مورد کې مد واقع شو، چې توضيع شي چې ولې په لندن کې بوازي يو افغاني محصل په زده کړه بوخت دي. په جرمنی کې څلور سوه سترلنګ پونډ، د څلور کلوله پاره کافي و، او د دي ترڅنګ جرمنانو پر شرقيانو باندي هيڅ ډول کلانکاري نه کولې او برتانويانو کاوه، افغانستان چې زيات شميريې له انګليسانو څخه په جامو کې تو پيرنه کيده، ممکن دهغوي له کلانکار يو څخه خلاص وو، ليکن هغوي له هنديانو څخه چې يې تور پوست ورته مصيبت ګرځيدلي و، دا کيسې اوريدلي وي.

د کابل منظره دبدليد و په حال کې وه، په هغه ځای کې به تل په ټولنو کې قسم قسم ځيري ليدل کيدلې، چې يا به له موسم سره سم او يا به د خپل تجارت په خاطر تګ راتګ کولو، ليکن دا ټولي آسيايي ځيري وي. اوس دانګو ساکسونيآنو ځيري چې له پوزي او زنو څخه معلوميدل، دژيړو ويښتان او شنو سترګو لرونکو خلکو ځيري، د توتانيانو ځرګندي ځيري، دهغو خلکو ځيري چې يې پوستکي د لمر په وړانګه کې سره اوښتل، دفرانسويانو مديترانيانو روښاني ځيري ليدل کيدل. افغانستان تر او سه پوري هم تردي حده جلا ساتل شوي و، چې هيڅ يوبهرنی نه شو کولای يې له رسمي اجازي څخه داخل شي، او برتانويانو لا خپله مشهوره علامه له خيبر څخه ايسته کړي نه وه، چې افغانستان ته د داخليد و ممانعت ځرګندول. ليکن امان الله هغو ديپلوماتانو ته اجازه ورکوله چې ورسره متقابله نزا کتونه درلودل. او هم هغو اروپاييانو ته اجازه ورکوله چې غوښتل يې دهغوي له هنر او مهارت څخه کار واخلي.

دولې ډله، دلندن له نا اميدي څخه وروسته اروپا ته راستنه شوه، او اوس چې برتانويانو دي ته غاړه ايښې وه، چې افغانستان له نورو هيوادو نو سره په راتلونکې کې اړيکي ولري، نو

هیأت په دې موفق شو، چې له فرانسو، ایتالیې او جرمنی سره معاهدې وکړي. د ۱۹۲۲ کال دجون په میاشت کی، دولی خان په راتګ سره چې د طرزي پر ځای د بهرنیو چارو وزیر مقرر شوي و، دایتالیا وزیر او دهغه معطل شوي تجارتی هیأت هم ورسره ملګري وو. زیات وخت لا نه و تیرشوي چې یو فرانسوي لرغون پیژندونکی هیأت دکانونو ایستلو په منظور کابل ته راغی، چې په نیمایی سره افغانستان ته کانونه وباسی. جرمنی هم یو هیأت چمتو کړ. وروسته له ایران او ترکیې څخه هم هیأتونه راغلل، امان الله دغو دوو ګاونډ یو مسلمانانو ته خپله شخصی مانی ورکړه، چې ده په خپله په کی دشهزاده په توګه ژوند کاوه.

له دغو خلکو سره د اروپا د سیسی او کینی هیواد ته راغللی. همفریز، دبرتانیې مختاروزیر، په کابل کی بهرنی مستعمري په دې ډول، «له جرمنی او ایتالوي مختار وزیرانو سره بحث وکړ، چې په بهرنی مستعمري په دوو کمپونو ویشل شوي دي، یو یې روسی او ترکیی کمپ او بل یې برتانوي او فرانسوي کمپ، او وي ویل چې هیله من دي له دواړو کیمپونو سره ښه روابط ولري، او دفارس مختار وزیر دومره شرمناک سړي و، چې بیخی یې ځان ښکاره نه کړ. » د ایتالیې نماینده ګی به یوه «وطنی» یکشنبه جوړوله، یوه یکشنبه په منځ کی پاته کیدله او بله یکشنبه به برتانویانو او دفرانسې له پاره وه، او هغه یکشنبه چې په منځ کی پاته کیدله، د «سره یکشنبې» په نوم سره یادیدله.

فرانسویان دجرمنانو له کثرت څخه، چې په وروستیو وختونو کی ور سره په جنګ اخته و، په ویره کی و او پرهغوي باندې یې داتورولګاوه، چې «شرق ته دنوي جنبش» پلان جوړوي. برتانویانو هم پرجرمنانو باندې شکمن شول.

همدا راز برتانویانو، جرمنان په دې تورن کړل. چې خاصتاً په زیات شمیر سره راتلل، دا ځکه چې هغوي دخپل ویجاړ هیواد دوضعی له مخی غوښتل په لږو پیسو کارو کړي. دجرمنانو کسبګرو یوه ډله چې له هند څخه تیریدله او د کابل په لور راتله، ترڅیرنی لاندی ونیوله شوه، چې دبالشویکانو له دسیسه ګرو سره تماس ونیسی، همدا راز برتانویانو خپل دوستان، فرانسویان، تورن کړل چې اوریدلی یې ووچې فرانسوي ښوونکی او لرغون پیژندونکی برسیره پر هغوپیسو چې له افغانانو څخه یې تر لاسه کوي، دخپل حکومت له خوا هم پیسی اخلی، او په تعجب کی وو، چې دوي به داسرائیلی اتحاد یې بوه برخه وي، چې هدف یې په منځنی ختیځ کی د فرانسې دګتو پرمخ بیول و.

امان الله، تینگار کاوه چی نه غواړي په افغانستان کی یو ملیت پر بل ملیت باندي تفوق ولري، هغه د خپلو نیکه گانو په شان په یاد راوړل چی هند یی تابع شوي و، چی بهرنیانو ته اجازه ورکړه چی په هند کی څمکه واخلی او خپل سازو سامان برابر کړي، کوم ترجیح به چی دده ورکوله، نو دا ترجیح به هغو هیواد و نو ته وه چی دده له سرحدونو څخه لیري پراته وو، چی که هرپلان دوي جوړا وه، نوسیمه ییز پلان به نه وو، ایتالویانو، جرمنان او فرانسویان به کله کله داسی څر گندونی کولی، چی که افغانان دبرتانویانو او روسانو له خوا، چی یی راتلونکی پرهغو پوري اړه لري، تر روزنی لاندي ونیول شی نو ممکن بهتر اجراات به وکړي، لیکن امان الله داخبري بیخی نه اوریدلی.

فرانس همفریز، دبرتانی نوی مختار وزیر، داسی څیره درلودله، چی په نژادي برخه کی د کابل له خلگو سره گډیدله، چی ښکلی، قوي مگر په اصل کی برتانوي و لیکن، که څه هم دلارډ کرزن د اوامرو اطاعت یی نه کاوه، په بازارو نو کی کم کیدل کیده، لارډ کرزن به ورته ویل چی که شپږ تنه بنگالی غش ویشتونکی سپاره کسان دهغه په مخ کی او شپږ تنه یی ترشاروان نه وي، نودي دي باید هیڅکله په عوامو کی ځان ځرگند نه کړي.

په افغانستان کی دنماینده گۍ له اداري کسانو څخه پر ته هیڅ انگلیس وجود نه درلود، حتی کله چی امریکایی ژورنالیست او لکچر ورکوونکی لاول توماس (Lowell Thomas) د ۱۹۲۲ کال په اوړي کی کابل ته لاړ، چی د هیواد لومړنی سفري سینمایی فلم ترتیب کړي، امان الله دهغه انگلیسی اسیستانت ونه مانه، نو توماس مجبورو، دهغه پرځاي یو امریکایی همکار راولی، برتانویانو د نورو ملیتونو څخه زیات کسان له ځان سره ساتل. حتی په هغه وخت کی چی ښځی یی ورسره وي.

دابنځی د خپلو تپولو هغو تماسونو په وخت کی تقریباً مخونه پټول، چی دکابل د تپولنیز ژوند په باره کی له چا سره نیول، برتانویانو دي ته ضرورت نه درلود، چی په دي کی ځان شریک کړي، چی پوه شی څه خبره دد. هغوي ترلاس لاندي مامورین درلودل چی له دوي څخه په ښه وجه په تپولنه کی خلط کیدي شول او دهغوي مقصد ښه ترسره کیدي شول نه په دي چی هغوي تپول هندوستان اداره کاوه.

په کابل کی یوه غال مغالی وه، کله چی دا وله سره را تپوله شوه، د جرمنی مستعمره وله و. یو مشکل چی بهرنیانو له ځان سره افغانستان ته راوړ، الکول څښل و. د حضرت محمد

پیغمبر د ارشاداتو له مخې، په هیواد کی د وابن، بیر او د ویسکی څښل منع و، مګرد بهرنیو نمایندهٔ ګیوله پاره خاص تدابیر سنجول شوي وو او هغوی داځښنا ک ځان ته راواردول. برتانویانو په یوه کال کی د الکول د ځښلو ضرورت لس زره بوتله یادداشت کړي و. د جرمنانو د بیرلومړي واردول دیرش زرو بوتلونو ته رسیده، چی په کلکه سره د هغه څارنه کیدله بیا دا چی پر افغانانو باندي خرڅ شي. فرانسویان او برتانویانو د بوتلونو دي شمیر ته هک پک پاته شول او په تعجب کی شول، چی ځینی بوتلونه ممکن چاودیدونکی مواد ولري، د سایکالوژیکی له نقطه نظره بوتلونو چاودیدونکی مواد درلودل. یوه ورغ وروسته لومړي بوتل خلاص کړي شو، هندي خانه سامان د جرمنانو په نماینده ګی کی د برتانیه دنماینده ګی خانه سامان ته داسی یادونه وکړه:

«ما په هند کی صاحبان لیدلی دي چی نشه یه بی کوله، مګر هغسی صاحبان می تر او سه پوري بیخی نه دي لیدلی، چی د نشی په حال کی دشپی پردوویجو له بوتلونو سره په سرکونو کی جنګ وکړي.»

هغه ورغ را ورسیدله، کله چی برتانویانو په کابل کی له خپلو همکارانو څخه چی په شمال لویدیغ سرحدي ایالت کی و، یوه داسی پوښتنه ترلاسه کړه: «دابه په زره پوري وي چی له رسمی منابعو څخه پوه شوچی ایا داخبره رښتیا ده چی ځینی روسی ښځی چی را رسیدلی وي ځوانی دي، په ژبوښه پوهیږي، او غواړي د کابل دسردارانو ښځو او نجونو ته درس ورکړي.» د برتانیني دنظامی اتش له خوا ورته داسی ځواب ورکړشو:

«څومیاشتی پخوا، ځینی روس کار کوونکی په کابل کی له افغانی ښځو سره په تکلیف شول، «نو ځکه دهغوي له پاره تقریباً دولاس تنه نه کوژ ده شوي ښځی را واردي کړي شوي. دوي... په یو کورکی او سیږي چی دنماینده ګی سره نژدي دروسانو زیاته برخه هغه کور په اختیار کی درلود... چون دهغو یو شمیر دافغانانو کورونو ته تګ پیل کړي دي، نو دهغوي دراواردولو هدف هغه چی دافغانانو او روسانو ترمنځ دستونزومانی وګرځی- نامناسب دي چی تر سره شي.

«پورته مطلب دهغی پوښتنی په حواله دي... چی پوښتنه کیږي چی ایا دغه شمیر راغلی روسانی ځوانی دي او آیا د دي مقصد له پاره راغوښتل شوي دي چی افغاناتو ته زده کړه وکړي؟»

د دوو تولنو په برخورد کی کسب ګروهم ستونزي وګاللی. حضرت پیغمبر (ص) په دومره

بریالیتوب سره خپل پیروان له بت پرستنې څخه منع کړل چې هغوي په بیړې سره نه شو بدلیدلی. فرانسوي لرغون پیژندونکي خوښ و، چې دبودا بیانو د دوري یوه ستوپه یې پیدا کړه چې په کې دبودا ډیري مجسمې وي، چې ځینې په کې غتې او ځینتي وړې وي. په داسې حال که چې هغوي ددي کیندنه پرسر پهره دار مقرر کړي و، فرانسوي مختار وزیر ته احوال ورکړ، چې رادي شي او د دوي دغه ارزښت من شي وګوري، لیکن پخوا تردي چې هغه را ورسیږي، دهډې د مرحوم ملا صاحب پیروان راغلي وو، او دخپل اسلامي عمل په څرګندولو سره یې، دبودا ټولې دغه مجسمې ماتې کړې، او داخبره باید هیره نه شي چې نادر د ۱۹۲۰ کال په جرګه کې د هډې داخونزاده صاحب د زیارت دپاسه یو بیرغ درولی و. امان الله خان د دغو خلکو پردې عمل بانـدې پـه قـار شو، او دقضیې د تحقیق امریې وکړ، لیکن فرانسویان چې زړونه بې مـات شـوي وو، د یوې مـودې له پاره په هغـه ځـاي کې نوري کـیندنې ونـه کـړې. یوایتـالوې متخصص چې د وریښمو چینجي یې روزل د چینجود مړه کید و په نسبت تا واني شو. هغه ددې کار علت د روژې په میاشت کې پیدا کړ چې پردې میاشت کې مسلمانان له سهار وختې څخه تر ماښامه پورې هیڅ شی خوله ته نه وړاندې کوي، د وریښمو له چینجو سره د مسلمانانو په شان عمل شوي و.

سره له دي موضوعګانې پر مخ تلې. د ۱۹۲۳ کـال په نیمـایي کې د کـابل فـرانسوي ښوونځي چې دامانیه په نوم سره یاد یده، ( ۳۲۰ ) تنه شاګردان درلودل، او د ښوونځي سر ښوونکي راپور ورکړ چې د شاګردانو مینه و او پلرونو هیڅ کوم خنډ مینځ ته را نه وړ. چې د اریانتیا خبره ده. شاګردان نو فارس او فرانسوي دواړه زده کړي وي او واړه د افغانانو په صنف کې داسند ره ویله، «ال، پلیوټ، ال پلیوټ، برګیرې.»

(Il peleut, il pelaut bergere)

فرانسوي استاد وویل:

«دغه شاګردان به خپل استاد دښوونځي په دهلیز کې و دروي چې د دغه لغت معنی ورڅخه پوښتنه وکړي چې همدا اوس یې واورید. دهغوي د کنجکاوي حس ډیر زیات دي. کله چې دوي بیر ته خپلو کورونو ته لاړشي، دغه شاګردان یه کتاب ونه لري، میزیه ونه لري چې وربانـدې لیکنه وکړي، ساده یوه پاڼه کاغذ به هم ونه لري، کوم شی چې دوي لري هغه ددوي یوه کتابچه ده. دمسلمانانو ټول ښوونځي چې د ښوونکي احترام په کې مذهبي جبه لري، لږغوندې عسکري بڼه هم لري، چې افغانی کرکتر هغه ایجابوي.»

ددې له پاره چې د فرانسويانو نفوذ ته عکس العمل ښودل شوي وي، بو بل ښوونځی افتتاح شو، چې ښوونکي يې جرمنان وو، او د ښروخت لانه وتيرشوي » چې افغاني ماشومانو به داسندره ويل، « روزلين، روزلين، روزلين، روزلين راټ، روزلين ان دم هيدن. »

(Roslein, Roslein, Roslein, rot, Roslein indem Heiden)

ملکه ثريا بـه تل د کـابل د نجـو نو په ښـوونځـيـو کـې د جـايزي د ورکـولو مـشـري په غـاړه اخيستله. هغه د بهرنيو ډيپلوماتانو ښځو ته بلنه ورکول، او هغوي دومره چې د ثريا او نورو شهزاد گيو له شيو جامو ته دلچسپي ښکاره کوله، له شاگردانو سره نه ښکاره کوله.

ثريا چې د ژبې پرسر خبري کولی. يوه څرگنده نطاقه کيدله، ولوچې هغه يوازي د ښځو په تولنه کي خبري کولی. هغې د «ار» د ادا کولو ستوزي درلو دي دهغه پلار محمود طرزي ورته بيانيي ترتيبولی. امـان الله، چې دهغې د بيانو تکرا رول او مـشق کول اوريدل، طرزي ته يوه خبره بيرته وليږله چې دهوار «R» په مقابل کې به ورتـه دسرو زرو يوه سکه ورکړي، کـه چيري وکولی شی دامشکل له مينځه يوسی، چې ثريا وکولی شي دارتوري په دال «L» تلفظ کړي. هغه په چټکی سره داسکی تاديه کړي.

کندهاريانو جرأت نه کولو چې د ښځو تعليم ومنی، هغوي ته تهديد اميزاحوال ورکړشو، چې خپلی لونی دي په زور سره کابل ته دزده کړي په خاطر واستوي.

له اروپا څخـه ډاکـتـران راغلل، چې پـه کي ښـځي ډاکـترانی هم شـاملي وي. دا ډاکـتـران روسـان، ايتـالويان، فـرانسـويان او جـرمنان وو، يـوه جـرمـنـۍ ډاکـتـره چې فـراولـين ليـهن (Fraulein lehn) نومـيـدلـه، دايتـالـيې د ډاکـتـر لـه مـيـرمنی سـره چې سگنورا طنزي (Signoratanzi) نوميدله يو ځاي شو، چې د ښځو روغتون جوړ کړي.

جرمني انجنيرانو هڅي کولي چې د کـابل او جلال آباد ترمنځ يوښه سـرک جوړ کړي، چې دنړي ديوي ډيري کلکی تيـږي لرونکی غـره له منځ څخـه يی تيـراوه. هغـوي په ځنگړي توگـه تخمين وکړ چې په موجوده حالت کې به داکار پنځوس کاله ونيسي. امان الله ديوښه سرک د جوړولو په فکر کې و، چې له مزار شريف څخه دهند تر بندره پوري ورسيږي. داسرک د روسی داورگاډي له پټليو سره ارتباط درلود. سري کولی شود يوولسو يا دولسو ورځو په موده له کابل څخـه مسکو تـه ورسيږي. هغـه لـه خپل ضد برتانوي سياست څخه منحرف شو او له برتانويانو څخـه يی وغـوښـتل، چې پـه هند کـی ورتـه مـاهر کـاگران پيـدا کـړي، خبـري اتري ناکـامـی شوي،

څنګه له څنګه چې همفریز راپور راکړ، «د یوعالي انجنیر تر لاس لاندي نفرچې دافغانستان له پاره د نماینده په توګه ټاکل کیږي، د یو عمومي قوماندان له رسمي معاش څخه زیاتي پیسې غواړي.» تیلفونونه زیات شول، د بی سیم دستګاوي جوړي شوي، او هغه افغاني محصلین چې په کراچۍ کې د بی سیم په تحصیل بوخت و وبیرته راستانه شول، چې بی سیم فعال کړي او ورڅخه کار واخلي، امان الله خان داخبره ونه منله چې بهرني نماینده ګانو ته اجازه ورکړي، چې خپله دبی سیم دستګاه ولري، او هم دهغې دفعالولو له پاره خپل نفرو لري، په هرحال دیپلوماتیکي پیغامونه په شفرکې استول کیدل. برتانویانو دامان الله دهغه تلګراف دمزي په استعمال باندي اعتراض وکړ چې دکابل دمعاهدي له مخې ورته ورکړ شوي و، چې له روسیې سره دبې سیم دمخابري دستګاه جوړول و. امان الله وویل، «زه تاسو ته کوم قول نه شم درکولی، څکه دا به په داسې یوه موضوع کې د امرانه دستور ورکولو اثر ولري، چې زه په کي یوازاد نماینده یم، لیکن د هغه سړي په شان چې سړي سره خبري وکړي، زه به تاسو ته ووایم چې مواد به دکابل - تورخم او کابل - کندهار په منځ کې استعمال شي. په هر حال، دمزي یوه ټوټه له بلې ټوټې سره زیات شباهت درلود.»

امان الله په ممکن د ډیرسترلوېدیز هیواد د تخنیک پیژندنې او له هغه تخنیک څخه د مرستې په ترلاسه کولوی، چې دي ورڅخه ډیرلیري و، چې د کوم تهدید په توګه به عرض اندام وکړي، خوښي څرګند وله: داستر هیواد د امریکې متحده ایالات وو. په ۱۹۲۲ کال کې، امان الله دري میاشتې د امریکې دمتحده ایالاتو د بهرنیوچارو دوزارت استازي، کارنیلیووان، اچ، انګرټ راوباله، چې ګومارل شوي و، له ټول افغانستان څخه لیدنه کتنه وکړي. د انګرټ یوخصوصي راپورد کابل ځیني اشتباه ګاني په ګوته کولی، لکه د هغو بهرنیانو نه حمایه کیدل، چې په قانوني توګه په هیواد کې اوسیدل، لیکن په نتیجه کې یې داسې مشوره ورکړه، چې دمتحده ایالاتو له خوادې افغانستان په رسمیت وپیژندل شي، چې دا یوازي دهغه هیواد دتجارتي ګټو په خاطرنه و. انګرټ داسې ولیکل، «په دې ستره ساحه کې دوضعي خطر کم شوي دي، په تیرو پنځو کلونو په موده کې لویې برتانیې، یوازي په کافي اندازه تږدې موقعیت درلود، چې د قانون په مطابق د هرقدرت مشق وکړي، لیکن ممکن د یو شمیر سهوو په خاطراو ممکن د خپل تصمیم نه د سملاس لاس اخستلو په خاطر به لویه برتانیې خپل پخوانۍ حیثیت له لاسه ورکړي وي، چې دا له هغه حقیقت نه سواده، چه لویه بریتانیا له

افغانستان سره جغرافیا وي نژدیوالی لري او دانژدیولی څه ناڅه د افغانستان د بدبینی سبب شوي دي. نوپه دي توگه که چیري مونږ مجبور کیدو چی صحنې ته داخل شو، نو مونږ به یوازي په دي قادر نه یو چی مادي گټې دخپل یوازني مطلق سیاسي بې طرف موقف له مخې ترلاسه کړو، بلکي مونږ خپلی اخلاقي مرستی ټولوهغو عناصرو ته ورکړو چی غواړي دتړي په هغه برخه کی په نژدي راتلونکي وخت کی ستونزي حل کړي. »

دانگرټ راپورد متحده ایالاتو دبهرنیوچارو د وزارت په دوسیوکی پاته شو. هیڅ کوم اجرات صورت ونه نیو. »

د برتانیې د تعصب آمیزي نظریې په مطابق، هغه او رلگیت چی په افغانستان کی جوړیدل، دهند او روسیې له او رلگیتونو څخه ډیر ښه وو.

هغه ټکی چی په افغانستان کی تولیدیدي، هم دستاینی وړ دي، برتانویانو د دي ټوکرانو اعتبار برتانوي تانستی ته ورکاوه.

د ډیرو پر مختللو هیوادونو په شان، دافغانستن له پاره هم ارزان تمامیدل چی ډیرشیان، د دي پرځاي چی په خپله تولید کړي، راوارد کړي، لیکن که چیري افغانستان دایم د او مو مواد و تولیدونکی او صنعتي اجناسو رانیوونکی پاته شوي واي نود تړي دملتونوپه کنارکی به نه شو راتلی، او د تکوپه مورد کی، امان الله خان د داډگیرنی ډیرښه منبع درلودله چی ویل کورنی محصولات ډیر غوره والی لري.

هغه په بازار کی یوهندو ولید چی پلتی یی وهلی و په خپل دوکان کی ناست و او شاو خوایی دوریښمینو لونگیو ټوکران لیدل کیدل. امان الله خان دلته تم شو او دالونگی یی ولید. په داسی حال کی چی هند و وارخطا معلومیده، امان الله خان ټولی لونگی له دوکان څخه دباندي کوټې کړي او کابلی او رلگیت یی واخیست لونگیوته یی اور ورته کړ.

امان الله هندو ته مخ واړاوه، او د سوزول شوو لونگیو دوه برابره پیسی یی ورته ورکړي، لیکن اخطاریی ورته ورکړ چی یوازي افغانی محصلان دي خرڅ کړي.

دامان الله خان دکورنی غړي او د دربار کسانو داخلی تکوته، چی د افغانی گنډونکی له خوا گنډل کیدل، په خوار نظر سره کتل، دښځو گنډونکو په کابل کی هغه ډول کالی گنډل، چی د پاریس له نارینه گنډونکو سره یی ښه سیالی کولی شوي، لیکن د کابل د ښځوگنډونکو او دلندن دساویل راو (Savil Row) په منځ کی زیات توپیر موجود و.

امان الله خان په داسی کارپیل کړي وچی له ځان سره د سر جوړولو یوه وړوکی بیاتی گرځوله، کله به یی چی لیدل کوم خپلوان یی او یا د شاهی کورنی کوم نفرپه بهر کی جوړ شوي کالی په تن کی لري، نو ورته به نژدي شو او په پټه سره به یی خپله بیاتی را ایستلی او دمخه تردي چی دهغه سري پام شی د هغه جامی به یی ورته له کاره ویستلی.

د فارسی وزیر ددي مانوري یوقربانی ورکوونکی و. دا دهغه له پاره صرف دناکراري بله موضوع وه، امان الله په خپلو نظامنامو کی د هغو پیسو کښت اعلان کړي و چی دزوم له خوا دناوي کورنی ته ورکولی کیدي. پلرونو عادت درلود چی په لونو باندي ډیری پیسی واخلی، حتی پنځوس کاله وروسته به د کابل په اخبارونو کی داشکایت ولیدل شو، چی یو میړه او ښځه د تجیمه د پلارد زیاتو پیسود غوښتنی په وجه نیستمن شوي وو.

د فارس دمختار وزیرلور له یوځوان فارسی سره کوژده وکړه، چی د افغانستان دحکومت له خوا استخدام شوي و، او د نهو زرو روپیو موافقه دهغوي په منځ کی وشوه، وروسته وزیرته وویل شو چی یوازي دیرش افغانی اخیستی شی، ددوي واده ترهغه پوري وځنډول شو چی دواړه ډلی بیرته فارس ته لاړي، چی هلته د امان الله لاس نه رسیده.

امان الله د کابل هغو موچیانو ته چی دلوپ دي لوپ (Loopthe loop) په نامه ساق لرونکی بوټان یی جوړول، امروکړ چی داسی بوټانو جوړول بند کړي، چی کټ مټ د فارسی بیړیو بڼه یی درلوده، او څوک یی تیره معلومیدله، دوي ته وویل شوچی وروسته له دي چی یوازي اروپایی ډوله بوټان دي باید جوړ کړي. داکار په هغوهیوادونو کی اصولی معلومیده، چی آب او هوا یې داروپایی هیواد ونو آب او هواته نژدي والی درلود، نه د هنداب او هواته، چی هلته پنجابی بوټان بهتره وو، لیکن د امان الله مقصد یو حیاتی بڼه درلوده، همدا راز هغه پرمستعملو کالیو باندي محصول زیات کړ. هغه افغانان چی دنورو هیوادونو درتلو په وجه او اړه گرځیدل، داسی پرمخ بیولوته ضرورت درلود چی خپل ځان ته جامی جوړي کړي.

دارالامان چی یو ښارو، دامان الله یوفزیک یادگار گرځیده.

نورو امیرانو هم د یونوي ښارد جوړولو فکر کړي و، ځکه چی حتی د عبدالرحمن په دوره کی هم د کابل د ښار ساحه زیاته شوي وه.

د کابل په ختیځه خوا کی، فقط دختهو کورونو په اخوا، امان الله دنوي ښار په جوړولو پیل وکړ، دهغه مرکز دپارلمان مانی کیدله چی په اروپایی سبک جوړیده او په مخ کی یی پراخه

جاده جوړيدله چې په څنګ کې په چوکاټ کې وني ايښودل کيدې. کله چې دغه پراخه جاده جوړيدله، امان الله دباندې دکاريګرو منځ ته لاړ، بيل يې واخيست او په خپله يې ځينې کارونه اجرا کړل. وروسته تر هغه، د سرک کار پرمختګ وکړ، او کله چې کارپرې پای ته ورسيد، نو په افسانوي توګه په داسې حال کې چې دسرک په دواړو خوا وکې وني ليدل کيدې، داجاده هغې نقطې کې ختميدله، چې مانۍ په هغه ځای کې عرض وجود کړې و.

د پارلمان په بهرکې څوفلزي پلنې لوحې جوړې شوې وې، پرځينوباندې امان الله دجنګ کرتي چې جنګي نښانونه په کې وهل شوي وو ليدل کيده. امان الله د «پهلوي خولی» په سيالې «اماني خولی» جوړه کړه. پهلوي خولی هغه خولي وه چې د فارس پاچا، رضا شاه پهلوي، چې يو عسکري دلګی مشرو او ځان يې پاچا کړې و، دفارسيانو پر سرونو باندې ايښودل، داماني خولی يوه کلکه پيک لرونکې د او سپنې خولي وه چې د مرکزي اروپاد بروعسکروله خوا استعماليدله. پر رسمي جنګي خولی ګانوباندې دوې تورې دچليپا په څيرکښل شوې وې.

دا دامان الله د تحفې يو پيشکش و، مګر دهغه په پلان کې داهم وچې په دو پلنولوحو کې دوه نور شکلونه هم رسم کړې چې دافغانستان راتلونکې يې ترسيماوه: دايوه الوتکه او د يومتحرک ماشين شکلونه وو. د پارلمان دمانۍ ترشا، امان الله خان د يوې غونډې څوکه هواره کړه، دلته يومنظره لرونکې قصر جوړ کړ چې شاوخواته يې غرونه وو. جرمني او فرانسوي معما رانو دواړو دهغې پر نقش باندې کاروکړ. دمانۍ په هره خوا کې برنډې په نظر کې وې.

د دهليز په مدخل کې د زمريانو شکلونه له تيږو څخه جوړ شوي وو، ليکن کله چې دزمريانو شکلونه جوړ شول. نوددې پر ځای چې ديوه توند خويه زمري دتمثال په شان څرګند شي، دامان الله دشخصيت په شان معلوميدل. ددواړوپه جوړولوکې د دوستانه بوالهوس صنعت په کاراچول شوې و، يو افغاني شهزاده بهوروسته دا زمريان له کوميدين د ينې کې (Danny Kaye) مقايسه کول، دا زمريان به يې د از (oz) دکوډګر (The wizard) ځينې زمريان سرې ته وربه يادول. په يقين سره هيڅچا به دغو زمريانو ته نه کتل او دجنګ فکر به يې نه کاوه.

په لاندنی پوړکې، دهغې چوترې په څنګ کې چې شاهد کورنی غوښتل هلته دمه جوړه کړې، اهلي حيواناتو لکه دپيشو او بيزو، رسمونه ليدل کيدل.

امان الله له خپلو وزيرنو او درباريانو څخه غوښتنه وکړه چې دمانۍ په شاو خوا کې دې ځان ته کورونه جوړ کړې چې څوتنو داکاروکړ. امان الله په خپله يوه بې غرضانه بيانيه کې

وویل، کـه زه یو په خپل سرپاچا واي، نو ما به په کـابل کی د پنځه میله لیري پر ځاي پنځوس میله لري په زور اوجبر سره پر تاسو باندي ښار جوړاوه، حال داچی ددي کار په سرته رسولو کی می خلک په خپله خوښه پریښودل. ددي له پاره چی له کـابل څخه دودا نیو ساحی ته مواد وچلول شی، داور گاډي پټلی به جوړه شی، او دا به په افغانستان کی داورگاډي یوائینی پټلی وه. دا دبازیچی نه پرته بل شی نه و او دمانی دهغه انځورښوي اورگاډي په شان معلومیده، په هغو تنگو پټلیو کی څوسر خلاص واگونونو تگ راتگ کاوه.

په کلونه تلونه دانه بشپړ شوي مانی گانی، چی کاریی په سستی سره روان و، امان الله ته دهغه خوب وریه یاد کړ او دځینو نورو افغانانو په یاد تړولی هغی پیسی راتلې چی دامان الله دخوب هومره ارزښت درلود. کله چی امان الله خان په خپله بیانیه کی دارالامان له روم سره مقایسه کاوه، برن نویانو په بدنیتی سره وویل چی دارالامان ځینی گډ خصوصیتونه له روم سره لري، لیکن په یوه ورځ نه دي جوړ شوي.

دانگلستان حکومت وویل، «هغه ذهنیت چی افغانستان دیوي برخی په توگه په هند پوري منسوب دي، نور هیڅ اساس نه لري، او داسی ښکاري چی نور هیڅ نه دي پاته پرته له دي څخه چی نوي حالاتو ته ښه پاملرنه وشی.»

په روم کی لومړنی افغانی مختار وزیر شیر احمد نومیده، چی دامان الله په بري سره دهغه شکایت پر امان الله باندي پیل شوي و.

هغه په ۱۹۲۳ کـال کی دبرتانیی دنماینده گی یوغړي ته وویل، «زه له اروپا څخه و روسته له درو کلو توقف په نا امیدي او مات زړه بیرته راغلم ځکه د افغانستان له خوا په نژدي راتلونکی کی دکوم پر مختیگ امکانات نه دي ترلاسه شوي.

«کله چی زه له افغانستان څخه لاړم، ما په خپل ځان کی دخپل قدرت احساس وکړ او ددي احساس می وکړ چی ځان د دیپلوماتانو او سیاست مدارانو په لړي کی راوستی شم. په اروپاکی دیولند تم کیدو وروسته، ماداشی تشخیص کړ چی زه هیڅ شی نه یم، دښوونی او روزنی کمبودتیا می درلوده، احساس می وکړ ددي پوهه نه لرم چی چاري څنگه سرته ورسوم او هم دا راز احساس می وکړ چی هغه کفایت نه لرم چی وکړاي شم دهغه په واسطه ځان داروپا بیانو په قطار کی ودروم.

«زما د نا امیدي احساس ډیر زیات دي، چی په افغانستان کی می د حکومت د هر ډول

ګوماریدنې منل رد کړي دي. ماته کومه روحیه نه ده پاتې چې وکړای شم دچارو له عهدې څخه ووځم. امیر چې بهر ته نه دي تللی نو په دې توګه د خپل هیواد په بیرته والی باندې نه پوهیږي، له سوي سره سیالی کوي حال داچې د کیشب ګام اخیستل په رښتیا سره ډیر مناسب دي، امیر غواړي چې هیواد یې په ورځ کې سل میله پر مخ لاړ شي، او ددې پر ځای چې خلک ورو ورو تعلیم یافته کړي، فکر کوي پر مختګ تش په خبرو او د امرونو په صادرو لو سره کیږي. ما امیر ته وویل چې دارلامان پروژې سرته رسولو له پاره کلونه په کار دي نو دا درسته نه ده چې په دې لاره کې پیسې عبث لاړې شي، له دې پیسو څخه دې باید په نورو ګټورو لاروکې کار واخستلی شي.»

افغانستان له یو، هیواد څخه خپله نماینده ګي وویستله. بخارا، دمسلمانانو آمریت چې افغانستان دهغه په مقابل کې دو روري احساس درلود، تردې حده پورې دشوروي اتحاد په لور جذب شوي دي چې دهغوي دازادي او دعا یوه خندونې لوبه ګرځیدلې ده او له تخت څخه غورځول شوي دبخارا امیر خپل دسپینوزرو توغ د بخارا دخاورې له صندوق څخه وویستل او کابل ته یې راووړ.

د رښتیا شیبې په ۱۹۲۲ کال د اګست د میاشتې په پنځم تاریخ را ورسیدي. ددې قضیې قربانی انور پاچاو. دی د ترکیې د سلطان عبد الحمید دواده له مخې یو د اوچت ذوق خاوند وزاره و او قیصر یې په قسطنطنیه کې میلمه کړي و او په جرمنی کې یې جنګی تحصیلات کړي و. شورویانو فکر کاوه چې سلطان عبد الحمید دهغوي سړی دی، حال داچې هغه دوزیر ویاد افرید و په شان دغازی کیدو په هیله په خپلو سرحدو نو جنګ کاوه پوخ مسلمان و، شورویانو هغه بخارا ته واستاوه، چې دهغوي کارو کړي. دی دهغو په ضد شو او دبسما چیانو سره مرستې شو چې په اصل کې د «باندیت» معنی لري، لیکن په دې مورد کې دسخت مقاومت (Die hard) معنی لري په دې چې دغه کسان د آزاد بخارا له پاره خپله لوړه هیله له لاسه ورنه کړه.

افغانانو بیا په هر خصوصي توګه نفر او تجهیزات دروسانو پرضد واستول، نادر دهغوي عملیات له یوې نقطې څخه اداره کول چې دافغانانو او روسانو سرحد ته نژدې و. امان الله، چې ډیر په تکلیف کې و، له فرانس همفریز سره په خصوصي توګه، ولیدل او دبخارا له پاره یې دبرتانویانو مرسته وغوښتله. برتانویانو چې د بخارا د امیر خبره رده کړي وه، د افغانستان د امیر خبره هم رد کړه.

دبخارا د ده نو په کلي کی، چی دي ځان په هغه ځاي کی محفوظ فکر کاوه، انورپاچا او دهغه لښکر د اگست د پنځمی نیتی په سهار، دروسانو دسپرو عکسرو په واسطه کلا بند شو. داسپاره عسکر دجورجی اگابیکوف (Georgi- Agabekove) له خوا، چی دشوروي استخباراتی دستگاه نماینده و، او په نژدې راتلوکی کی په افغانستان کی دشوروي په استخباراتی دستگاه کی مقرریده، د هغه پناه گاه خواته لاربښوونه وشول- انور پاچا هڅه وله له خپل مرکزیت څخه وتښتی نوپه داسی حال کی چی قران شریف یی پر خپل سربانديِ ایښی وچی خپلو افسرانوته وریه یاد کړي چی جنت د غازیانو په انتظارکی دي، خپلو افسرانوته وویل چی روسی عسکرو سره دي جنگ وکړي. یوه روسی توري د هغه سرغوڅ کړ او هغه یی شهید کړ، قران شریف د روسانو استخباراتی مرزته یووړل شو.

د انور پاچا خوب هم د امان الله له خوبونو څخه یوخوب و: هغه دمنځنی اسیا دمسلمانانو اتحادبه وه. دتوري هغه گوزار، د انور پاچا د ژوند په شان، د امان الله پر پلانونو باندي یو گوزار و. د افغان بهرنیو چا رو دفتر دامناسبه وگڼله چی د هري هغی غوښتنی نه منل خپور کړي، چی هغه د بخارا په داخلي چارو کی مداخله گڼل کیدله.

دغه پیښه د امان الله خیالات د بلشویکانو په باب بشپړ کړل. هغه بلشویکان، چی امان الله د ډیرو کسانو په شان، دهغوي انقلاب د آزاي د نوي افق په توگه اعلام کړي و. اوس روسانو د پنجده د نه تسلیمولو او ده تړلو هغو مواد و دنه ورکولو په مورد کی، چی په معاهده کی دهغو وعدي یی ورکړي وي، دوي بهانی درلودي: یوه یی د بخارابیانو دا مداخله او بل یی په غزنی او کندهار کی دقونسلگریو دمنځ ته راوړلو ناکامی وه که څه هم هغوي په خپله له برتانویانو سره په تجارتی گتیه، موافقه کړي وه، چی د قونسلگری وله پاره تینگار نه کوي.

دبرتانیی وزیر مختار په کابل کی، داسی ولیکل: «په عواموکی د (امان الله) کړه وړه، دراسکولینکوف په مورد کی په غیر معمولی توگه بی خونده کیدله- اوځینی وختوه وضعه دسپین سترگی ترحده پوري رسیدله، زیاتره وختونه، هغه څرگند احترام چی اعلیحضرت ددي ډلي په مقابل کی له ځانه ښودل، داسی معلومیده چی دروسی د وزیرد زورني سبب گرځیده. د روسی دمختار وزیر ددي. اجازي نه منل، چی له خپلی ښځی سره ترکندهاره پوري بدرگه لاړشی، هم مهمه خبره وه.

برتانویان قانع نه وو چی دغه دښمنی به دوام وکړي، او پر روسانو باندي یی احتجاج

وکړ، چی په افغانستان کی فعالیت کوي. دا احتجاج په پولیک کی شوي وو، چی په کی لیکل شوي وو، چی روسانو د پیسو په واسطه پر قبایلو باندي نفوذ کوي، او هغوي هڅوي، چی دهند پر ضد تبلیغ وکړي او دهغوي پر ضد اسلحه واخلی. دوي به دداکار خوښول، چی داړه گیرنه وکړي، چی پخوانی ارتباط نوي شوي نه و.

کله چی روسانو وغوښتل،د لرغون پیژندو نکو یوه ډله راولی، امان الله وویل نه، هغه داهم نه غوښتل چی برتانویان دي په لیرو ځایونو کی کیندنی وکړي. هغه دمخه تردي چی دنړي یوله مشهور ولرغون پیژندونکو ته، چی سراو ریل ستیین (SirAuret stein) نومیده اجازه ورکړي، دومره د زیاتی مودي له پاره مذبذب و، چی کوم وخت چی هغه را ورسید دلیوخت له پاره ژوندي و. هر بهرنی ته اجازه وه، چی بامیانوته دبودا دغتیی مجسمی لیدلوته لاړشی، لیکن برتانویانو ته اجازه نه وه.

په داسی حال کی چی امان الله د نړي په باره کی په فکر کولو اخته و، هڅه یی کوله، چی داډول فکر کول دي ترزیات فشار لاندي نه راولی.

امان الله خان له خپلو خلکو سره هم ستونزي درلودي. هغه د طعنی حالت ته رسیدلو، په هغه وخت کی، چی دي دخپل لښکر اندازه کموله، امان الله ته خلک بدویل چی هغوي یی عسکر کړي وو.

امان الله د یو مذهبی مراسم د اجرا په ترڅ کی د جولاي په میاشت کی داخبره وکړه، «اوس د قلم وخت دي نه د توري، نو په دي توگه خپل زامن ښوونځیو کی داخل کړي. زموږ پوځی کیفیتونه د قناعت وړدي. کوم شی چی یی کمښت لیدل کیږي، هغه ښوونه او روزنه ده.

دافغانستان هر قبایلی سړي به داور سره منله، چی هغه په کافی اندازي سره عسکري پیاوړ تیالري. قبایلی خلک دهغه دهیواد دفاع په اول خط کی وو، او هغوي په دي باندي پوهیدل، په هر شخړه کی دقباېلوله خوا بري تر لاسه کیدل.

همفریز، داسی راپورورکړ، «داسی نښی نښانی شته دي، چی افغانی عسکري صلاحیت لرونکی اوس په دي قانع دي، چی دهغور ښتینی پالیسی داده چی دعسکرو شمیرد امیر عبدالرحمن له وخت څخه ډیر کم کړي، حال دا چی د ضرورت په وخت کی دعمومی احضار مفکوره له هغه څخه اخیستل شوي وه. ددي کار په نتیجه کی هغه سان چی عسکري خدمت ته غوښتل کیږي، په ډیر لږ وخت کی په زیاته اندازه سره راټول کړل شي.»

د «هشت نفري» مفهوم په همدي وجه منځ ته راغی. ددي معنی داوه چی په یوه کلی کی له اتو تنو څخه به یوتن عسکري ته نیول کیده. داسیستم امان الله نه و منځ ته راوړي، دعبدالرحمن په وخت کی هم داسی یوسیستم موجود و، لیکن د امان الله په دوره کی دومره ورباندي زورو اچول شو، چی دمخه نه واچول شوي. د «هشت نفري» دادوي کلمی دافغانستان له یووګوټ څخه تربل ګوټ پوري د خلکو دنفرت سبب و ګرځید.

د ۱۹۲۳ کال دنوامبر دمیاشتی په ۲۷ تاریخ د کندهار په بازار کی هیڅو نه و. پرتپولودوکانونو باندي پردي اچولی شوي و. په کوڅو کی هم لږ کسان لیدل کیده. دکندهار ګن شمیر خلک د ښار په یومسجد ی سره را ټول شوي وو. او اعلان یی کړي و، چی تر هغه پوري به دلته سره را ټول یو، څو موږ ته دا ډاډ ګیرنه وشی، چی زموږ ځوانان عسکري نه وړل کیږي.

شینوارو او خوږیانیو، دافغانی سرحدي قبایلو دوه یاغی قومونو سره لاس یو کړي وو. او تعهد یی کړي و، چی یو پربل باندي به په کلکه سره ولاړ وي، چی عکسري ورباندي تحمیل نه شی. هغوي پرته مقاماتو ته وویل چی دجنګ په وخت کی به موږ امیر پوره حمایه کوو، او اوس چی دامنیت وخت دي جبري عسکري ته استول کیږو.

هغوي ددي پیشنهاد په واسطه خپه کړي شول، چی دوي ښه جنګیالی خلک دي په هغه شی کی لارښوونی ته ضرورت ولري، چی په هغه کی دوي پیشرو دي، هغه جنګ کول دي.

د برتانیی وزیردا خبره یادداشت کړه، «ښکاري چی دقوا نینو تطبیقول دغو مسئوولو سانو ته وسیله وګرځی، چی سختی خبري دي ورته وشی او دهیڅ ډول ګټبی منبع ورته ونه ګرځی. هغوي چی غوښتل کیږي، نومونه یی رسول شو دي دي... او که چیري پررا پورو نویاندي عقیده وشی، دوي په هغه ترتیب سره لست کړي شوي دي، چی د معاف کیدوله پاره د پیسی ورکولو توان ولري. مامورین دبډو په اخیستو سره کولي شی، د هغو داحضار موده معطله کړي... دمعاف کیدو دغه پیسی به دیو کال له پاره وي... داسی معلومات په لاس کی شته چی عسکري اجباري خدمت دوضعی له ایجاباتو سره سم عمومیت پیدا کړي او انکشاف یی کړي ونه دنوي پایتخت د جوړولو له پاره کارګران په زوره کار ته بوول ددي حقیقت ثرګندوي دي، چی هغوي د دي له پاره چی دهیواد له پاره ښه خلک و روزل شی، ترتریبی لاندي نیول کیږي. که چا

جسمی نواقص درلود هم دعسکري خدمت څخه نه معافیده. عسکري خدمت ته دهغو کسانو غوښتل چی په یوه سترگه ړوند وي، اوبل هغه کسان چی عمومی له پنځه څلویښتو کلوزیات وي ددي کار شاهد کیدي شی. هغه سړي له عسکري څخه په دایمی توگه خلاصیدي نه شی، چی د خپل کورنی د حمایه کولو یوازنی سړي وي، ددي سره سره چی دعسکري خدمت په قانون کی دا شرایط ذکرشوي وو.»

امان الله به په خپلوما مورینو کی دصداقت او انصاف جنبش پرمخ بیوه هغه په داسی حال کی چی په خپله هیڅکله له صداقت پرته بل کارنه درلود، په دي فکر کی و، چی نصیحت کول به گټور تمام شی، لیکن داسی لیدل کیده، چی په ټولنیز نظم کی هر ډول بدلون راوستل د هغو کسانو حرص له سره تحریک کوي چی له دي لاري څخه ډیر لیري و. دا په هغه هیواد کی د خاصو فسادونو د دوري د منځ ته راتلو پیل و، چی په مسلم ډول یو شمیر فسادونه په کی منځ ته راغللی. عبد الرحمن په داسی اقداماتو لاس پوري کړي و، چی له خپلو کاتبانو څخه یی سنداخیستې و چی که په محاسبه کی کوم قلم خورده گی ولیدل شی، دهغوي ښی لاس به قطع شی. امان الله چی هیڅکله دخپل نیکه په شان یو ناتوان تبعید شوي شخص نه و، دغسی شیانو ته هک پک پاته شو. دهغه د تجربی له مخی، قلم یی تل صادق او سپیڅلی و.

په کندهار کی ستونزي په هغه وخت کی پیل شوي، کله چی والی هڅه وکړه په زور سره دولس تنه کسان وغواړي، یوبی اختیاري موافقی له مخی نژدي ټول دکندهار خلک یو مسجد ته لاړل، نائب الحکومه ورته استازي و استاوه. استازي په بې احترامی سره پوري وهل شو، والی ورته دځنډ وني پیشنهاد وکړ، دا پیشنهاد ونه هم ونه منل شو. د مسجد په منځ کی نانوپانو ډوډي نه پخوله. هغه کسان چی دباندي وو، په دي نه بریالی کیدل، چی خپل ډوډي په بیه واخلی، هم په غال مغال پیل وکړ. په کندهار کی یوازي له هغه وخت و روسته بیا عادي ژوند پیل شو، کله چی یو مشهور او پر نفوذ ملا، دده خواجه حضرت صاحب د مسجد دروازي په سر ودرید او دعسکري دمعافید و وعده یی خلکوته ورکړه او مذهبی قسم یی وکړه چی که د «هشت نفري» پلان بیا پرتا سوباندي تطبیق شی، نو زه به هم له تاسوسره په دي مسجد کی و اوسم.

وروسته، دا حضرت د امان الله د نماینده له منلو څخه انکار وکړ، او وی ویل چی زه په دي ویره کی یم، چی امان الله به هغسی چی په نورو ځایونو کی پر خلکو باندي فشار راوړي دي، دکندهار پر خلکو باندي به هم فشار راوړي.

امان الله، به د امیر په توگه هرکالی بوه اندازه پیسی له خزانی څخه دمعاش په توگه اخیستی، مامورینو ته دامعلومه شوه، چی هغه له خزانی څخه د څوکلونو په اوږدوکی پیسی ونه ویستی. هغوي ورڅخه وغوښتل چی خپله تنخوا دي واخلی، امان الله خان ورته احوال واستاوه چی ډیر مصروف یم.

# دولسم فصل

## د ۱۹۲۳ کال دفبروري له ۲٦ څخه

## د ۱۹۲۳ کال د اپریل تر ۳۰ پوري

د کلونو په تیریدو سره د برتانی امپراتوري، لهزیاتو ستونزو سره مخامخ شوه، ښایی ځینی تاریخ پوهان ۱۹۲۱ کال دهغه د پاې ته رسېد و، پیل وګڼی. په هند يې هم سیاسی او هم بودیجوي ستونزي رامنځ ته شوي، نه هندو او نه مسلمان د آزادي غوښتلو له یون څخه یوه ذره تیریدل.

د امپراتوري لیکسان په دي پوهیدل چی داستونزي آخري ستونزي دي. د مثال په توګه، د انګلستان عوام چی ډاډه وو، د انګستان حکومت تر اوسه پوري د قدرت پرچوکی باندي په برم سره ناست دي، نه شواي پوهیدلی چی دبرتانیی لویه امپراتوري ولې د کمزوري افغانستان په مقابل ی له پوره قاطعانه دریځ څخه کار نه اخلي، عوام دهغی ویري اېکل یی نه شواي کولی، چی هند ورڅخه په ویره کی و، حتی له افغانستان سره د جنګ دامکان ویره، یادا ویره چی ګوندي افغانان به هند ته راشی او دهغوي دستونزوپه زیاتولو کی مد واقع شی.

بو سېري چی اوضاع ته متوجه ږ، هغه د متحده ایالتونو د ښرنیو چارو د وزارت له نظره غورځول شوي ښاغلی انګرټ و، چی د مرکزي آسیا په هغه خلا کی د امریکی د قدم ایښود لو د عمل چټکتیا به یی غوښتله، چی د برتانیی امپراتوري ایښی ږ. بل نفرد ویلز (Wales) شهزاده، وروستی پاچا پنځم اډوا رډ او دوینډ سورډ یو ک ږ، چی په ۱۹۲۱ کال کی یی

د کانگرس د گوند له خوا د هند سفر قطع کړي شوي و. هغه خپلو کور به وته ولیکل، چی د مخکښانو، دلیسو د شاگردانو او نورو کسانو په واسطه د تشو چوکیو په ډکولو کی تا سوز ماد څرگندیدو په وختونو کی له مانه یو (حقیر او نادان) سړي جوړ کړي و.

هغه برتانویان چی په سرحد کی وو، د قبایلو د مختلفو جرمونو په مقابل کی د جزا ورکولو له اسانترینی طریقې څخه کار واخیست: د بمونو د غورزولو طریقه، بمباري یو عادي عمل وگرځید. له هوا څخه د داسی جزا ورکولو و روسته د وزیرو یوه ډله چی معلومیدل دانگلیسانو د مخکنی سنگر عسکرو وبروي، هغوي (انگلیسانو) له ملامستقین وزیر څخه داسی بولیک تر لاسه کړ:

«مونږ خپل مطلق قادر او مهربان لوي خداي ته دوعا کوو...

«د برتانیی حکومت په خپل زیات قوت سره خپلوالوتکوته امرو کړ، چی د وزیرتول پوځ چی په خپل تولنځی کی وو او هم دبرمل (Birmal) سیمه بمبارد کړي. د بیچاره مسلمانانو نارینه، ښځی، ماشومان او څاروي تباه شول. ښځی بی سپکی او بی حجابی شوي او مخ لوڅی دباندي ووتلي، «دا مناسب نه و چی حکومت خپل وقار او عظمت ته زیان ورسوي او دخپلو بی مرستو اتباعو په نظر کی ځان سپک کړي، داواضحه شوه، چی استقامت او پراخه سینه درلودل، نورد حکومت له خاصو صفتونو څخه نه شمیرل کیږي، ځکه چی په خراسان کی دخلکو د تولید و په خاطر ډول وهل کیږي، نو په هند کی دانگلیسانو په زړونو کی لرزه پریوزي.»

«حکومت دي باید ترهغه وخت پوري له حوصلې څخه کار اخستی واي څو چی لښکرد هغوي پر دولتی تاسیساتو باندي ډزي نه واي کړي. فقط وروسته ترهغه، دحکومت مامورینو کړي شول، چی ډزي واوري او په تعجب کی شول، چی دا به باران وي او یاد کومی لوښی لاندي د اور پرقار.»

د ملامستقین نظریی د هغو پنځلسو تنو قبایلیانو له خوا چی تول په کی ملایان او ملکان وو، تاییدي شوي او تیولو په کی خپل گوتی او مهرونه ولگول.

«ثبات او مقاومت نورد حکومت له عالی اوصافو څخه نه شمیرل کیږي.» دا د هغو خلکو ډیرښه تشخیص و، چی ډیرو پوهو خلکو په ډیرو کلوکی داسی تشخیص نه وکړي. د برتانیی ضعف هغه هیوادبی تردي حده پوري ورساوه، چی له هوا څخه د بمونو غورځولو په ذریعه بی

لاري قبايليان لاري ته راولي، وايسرا لارد چلسفورد خپلې تيروتنې د ميراني او د خکلکود خراب احساس په ساحه کی، چی ممکن په خلکو کی پيدا کيده، ياد داشت کړي.

د ۱۹۲۳ کال دفبروري د مياشتې په يوه جرگه کی چی په جلال آباد کی دايره شوي وه، امان الله افريدي لباس په تن کړي و، د يرې خبرې دهغو بمونو په مورد کی وي، چی پرقبايليو باندي غورځول شوي وو، خلکو غلامي سره مقايسه کولې. هغوي ته پته ولگيدله چی د يرې اميدواري ښځې، دې ته اړشوي وې چی له خپلو کورونو او نورو ځايونو څخه په چټکۍ سره ځانونه کومې خواته وباسي، داولاد ونقصانونه هم کړي وو. د يو زور سړي په باره کی يوه خواشيني کونکې خبره داسې وه، چی د بم په واسطه داسړي وسوزيد، او مړشو داسړي چی د قران حافظ و، له ژوند څخه محروم شو او قبايليان ټول د هغه د قرآن له فيض څخه هم محروم شول.

کوم شی چی برتانويانو ته صرف د يوي اضافه وسلې په توگه څرگنديده، چی په ځانگړي توگه يوه بې تکليفه وسله وه، قبايلوته دملکي خلکو په مقابل کی يوبيځي نه بښونکي ابتکاري جنگ و.

د ژوند د دغونوي نا آرا ميو سره سره، د هغه آسمان په درلود لو سره، چی دوي تري لاندي د امن ځاي نه درلود، قبايليانو د برتانوي واکدا رانو په لور وپاريدل. هغوي لاپسې يرغلونه وکړل. ليکن ددې پرځاي چی په خپله يوپربل باندي بريدونه وکړي، هغوي په منظم ډول په برتانويانو باندي بريد وکړ، او داسې معلوميده، چی د خپلو کورنيو دانتقام اخستلو په بدل کی د هغوي پر ښځو باندي بريدونه وکړي.

د ۱۹۲۰ کال په ورو ستيو وختونو کی، کله چی ښاغلی فولکس (Foulkes) د گروال او دهغه په نيمه شپه کی د کوهاټ قشلې په منځ کی ووژل شول، وبرونکې پيښه منځ ته راغله. د گروال فولکس دهند دصحي چارو افسرو دي په خپل مسلک کی پوه او يو خوش طبيعته سړي و، داسې يو مطلب اي. ام. اس السمې (A. M. S. Elsmie) په لندن ټايمز کی په ۱۹۲۳ کال کی وليکل، هغه په کوهاټ کی عسکري قواو ته امر ورکړي و.

«پر يوي انگيسې ښځې باندي دغه بې عاطفې تيري، چی دهغې وژنه وه، داسې يوه پيښه وه، چی له هري هغې پيښې څخه بيخي توپير درلود، چی د سرحد په اوږد تاريخ کی پيښې شوي وي، څه موده دمخه يوه ښځه له پيښور څخه سرحدي سيمو ته تښتول شوي وه او

داسی سلوک ورسره وشو ، چی تشریح کیدلی نه شی، خو په هر صورت دهغی نه وژلوکی کوم اقدام صورت ونه نیو. »

« په سرحد کی منځ ته راغلی نوي فجایع » او دداسی کارونو اجرا کیدل، چی پخوایی نوم بیخی دچا زده نه و. » دالمسی ځینی مطالب وو.

امان الله خان باید د دغوشیانو په مورد کی څومره اقدامات کړي واي؟ دا پوښتنه د دوو استخباراتی نمایندگیو په منځ کی شخړي مینځ ته را وړلی.

په جلال آباد کی دهغه دفبروري د ۲٦ نیتی جرگه د برتانیی د مختار وزیر له خوا چی په کابل کی و ، دایره شوه ، او دخپلی نماینده گی یوهندي ماموریی ورته استولی و ، او هم دشمال لویدیز سرحدي ایالت دلوي ولسوالی پکی برخه اخستی وه ، چی جاسوسان یی وړاندي وروسته گرځیدل.

هغه سړي چی د برتانویانو او دهغوي دزیات شمیر قبایلی دوستانو له خوا دډگروال فولکس او دهغه دښځی دوژنی په خاطر مجرم گڼل شوي و ، افغانستان ته تښتیدلی و ، چی هلته برتانویانو ورسره غرض نه شو کولاي. هند له افغانستان سره د مجرمینو دبیرته ورکولو تړون نه درلود ، او څرنگه چی داسی تړونونو دوه اړخیز کارورکړي، چانه غوښتل. دافغانی قبایلو تولینز معیارونه داسی ووچی پیووخت کی یو وحشی حیوان، له یو شریف ښکاري څخه و تښتید ، او دیوي غریبی ښځی دختیو کورته په تونديِ سره داخل شو ، داښځه په هغه وخت کی چی ښکاري له خپل ملگري سره سپاره ورته ورغلل. وویل چی که زه دغه حیوان تاسوته تسلیم کړم ، نودا کار به دپناوړ لوله اساساتو څخه سر غړونه وي. میرزلی ، تورن شوي قاتل ، تر اوسه پوري له خپلو ملگرو او خپلوا نو سره په افغانستان کی و ، او برتانویانو داسی اټکل وکړ ، چی هغه بیخی له سره تیروي، چی که دامان الله جرگی ته حاضر شی. دي له سره تیرو.

د جاسوسانو دا توضیحات، چی امان الله به میر زلی ته دپیسو د ورکولوله لاري څومره عزت ور کړي وي، توپیر درلود او دغسی شاهانه مکافات ورکول، دنژدیوالی په صورت کی صورت نیولی شی. شمال لوید یځ سرحدي ایالت دا راپور ترلاسه کړچی د میر زلی ملاتړ په خاص ډول سره کیږي، چی داد هغه تشویقول جرمونو ته دي اووي ویل چی داډول ملاتړ دنورو د تشویق او تحریک باعث هم گرځی، چی په داسی اعمالو لاس پوري کړي.

هیڅکله نه . دا دبرتانیی د مختار وزیر ، همفریز خبره وه. دامان الله خان په جرگه کی میر

زلی صرف د زرگونوتنو په منځ کی یوتن و، او امان الله ونه شو کړي، چی هغه ته ځواب ورکړي، مګر په یو شرط سره کولی شو، چی خپلو عنعنوته سپکاوي کړي واي. وروسته کله چی جرمونه به زیاتیدل، همفریز به دغه جرایم په ورو علتونو پوري منسوبول. یوله دغو علتونو څخه دسرکونو دجوړولو غورزنګ و، چی افغانستان او برتانویان وربانديې په میسوري کی موافقی ته نه وورسیدلی، چی آیا دغه کار به تمدن منځ ته راوړي که نه، او بل علت یی له هوا څخه د بمونو غورزول وو.

همفریز ادامه ورکړه، چی ددي په څنګ کی دبرتانوي سیمی قبایلیانو ته د افغانانو مینه کوم نوي شی نه و، افغانان او برتانویان به تل د قبایلی پښتنو د سر لوړي په خاطر یوله بله سره سیالی کولی، او ځینی تنګ کسان په کی شته چی له دواړو خواو څخه پیسی اخلی، د امان الله خان اکا نصر الله خان چی یو متعصب سړي و، او برتانوبان بی په دي کافرباله، چی بي شمیره ظلمونه کوي، دیونسل په اوږدوکی د هغوي په مقابل کی نفرت ښکاره کاوه. اوس هغوي فکروکړ، چی ددوي لوي دښمن به نادر او د هغه ورونه وي چی په مختلفو ولایا توکی دي، ورسره مرسته کوي او هر کله چی همفریز له نادر سره ټولنیز یا سیاسی مخالفت کاوه داشی به په یاد راوړل، او «دنادر عادي خطابی چی دانګلستان او هندي دوستی دګډ و ګټو په مورد کی» کیدي هم به دهغه په یاد وي. همفریز پوهیده، چی نادر په ریښتیا سره خپلو دووتنو قبایلیانو ته ویلی دي چی هره یوه پنځه تنه هلکان د حربی ښوونځی له پاره کابل ته واستوي، اووي ویل، چی دهغه ورور، هاشم چی په جلال آباد کی والی و، خپل استازي به د جلال آباد او تیرا ترمنځ په منظم ډول ټاکلی وو، چی تګ راتګ وکړي. تیرا د برتانیی په قلمرو کی وه، او ددي ځاي خلک د اورګاډي د پټیلی له غزولو سره مخالفت کړي و. نصر الله خان یو سم مخالف سړي و.

همفریز وویل، رقابت او تحریک ز اړه شیان دي، دجرمونو زیاتیدل نوي دي. برتانویانو د تازی خیل دبمبارد ولوپلان عملي کړ. تازي خیل چی د قبیلی یوه څانګه ده، د توچی په سیمه کی بندرته دومره نژدي ده، چی په یوه کورنی کی به افغاني او برتانوي اتباع دواړه لیدل کیږي. دتوچی سیاسی نماینده تلګراف وکړ، چی «تازي خیل به دالوتکو په تش راتلو سره ترلاس لاندي رانه شی، بلکی ممکن د خوست خواته (دننه په افغانستان کی) لاړشی، زه فکرکوم داکار به ډیرښه تاثیر ولري، او دا به هغوي ته دپام وړهوسایی ورپه برخه کړي او پرتوچی باندي حمله به

ورته سخته وګرځوي. کله چې هغوي د اپرېل په بېل کې سره را ټول شي، چې کډه وکړي، نو موږ به يې يو واري بيا بمبارد کړو، که چيري موږ ته نور تکليف راکړي. »

الوتکې په غلطي سره د ننه په افغاني سيمه کې څو ميله ليري ځايونه بمبارد کړل، او دري تنه د نازي خيل افغانان يې ووژل، ليکن هغه خلک يې ونه وژل، چې د سياسي نماينده ګي له خوا له هغه اټکل شوي سيمې څخه بيخي مقابل لوري ته ورل شوي وو، هغوي دخوست خواته نه و تللي ليکن، د هغه ځاي مقاماتو د عدم موافقي په نسبت، له هغه ځاي څخه هم ليري تللي وو.

د هند حکومت وويل، « سهو، او خطاد اردوګاه د هغو اشغالو ونکو ده خوا ده، چې وتلي دي او پر الوتکو باندي يې ډزي کړي دي. پرته له دي چې افغان حکومت ته حقايق وويل شي بل کار نه شي کيدي، او پر هغو حقايقو باندي بايد زيات تاکيد وشي، چې زموږ په ګټه وي. »

د هند حکومت په د غسي مواردو کې د تاوا نونو يوه منظمه درجه بندي درلوده:

وژل شوي سړي... دري زره پنځه سوه (کابلي) پيسې.

هغه سړي چې يې دوه اندا مونه په دايمي توګه له کاره وتلي وي... دري زره پنځه سوه.

هغه سړي چې يوا ندام يې له منځه تللي وي... يو زرا و اوه سوه پنځوس.

قبايلي محلي سر بازان په پور ته اندازه.

ښځې سرتر پايه په نيمايي اندازه.

هغه سړي چې سخت ټپي شوي وي... پنځه سوه.

يو سړي او دوي ښځې چې کم زخميان شوي وي، د ټولو د ريو تنو له پاره... يو سل او پنځوس.

اوښ... دري سوه.

غوا او سخوندر... پنځه ديرش.

پسه يا وزه... اتلسي.

اس... دوه سوه.

خر... سل.

هغه پيسې چې د برتانيي د ماشينداريا دخدمت د ټوپوکو د پيسو معادل وي... اته سوه.

د برتانيي او د افغانانو يو ګډ کميسيون د نازي خيلو پر تاوان باندي سره موافقه وکړه. د هند حکومت داسي راپور ورکړ:

« د يوه سړي او يوي ښځې له پاره، چې مړه شوي دي، يو سړي چې بيخي له کاره وتلي وي،

یوسړي او یوه ښځه چی سخت ټپیان شوي وي، مګر له فعالیته نه وي لویدلی، یوسړي او یوه ښځه چی ډیر کم ټپیان شوي وي، چی داټول اوه تنه کیږي، او ۱۶۰ څارد یوله پاره... (مور) د دي له پاره ۹۱۲۵ کابلی روپی یا ٤٨٥ پونډه حواله کړو. ددي په علاوه تاسو بیا دشیخ پیرخون بهاهم تادیه کړي، ځکه دهغه نوم په لست کی نه و، پردي چی داسی معلومه شوه چی هغه دسرحد په اخوا دبرتانویانو په سیمه کی وژل شوي و، هغه سړي چی هلته اوسیده او رسمی وظیفه یې لرله پیشنهاد وکړ، چی دغه پیسی دي باید ورنه کړي شی، تر هغه چی ورثه یی سیاسی نماینده قانع کړي نه وي، چی دي پرالوتکی باندي ډزي نه دي کړي، هغه څاروي چی له منځه تللی دي: ٢٤٥٤ روپی، دهغه همکاري په مقابل کی چی دخوست حاکم له مور سره کړي ده. دافغان حکومت څخه باید تاسو قدر دانی وکړي. «هیله ده چی دا کار تاسو په دي قادر وګرځوي، چی بد په ښه بدل کړي.» او د انګلستان حکومت په خپل وارسره وویل: «که دغه سخاوت مندي په زیاته اندازه وښودله شی، نو ډیرامکان لري چی پیښه په اجباري توفیق بدله شی، چی بدبختی به په کی موجوده وي، ځکه په هغه وخت کی چی دمی دمیاشتی په وروستیو وختو کی د نازي خیلو موضوع حل کیده، ویښی ډیري توبی شوي وي، چی برتانویانو ته د ٤٨٥ پونډ وڅخه ډیر زیات ارزښت درلود.

د ۱۹۲۳ کال داپریل په ۸ نیټه د سی فورت هایلیندرز (Seaforth Highlanders) دوه تنه لوبان چی دخیبر په لنډی کوتل کی میشته وو، تصمیم ونیو چی د شپی د ډوډي د مخه د ملا ګوري (Mallagori) پرسړک باندي قدم ووهی، څوکاله دمخه هغوي ته دداسی ګرځید و ممانعت و، لیکن له خړپړ تیاو سره سره داوړدي مودي بلد تیا بی پروایی زیاتوي، اوان. سی. ار. N. C. Orr او اف. ابندرس (F. Anderson) په هغه عمل باندي لاس پوري کړ، چی دهغوي دډلی نورکسان کول. سره له دي، داسی اعلان شوي و، چی سړک یو «مدنی» سړک دي. که څه هم دقبایلو په ازاد و سیمو کی یوشمیر مقررات دسړک په مورد کی وضع شوي وو، چی څوفوټه لیري پیل کیده خود برتانیی د څرګندونی له مخی سړک د بی خطر و سړکونو له جملی څخه و، او د کومی پیښی په صورت کی به عیناً د لندن د اصولو په شان چلند صورت نیوه، ښاغلی اراو ایندرسن پوره خبرنه ووچی دوه اولسونه څومره سره نژدي پراته وو.

کوم سړک ته چی برتانویانو متمدن سړک ویل، دهغه سړګ له ترشاغونډ یو څخه ډزي وشوي، دواړه سړي ناڅاپه ووژل شول، چی په هریو دري دري ګولی لګیدلی و. له قاتلینو څخه

یو تن منډه وکړه او د اوسپنې یوه سپینه سپي خولې يې وتښتوله، چې پر سرک باندې پرته وه، پر هغه نقطه کې، چې دوی مړه شوي وو، دري میله د لنډیکوتل له جنګي کلا څخه لیرې وه، چې له افغاني بندر څخه زیات واټن نه درلود. افغاني لوري ځینې شینواري چې يې ډزي و اوریدې، په هغه لور روان شول، او شل دقیقې وروسته يې مړي پیدا کړل.

د هغې ورځې په لومړیو شیبو کې یوه سړي دوه سنګو خیل شینواري چې له افغانستان څخه وو، په دې لارې باندې تیر کړي وو، او ددې ځانګړي طایفې شهرت دهغې د ګاونډیو په نسبت داسې و، چې هغه سړي وروسته هغو کسانو ته چې ورسره مخامخ شوي و، خپلو رموته د پام کولو خبرتیاور کړي وه.

د شمال لویدیځ سرحدا یالتي کمشنر تلګرام وکړ چې « بنایسته زیات شمیر د سنګوخیل شینواري دخیبر د اورګاډي په لاره کې کارکوي. هغوی په پیښور کې دي. زه تصمیم لرم چې دمخه تردې چې هغوی زمونږ له لاسه ووځي، یوشمیر يې ګرفتار کړم. » او وروسته څلور تنه سنګوخپل شینواري په پیښور کې او شپږ ویشت تنه په خیبر کې بندیان شول، چې هلته هغوی دجوالیانو په توګه کارکاوه... یوشمیر يې چې دنازیانو وو، چیرې چې تورن قاتلان اوسیږي، او ویل کیږي چې یوپه کې دنور رحمن له خپلوانو څخه و. » نور رحمن یو سنګوخیل شینواري و، چې په ۱۹۰۹ کال په پیښور کې په دار ځړول شوي و، او د یوغچ اخستونکي افغان او ږده خاطره برملا شوه، هیڅا فکر نه کاوه، چې دغه جوالیان چې داور ګاډي په لاره کې کار کوي له قتلونو سره اړیکې لري، برتانویانو له هغه دوه څخه پیروي کوله چې د « برمتې » په نوم یادیده او دنړۍ په نورو برخو کې ورته « برغمل نیول » ویل کیده، چې په دې وسیلې سره د یوې قبیلې یوتن تر هغه وخته پورې بندیوان ساتلی کیده څوچې قبایل یو بل نفر ورته تسلیم کړي نه واي، یا په بل عبارت دهغوی غوښتنه يې نه وې منلې، دغه د برغملو کسانونو بتي کول یو انساني عمل ګڼل کیده.

اردلي او داود شاه د سنګوخیل دوه شینواري، هغه کسان وو، چې برتانویانو هغوی دقاتلینو په توګه وپیژندل. هغو کسانو چې کاروان سره راتلل د اوسپنې د سپکې خولې کیسې به یې کوکې چې دافغانستان په ډکه کې په یوسماوارد وکان کې ورته ښودل شوي وه، هلته خلکو دنور رحمن دقصاص دغچ اخستلو لاپې کولې، چې څوارلس کاله دمخه په دار ځیړول شوي و، بیا په څرګنده توګه د خبري کولو د خطر خبرتیا ورکړله شوه، هغوي له سماوار څخه غایب شول.

برتانویانو داشی به یادول، چی په تیر دسمبر کی دشاهی انجنیرانو یو نایب وکیل وژل شوي و، او دا چی په مارچ کې هڅه شوي وه، چی د برتانویانو دوه افسران وتښتوي.

دغی سختی پیښی په موقتی توگه د عجب خان موضوع او ټوپکونه مهمه وگرځول.

د ۱۹۲۰ کال دنا کراري په موده کی، چی مامورینو ورته د «یو کوچنی ورانکاري نسبت ورکړ،» په کوهاټ کی دسپاره عسکر تحویلخانه لوټ شوه، چی ۱۲۰ میله ټوپک ورڅخه وتښتول شو. دایوه لوبه غلاوه، انگلیسی ټوپکی په قبایلی سیمو کی ډیر ارزښت لري، دبرتانیی د تذبذب یو دلیل چی افغان حکومت ته ټوپک برابر او وروليږي، داو، چی «په داسی وخت کی چی افغان حکومت مالی مشکلات لري... نو دا به دهغوي له پاره یو قوي لمسون وي چی دانگلستان حکومت پر هغوي باندي ټوپکی خرڅی کړي دي.» د کوهاټ په نښبی کی قبایلی وسله تون د دغو ټوپکو نمونه گرځیدلی وه، مگر کومی ټوپکی چی دلته نمونه په توگه جوړیدلی، یوازي دڅوډ زوله پاره ښه وي، حتی داصیلو ټو په کوم پرزي ارزښت درلودي.

برتانویانو دغه غلا افرید و د بوستی خیلو پریو او سیدونکی باندي واړوله، چی عجب خان نومیده، چی دمخه هم په یوماهر داړه مار شهرت درلود. که عجب خان پرخپل جرم باندي اعتراف کړي واي، نو په ملگروکی به دهغه موقف ته کوم زیان نه رسیده، مگر هغه په داسی تونده لهجه خپله بیگناهی څرگنده کړه، چی په کوهاټ کی دبرتانوي افسرانو پر ضد یی خپل څرگند تعقیبول اعلان کړ.

عجب خان، مجبور و چی ولیکی، «ماد برتانیی حکومت ته پوره اختیار ورکړ، چی داسی یو عینی شاهد دي پیدا کړي، چی ما وپیژنی او داسی حکم دي راباندي وکړي، چی مالس دانی ټوپکی غلا کړي دي، حکومت ته اجازه ورکړي وه چی که دومره وکولی شی، په دغو پنځو قبیلو کی چی زموږه په آزاده دره کی اوسیږي، حتی دوه کسه پیدا کړي، چی پرما باندي دمجرم او اشرار شاهدي ورکړي، نو په هغه صورت کی به زه سمدستی برتانویانو ته تاوان ورکړم، که داسی نه وي، نود برتانیی حکومت دي د اسلام د شریعت له مخی موضوع را سره حل کړي...

بیا هم برتانویانو زماخبري وانه وریدي، او بی له کوم ثبوت څخه زه مسئول معرفی کړم... (هغوي) زه له خپل قملرو څخه منع کړي یم... دوه کاله می چغی وکړي چی زما جرم دي ثابت شی، او کله چی دهند وایسرا سرحد ته په سفر راغلی و، او اخوا له غابښی څخه واوښت، او زموږ ازادي سیمی ته راغی، ماورته خپل لیکلی احتجاج وراندي کړ... دهغه پام دي حقیقت ته

اړول شوي و، چې د هغه ظالم سرحدي افسران يې له کوم ثبوت څخه د سپاره ټولي د ۱۲۰ ټوپکو غلا پر ما واړوله... ليکن حتی په دې وخت کې هم برتانوي سرحدي افسران خپلې بدي ختمې نه کړې او کله چې امل خان زموږه وزي زموږه آزادي دوي ته راوستی، د کوهات سياسي افسر، هغه ونيو او زموږ څاروي يې په ليلام خرڅ کړل.

عجب خان د خپلو وزو د ليلام نه وروسته، داسې اقدام ته لاس پوري کړ، چې د تل له پاره يې دا سوال حل کړ، چې آيادي د ټوپکو غل و که نه، هغه د فبروري په ۱٤ نيټه په ۱۹۲۳ کال کې د کوهاټ د پوليسو پر تحويلخانې باندې برغل وکړ، او څلور څلويښت ټوپکې يې غلا کړې.

هغه ملا چې احتجاج ليک يې ورته ليکلی و، دليک په سر کې ورته د قران شريف دغه آياتونه ليکلي وو، «هغوي چې پرتا باندې ظلم کوي، ورباندې عمليات وکړه.»، «رحمت دې وي پر هغه چاچې مشوره قبلوي» هغه وويل، «دا د انګليسانو ملی عادت دی چې د نورو مذاهبو خلک، په خاص ډول مسلمانان، د ځان نوکران ګڼي او تر هغه سرحده پوري هغوي د ځان ملکيت ګڼي چې انګليسي هيواد د هر صادق مسلمان د آزادي په مقابل کې پر نړي کې مخنيوي کړي دي.»

برتانويانو دوروسته غلاله پاره شاهدان در لودل، په حقيقت کې، هغوي ډير شاهدان درلودل، او غلط شاهدان وو، پردې چې يو له دغو شاهدانو څخه ويلي و، چې عجب خان ياد هغه د ډلې يو تن د ښځو جامه يې په تن کړي وه، او تر خپل څادر لاندې ټوپک پټ کړي و. وروسته چې قضيه روښانه شوه، داسې ويل کيده، چې يو سړي چې چادري يې په سر کړې وه، په رښتيا سره نيول شوي و، او تر چادري لاندې، چې د سر نه تر پښو پوري سړي په کې پټ وي، ټوپک يې پټ کړي و. دا د منلو وړ نه و. که څه هم چادري به د ټوپک د پټولو له پاره يو ګټور شي وي، خو د افريد و په منطقه کې د يو سړي داسې څرګنديدل، به د هغه سړي په مورد کې د کنجاوي يوه ستره موضوع ګرځي، چون د افريد ښځې په پټو کې کار کاوه، نو په هغه ډول به ځانونه نه پټول، هغوي خپل مخونه په ټيکريو پټول، اوږده او پړده کميسونه او پرتوګونه به يې اغوستل، دا رسم او رواج به ځينې کم تجربه برتانوي افسران په فکر کې اچول چې نه پوهيدل دوي دا ډول لباس د اقتصاد له مخې اغوندي. هغوي ګومان کاوه چې افريدي د کابل او د پيښور د خلکو په بر تله د خپلو ښځو په بابت دومره مواظب نه دي، حال دا چې هغوي ډير زيات مواظب دي.

د غلا شوو ټوپکو دبیا لاس ته کولو په خاطر، دمارچ په څلورم تاریخ د بوستی خیلو پر کلی باندي یرغل وشو په دغو آزادو سیمو باندي برید کول مشکل کار و، نو عسکرو د شپې له خوا او په هغه وخت کی چی پوهیدل، عجب خان په کورکی نشته، هغی خواته روان شول، په دي خوا رکلی کی چی شاوخوایی دختیودیوا لونه وو، چوپه چوپتیا وه، خلک بی یا پر پوزي باندي ویده وو، او یا به یی ځان په هغو پوستینونو تاوکړي وو، چی دوړځی له مخی به یی اغوستل. سمد لاسه زوړ اوشور پیل شو او پرخلکو باندي تهدید آمیزه غږو شو او برید ورباندي صورت ونیو.

هغو سپاهیانو، چی هندي مسلمانان وو، دبرتانوي افسرانو په لاربښوونه، کوروتوته ننوتل او ټوپکې یی پیدا کړي او وایی خستلې. مگر دټوپکو شمیر څلورڅلو ېښتوته ونه رسید. افسرانوته هغه کیسه ورپه یاد شوه، چی نارینه وود ښځو جامې اغوستی وي.

په دي توگه هغوي په دي خبره ټینگار وکړ، چی د بوستی خیلو د کلی ښځی دي، چی له خوبه راویښې کړلی شوي وي، باید ورشی او د دوي په څنگ کی دي لیکه ودریږي، چی مخونه بی ولیدل شی، څوپوه شی چی دوي په رښتیا سره ښځی دي.

ښځودا کارد وسلی په تهدید سره وکړ. افسرانو به ویل چی له ښځو سره به غرض ونه کړي. که چیري پلټونی، که عسکروي او که منصبدار، دغوښځو ته لاس ورووړي واي، نو دابه د وي له پاره عفتی وه، څه چی هغوي وکړل، دافریدو د معیارونوله مخی، پوره بد وو.

په دي شپه باندی عجب خان د ټوپکونه نور زیات شیان له لاسه ورکړل. هغه د پوغل اولوتیار په توگه خپل شهرت او اعتبار له لاسه ورکړ، ځکه چی دده پرخپل کلی باندي بریالی عملیات صورت ونیو، او ډیره مهمه خبره داوه چی هغه دخپل کلی دښځو عزت له لاسه ورکړ. دبوستی خیلو ښځی به وروباندي مسخري کولی، موربه یی هم هره ورځ ورته ویل، چی دخپل کورنی ښځی دي و شرمولی او د حقیقت دا خبري به یی ورته کولی چی تا ددغوښځو دبی عزتی غچ وانه خیست. په پای که عجب خان، په داسی حال کی چی نا امیده معلومیده، خپل مورته قران شریف راوړ، او خپل لاس یی ورباندي کیښود، قسم یی وکړ، چی دي به په داسی یو جرم لاس پوري کړي چی پخوایی هیڅکله نه وکړي.

یو عجب خان باندي د هغه د انتقام اخستلو ورغ تحمیل شو، ځکه چی برتانویانو د بوستی خیلو له افریدو څخه، چی عجب خان او د هغه و رور شهزاده د همدي قبیلی څخه وو، د هغو ټوپکو تاوان اخستل چی لادر ک وو. د تیرا د جوا کیس له کلی څخه د سلطان میرقبایل و د هغه

وروړ چې هغــه هم شـهزاده نومــيده ، د برتانويانو په فکر دټيپکو په غـلاکي برابر مـجـرم گـڼل کيدل، د اپريل ۱۶ نيټه په پيښورکي د دولسوزرو د تاديه کولوله پاره ټاکل شوي وه، اويو ځلي که قبايل دغه زياتي اندازي پيــسي تحــويلي کـړي وي نور به د عــجب خــان له پاره کوم پت او عزت نه پاته کيده.

ميجر ارچلبالد جينر ايلسي (Major Archilbald Tenner Ells) دکوهاټ د چوڼۍ په يوه بنگله کي اوسيده، چې عمومي قوماندانۍ ته نژدي و، چې عسکري محافظ گارډ.هم هلته و. دهغه ښځه، چې په لنډ يکوتل کې د دووتنو برتانوي افسرانود وژني له موضوع څخه خبره شوي وه، چې يوه اووني دمخه وه، نو دخپل هوسايني په مورد کي ناراحته معلوميدله او د هغي د اتلسي کلنی لور ســاتنه هم دي په فکر کي اچولي وه. د انجلي مــولي Molly نوميدله، دي ښځي د شپې له خوا به له ځان سره شپيلکه ساتله.

د اپريل د ١٤ نيټي د شپې په دوو بجو عجب خان او دهغه ملگري دهغو اتهاماتو له مخې چي وروستـه وربانديِ شوي وو، دايلسي بنگلي ته ورداخل شول دوي دومره تکړه وو، چې نه يې د جنرال د کور مـحـافظ وينيں شو ، نه برتانوي افسر چې په بنگله ی ويده و ، او نه هغه نوکر چې په برنډه کسي ويده وه.

اساس هدف د ايلسي ښځه وه، وروسته معلومه شوه، چې عجب او د هغه ملگرو دا ښځه د يرغمل په توگه ونيـوله څو خپله جگړه ماري موقف په اثبات ورسوي. له هغوي څخه يوتن هڅه وکړه، هغه له ځان سره وتښتوي، مگر دا هغه هوسناک رومان نه و، چې په کي يوه لويديزه ښځه د ختيځو زړه وړونکو سړو له خوا تښتـوله کيږي. دا واقعيت و، ميرمن ايلس يوه ميانه حاله ښځه او غټه وه، سړي نه شوکولی هغه په شاکړي.

ميرمن ايلس، ځان اماده کړ چې شپيلکي ته ځان نژدي کړي او شپلکه وکړي، هغي داکارو کړ، دخطرله دي آواز سره، دي سړي خپله چاړه را وايستله او دميرمن ايلس سريبی پري کړ.

نوکر چې په برنډه کي ويده وو، راويښ شو، او دمخـه تردي چې دا سـړي وتـښتي د کور نورکسان يې را ويښ کړل، څو چې مرسته را رسيدله، مولي ايلس تښتول شوي وه.

وروستـه برتانويانو له خپل واقعيت سره مخامخ شول، د شپې له هغي خپکی سره چي د هغـوي د ويري اعظمي شي و، يوه ځوانه انگليسی ښـځـه هغـو سـړ يو په واک کی شـوه چې په نژادکي ورسره توپير درلود.

بله ورځ له کوهاټ څخه داخبره خپره شوه، «په واقعيت کي د دي ډلي کسان ملگري نه

لري، په موجود، حالت کی دبوستی خپل په مقابل کی عملیات کول مصلحت نه گڼل کیږي، ځکه چی تول بوستی خیل د تعقیب کولوله پاره وتلی اوله مورږ سره همکاري کوي، زه، په داسی حال کی چی دضربی دورکولو هیله لرم، فکر کوم قبیلوي جرگی ته چانس ورکړو، او هم یو بشپړ معلوماتوته انتظار باسو چی باید ډیرونه ځنډول شی. دادله په ډیر احتیاط او په پتیه سره په اقداماتو لاس پوري کوي.»

دیوي اتلس کلنې نجلۍ د نظر په وړاندي، چی د دښمنانو په لاس کی لویدلی ده، دبرتانیه دامپراتوري کمزوري وه، دوسله والو کسانو استول مولی ته دمرگ معنی لرله.

یوازنی چاره د قبایلیانو د خپل دوک دستور په مطابق خبري اتري کول وي، او د قبایلو تربگنی به په هغه وخت کی پاي ته رسیدله چی دانتقام اخستلو لړي په نارینه وکی پاي ته رسیدله او دالړي تش ښځوته پاته کیدله. قبایلی خلکو دښځو په هکله له اخلاق څخه کار اخسته، نو په دي توگه، چون د هغوي جاسوسان د مواد ایلسی د آزادولو په لټه کی وو، برتانویانو د هغو نارینه نه، بلکی د هغو د ښځو له ډلی څخه یو تن وتاکه.

لیلیان ای، ویډستیار (Lilian A. wade starr) په پیښور کی مذهبی مبلغینو د صحی تولنی د کلیسا نرسه وه، پلاربی په پیښور کی یو مبلغ او میړه یی ډاکترو. دهغه میړه چی ډاکترورنون ستیار (Divernon Star) نومیده، یوځوان پښتون یی تداوي کړي و، او وروسته له هغه چی دهغه صحت ښه شو، غوښته یی وکړه چی عیسوي مذهب قبلوي. له اسلام سره د خیانت کولو په وجه دهغه پلار دومره په غصه شو، چی خپل زوي یی ووژاه، وروسته له یو دوست سره د ډاکتر ستیار دروازي ته لاړ، او کله چی هغه دروازي ته راغی، چاړه یی ورته په نس کی ومنډله او مړیی کړ.

اوس میرمن ستیار بیاهم دپیښور په روغتون کی د هغو دوستو قبایلیانو سره مرسته کوله، چی دایی کونډه کړي وه، حتی که دي ښځې دایلسی له جرم څخه نه وای اوریدلې، په دي باندي به نه پوهیدله، چی سرحد ته تکلیف ورکول شوي و، ځکه دهغی ډیرناروغان دصحت کید و او رخصتید و دمخه له روغتون څخه تلل. داهغه افریدي وو، چی په دي وتوسره یی معقول کسات اخسته. سرجان مافی (Sir John Moffey) چی اوس په شمال لوید یځ سرحدي ایالت کی کمشنرو، له میرمن ستیار څخه وغوښتل چی هغو قبایلی آزاد وسیمو ته لاړه شی، چی لږ نارینه انگلیسان تللی دي او انگلیسی ښځی هیڅ نه دي تللی او مولی ایلسی آزاده کړي.

میرمن ستیار چی ژیړ بخن ویښتان یی درلودل، ونه یی نوي او اشرافی مخ یی درلود، په داسی حال کی چی دسپرلی لباس په تن کی او دجنګی خولی په شان یوه سپکه خولی یی په سرکی وه، پراس باندي سپره شوه او په خپل سفر لاړه، په وروستی شیبوکی دهغی یوه هندي بدرګه په دي ویره چی ځوک به دانګلیسی افسر په ګومان وربانديډزي ونه کړي، نو دخپل ځان او دمولی له پاره د افریدي ښځو دوي جوړي جامی اخستی وي، دوي داسی پرتوګونه اغوستی وو، چی له زنګنو څخه تر ښنګریو پوري تنګ وو، او ږده توري لمنی او تورشالونه چی بی پیڅکی یی سري وي اغوستی و. دسفر په وروسته ساعتونو کی میرمن ستیار به مازي د خپلی خولی دپاسه شال واچاوه او په دي باندي به ډاډه وه چی هر ځوک چی دده له ځنګ څخه تیریږي، پرده باندي به دښځی ګومان کوي، داهغه رسم او رواج و، چی دهغو را پورونو په حواله چی ټولی دغه ستونزي یی منځ ته راوړي وي، توپ ورنه لاندي پټیدي شو.

دمیرمن ستیار ټول ورسره کسان هندي مسلمانان وو، یو یی ملا عبد الحق کاربورغی (Karborgha) دنامتو ملازوي و، چی یی دري ځلی، په مسجد کی دعجب خان پرډلی باندي لعنت ویلی و، او په لوړ آواز سره یی ویلی وو، چی پر ښځو باندي حمله کول، د اسلام دټولو قوانینو پر خلاف عمل دي، عبد الحق په سفر کس هیڅکله له میرمن ستیار سره خبري نه کولی، لین دهغه موجر دیت دهغی دحمایه کیدو سبب و. همدا راز له هغی سره افریدي افسرهم و، چی مغل باز نومیده او د سرجان مافی و شخصی هندي حاضر باش و.

کله چی داډ له یوي خطرناکی سیمی ته ورسیدله، چی برتانوي امپراتوري هلته پله پل نه وابنیی، نوله هغو ځلو ینښتو تنو سره ملګري شوه، چی دلومړي خپل یا طایفی په جرګه کی ګډون وکړ، چی دوي مجبور وو، دهغوي له ځمکو څخه تیرشی. هر کله چی دوي دیوي طایفی اخري حدودو ته ورسیدل، نودغه بدرګه جرګه به دوي دقبایلی سیمی دبلی برخی خلکوته سپارل، چی دوي په کی داخلیدل. ددي رسمی منظوري په عیر دوي ته شو کولی، په محفوظ توګه پرمخ تللی واي، میرمن ستیار په وارسره ښځو طایفوته سپارل شوي وه، یوه طایفه، دمخه تردي چی میرمن ستیارومنی، یو ساعت یی مباحثه وکړه، او میرمن ستیار داخبره څوواري واورید له، چی «اوس پوه شو، چی ولی پیرنګی پر هندوستان باندي حکمروایی کوي، دهغوي ښځی هم دنارینه و په شان دي.»

کله چی میرمن ستیار خپل سفر پیل کړ، برتانویان پوره نه پوهیدل چی مولی ایلسی به

چیري وي؟ لیکن هغوي پوهیدل چی عجب خان د تیرا د ژواکی په سیمه کی، چی په دغو غرنیو سیموکي وحشی ترینه منطقه وه، سلطان میر او گل اکبر درلودل او داسی ورسره و، لکه چی پلار له زوي سره وي، دسلطان میرکور، چی بوي قریی ته نژدي و، چی دخانگی بازار په نوم سره یادیده، داسی یو مناسب ځاي و، چی نور هغی مناسب ځاي نه معلومیده.

میرمن ستهار دخپل سفر په دوهمه ورځ باندي له سرجان مانی څخه یولیک ترلاسه کړ، چی آدرس په کی په رسمی توگه داسی لیکل شوي و، «میرمن ستهار، ازاده سیمه» په ډیرو لیروغرونوکی، په هغو برخوکی چی یوسیاح په کی د ژوندي پاته کید و صحیح باور لیک ولري، هغه سیمه چی د شلمی پیړي تهذیب په کی د خوب لیده دي، نو مفاهمه کول او ارتباط نیول ډیر ښه کار گڼل کیداي شی.

یو سړي د ځغاستی په واسطه یا داسی د سپرلی په واسطه کولی شو، هر لوري ته لاړشی او کولی شو، خپله ډله چی که ورڅخه وړاندي تللی و، گیر کړي، دمافی په لیک کی ویل شوي و، «ما همدا اوس دهند حکومت ته تلگرام وکړ اوستا دي تثبت په باره کی می ورته وویل، او ددي په باره کی می ورته وویل، چی اوس ډیر ناوخت دي چی سفر بس کړي. که بري ترلاسه نه شی نو ډیرمه مایوسه کیږه. دا به آسان کار نه وي.»

مولی، چی د دوي له خواله بستري څخه وتښتوله شوه او هغوغرونوته یوړله له شوه، چی دکوهاټ سرک ورڅخه معلومیده، یوازي دخوب کالی یی په تن کی وو. دوي له ورځ پاس په غره کی دغونډ یو ترشا غزیدلی وو او د دور بین په واسطه به یی هري خواته کتل، څکه چی په ددوي پسی د غرونو سمڅی لټول کیدي. د شپی له خوا هغوي د لوید یځ په لور د ډیرو لوړو غرونو خواته لاړل. دوي چی دشپی له خوا مزل کاوه او دور ځی له خوا استراحت، ډیرژر دهغی سیمی څخه ډیرلیري لاړل، چی د «متمدن» سپس په نوم سره یادیده.

ددي ډلی یوتن مولی ته خپله کرتی ورکړه، هغوي دمولی له پاره افریدو ښځو یوشال او یوه جوړه وطني جرابی چی تلی یی له څرمنو څخه و، پیدا کړي، چی پښی یی په تیږو وینی نه شی. هغوي پنځه ورځی مزل وکړ، او په پاي کی د غره څوکی ته ورسیدل، چی تل له واورو څخه ډکه وه. دمولی یخ کیده، بستره په هغه ځاي کی نه وه، وچه کلکه ډوډي د دوي غذا وه.

وروسته له اتومیلو سفر څخه هغوي داسی یوځاي ته ورسیدل، چی مافی دهغی په باره کی فکر کاوه، چی دوي به هلته ولاړشی: دسلطان میرکور، چی نژدي اوه میله له خانگی بازار

ځځه لیري و. داله ختیو ځځه جوړه شوې یوه کلاوه، چې په هر کونج کې یې دوه پوړ پرزیر جونه وو، مولي په د دغوبرجونو په یوه برج کې و، هغوی مولي ته کاغذ او پنسل راوړل چې خپل پلار ته خط ولیکي، او خوشحاله وه، چې په پای کې ورته موقع ورکړه شو، چې له خپل پلار سره افهام او، تفهیم وکړي، عجب خان مولي ته وویل چې خپل پلار ته دخپلې خوشي کیدو شرطونه ولیکي چې ډیر سخت شرطونه وو.

عجب خان د ډلي مشرنه و، داد هغه ورور شهزاده و، چې امرونه یې صادرول، لیکن عجب خان د ډیرو سختولیکونو لیکونکې و. او دده نوم به داسې نوم وي، چې له جرمونو سره تل تړلی وي. او هغه به د دې شیبې په قدرت، حتی د تیرو خاطرو په یادو لو باندې وباړل: «لوی خدای (ج) چې زمونږ خالق دی او مونږ د هغه بنده ګان یو، دومره قدرت یې راته راکړ، چې مې پیغله ایلسي وتښتوله، چې دا کار د برتانیه په ټوله امپراتورۍ کې ویره او ډار زیات کړي دي...»

د عجب خان دیني لارښود یو ملا او د هغې کورنۍ ځځه و، چې په اخونزاده باندې مشهور و او د هغه مشهور ملاله خپلوانو ځځه و، چې د افغانستان په هډه کې ښخ و او نادر د هغه د قبرد پاسه د جهاد بیرغ درولی و، هغه په ټوله هغه له غونډیو ځځه په ډکه سیمه کې حکمروایي کوله، او په سلګونو تنه پیروان یې درلودل، چې پیسې به یې ورته ورکولې، دوعا به یې ورڅخه اخیستله او له ښیراوې ځځه یې ډاریدل.

په دې شپه باندې دې ملا غوښتل، د ملایانو د دود دستور له مخې د هغه د علویت په خاطر، یوه میلمستیا ټولو هغو کسانو ته ورکړي، چې د لته راغلي وو، او د معمول نه زیات کسان راغلي وو، ځکه چې نږدې دوه سوه قبایلیان د دې مقدس ځای زیارت ته راغلي وو، چې په خپل منځ کې د برتانوي ښځې د ناوړې پیښې په باب خبرې وکړي.

یوتن چې د خبر و کولو پر ځای غوږنیولو ته راغلی و، د کور مې د دري د سیاسي نماینده ګی مرستیال، قلي خان و، چې وېې کړلی شو، په مشخصه توګه له ملا سره مشوره وکړي او هغه یې راضي کړ، چې عجب خان او د هغه پلویانو ته چې صرف ځومیله لیري و، د کنفرانس له پاره پولي واستوي.

اما د دې په اوریدو سره جې هیرمن ستیارد برتانیې د حکومت له یو مامور سره د ده د کورخواته را روانه ده، ملاخپه شو، ملامحمود اخونزاده د ډیرو افغانانو لارښود او الهام

ورکوونکي و ، هغه په خپل مورد کې سیاس اهمیت درلود ، چې دهغه په باره کې باید فکر شوي واي ، کټ مټ هغسې چې د برتانویانو او افغانانو حکومتونو درلودل، او دغسې رسمې را نوتنه دهغه موقف له خطر سره مواجه کړي و . هغه په چټکي سره دمیرمن ستیار ډلې ته یولیک واستاوه: «داډېره ضروري خبره ده چې تا سو باید له انګلیس سرو سره رانه شي ، که رانغلي ، نوعذربه موونه منلې شي . دیوي ښځې ډاکتري او دهغې د ډلې راتګ په قطعي توګه منع دي. دایو عاجل او ضروري امر دي . ددي امر په ماتولو سره به اور دجنګ پیل شي . » مغل باز ، داخبره ونه منله او خپل راتګ ته یې دوام ورکړ .

په داسې حال چې ملا او قلي سره یې خیري کولې ، عجب خان او شهزاده په دي اغتشاش کې د خپل رول په باره کې شرمندوکي معلومېدل، په پاي کې هغوي هغه څه ومنلې چې برتانویانو ورڅخه په ویره کې وو: دهغوي دا پلان و ، چې مولې نور هم دلویدیځ په لور افغانستان ته بوزي، چې هلته دوي کولې شول، مولې په نامعلومو ځایونو کې ترهغه وخته پوري وساتي ، چې کومې موافقې ته سره ورسیږي.

په دي صورت کې به ژغورل تقریباً ناممکن وي، دافغان حکومت سیاسي وضعه به یوه بدبختې ګنله کیدله.

میرمن ستیار ، چې دملا دمیلمه پالنې توقع کوله، خانګي بازار ته راو رسیدله. هغه ورته اجازه نه ورکوله، په دي وخت کې مابنام و ، او دي دشپې دتیرولو له پاره ځاي نه درلود ، مګر دلته په دي کلې کې یو بادرده سړي و ، چې دمخه یې په ٤٦ پنجابي کنډک کې خدمت کړي و ، او له نیکه مرغه چې دهغه کورد خانګي بازار په جګه سطحه کې و . هغه ملاته وویل:

« زه په دي ویره کې یم، چې ددي موضوع په سرباندي به زما او ستا کور په مینځ کې د قیامت ترورځې پوري دښمني وي. زما کورستاله کور څخه جګ دي، که چیري جنګ ته ضرورت شي، نوزه تیاریم، ته نه شې کولې پر ښځو باندي ډزي وکړي، څه کولې شې ؟ »

ملا په مایوسې سره ورته وویل، چې مولې خپل کورته یوسې، وروسته، په داسې حال کې چې لږ غوندي نرم شوي و ،ملا قلي ته اجازه ورکړه ، چې مولې ته لیک واستوي، غذا او دسپرلې کالې واستوي، او په نیمه شپه کې ، په داسې حال کې چې مولې سلطان میربه برج کې پر کټ ساندي ویده وه، له خوبه را ویښه کړي شوه ، او خانګي بازار ته بوتلې شوه ، چې په دي توګه اوه میله لاره کې دګل اکبر په شا وه . ګل اکبرد دي ډلې ډیر ځوان او کم اهمیته سړي و .

کله چې مولي ورسيدله ، ميرمن ستيار ويده وه ، او حتي وروسته له هغه چې په پښو لاړله ،ورته اجازه نه وه ، چې ترڅو ساعتو پوري ميرمن ستيارو ويني ، وروسته ميرمن ستيار ته اجازه ورکړي شو ، چې د ملاکورته لاړه شي ، او په هغه ځاي کی دخپل د پلټنې شي وليده ، چې په بستره کی غزيدلی وه ، ستړي معلوميده ، مگر زخمی نه وه.

عجب خان مجبور و ، وليکی ، « ماله پيغلي ايلسی سره د يوې محترمې ميلمنې په توگه چلند کړي دي ، او په داسی حال کی چې د خپل ربښتينی اسلامی دين د ډيرزيات قدرت او د هغه د حکومونو پيروی می کړي ده ، موږ پيغله ايلسی د يوپوخ امانت په توگه گڼلی ده. »

د يوي مطمئنی مخابراتی دستگاه په ذريعه سرجان مافی استول شوي و ، و هغه بياهم پر يوه ډله باندي پوره اعتبار نه وکړي. کله چې ډلی له دوو هندي مامورينو سره د موافقی خبري کولی ، د هغوي خپل قاصدان احوال ورکړ ، چې خيبر د افريدو يو لښکر د سلطان مير پرکورباندي په دي نيت حمله کوي ، چې کورته اور واچوي.

شهزاده ، چې د ايلسی په کورکی خپل واک د شپيلی د غږپه واسطه له لاسه ورکړي و ، او ميرمن ايلسی بی وژلی وه ، بيا توند شو ، هغه خپل لاسونه د آسمان په لور جگ کړل او په جگ آواز سره بی شهادت ورکړ ، چې دا په خپله د ملاترلسون لاندي خبره وه ، چې زما او زما ملگرو باندي د غه خيانت صورت ونيو.

د دي ځاي يو روحانی لاربښود ته دا يو ډول بی حرمتی وه ، ملا ، د يهيوه (Jehoah) په شان قدرت وچلاوه ، ډلی ته يی مخ واړاوه ، او ډيري شديد الحنی خبري بی ورته وکړي. هغه پرهغوي باندي تفرين ووېل.

کله چې د ملاشېخان ، چې تلی به ورته حاضروو ، وغوښتل دا ډله د هغه له حضور څخه په تيلو سره وباسی ، سمدستی ټول زرره ورتوب ورڅخه لاړ ، هغوي هغوي خپل پټکي له سرنه ايسته کړل ، او د ملا پښوته يی وغورځول ، هغوي معذرت وغوښت ، هغوي خواهش وکړ ، چې بدي خبري او خپلی ښيرا دي د دوي له سره ايسته کړي ، هغه په نارضايتی سره داکار وکړ ،

اوس خبري کول او موفقی ته سره رسيدل ، بيخی اسانه و ، مغل باز ، چې د برتانيی له پاره وکالت کاوه ، موافقه وکړه چې د عجب خان د ډلی دوه تنه ، چې مازي غله وو ، او د چاپه وژنه مشهور شوي نه وو ، خوشی کړي. قاصدان سمدلاسه ووتل ، او خوشی کړي شوي بنديان مخه د خانگی بازار خوا ته لاړل ، چې د قبايليانو په خفاظت کی وي ، ځکه چې د ميرمن ستيار ډله

رخصتیدله. مولی هغه شال په سر کړ، چی میرمن ستار له ځان سره راوړي و، او هغوي د کور خواته تګ پیل کړ

فقط هغوي د تللو نه د مخه، ملا، چی تراوسه پوري بی بیخی له ښځو سره خبري نه وي کړي، دمغل باز په لاس دماري له پاره تحفه ورکړه، چی سرو زرو بوه افغانی غاړ کی وه.

هغوي په بوولسو ساعتو کی دیرش میله واټن وواهه او مولی دورځی په ډیرو ګرمو ساعتونو کی په کټ کی وړل کیدله. کله چی هغوي تراداري لاندي سیمی ته راورسیدل تپه تیاره وه، او میرمن ستار د لاس بیجلی څخه کاراخیست. هغو سړو چی د غونډ یو په بیخ کی په انتظار ناست وو او د بیجلی رڼایی ولیدله، چی په پر مخ ځوړو لارو باندی لوېږي، پوه شول، چی مولی تقریباً کور ته راورسیدله،(۳)

برتانویانو، ملا محمود اخوندزاده ته پنځلس زره روپی کلداري ورکړي، دهند حکومت چی د پیسو په ذریعه باندی دخوشی کولوله موضوع سره مخالف و، په دي لټه کی وچی دا موضوع په داسی یوي طریقی سره پټه کړي، چی په پر مختللو ټولنو کی بی عمومیت درلود. هغوي وویل، چی پیسی ورکړي شوي دي، «نه دپیغلی ایلسی د خوشی کیدو په خاطر، بلکی د ملادزیات لګښت په خاطر.» پارلمان ته همداسی وویل، شو. دي کار هغه کسان خطانه ایستل، چی په سرحد کی اوسیدل، ځکه یوهیدل، چی د ملا دمیلمستیا لګښت یوازي د څو پسونو حلالول و. دوایت هال اشرافیانو نور په دي باندي ونه غولیدل، او دهغوي په فکر دمیلمستیا مصرف دلندن په کلارج (Claridge) کی دچک ترلاسه کول و. د افغانستان حکومت په خصوصی توګه وویل، «دا پوره معلومه نه ده، چی ملا به په دي موضوع کی دمیلمستیا لګښت او په پیسو خوشی کړي شوي بندي دموضوع ترمنځ تشخیص وکړي، او هغه آوازه، چی خپره شوي ده څرګندوي، چی قبایلیان او نور کسان د دي ترڅیرپه پوهیدو باندي ناکامه شوي دي.»

کله چی دهند تقنینی مجلس ته دلګښت راپورور کړ شو، یو هند وغړي پوښتنه وکړه، «ایا تردي دمخه دهند حکومت د داسی پیښو په مقابل کی چی کومه هندي نجلی یا ښځه تښتوله شوي وي، په کوم اقدام لاس پوري کړي دي؟ ددي پوښتنی ځواب چا په غاړه وانه خیست.

د نازي خیلو افغانی ښځی چی برتانویانو وریاندي سهوا ډمونه وغورځول، د هغوي دسرتاوان ۱۷۵۰ روپیو ته رسیده.

همفریز داپریل تر دیرشم تاریخ پورې د دغو قتلونو په باره کې له امان الله سره ونه غږید، په همدې وخت کې هغه له خپل حکومت سره د افغان د مسئوولیت داندازې په باره کې په مناقشه بوخت و، چې دده په فکر مشکوک او غیر قابل ثبوت و.

همفریز وویل، «زه نه شم کولی چې پوه شم افغان حکومت د دې پېښې هست ته څنګه مسئوول کېدای شي.» هغه ته هدایت ورکړشوی و، چې افغانستان مسئوول کړي.

همفریز وکړای شو، له امان الله سره بوازې ووینې، لکه څنګه چې د هند حکومت تجویز ورکړی و، «ځکه په قبایلوکې آوازه خپره وه چې په قضیه کې د تعصب امیر غضب سره د امان الله لاس دی چې (خطرناک بالقوه مفاهیم یې څرګند دي) او باید بوازې د امان الله غوږ ته ورسول شي.

امان الله وویل، «نه ما او نه زما وزیران، حتی په ګوښه توګه تجویز نیولی دي چې له لویې برتانیې سره دښمني وکړو، برعکس مور قبایلیان تشویق کړي دي، چې له دښمنۍ څخه لاس واخلي، دبیوالي روحیه پیدا کړي، اوله یرغلي او د تشدد د له هر شکل څخه ډډه وکړي.»

وروسته همفریز هغه موضوع درک کړه چې دی د هغه د بحث له پاره راغلی و، په کوهاټ او لنډی کوتل کې دوه قتلونه په هند او لویه برتانیې کې د کرکې ور ګرځیدلی وو.

«زه مثبت شواهد په لاس لرم چې دلنډیکوتل قتلونه دسنګو خپلو د دوو افغانانو له خوا صورت نیولی، چې هغوی دمخه په ډاګه په خپل جرمونو باندې اعتراف کړی دی. څرنګه چې زمور د دو و هیواد ونوترمنځ دمحکمود بدلولو قرارداد نشته، نوزه دا غوښتنه نه شم کولی، چې قاتلین دې د محاکمې له پاره د برتانیې محکمې ته ورکړل شي، لیکن داده ووګاوندیو او دوستو هیوادونو له پاره یو ساده کاردی، چې قاتلین د برژر سر زنش او ګرفتار کړي.

«که چیرې په دې مورد ی دموضوع ومه تاکامې وي، چې زه په سختې سره د هغه امکان فکر کوم، دبرتانیې حکومت او عوام به خپلې نتیجه ترلاسه کړي.»

وروسته هغه په اخلاص سره امان الله ته خبر دارې ورکړه «د دې قضیې حل دافغان حکومت ښه نیت او دهغه حکومت ددې ادعا یو امتحان دی چې وایي د یو متمدن هیواد په توګه وپیژندل شي.»

دا لومړی ځل نه و، چې یو بر تانوي مامورافغانانو ته د یومتمدن هیواد په کړو وړو باندې توضیحات ورکړي و، دري کاله دمخه، په میسوري کې، سرهنري ډاپس ورته ویلي وو، چې

متمدن هیوادونه او هغه دیو هیواد په توګه د متحده ایالتونو نوم واخست، دوستو هیواد ونو لکه برتانیی ته اجازه ورکړي ده، چی د خپل قلمرو لاندي سیموته پولیس واستوي، چی د هغو کسانو پر ضد عمل وکړي، چی د برتانیی سیاسی رژیم ته صدمه رسولی ده، دا هغه شی و، چی برتانویانو غوښتل په افغانستان کی د مختلفو هندیانو پر ضد وکړي. افغانانو ته دوباره وویل شو، چی متمدن هیواد و د تر سرحدي کرښی پوري تولی لاري نه دي مستحکمی کړي، په حقیقت کی په دي مفهوم کوم قرار داد نشته، لیکن د بر زیات نور فکتورونه شته دي، چی پر دفاع باندي اغیزه اچوي، چی د سیسی د آخري انچ استعمال موضوع په عسکري کسانو کی په ندرت سره مطرح ده، اوس همفریز امان الله ته وویل، چی هغه دي باید هغه کسان ونیسی، او ورته دي جزا ورکړي چی د برتانیی په قلمرو کی په جرمونو مرتکب شوي دي، او هغه څرګنده کړه چی داد یو متمدن هیوا د امتحان کول دي. په دي کی هغه ځینی شیان غوښتل چی لویه برتانیه به د نورو کومو هیوادونو له پاره وي کړي. په ۱۸۷۹ کال کی برتانیه د محکمی د بدلولو یو عمل بی تصویب کړي و، چی څوشوطونه یی درلودل. د مخه تردي چی د برتانیی هیواد به فراري مجرمین یوبل هیواد تسلیمول، او د سیاسی جرم په خاطر بل هیواد ته د یو نفر تحویلول بند کړي و.

لیکن برتانویانو به ویل چي افغانستان به تر هغه د یو متمدن هیواد په توګه ونه پیژندل شی، څوچی د برتانیی فراري مجرمین په سزاو نه رسوي، او امان الله د تولو شیانو په سر کی غوښتل چی هیواد یی متمدن وي. امان لله هغه نومونه یادداشت کړل، چی همفریز ورته ورکړي و، چی دا یلس په جرم کی یی لاس درلود. هغه وویل، «زه به په خپله د دي بی شعوراو کرکجن جرم د څیړنو څارنه وکړم، او نتیجه به یی زما د قدرت امتحان وي.»

داد همفریز، نظریه وه چی پر امان الله باندي د لاري په موقتی ډول سره فشار راوړل شی، چی ویلی یی و، د هند له لاري به هغه وسله افغانستان ته راوړي، چی د هغه فرمایش یی ورکړي و او همفریز وربانديي پوه وه، اوس همفریزدا ضربه ورته ورکړه، چی په کی راغلی وو، «تر هغه پوري چی افغانستان ځان د برتانیی دوست ښیی،» د مالو نو د تیرو لو اجازه ورته ورکول کیږي. د دوستی په علامه، هغه داردلی او داود شاه په سمدستی ګرفتارولو او جزا ورکولو ټینګار وکړ. اردلی او داود شاه دوه افغانان وو، چی د شینوا رو په سنګو خپل کی اوسیدل او د میجر ار او ایندرسن په وژلو تورن وو.

امان الله خان په جدي توگه ورته وویل، «دافغانستان کړنلاره او هوساینه په حقیقت کی دلویی برتانیی پر دوستی پوري اړه لري. زما او زما د وزیرانو پالیسی به په زیات اخلاص سره ددي وستی د دوام په لور لارښوونه وکړي. »

همفریز دمخه تردي چی پرشاوو ځی، لکه چی دیوپیا چاله دربار څخه هغس وتل یو مناسب عمل دي، په خون سردي سره وویل، «هغه وخت را رسیدلی دي دغوژمنو ته به عملی بنه ورکړو. »

# دیارلسم فصل

## د ۱۹۲۳ له اپریل څخه د ۱۹۲٤ د مارچ تر ۲۰ پوري

«د افغانی اتباعو تعقیب او گرفتاري دهغو جرمونو په مقابل کی چی په برتانوي هند کی مرتکب شوي دي، له ټولو افغانی دو دونو څخه یو انحراف وي. امیر حبیب الله خان، چی حتی دهغوي مرستي ترلاسه کولی، هیڅکله دومره ژر پرمخ نه وتللی.»

حتی په هغه وخت کی چی برتانویانو د دي خارق العاده غوښتنی ماهیت قبول کړي و، د دي مقاومت ته چی په افغانستان کی یی لیده، اریان پاته وو.

په رسمی راپورونو کی داسی ویل کیده، «د دغو پر له پسی چل بازیو سرغړونو دلیلونه... باید په زیاته اندازه یو تخمینی موضوع وي، لیکن دهغوي له جملی څخه ممکن یو یی د هیواد د دو ومتخاصمو ډلو په موجودیت کی ولیدل شی، ولی... چی داروپا له سفر څخه تازه را گرځیدلی و... په سوچه توگه داسی معلومیده، چی غواړي د خپل هیواد بهرنی سیاست په متمدنو اساساتو اداره کړي... سره له دي، هغه له سرحدي موضوعاتو څخه بیخی بی خبره و.

«د پام وړ شواهد وجود لري، چی څرگندوي نادر دهغه لوي رقیب و، د دیپلوماتانو او عسکرو په منځ کی، د بین المللی چارو سري او دسرحد متخصص ترمنځ داسی ښکاري چی دهمدردي نشتوالی وي... او نادر د برتانیه د غوښتنو په منلو سره دلاري دپرانیستو هغه نري انجام لیدو، چی په راتلونکی وخت کی به افغانی نفوذ له سرحدي قبایلو څخه له منځه وړل.

هغه، دبهرنیوچارو د وزیر په توگه دخپلی مقرري د په نظر کي نیولو سره په دي دلیل له

خپل واقعي استعداد څخه د یوې دسیسې جوړولو په خاطر کاراخستل چې د هغو وعدو په تر سره کولو کې خنډ واچوي، چې د ولي خان او امیر محمد له خوا د برتانیه د غوښتنو پوره کولو په منظور شوې وې، د هغه انګیزه دا وه چې د ولي خان د بهرنیو چارو کارونه بس ترسره کړي، د افغانستان او انګلیس په اړیکو کې ته ډې پیدا کړي، او د بهرنیو چارو د وزیر کیدو له پاره لاره ځان ته هواره کړي او بیا د برتانیې د هېلو د ژر اجرا کولو له لارې ځان داسې وښیي چې ګواکې د وه ځلي یې خپل هیواد ته نجات ورکړی دی، یو ځلې د جنرال په صفت او بل ځلې د سیاست په ډګر کې د یو سیاست پوه په توګه.

« یو ډیر خطر ناک امکان د هغو معلوماتو له مخې تجویز کیږي، چې تازه له اروپا څخه را رسیدلي دي، او څرګندوي چې د نادر هدف دادي چې د و خان ځاي ونه نیسي، بلکه په خپله د امیر ځاي ونیسي، او فعالیت کوي چې یوازې سیاسي بحران منځ ته رانه وړي، بلکې انقلاب وکړي.

« په هر شکل باندې چې دا مفکوره څرګندیږي، نادر د یو ورانکار سړي په توګه معرفي کوي چې پلان لري د خپل پرمختګ په خاطر یا امیر تخریب کړي او یا د بهرنیو چارو وزیر په اوسنیو شرایطو کې دا موضوع د ډیر ضد او نقیضو حالاتو په تشریح کولو کې مرسته کوله، لکه د مثال په ډول، د ولي خان د ذمه واري او په هندي سرحد کې د افغاني مامورینو د واقعي اداري ترمینځ تکرار شوي اختلافونه... د ولي خان، چې د پیرز (Pears) په نظر یو بې تعصبه او پاک زړي سړي و، او د نادر، د دواړو پر مختګونه د غې مفکوري ته رنګ ورکړي و. هغه وخت چې موضوع ته د غسې نسبت ورکړشي، او حقایق په نا ګاهانه توګه تحریف نه شي، نودا به د یوې ممکنې څرګندونې په توګه ګټوره توګه په فکر کې وګرځي، چې په موجوده حالت کې بې خونده غوندې ښکاري ».

محلي مامورینو په ختیځ سرحد کې خپله وو او مجبور کړي شوي وو، د برتانویانو د غو غوښتنو ته غاړه کیږدي، په تیره بیا هغو قبایلیانو وظیفې خوشې کړي، چې له افغاني قوي سره د یو ځاي کیدو په خاطر، له برتانویانو څخه تښتیدلي وو. برتانویانو لیکلي و، چې « د یو افغاني منصبدار چې ولایاتو ته استول کیږي، طالع ښې نه دي. د افغانستان معمولي قشلې... سمې نه دي او د اعتبار وړ نه دي، او هغه سړي مجبور دي د خپل موقف د خوندي ساتلو په خاطر د سیاست له مخې د عامه افکار وپیروي وکړي... موجوده نایب الحکومه... په یقین سره د رخصت شوي وزیر له امله د یوې ناګهانې پیښې د پیښیدو په ویره کې و.

« په داسی حالت کی چی په افغانی ادارو کی عمومی بی نظمی منځ ته راغلي وه، او دا بی نظمی دخلکو له پاره د مرکز لـه او امرو څخه دسر غړونی زمینه برابره کړي وه، په ولایتونو کی د خلکو نظر په یقین سره د نادر په طرفداري و... کله چی له دغو عواملو سره د ترکی او روسیی نفوذ له دي مفکوري سره یوځای شو، چی د قبایلو معاشونه په روپیی پیسو یاندي ورکول کیږي، نو دا تشویق خبره نه وه، چی د بهرنیو چارو د وزیر داجراتو تضمینونه سست او ساکن وو. »

اوس نادر د هیواد دوهم نجیب او شریف سړي و. دنظامنامو په اساس، کله چی امیر له کابل څخه دباندي ته، هغه مجبور و، دکارونو داجرا کولو له پاره یونماینده وټاکی. هغه نماینده نادرو. مگر هغه اهمیت په خطر کی و.

دهغه کورنی د افغانستان د امیر له کورنی سره نژدایوالی درلود. دهغه دري ورنه دامان الله خان له دریو سکه خویند وسره، چی دعلیا حضرت لونی وي نامزاد وو، په دوي کی یوه هغه ښځه وه، چی علیا حضرتی په لور توب سره منلی وه، دا دهغی ښځی لوروه، چی موربی ددي د ولادت په وخت کی مړه شوي وه، او علیا حضرت دخپل میړه په خواهش، ددي نجلی او د خپلو لونو په منځ کی تر پیرنه کاوه، دا دشاه محمود ښځه وه شاه محمود چی چاغ او گردي مخ درلود. د خان آباد نایب الحکومه و، بله خوربی دشاه ولی سره وا ده وه. شاه ولی یونري جگ سړي او داسی څیره یی درلوده چی برتانویانو هغه د بیو سمبرور (Beau Salreur) په شان معرفی کوله، او معنی یی داوه چی هغه د دوي د هیواد د توري گرزوونکی منصبدار (Doshing Officer) په شان معلومیده، چی د هغوي دسترو رومانونو بو اتل و، که چیري هغوي وریاندي سطحی او کم ارزښت فکر کاوه، نو داهم درومانتیک عکسی په مطابق و.

نور السراج، دامان الله خان نازولی خور، دهاشم چنغله وه، د نادر دغه و رور شرقی غتي سترگی او دبادام په شان مخ درلود. دي دنادر سکه ورو نه و، لیکن له هغه سره زیات مشابهت درلود، او په زیاته اندازه د هغه په طبع برابر و، او د داسی قوي شخصیت خاوند وچی په شاولی کی نه لیدلی کیده دحبیب الله د وژل کیدو په وخت کی هغه د هرات نظامی نایب الحکومه و، کله چی « کم اصله » نظامیان نادر او شاه ولی په زوکنوکی کابل ته راوستل، هغه په داسی حال کی چی له هغی وظیفی څخه بر طرفه شوي و. دجلال اباد نایب الحکومه مقرر شو. دي په هغه ځاي کی دافغاني قبایلو او دبرتانوي دسیمی د افغانی قبایلو دنفوذ له درکه

ځان باقدرته احساساوه، او هغه کسان چې دا ډول قدرت ه درلود او تولنیز دریځ یې ضعیف و، رخصت کړي شوي وو.

نورالسرج پر امان الله خان ډیره گرانه وه، هغې چې په ناز او نعمت کې لویه شوې وه، له نور وسره هم مقابله مینه څرگندوله، هغې ښه تعلیم یافته وه، په شاهي کورنۍ کې دمخ نیولو زوږ دود لاتر اوسه رواج درلود، کله چې نارینه نوکران د شهزاده گۍ له پاره د ډوډې میز جوړاوه، او په پتنوسو نه کې یه یې له مرکزي آشپز خانې څخه ډوډي راوړله، نو پر خپلو سرونو باندې به یولوي ټکري اچاوه، او یو وړوکی هلک به دغه پیش خدمتان د حرمسراي په لورلارښوونه کول. هرڅلې چې دوي د قصرڅخه د باندې چکر ته وتلې، نو چادري گانې به یې په سر کولې، چې مخسونه یې پټ وي، که څه هم د دوي جامې او بوټان ممکن په هغه ډول وو چې ښځو په پاریس کې اغوستې، مگربیا هم دوي په خپله تولنیز، حلقه کې له نارینه وسره ملاقات کاوه او په آزاده توگه به یې ورسره خبرې کولې، دمثال په ډول، هغوي دافریدو د ښځو په شان قیوادت نه درلودل، چې یوازې له خپلو ورونو، پلرونو او سکه ترونو سره وغږیږي. نورالسرج به له بهرنیو دیپلوماتانو سره لیدنه کتنه کوله، همفریز هغې ته «جذابه» ښځه وویل، د هاشم له پاره نورالسراج داسې یوه ښځه نه وه، چې گواکې دې غواړي مازې دپاچا دخورد میره په نوم یادشي او اعتبار یې زیاد شي، هاشم داسې نه و، چې دخپلې ښځې مخ یرازې دواده په شپه کې داینه ومصحف په وخت کې وويني، هغه له نورالسراج سره رښتینې مینه درلودله، کلونه کلونه وروسته به ځینې کسان داوواېی، «د نورالسراج نوم به هاشم راپاراوه.»

امان الله خان له دغو درو نامزادونو سره موافقه کړي وه، او د شاه ولي او شاه محمود ودونه صورت ونیوه، مگر هغه دې ته حاضر نه شو، چې خپل نازولې خور هاشم ته ورکړي، هغه وویل چې هاشم زماد خور له پاره ډیر زوړدي، ذاسې خبرې کیدې، چې امان الله خان په قارو، چې دغې تجریدي کورنۍ ته دومره قدرت ولې انتقال شي او تصمیم یې ونیو چې محدود یې کړي، داسې آوازه هم وه چې دغه کورنۍ د امیر حبیب الله خان په وژلو کې لاس درلود.

هغه سړي چې وروسته، امان الله خان نورالسراج ورته ورکړه، حسن جان نومیده، چې دهغه دسکه تره محمد عمر خان زوي و، حسن جان او نورالسراج په سن کې سره نژدې وو، همدا راز هغه دامان الله خان دوړوکي ورور په سن و. دعلیا حضرتې یوازنی بل زوي په هغه وخت کې پیدا شو، چې امان الله خان درویشت کلن و.

واده تر ۱۹۲۶ کال پوري صورت ونه نیوه، مګر په پاي کی یی خپله وړکی خور خپل وړوکی نماینده ورور، حسن جان ته واده کړه او هغه یی دخپل عزت شري وګرځاوه او مطمئین و چی نور السراج به دهغه په کورنی کی پاته شی.

دنامزادي دماتولو په ډاګه اعلانول بوډول توهین و. کله چی هاشم دنورالسراج په نیولو کی ناکام شو، نو زړه یی مات شو، او بیخی یی له بل چا سره واده ونه کړ، مګر د هاشم له پاره غرورد مینی په شان بوه قوي انګیزه وه، او د نادر له پاره، چی دا پوهه یی نه درلود له چی نور السراج ورته نه ده ورکړله شوي، بو ډول سپکاوي و- ۱۹۲۳ کال په اپریل کی هاشم د خپل پلار سره، چی دخپل علاج له پاره اروپاته ته، لاړ، او ددي پرځاي چی بیرته راستون شی، اروپایی پایتختونه به یی یو په بل پس لیدل.

نادر پاته شو، دکورنی غړو ته بیا د یوځوان خپلوان په واسطه، چی دحربی ښوونځی شاګرد و، تاوان ورسید، داشاګرد مړشو، او هغه مرګ دښوونځی قوماندان ته، چی جنرال محمود سامی تومېده، نسبت ورکړ شو چی دا هلک یی وهلی و، او د وهلوله لاري یی ورته جزا ورکړي وه، دکسات له پاره د نادر غصه افسانوي وه، داسی ویل کیده، چی جنرال برطرفه کیږي. امان الله خان دتحقیقاتو امر صادر کړ، چی داسی څرګنده شو، چی هلک تروهل کیدو وروسته درس ته حاضریده او حتی داچی په سپورتی فعالیتونو کی یی برخه اخیستی وه، محمود سامی خوشی شو، مګر پوره نه، ځکه هغوي مجبور و چی دهلک کورنی ته دملهمانی تاوان ورکړي.

دحبیب الله خان په دوره کی د نادر دښمنی، محمود سامی د څوکالو تبعید ته اړکړي و، اوس نادر نوي قدرت ترلاسه کړي و.

دنادر شهرت ته ددغو تولو شخصی ګوزارتو سره سره، هغه دهغسی شهرت په باره کی پریشان و، چی قبایلو دده او دده دهیراد له پاره احساس کاوه، اردلی او داود شاه له هغی امن نامی څخه دسرغړونی په واسطه نیول شوي وو، چی یو مسلمان دي باید پریل مسلمان باندي تیري ونه کړي. نادر چی له قبایلو سره یی اعتبار دده د موقف یوه پایه تشکیلوله، نه غوښتل چی هغسی پالیسی ځان ته غوره کړي چی هغوي ورباندي خپه شی، هغه غوښتل چی لږترلږه له دغه فساد څخه دځان په ګتیه (ښه) ترلاسه کړي.

هغه دجون په ۱٦ نیټه د برتانیی په نماینده ګی کی ډوډي وخوړه، او همفریزته وویل،

« موږ بې ساري هلې ځلې کولې چې ستاسو هیلې تر سره کړو. د داود شاه او اردلي گرفتاري کوم عادي بریالیتوب نه دي... (بلکې) د ختیځ ایالت د خلکو له خوا د داسې یو ي شي په توگه فکر کیږي، چې گواکې افغان حکومت د برتانویانو تر دومیشیون لاندي دي...

نادر خواهش وکړ، « له حوصله څخه کار واخله، هغه خطر په فکر کې ونیسه چې که موږ په زیاتې چټکې سره د برتانویانو غوښتنو ته تسلیم شو، همفریز غلی شو.

نادر ټینگار وکړ، چې « د دې له پاره چې د امیر پر کړو وړو باندي د هغه د اولس به دیدگاه څخه قضاوت وکړو، « ایا د لویې برتانیې له خوا به د افغانستان په لور کوم خیرخواهانه حرکت متصور نه وي؟ د مثال په ډول که یوه الوتکه له هند څخه پرواز وکړي او امیر ته پیشکش شي، دا به د افغانستان پر خلکو باندي یو عجب اثرونه کړي؟ » دا پر همفریز باندي کوم تاثیرونه کړ.

د بوستې خیل خلکو او د هغوي گاوندیانو یوه داسې موافقه لاسلیک کړه: موږ د گلس (ملکان موافقه کوو چې د ۱۹۲۳ کال د مې د میاشتې په ۲۲ نیټه د عجب خان افریدي او شهزاده کورونه وران کړو، چې د برتانیه په قلمرو کې د قتل مرتب شوي دي، و موافقه کوو چې د کاوان خان شیراگې هستوگنځې وران کړو، چې د فولکس د قتل او نورو جرمونو مرتکب شوي دي ». د غو خلکو موافقه وکړه، چې د دوي له ځمکو څخه دې سره تیر شي او د عسکري گارډ پوسته دې جوړه شي. « که چیرې زموږ کوم قبایلې سړي د برتانیې په قلمرو کې د کوم قتل مرتکب شي، نو موږ به یې سمد ستې له خپلې سیمې څخه وشړو او کورته به یې اور ورته کړو، او وران به یې کړو او کومه جزا چې حکومت ورته د هغه د جرم په مقابل کې ورکوي، د هغه ملاتړ به وکړو، » د حکومت په غوښتنه داسې یوه موافقه هم وشوه، چې دوي به هغه باغیان وشړي چې د دوي په سیمه کې پټیږي، برتانویانو دا کار له قبایلو سره د ښوروا بطو یوه نښه وگڼله.

سرجان مانې، چې په خپله د عجب خان له افریدي د کور سوځیدل مشاهده کړي و، داسې وویل، « د باغیانو په خصوص، زه د ځینو زړو گورونو له ورانولو څخه تیرشوم، ځکه چې په ډیرو موارد وکې د د غو کورونو خلک د واده او نورو مناسباتو اړیکې له باغیانو سره درلودي، لکه چې یو زوړ مشر سړي وویل، « تاسو زموږ له تن څخه کمیسیونه وویستل، پر توگونه خوراته پرېږدي. »

د برتانیې بمونه، چې د دې ستونزې اساس علت و، بیا و غورځول شول، پرته له دې چې

هغوي ته خبرو رکړشوي واي. دا بمونه د اورکزيو او افريدو پر هغو طايفو باندي وغورغول شو، چي دجرګی له پاره سره راغونډ شوي وو، دغه چتکتيا اوپر هغوي باندي ناڅاپي حمله اورکرزيو ته يو اخطار و، چي دهغوي کړه وړه پوره رضايت بخشه نه وو، دوي پر معنوياتو باندي ددي اغيزي دهغه حقيقت له مخي څرګنديږي، چي ددي پيښي په مقابل کې کوم احتجاج صورت ونه نيوه، موضوع په اګاهانه توګه حل شوه،»

عجب خان او شهزاده ملک منصور په کورکی پټ و. ملک منصور د شينوارو له سنګوخيلو څخه و. د جلال آباد نايب الحکومه چی له دي موضوع څخه خبرشو، خپل سري بي واستول چي پر منصورباندي فشار وارد کړي، چي دخپلو ملګرو د پناه ورکولو څخه لاس واخلي، منصور پوره يقيني نه و، چي دا خبري چي دي اوري، رښتيا وي، داسي سوال ورڅخه په رښتيانه کيده، چي خپل هغه مسلمان ملګري خوشي کړي چي دکافرانو له لاسه، چي برتانويان وو، تښتيدلي وو، هغه يغمان ته وغوښتل شو چي قضيه په تفصيل سره واوري. يغمان هغه سيمه وه چي امان الله خان داوړي په ګرمومياشتو کی له خپل دربار سره هلته ته. ملک منصورته اوس هم سخته معلوميد له چي پرخبره باندي باور وکړي.

امان الله خان په دي پوهيده چي دسرحد پښتانه او دهغوي افغاني خپلوان چي دسرحد په شاوخوا کې پراته دي، په خپلو منځو کی سره تينګی اړيکي لري، مګر لويديزه نړي په دي باندي نه پوهيدله، کله چي دلندن د ډيلي ميل (Daily Mail) اخبار دغه تور خپورکړ، چي امان الله خان پارونکی کرنلاروه چي له قبايليانو سره دميرمن ايلسي په وژنه کی مرسته وکړه، نو دهغه رسمي اخبار چي دامان افغان په نوم سره ياديده، دغه تور« بی اساسه وګڼلو او څرګنده يی کړه چي دا يو داسي توردي چي هڅه کوي د نړي سترګو ته دافغانستان حيثيت ټيټ معرفي کړي، هغه روحيه چي ددغو قتلونو سبب شوي ده، د امير ياد هغه دکوم مامورد خبرو لو له مخي خلکو ته نه ده ورکړي شوي، بلکی دا په خپله د انګليسانو ظلم اوتيري و، چي قبايل يی راپارولي وو، موږ په داسي حال کی چي د ماشومانو او ښځو قاتلان په کلکه محکوموو، دا پوښتنه کوو، چي څوک ډير مجرم شميرل کيږي، هغوي چي يوه ښځه يی وژلی ده، يا هغوي چي په سل هاو تنه يی وژلي دي.»

انګليسان چي پوره نژدي شوي وو، چي د کړو وړو په اختلاف باندي پوه شي داسي اعتراف وکړ: « کوم شي ته چي موږ ورته د بيرحمانه وژني وايو، ممکن کله له خلکوته، د آزاد

جنگ د مړینې په شان ثرگند شي .. او همفریز خپلو آمرینو ته وویل، « د دې حقیقت د منلو له پاره قوي دلیلونه شته چې امیر او نور ټول پوه افغانان په دې فکر کې دي چې زاړه تعصبونه او بربریت په اساسي توگه له منځه یوسي، او افغانستان په دې باندې اخته دي، پر اثبات ورسوي چې له متمدنو هیوادونو څخه دي. »

« متمدن » هغه لغت دي، چې برتانویانو، په هغه وخت کې چې له افغانانو سره خبرې اترې کولې، استعمالولو، امان الله چې ډېره هڅه یې کوله چې خپل هیواد ته د متمدن نسبت ورکړي، د قبایلو تیرښه نظر، او په زیاته اندازه د لویدیزې نړۍ ښه نظر ته متوجه شو، چې د نادر خان ته ډېر زیاته معنی لرله، د هغه د بهرنیو چارو وزیر، ولي خان، چې په هغه نړۍ کې و، هم همداسې وکړ، هغوی د لویدیز قانون پوهنې سره آشنانه وو، نو نه پوهیدل چې برتانیې، د تمدن په نوم هغه شي ور څخه غواړي چې متمدنه نړۍ ور ته غیر متمدن وایي، او دا د هغه جرم جزا وه، چې د هغوی له سرحد څخه د باندې صورت نیولی و.

نو امان الله، اردلي او داود شاه، د هغه قتل په جرم محاکمه کړل، چې په برتانوي سیمه کې صورت نیولی و، برتانویانو غوښتل، چې اردلي او داود شاه، چې د افغانستان په محکمه کې محاکمه شوي دي باید خپله سزا وویني او پیشنهاد یې وکړ چې که د افغانستان محاکم شکمن وي، نو زمونږ غوښتنلیک دي په دوران کې واچول شي، ثوپر موضوع باندې فشار واچول شي، چې تورن کسان دې مونږ ته تسلیم کړي، چې په هند کې محاکمه شي. » د هند د حکومت د دفاع وکیل فکر وکړ چې، « قضیه، لکه څنگه چې ده، د برتانوي هند په محکمه کې به د بریالیتوب چانسې ولري، که تورنو کسانو اعترف ثابته کړي چې پېښه د دوي له خوا په داوطلبانه توگه سرته رسیدلې ده، زه فکر کوم محکومي به یې یقیني وي... لیکن په (افغانستان کې) د موجود، قضیې مجرمینو ته قانوني اساس جزا نه ورکوله کیږي، چې د مسلمانانو له خوا، غیر مسلمان کسان وژل کیږي. »

د برتانویانو له لاري « زمونږ سړي » لیوتینانت سي. ار وامبویل (Lieutenant C.R Wambwell) و، چې د سیفورت هایلندرز (Seaforth High Landers) څخه و او د هغه کنډک و، چې وژل شوي مجرمان په هغوي پوري مربوط وو، د اسلامي قانون له مخې د مجرمینو له پاره دوه ټکي په نظر کې نیول کیده، چې یو ئې « حق الله » او بل یې « حق العبد » و. حق الله د محکمې له خوا فیصله کیږي، چې مجرم ته څه جزا تعینوي، او د حق العبد موضوع

دمجرم له نژدي خپلوانو پوري اړه نيسي، چی له مجرم سره بالفعل عمل کوي يا خون بها ورڅخه اخلی (دکوم مقتول نژدي خپلوان دخپل مدعی سر پري کړي و) برتانويانو اعلان وکړ، چی اسلامی قانون تطبيقوي. »

دتورن وامبول رول افغانانو او برتانويانو ته نا ارامه کوونکی و. هغه مجبورو، دبرتانويانو د يوژوندي مثال په توګه هره ورځ محکمی ته حاضر شی، هغه ويل، « مونږ فکر کوو وزير بايد هڅه وکړي، چی افغانان په کارواچوي، چی زمونږ تفرومنی چی ورسره دهغوي دحکومت دتحقيق په مورد کی مرسته وکړي.

په مطلقه توګه ويل کيدي شی، چی که دقتل موضوع مونږ په خپله وڅيړو، نو دابه زمونږ له پاره د دښمنی فضا منځ ته راوړي او که افغان حکومت پوه شی، دابه په ضمنی توګه په افغانی حاکميت کی يو لوي درز پيدا کړي. »

داګست په ۱۷ الی ۱۸ شپه اردلی او داود شاه د ارګ له کوټه قلفی بنديخانی څخه وتښتيدل.

دمحه تردي چی ولی خان، همفريز د تښتی له موضوع څخه خبر کړي، چی دمحاکمی ټول پلانونه بی ضروري وګرځول، شپږ ورځی تيري شوي. برتانويانو به د « تيښتی » لغت د قوس په منځ کی ليکلو، که څه هم هغوي دامنلی چی له افغانی بنديخانو څخه کله کله په رښتيا سره خلک په تيښتو بريالی کيږي.

ليکن هغوي و اوريدل، چی په خپله اردلی دخپلی « تيښتی » موضوع نادرته حواله کوله، و هغوي به داخبري کولی، چی « د نادر د وزير يا د بلشويک پيسی په دي مورد کی په کار اچول شوي دي. »

په خپله امان الله خان دهغوي ترشک لاندي راغی. « هغه ترتيب او تنظيم ...چی دهغه په وسيله برتانوي ټولنه هره ورځ د برتانيی له نمايندهګی څخه دکابل محکمی ته حاضربدل، په قوي احتمال سره به د هغه نسبت هغه فعاليت ته ورکول کيده، چی په ديپلوماتيکی زور سره خپله فتوا صادروي، محکوميت... په ممکن عامه ذهيت پارولی واي، په واقعيت کی، نتيجه به بی دامير پر ضد پاڅون وي، په تيره بيا په ختيځ ولايت کی، چی دتعصبی احساساتو په لړلو شهرت درلود او په دي وخت کی چی هلته اجرائيوي قوه ډيره ضعيفه وه، دداخلی بی نظمی نښ په هغه ځاي کی دمخه موجودي وي، او ممکن امير داسی فکر کړي وي، چی حتی له برتانيی

سره داړیکو دشکولو خطر چی د « تیښتی » په موضوع پوري اړه درلودله، د مجرمینوله داسی تسلیمولو څخه ترجیح ولري، دا ویره لا اقل موجوده وه، چی په محکمه کی د برتانوي ولس موجودیت د افغانی قضایی جریان نارسایی څرګند کړي، او د انګلستان او هند مطبوعات به دا مسخري وکړي، چی افغانان له حد نه زیات احساساتی دي.

افغانی مامورین، چی یی « غفلت » که چیري رښتیایی وبولو، د « تیښتی » مسئله کی حقیقت ولري، مسئول شمیرل کیدل، له شپږو میاشتو څخه ترڅلورو کلو پوري جزا ولیدله. همفریز، لا تر اوسه ولی ته داسی لیکل:

« که چیري... بندیان همداسی ورک پاته شی او یا داسی ځای ته وتښتی، چی افغان حکومت یی په بیانیولو بریالی نه شی، نوزه به ستاسو جناب ته په ډیره ساده ژبه خبر درکړم، چی داد خواشینی وړ پیښه به زما د حکومت له خوا جدي تلقی شی او خامخا به د دواړو هیوادونو په اړیکو کی د تاسف وړ اغیزي وکړي. »

تر تعقیب لاندي بله ډله، عجب خان او دهغه پلویان و، چی افغانستان ته تللی وو او دهغوي ښځی په بله لاره وریسی تللی وي، برتانویانو په دي باندي خبر وو. څو کاله وروسته، په داسی حال کی چی همفریز د یوبل مجرم په مورد کی کنبله افغانی سیمی ته دهغه دشړلو په مقابل کی اخطار ورکړ.

« د عجب خان او شهزاده اخراج په قصدي توګه صورت نیولی... او کله چی موږ اصرار وکړ، چی افغانان دي ورسره بحث وکړي، هغوي ځواب ورکړ، بی له دلیل نه، ... او داچی موږ په دي قادر نه وو، چی خپلو مجرمینو ته سزا ورکړو، نو هغوي ته موویل، چی موږ له دي شرڅخه خلاص کړي. »

دهند حکومت په رښتیا سره له امان الله خان څخه توقع نه کوله، چی عجب خان او دهغه ملګري ورته تسلیم کړي، « حتی په دي کی شک دي چی آیا هغه په دي بی ساري حرکت سره، چی د افغان دپنه وړلود دوکتورین په خلاف و، وکړي شو، عامه ذهیت خراب کړي... بیاهم، زموږ له پاره د قضیی داسی حل کیدل به نه یوازي (په انګلستان کی) د خلکو ذهنیت ښه کړي وای، بلکی په ټول سرحد کی به بی تاثیره نه وي، او موږ فکر کوو، چی وزیر دي باید بیا په خیلو خبروکی په هغه باندي ټینګار وکړي، وزیر به البته د اعلیحضرت دحکومت خواشینی زیاته کړي، که چیري افغان حکومت د انګلیسانو دسري توقعات پر خلاف بریالی نه شی چی

مجرمینو ته د پناه ورکولو د غیرانساني سلوک په ترک کولو سره د متمدنو هیواد و نو په جمله کې د افغانانو وعده شوې شمول څرګند کړي. »

په همدې وخت کې هغوی فیصله وکړه، چې له هغې وسلې څخه کار وا خلي چې موقتاً د دوی په لاس کې وي.

افغانستان وسله له بهر څخه پیرودلې وه، او غوښتل یې چې د هند له لارې څخه یې هیواد ته راوړي، پرتانویانو په دې کار بانديز په معاهده کې موافقه کړې وه، لیکن تینبتی یوه لاره یې پرینبي وه، چې هغه داسې و، « تر هغه پورې چې مناسبات دوستانه وي » د ابسې طرزي ته یولیک ورکړی و، چې په کې ژمنه شوې وه، چې د وسلې د وارد ولو په وخت کې به کومه خرابه بهانه ونه کړي.

نادر له همفریز سره د جون په ۱۳ نیټه په خپلو خبروکې ویلي و، چې که لویه برتانیې د د ه هیواد په لور سوړ وضعیت ښکاره کړي، نو د ده د هیواد د « آزاد » لارې به یوه له شرمه ډکه خبره وي، ندر ویلي و.

« د مثال په توګه، له هند څخه د وسلې د ترانزیت سوال په فکر کې ونیسه، ممکن داسې وخت راشي چې د وسلې سملاسي تر لاسه کول افغانستان ته د ژوند او مرګ سوال وي، اما که د برتانیې حکومت همدردي ونه ښیي، کوم شی چې هغوی ته به اسان وي، چې ووایي هغه به داوي، (بیرې وځنډېدله) یا (د هند هوا ډېره ګرمه ده).

همفریز ته دا نظریه نوې نه وه.

د سپتمبر په ۱۱ نیټه له فرانسې څخه د وسلو یوه بیړۍ د بمبیې بندر ته را ورسیدله، ولې خان له همفریز څخه وغوښتل، چې د لارې ترتیبت ونیسي، همفریز ځواب ورکړ، چې ترڅو چې افغانستان اردلې واو داود شاه بیا ګرفتار او په رښتیا سره محاکمه نه کړي، د عجب خان او شهزاده په ګرفتارولو کې کارنامې ونه ښیي، او د پخوانو یرغلونو او چپاونو تلافي ونه کړي، د وسلې د تیرولو اجازه به ورنه کړي شي.

نادر له همفریز سره ملاقات وکړ، او ورڅخه یې وغوښتل، چې یوه میاشت نور دې هم حوصله وکړي. هغه د برتانیې په نماینده ګۍ کې ډوډۍ خوړله، « که داسې وشي چې په عام ډول معلومات تر لاسه شي، چې برتانویانو په داسې یو وخت کې د افغانستان د وسلې له پاره لاره بندوي، چې روسان د معاهدې له مخې ورته وسله ورکوي، نو د برتانیوي ضد ډلې لاس به برشي او هیواد به د تباهۍ په لور روان شي.

«زه له دې عقيدې څخه نه شم ګرځيدلی، چې ستاسو جناب ما ته بلنه راکوي، چې افغان حکومت د دوي له خوا منځ ته راغلو . ستونزو څخه خلاص کړم. »

نادر غوښتنه وکړه، «يوه مياشت نور هم صبر وکړه» که تر هغه وخته پورې ستاسو سره غوښتنې ترسره نه شي، نو څلورويشت ساعته الټي ماتوم به ورکړشي. »

«زه په الټي ماتوم کارنه کوم، د ډيرو نا اميد يو سره سره، ماد افغانانو په معقوليت کی خپله عقيده له لاسه نه ده ورکړې. »

د انګلستان حکومت وويل، «له امير څخه وروسته ډير زيات مهم شخصيت په افغانستان کی، نادر دي، کرنيل همفريز دي بايد دهغه په غوږ وخبرو ونه غوليږي. »

دري ورځې وروسته همفريز، په يو ليک کی ولی خان ته خپل دريغ په رسمي ډول چې پايي يې داسې و، «څومره ژر چې افغان حکومت په (اثبات ورسوي چې نور يې پاليسی غير دوستانه او پارو وتی نه ده، (دهند حکومت) دي ته تيار دي، چې د وسلی د تيرو لو اجازه ورته ورکړي، چې دهند له لارې څخه صورت ونيوه. »

دوسلو دويمه بيړي آما ده وه، چې نه ايتياليي څخه حرکت وکړي، د روم افغانی سفير سردار عظيم الله خان، دهغه ځاي د برتانيي له سفارت څخه وغوښتل، چې دتجارتی بنديزد ليری کولو په خاطر دي لارد کرزن ته، چې له افغانستان سره پوره آشنايي او بلديت لري، يو شخصی پيغام واستوي.

هغه وويل، «په داسی حال کی، چې ټول افغانستان په عمل کی دمخه وسله وال شوي دي، نو دا راليږل شوي وسله ډيره جزئي بريښي، او په حالاتو کی به کومه اغيزه ونه کړي. »

وروسته هغه په سرې تورګه اعلام وکړ، چې دوسلی په تر لاسه کولو کی دافغان دحکومت انديښنه داده، چې دوي وکولی شی دشوروي حکومت ته ثابته کړي، چې بلشويکی روسيه دوسلی دتر لاسه کولو يواځينی منبع نه شی ګرځيدلی، ددې مقصد په خاطر، هغه دسفارت مامورينو ته وويل، چې پوه شي چې دوسلی واقعی شمير به په عمومي ځرګندونو کی ډيره مبالغه اميزه وي.

په دې وخت کی اولس سوه يار ځاروي له هرات څخه د کابل په لور روان شول او هغه جنګی مهمات ورباندې بار وو، چې روس په معاهده کی دهغوي وعده ورکړې شوي وه، او اوس يې ورته تسليمول.

امان الله خان د نومبر په اوومه نیټه، همفریز ته په زیات هیجان سره داسې وویل، « پر افغانستان باندې د وسلې بندول د مرګ نه هم بد تر دي، هر هیواد په خپلو ګټو باندې پوهیږي، او افغانستان قربانۍ ته آماده دی. »

همفریز، مصلحت ورکړ چې، « له اور سره لوبې مه کوه، تردې وخته پورې لیکسان خبرو، چې د وسلو بیرې بندي وي: زیاتره امان الله خان، نادر خان او ولي خان قونسل ته معلومات نه و، ورکړي شوي، په کابل کې د قبایلیانو له مخاصمت آمیزو مظاهرو سره، ستونزې زیاتې شوي وي، او ولي خان هیله کوله، چې هغه ګام چې ده اخیستی دي، کافي دي.

د قبایلینو دوې دلې اوس له قوي سره وصل شوي وي، دا هغه شی دی، چې نادر همفریز ته د وخته په دسمبر کې ویلي وو، نارد د قبایلو په ډیرو خصوصیاتو باندې پوه و، ځکه چې هغه د ډیرو ګلوله پاره د سرحدي چارو د سرته رسولو له پاره مقرر شوي و، اوس بیا د هغه غرور ته په سپک نظر کتل شوي و، په دې بحرانو نوکې، هغه له سرحدي چارو څخه ایسته کړي شوي و، او پر ځاې یې د بهرنیو چارو د وزیر په توګه، ولي خان مقرر شوي و. برتانویانو داسې راپور ورکړ، « ویل کیږي چې نادر د دې قدرت د له لاسه ورکولو په وجه ډیر خپه شوي دي. »

هغو جاسوسانو ته چې پیسې ورکولې کیدې، جاسوسان په منظم ډول د نازیان او لنډیکوتل تر مینځ، د برتانویانو په ګټه تګ راتګ کاوه. دا د قبایلي ژون پر سنلې شوي حقیقت و. اوس د سنګوخیل شینواري د هغو تنبتیدلو کسانو په باره کې په اندیښنه کې شول، چې دوې ورته ځاې ورکړي و، هغوي پر هغه چا باندې به برید کاوه، چې پوهیدل دارد لې او داود شاه په باره کې راپورونه وړي، د دې ځاې یو پخوانی اوسیدونکي چې د ملاقات په خاطر بیرته راغلی و، د نورو شینوا روله خوا، چې دې یې د ارد لې په حق کې په خیانت تورن کړي و، ایسار کړي شوي و، او بیا له سیمې څخه وشړل شو، په خیبر کې د جاسوسی لړي له منځه یوړل شوه.

محمد ولي خان د همفریز له خوا قانع کړي شوي و، چې د غه حقیقت و منې چې څرک چې عجب خان سرحدي کرښې ته نژدې پټ وي، نو برتانوي اړیدی دي، « که چیرې د سرحد له حدود و څخه اوړي او د غدارانو د ډلې تعقیب کوي، باید خپه او خوابدي نه شی. »

د نوامبر په دولسم تاریخ، ولي وویل: د جلال اباد نایب الحکومه ته به امر وشی، چې په د پنځلسو ورځو په موده کې دې اردلې او داود شا مسئله فیصله کړي. ایا دا کافي وه، چې د وسلې د راوړلو بندیز، له منځه لاړشي؟ نه، کافي نه وه.

دوې میاشتې له قونسل څخه رازپټ ساتلې شوې و ، ولې له همفریز ، څخه غوښتنه کړې وه ، چې دهغه رسمي يادداشت ، چې دوسلو دبیر یو تجارتي بندیز په کې ذکرو ، حفظ کړي. اوس یې غوښتنه وکړه ، چې هغه يادداشت دې ورته واستوي.

په پاې کې ، ټول افغانستان پوه شو ، چې برتانويانو څومره په جدي توگه گام اخیستل ، چې پر افغانستان باندې په زور سره د پېاور کولو قانون مات کړي.

همفریز نور هم فشار واچاوه ، هغه له کابل څخه ټولې برتانوي ښځې وایستلې.

میرمن همفریز دمخه پلان درلود . چې دواده له پاره انگلستان ته لاړه شي ، دا حقیقت اعلان شوي نه و ، نورکوم شی هم اعلان شوي نه و ، «افغانان پرېښودل شول ، چې خپله نتیجه گیري په خپله وکړي. »

دمیرمن ایلسي دغم لړلي کیس نه وروسته ، دتایمز لیکوالانو له سرحدي سیمو څخه دبرتانوي ښځو دویستلو ، غوښتنه وکړه ، اویایې وویل چې لېترلږه دې دهغوي ساتنه په ښه وجه وشي ، دهغوي دامنیت تدابیر ونیول شو. په کوهاټ اوبنو کې دهغوي داوسیدو دساحې په گرد چاپېرې اغزي لرونکې مزي ونیول شول ، گرو پونه وګرول شوه ، دکوهات باغونه چې فولکسي (Foulkes) او د ایلسي بنگلې ته نژدې و ، ووهل شول ، چې دا کارد انتقام اخیستلو دعمل په توگه نه ، بلکې دهغوي دکورونو دحمایې په خاطروشو ، د دوي اوسیدو دگرد چاپیره حاصلات هم له منځه یووړل شو ، ددي کارد سرته رسولوله پاره ټول اوړي کاروشو ، ځکه چې په دي موسم کې ښځې له سرحدي گرموساحو څخه هلته تلې. کله چې دهغه کال په منۍ کې بیرته راستانه شول ، نو دمحافظینو شمیریې دوه چنده ولید.

دکورم دپاره چینار په گرد چاپیرکې ، چې سرحد ته ډیر نژدې و ، او د بنو دحمایه شوي قشلې څخه لیرې نه و ، لاتر اوسه پوري اغزي لرونکې مزي تاوشوي نه وو ، د نوامبر په اوومه شپه کپتان واتس او هغه ښځه دکورس ملیشیا دخپل قوماندان میجر کمپل (Campbell) په بنله کې ویده شول. دسهار په اولوشپیوي میجر کیمبل لږغوندي راوېش شو ، او فکریې وکړ ، چې د کورم جاروکښ آواز اوري ، چې دکورم له کومه برخې څخه کوم فرنیچر غلاکوي- خوبیا ویده شو. پېښه داسې وه ، چې دنوامبر په اتمه شپه سهاروختي هڅه شوي وه چې دخوب دکوټې پرده دیو انچ په اندازه وشکوي او د اور لگیت په رناکې کوټې ته نظر واچوي ، دخوب دکوټې پرده کش شوي وه او دوي هیڅ شی ونه لید. وروسته هغوي دکالیو اغوستلو دکوټې کړکې ته

لاړل، چی هیڅ پرده یی نه درلوده، او په لومړي سرکی د اورلگیت د رڼا په واسطه یی هڅه وکړه، چی د یوي او سپنیزي میلی په ذریعه د کړکی چوکاټ په زور سره خلاص کړي، دوي وکولی شول، چی د کړکی لاندي قلف ته نژدي بنیښنه ماته کړي او دا ور ته اسانه شوه چی لاس و روړاندي کړي او کړکی خلاصه کړي. یو سړي په دي لاره داخل شو او خپلو نورو ملگرو ته دروازه خلاصه کړه،

یو تن دخوب کوټی ته لاړ او د میرمن واټس دخوب کالی او نور شیان یی راوخیستل. او میرمن واټس یی دخوب کوټی ته راوړله، کپتان واټس سمدستی را ویښ شو او اوچت شو، یو سړي چی فقط دخوب د کوټی له دروازي سره دننه په کوټه کی ولاړ و، په پلته یی توپ یی ډزي وربانديي وکړي، ځراغونه مړه شول، هغه ونه لگید. میرمن واټس چی ویښه شوي وه او د کشمکش په حالت کی وه، دخوب د کوټی د دروازي له پردي څخه نیولی وه او هغه یی وشکوله د کپتان واټس ځارنی تمانچه د همدي کوټی په یو خلاص بکس کی ایښی وه، کپتن واټس ورپسی هغی کوټی ته لاړ. د پلته ییز توپک سړي له چاله کی څخه کار واخیست. دواړه سړي غښتلی وو، لیکن دواړه سره تن په تن وجنگیدل، او له مزاحم سړي سره هم توپک و او هم چاړه، واټس او د هغه میرمنی په خپل کور کی دوه واړه او تکړه سپی درلودل. یو سپی هڅه وکړه چی مزاحم سړي وداړي او خپل بادار ورڅخه خلاص کړي، خو هغه د توپک په کونداغ باندي د سپی سر مات کړه. میرمن واټس په چاړه سوري شوه، د غه سړي د کیپتان واټس ځینی کالی او جواهرات له ځانه سره یووړل او په داسی حال کی چی د میرمن واټس له گوتو او ساعت څخه سر شول، وتښتیدل.

میجر کمپبل د سهار په شپږ نیمو بجو د هغه نوکر له خوا ویښ کړي شو او ورته وي ویل، چی ځینی ویرونکی پیښی صورت نیولی دي. هغه دخوب کوټی ته لاړ او یوازي دوه آوازونه یی واوریدل: د میرمن واټس د لاس ساعت ټک ټک او د هغه بل وړوکی سپی سونگیدل چی پر توشک باندي ناست و.

د دغو دروتنو پل، چی یو یی میخ لرونکی څپلی درلودي، د افغانستان په لور تللی و.

په پیښور کی د برتانیی د هر کلی کولو په سالون کی، چی برتانیوی ښځی هلته تلی، د چا یو په یو، میلمستیا کی د خبرواترو مهمه موضوع داوه چی بله کومه ښځه به وتښتول شی او یا ووژله شی. دا مهمه خبره وه، چی وخت لا زیاد نه وتیر شوي، چی د دوو نورو برتانویانو قتل په

جولاي او سپتمبر کې صورت ونیو ، چې قهر او غضب یې منځ ته راغلی وو ، دښځو دوینو خوند اخیستل شوي و ، دجولاي او سپتمبر قربانیان نارینه افسران وو ، او په داسې حال کې ووژل شول ، چې پوره ویښ وو ، او قسماً په ناڅاپي توګه پیښې صورت ونیولو . وروسته له هغه ، دنوامبر په ۳۰ نیټه د ژوب پرسیاسي نماینده میجراج . سې . فیني باندې په داسې حال کې چې په خپل موټري دجرګې په لور روان و ، بریدوشو او ووژل شو . دا هم دهغه بدلون څرګندوی و ، چې محلي قبایلیان په ناڅاپي توګه یو شکمن سړي ونیولو او برتانویانو ته یې تسلیم کړو .

کله چې ښځې له کابل څخه لاړې ، یوه انقطاع په خپله دبرتانویانو درضایت له پاره ، دامان الله خان په کورکې پیدا شوه . امان الله خان یوه ځوانه انګلیسي ښځه چې پیغله بورلینډ نومیده ، استخدام کړې وه ، چې له ثریا سره د ولادت په وخت کې مرسته وکړي او داسې نظریه موجوده وه ، چې پیغله بورلینډ به دقابلګي دتدریس کولو په خاطر پاته شي ، پیغله بورلینډ د برتانوي مستعمرو رسمي نفرنه و ، لیکن همفریز ، په داسې حال کې چې دهغې په مورد کې فکرکاوه ، چې دې به یوازنی انګلیسي ښځه وي ، چې په افغانستان کې به پاته شي ، هغه یې راضي کړه چې دبرتانویانو دښځو په آخري موټر کې دې لاړه شي .

دایتالیې شارژدافیر ، له همفریز سره ملاقات وکړ ، چې دښځو د وتلو دناڅاپي خطرې په باره کې ورسره خبرې وکړي ، او له همفریز څخه یې غوښتنه وکړه ، چې څو ورځې دمخه ورته خبر تیاورکړي ، که چیرې تصمیم نیول شوي وي ، چې دبرتانیې نماینده ګي دې تخلیه شي . همفریز په رضامندۍ سره راپور ورکړ چې ، « زه دمنلو له پاره دلیل لرم ، چې زما فرانسوي او ایتالوي همکاران دهند او افغان دارېکو دشلید وراتلونکي ته په واقعي توګه اندیښمن دي او داسې څرګندیږي ، چې افغان حکومت ته سلا ورکوي ، چې دبرتانویانو غوښتنې دې ژورمني ، »

د برتانویانو غوښتنې دیوشمیر تیاکل شوو کسانو په مورد کې وې ، چې په غرونو او دروکې ورک وو ، ددې سیمو خلک ، کې سړي ورسره بلد نه وي ، توند خویه معلومیږي . عجب خان هغو قبایلیانو ته ، چې په برتانوي برتانوي برخوکې اوسیدل ، لیکونه استول او په هغې کې یې څرګندونه کوله ، چې زه دسرکونو د « متمدني اغیزې » پر اساساتو باندې پوه شوي یم : « ترڅوچې مو پرسر ک باندې به کوم جرم مرتکب نه شو ، تاسو باید په نورو ځایونو کې له موږسره مخالفت ونه کړې ، که تاسو له سر ک څخه پرته پرکومه بله لاره وړاندې راشي ، چې له

کوم انګریز سره مرسته وکړي، نو په دې باندې پوه شي، چې ځانونه به د دوزخ په کندوکې فرض کوي... له دې وروسته په یاد ولري، چې انګلستان دې چې زموږ اولس بې بې عزته کړي دي، او دا یوازې زه یم، چې تبعید ته مجبور کړي شوی یم، زه له خپله بخت څخه راضي یم، دا به د خدای(ج) رضا وي... که تاسو دغه لیک ټولو مسلمانانو ته په جګ او ازسره ونه لولې، نو پر تاسو باندې دې ښځې طلاقې وي. »

عجب خان او نور تر تعقیب لاندې کسان په خپله پاچاهي کې ژوند کاوه، دهغوی ښځې او ماشومان هم ورسره یو ځای شوي وو، په دې چې هغوی دافغانستان په یوه نقطه کې د اوسید وښه پراخ ځای ځان ته پیدا کړی و، چې په مندتي باندې مشهورو، دقبایلو په منځ کې هیڅ شی پټ نه وي، افریدي قبایل په دې باندې پوره خبرو، چې ورته ویل کیږي، چې دمارغه دغره لړي ولتیوي، نو احتجاج یې وکړ، او ویل به یې چې په مندتي کې ددغو مجرمینو هستوګنځی په کلي ډول سره معلوم دي، نو هیات به بې انصافي څخه کاراخلي او پر موږ باندې ملنډې وهي. دغو اپریدو د سنګو خیل شینوارو پر کشالي باندې، دیوګډ کنفرانس پیشنهاد وکړ، چې هغوی دا پیشنهاد ونه مانه.

یوبې ساري وینې ګارډ د دغو تښتیدلو کسانو څارنه کوله، په هغه کلي کې چې دوی اوسیدل، ممکن هیڅ یوبهرنی سړي په کې تګ راتګ نه درلود – او نه هغه سړي په قطعي توګه په تګ راتګ کولی شو، چې دهغه کار او تګ راتګ مقصد نه و، ملک منصور، ددې ولس حمایه کوونکی، هغه سړي د امان الله له خوا غوښتل شوي و، چې ورته وویل شي، ولې هغوی تسلیم کړي، دنازیانو په دوره کې پریوکلي باندې دیوي شدیدي حملې لاربنوونه وکړه، څکه داکلي دهغو کسانو ځای و، چې برتانویانو ته را پوروونه ورکول، او دهغوي کورونه یې وسوځول، په دې پیښه کې د اردلي ځیني خپلوان ووژل شول.

لیکن یو قبایلي سړي، دبرتانیې یو فوق العاده ماهره نماینده، په مندتي کې په هغه پټ ځای کې نفوذ وکړ او له هغه ملا سره یې خبري وکړي چې په واقعیت کې دعجب خان له پاره لویې لویې مراسلې لیکلې. هغه وویل، چې دواتس د وژلو دمخه عجب خان لیکونه استولي وو، ددې لپاره چې اسلامي شرط یې منلی و، چې دحملې څخه د مخه باید اطلاع ورکول صورت ونیسي، عجب خان دچکنور ملاته یو لیک واستاوه، چې ممکن داتفسیر په کې شوي وي، ددې

لېږاره چې بیا ، یو یرغمل لاس ته راوړي ، له بده چې لیک د تسلیمولو په غرض دبرتانیې دنمایندې لاسې ته ورغی.

برتانویان چې دفراریانو په باره کې ډېرزیات پوهیدل ، داسې استدلال کاوه ، چې افغانان دي هم باید په دې باندې پوه وي ، دهغوي دوه تنه افریدي په جلا جلا توگه راپور ورکړي و ، چې نادر دهغوي جرگې ته پنځوس زره روپۍ پیشنهاد کړي دي ، که چېرې دهغوي په قبیله کې هغه سان چې له افغانستان څخه پیسې ترلاسه کړي وي ، په برتانوي قلمرو کې دغو تغلوته دځاي ورکولو خوښ او رضامندي څرگنده کړي وي.

ای واش « Eyewash » هغه لغت و ، چې همفریز دولې دسختو اعتراضونو په ځواب استعمالول ، او دغه یادونه یې په برکې درلود له چې دعجب خان بریالي تېښته د برتانیې د پیسو په زور و ، چې د مولې د خوشې کولو په خاطرورکړي شوي وي.

وروسته عجب خان بیاهم بله خبر داري ولیږله. کوم سړي چې داځلې دبرتانیې نماینده نه و ، د برتانیې په قلمرو کې د تېل په پوسته کې د هغه د خبرداري لیک و اچاوه ، هغه وویل چې ترڅو چې حکومت دده شرایط ونه مني ، نو دي به کمیسیون ته په یوتیرې باندې مجبور شي ، چې هغه به وربانديې فکرنه وي کړي ، امان الله خان په داسې حال کې چې پوهیده ، هغه په تیروخت کې څه فکر کړي و ، ژرلاس په کارشو.

دلښکرو ټولې له کابل څخه دهغه مخفي ځاي په لور لیږل شول. هغوي په ازاد ډول مارش ونه کړ ، ډیرې خبرې او نارامي مخکې له مخکې کېدې ، په خپله ځینې قبایلیان په کابل کې د دښمنۍ ډکې مظاهرې وکړې ، دغوسهکرو په ورو ورو. ډلوچې فکر کیده ، په هوا خورې ځي ، تلل ، ځینې په اسونو سپاره ، ځینې په پښو روان او ځینې په گاډ یوکې ناست په هغه لوروخوځیدل. د جلال آباد له ښار څخه درې میله لیرې ، د سرک پر سربانديې سره راټول شول او بیا یې یو عسکري یونټ جوړ کړ ، دهغوي هدف مندتې وه ، وظیفه داوه ، چې پر سنگر باندې فشار راوړي ، چې عجب خان او نورکسان دوي ته تسلیم کړي.

هغوي ناکام شول ، نود هغوي قوماندان د جلال آبا والي ته راپور ورکړ ، او همدا راز د برتانیې نظامي اتشې ته ، چې دنتیجې داورید لوله پاره جلال آباد ته تللی و ، هغه وویل چې ، هغوي بې له بریالیتوب څخه هره دره او هره غونډې لټولې وه ، مجرمین او هغو کسانو چې هغوي ته پناه ورکړي وه ، وتښتیدل.

قومندان دبرتانیې نظامي آتشه ته ډاډ ورکړ، چې دهغوي په پیدا کولو کې به له هلوځلو څخه لاس وانه خلې اووي ویل چې که مې گرفتار نه کړل، نو وبه يې وژنم.

همفریز د دسمبر په ۲۷ نیټه امان الله خان ته وویل، «وخت، چې ستا د وزیرانو له خوا صرف په خبرو تیریږي، يو اساس ترین فکتوردي...»

همفریز پیشنهاد وکړ، چې پر سنگرخیل باندي دي د افغانانو او انگلیس له خوا یوه گډه حمله وشي، چې برتانوي التوتکی دي هم په کې شاملې وي.

امان الله خان وویل، «که دغه اقدام عملي شي، نو نتیجه به يې په سنګو خپلو کې عمري بغاوت وي، ځکه چې د برتانې د افسرانو او د هغوي د ډلې هویت پټ پاتې کیدي نه شي، همدا ډول الوتکو څخه کار اخیستل په نهایت درجه خطرناک دي.»

هغه وروسته زیاته کړه، «په انگلیسي مطبوعاتو کې دغه غوښتن، چې قاتلین دي د محاکمه کیدوله پاره باید برتانوي مقاماتو ته تسلیم کړل شي، که چیري ومنل شي، نو نتیجه به يې زما وژل کیدل وي.»

په داسې حال کې برتانویانو په خپلو منځو کې سره خبري کولې، دغه حقیقت يې منلی و، چې هغوي د امان الله خان څخه پرته له دي نور څه نه غواړي، چې فراریان دي شمالي برخې، ترکستان ته ولیږل شي، ځکه چې هغوي له هغې سیمې څخه نور برتانویانو ته کوم ضررته شي رسولی. امان الله خان دغه شی ته په خپلو لومړنیو اقداماتو کې ځای ورکړ او همفریز ته يې وعده ورکړه، چې دي به دغه خلک په ترکستان کې ترکلکې اداري لاندې وساتي او هیله يې ورڅخه وکړه، چې ددي خبري را زدي وساتي «ترهغه چې د دغوقاتلینو موضوع يوطرفه نه شي، زه به هیڅکله ارام کې نه نم، اما که داکار له تاکلي وخت څخه لږوځنډیدي، نو لطفاً اړیکې مه شکوه، دا به دنیرو دو وکلونو اجرات باطل کړي.

د ۱۹۲٤ کال، دجنوري داتمې نیټه په مازیگر، عجب خان د جلال آباد د نایب الحکومه په دفتر کې ناست و، هغه بې له دي چې گرفتار شي دباندي لاړ، دا په خبرو اتروکې لومړي گام و، چې برتانویانو د دي حقیقت سره سره، چې هغوي له شا څخه اداره کول، هڅه کوله څومره چې کولی شي، له نژدي څخه يې مشاهده کړي او دجلال اباد والي د هغوي دخبر رسوونکو په مورد کې دومره متوجه معلومیده، لکه چې د عجب خان په باره کې معلومیده.

عجب خان دمخه بله پناگاه ترتیب کړي وه، او هم يې يوه جرگه ترتیب کړي وه، چې دي

هلته بوزي، ليکن له فرار څخه ستړي شوي و، دي په خپل ليک کی چی دچکنور ملاته يی ليکلی و، شکايت کړي و، چی دي د «لرو بردپاچاهی» په منځ کی ميده شوي دي، هغه دخپلو قبايلی ټولو اړيکو سره سره، دوو هيواد و ترتعقيب لاندي و، او دا ورته ګرانه تماميدله، ځنګه چی عجب خان د افريد و په حدودو کی پټه کيښود له او داسی ځاي ته لاړ، چی دافغانانو لاس ورته نه رسيده، نوبی د جلال آباد والی ته يو ليک واستاوه، چی د تسليميدو خبري به وکړي، والی ولی خان ته تيلفون وکړ او بی له دي چی تيلفون ځوړند کړي، همفريزيی را وغوښت.

آيا د برتانيی حکومت به په دي قانع شی، چی عجب خان ترکستان ته واستول شی؟ تصميم بايد سمدستی ونيول شی. همفريز، دغه ځرګنداو ښکاره شی ومانه.

د جنوري په ۲۸ نيټه له جلال آباد څخه دري لاري رواني شوي، چی دعجب خان د ډلی زيات کسان يی وړل، چی ښځی او ماشومان هم په کی شامل وو، عجب خان، وروسته له هغه چی کاروان له کابل څخه تيرشو، په جلاتو ګنه يووړل شو، چی د ستونزو مخنيوي شوي وي، هغوي ټول ترکستان ته يووړل شول، چی هلته يی نه څوک پيژندل او نه د هغوي په ژبه څوک پوهيدل. عجب خان په مزار شريف کی د يوڅه وخت له پاره عسکري قشلی ته يووړل شو، اما هغسی چی امان الله خان وعده کړي وه، ښه سلوک ورسره ونه شو.

دوه کاله وروسته يوپيښوري مسافر چی مزار شريف ته تللی و، دايلسی د قضيی نامتو عجب خان يی وپيژاند، چی دهغه نه پنځه ديرش تنه محافظين راتاو وو، له هغوي سره يی روغبړ وکړ او عجب خان په غرور سره ځان ورته معرفی کړ، هغه وويل، چی افغان حکومت ورته په کافی اندازه ځمکه ورکړي ده او هم دهغه نفرو ته دسري په سر په مياشت کی ديرش روپی ورکړي. عجب خان له خپل پيښوري وطندار څخه، چی په فکر او ذوق کی ورسره برابرو، هيله وکړه چی ورسره و اوسيږي.

پيښوري سړي، په داسی حال کی چی ورسره له اوسيد وڅخه يی انکار وکړ، وويل چی غواړم له نامتو غازي عجب خان او دهغه له ملګرو سره عکس واخلم، نو خپله کامره يی را وايستله اووي ويل که کوم څوک د دوي عکاسی وکړي. عجب خان په غضب شو اووي ويل، «داسی ښکاري چی ته د برتانيی له خواد پيسو په مقابل کی وظيفه ترسره کوي، نوزه به درسره عکس وانه خلم.» پيښوري ورڅخه معافی وغوښتله او ژرورڅخه لاړ.

دعجب خان ځمکه ډيره حاصل خيزه وه، او د مزار د والی له ځمکو سره څيرمه پرته و، او

به په ټول افغانستان کې يو قيمتي شی دي، چې تل ورباندي مناقشې او دښمني کيږي. که چاد بل سري او به واړوي، نو ممکن مرګ او ژوبله ورباندي وشي، يو ورځ دوالي سړي دعجب خان او به خپل باغ ته واړولي، عجب خان دوالي له دهقانانو څخه يو تن ونيو، ويې واهه، په اوبو کې يې غوټه کړ او بيايې خوشې کړ، والي چې خبر شو، عجب خان يې راوغوښت، عجب خان له پنځلسو وسله والو کسانو سره والي ته لاړ، والي عجب خان ملامت کړ او ورته وي ويل: ددي پر ځاي چې ته له افغان حکومت څخه مننه وکړي، چې څمکه يې درکړي ده، ته لا داسې کارونه هم کوي، زما دهقان دي ډير وهلي دي، ته بايد خپل حد او حدود وپيژني، عجب خان وويل، چې که نور داسې ستونزي مورته راپيښې شي، نوزه تاوژنم.

ليکن نور کسان لا آزاد وو، د وسلو بنديز لاموجود و.

په امان افغان کې داتورخپورشو، چې دبرتانيې، رښتيني انګيزه دا وه، چې وسله دهندوستان په مرطوب اقليم کې تر هغه پوري وساتي چې زنګ يې ووهي او له کاره ولويږي، او بياد اوسپنې هغه امبار چې استفاده نه ورځينې کيدله، افغانستان ته تسليم کړي او ادعا وکړي چې کوم شی چې په معاهده کې د هغه ذکر شوي و، مور هغه ترسره کړو.

له فرانسه څخه راليږل شوي مال دبمبيې په لنګر ګاه کې په بيړيو کې وو، ليکن هغه چې له ايتاليې څخه پيرو دل شوي وو، لاهم دي ته اړو، چې دبيړيو په واسطه راوړل شوي واي، امان الله خان وغوښتل چې هغه د روسې له لاري را وارد کړي، هغه دمخه هم دا کار کړي و، څو چې روسيه دبخارا د انقلاب په دوره کې خپله نارضايتي په هغه ډول څرګنده کړه، لکه چې برتانويانو اوس څرګندوله. اوضاع بل ډول شوه، ګريګوري وي، چيچرين (Grigori V. Chichvir) د روسيې دبهرنير چارو وزير، په خپل هيواد کې افغاني وزير ته خبر ورکړي و، چې که دبرتانيې قوا په افغانستان کې داخل شي، نو دروسيې حکومت به تيار وي، چې په روسې ترکستان کې دتيارسې امر صادرکړ. د «برتانيې د التې ماتوم» په مقابل کې دفارس دتهران بازارونه دهمدردي دښودلو، په خاطر ديوي ورځې له پاره تړل شوي وو،

اردلي او داود شاه، چې دعجب خان په خلاف افغاني تبعه وو، ځان ته په برتانوي مومند وکې د امن ځاي پيدا کړي و، دجلال اباد والي ورته احوال وليږه چې را دي شي او ورته ډاډ ورکړشو، چې په امن کې به وساتلې شي او ورسره به ښه چلند وشي. هغوي دغه پيغام ومانه او راغلل.

له اردلي او داود شاه سره څلور تنه مومند هم راغلل، چې ډکې ته نژدې د کابل دسیند په غاړه په یوه سیمه کې چې دوه تنه افغاني ډګروالان ورته په انتظار کې ناست وو، اردلي او داود شاه ورته تسلیم کړي، هغه کیسه چې وروسته وویله شوه، داسې وه، چې کله چې هغوي دد غې ډلې مخې ته ورغلل، له یو مومند څخه تومانچه ولوېده له او فیر صورت ونیو.

افغاني عسکرو، چې ډزې و اورېدې فکرېې وکړ چې له جګړې سره مخامخ شوي دي. هغوي خپلې ټوپکې را واخیستې او پر دوي باندې چې د دوي خواته را روان ووه ډزې وکړې، او اردلي ولګېد او سمدستي مړشو. داود شاه چې ټپي شوي و، وروسته له هغه چې یو عسکریې و واژه، وتښتېد. افغانانو خپلو ډزو ته دوام ورکړ، اما څرنګه چې سیمه نیزاره او له وحشي بوټو څخه ډکه وه، دوي ونه شو کړي، خپل هدف وولي، نوهغوي وتښتېدل.

داود شاه ورک شو، او کله چې ولي خان همفریز ته وویل چې هغه د برتانیې په سیمه کې و، داخلي همفریز دهغه خبره ومنله: «داود شاه دوه ځلې افغاني امنیتي اداري ته تابعیت ښودلی ده، او په دواړو ځلو کې له هغه څخه سرغړونه کړې ده، اول ځلي کابل ته راوستل شو او بندي شو، او په دوهم وار ورباندې ډزې وشوې او د مومندو د بدرګه وپه حضور دهغه ملګري چې دهغه په څنګ کې ولاړو، ولګېد اومړ شو، برسیره پردې، هغه دیو افغان عسکر په وژلو هم تورن دي، نو ځکه داله امکان څخه ډیرلیرې ښکاري چې په اوس وخت کې هغه په افغاني سیمه کې ځان ته دامن ځاي ولټوي او یاد والي پر کوم قاصد باندې بیا اعتماد وکړي، چې رایې ولي.»

له هغه وخت نه وروسته دجلال اباد والي هرې خواته بې چې لاړ، بادي ګارډ به ورسره تله، او په خصوصي توګه له خپلې شخصي پانګ نه د داود شاه د نیولو له پاره انعام تجویز کړي و، په هغه وخت کې چې دغه سړي چې والي ورسره خیانت کړي و، او ازاد ګرځیده دوالي ژوند په خطر کې و.

برتانویانو وښودله چې امان الله خان خپل سبق زده کړي دي، او وي ویل چې دازاد ګرځید نې لغت ښودلې و، چې برتانویانو څه کولې شول، په ۱۹۲٤ کال د مارچ په ۲۰ نتیه،هغوي موافقه وکړه، چې وسله او نور جنګ سامان دي دهند له لارې افغانستان ته واړول شي، دحربي مهماتو صندوقونه چې په بمبیې کې ځنډېدلي وو، چالان او انګلیسي میرمنې بیرته کابل ته راغلې.

لیکن امان الله خان په خپل ولس کې خپل شهرت بایللی و. قبایل د دو ومقدسو پرنسیپونو پر خیانت باندې خپه وو: یو یې د پناه ورکولو ځای او بل یې وعده ورکړل شوې امنیتی اداره وه، په جلال اباد کې د برتانیې قونسل د خلکو مخونو ته متوجه وو، چې د عجب خان کورنۍ ته متوجه وو، چې په لاریو کې بلې خواته استول کېده. او دارد لی د «وژل کېدو» کیسو ته غوږ نیولی وو، داسې وویل: «که د یو زمامدار په توګه له امان الله ځنې د پوهې جوهر لیرې کړې شي، نو بیا له کوم شکه د کفر فتوا «د یوبي دین سړې په توګه د هغه بدویل» به ورباندې وشي.

خلکو به ویل، چې امان الله خان برتانویانو ته تردې حده پورې رتلی څرګند شوی دی، چې د هغوی د خوشالولو په خاطر خپله یوه تبعه ووژله، داکار هغوی د عدالت احساس ته کومه مرسته ونه کړه، چې که دار دلی جرم د یو کرغېړن عمل په توګه په اثبات رسول شوی وای، هیڅ یو افغانی محکمې به هغه ته دې جرم په خاطر هغه ډول جزا نه ورکوله چې د هغوی په عقیده نه امیرور ته بې له محاکمې ورکړې و.

ولې خان وویل، چې دوسلې د خوشې کېدو خبر په «مینه او احساساتو» سره استقبال شو، لیکن امان الله خان شکایت وکړ، چې «په انګلستان کې زما اجراتو قدردانی په ښه توګه ونه شوه، تېول د غه شیان له دود او تعامل څخه لیرې وو او پر عامه افکار باندې یې غوڅه منفی اغیزه درلوده، د مخه هیڅ یو امیر د انګلستان حکومت ته کوم تاوان نه دی رسولی، زما تسلیمی په سرحد کې زما موقف یې زیات ضعیف کړی دی.»

یوه میاشت وروسته همفریز داسې ولیکلې، «زه فکر کوم چې د میرزا پاینده محمد خان موضوع به تاسو قانع کړي، چې له «افغانستان سره د محکمې د تبادلې» سوال د یوبي ارزښته شې معنی نه لري، دلته هغه سړي چې زموږ سرحدي مامورینو ته معلوم و، چې په قتل نورن او دافغانی محکمې له خوا په اعدام محکوم شوی و، د برتانیې په تراداري لاندې سیمه کې پناګزین شوی دی، له کوم سببه چې د هغه زوی ته اجازه ورکړله شوې ده، چې په افغانستان کې په چپاول لاس پورې کړي، سړې فکر کولی شي چې که عبد العادي په کابل کې وای، له دې څخه به یې څه ګټه ترلاسه کوله.»

عبد الهادي د میسوري د کنفرانس په وخت کې داسې تبصره کړي وه: «ممکن افغانستان د تش په نامه متمدنو هیوادونو پر تمدن د واقعي تمدن فکر ونه کړي.»

# څوارلسم فصل

# ۱۹۲٤ع کال

پر امان الله باندی تقریباً دوه ځلی بغاوت وشو.

لومړی شورش په خوست کی پیل شو، خوست د پکتیا په ولایت کی یوه ساحه ده او د یوی تاپو وزمی په شان تر وزیرستان پوری رسیږي. ددی ځای قبایل چی برتانویانو ته سرسخت معلوم شوی وو، خپلو ځینو گاونډیانو ته به یی تل خپله سرکشی ښودله. د منګلو قبایل چی په هغه ځای کی اوسیږی په ۱۹۱۲ کال کی د امان الله د پلار پر ضد راپاڅیدلی وو، او د هغه پر مامورینو باندی یی تور لگولی وه چی رشوت خواره دی. د کابل عسکر چی له سفربری څخه بیرته راغلل وویل چی دوی هیڅکله داسی زړی جامی نه وی لیدلی، چی د بیوزلو منګلو په تن کی وی، حتی په کابل کی شلیدلی کالی هیڅکله داسی ونه لیدل شو، چی څوک یی ورسره مقایسه کړی. هغه ویره چی زیات کسان ایساروی او وارخطا کوی، ددوی ویره وه، د ویالو او یا د لښتو اوبه اړول، او یا په قصد سره د چا په فصل کی ننوتل د داسی غوصی سبب کیده چی یو بل به یی په خپلو منځو کی سره وژل.

هغه اوازی چی په غرونو او درو کی خپریدی، تقریباً دومره په چټک سره به وی لکه چی د ټیلفون په ذریعه خپری شوی وی، او هغه به یی د عجب خان، اردلی، داودشاه او د نورو کسانو د لټیولو په باره کی باخبره ساتل، هغوی له قبایلی کسانو سره خواخوږی او له خاینینو څخه کرکه کوله. برتانویانو ته له خاص امتیازات ورکولو څخه شرمیدل. د هغوی گاونډیان وزیر د افغانستان له امیر څخه په دی ارتباط خواشینی ښکاره اعلام کړي، خو امیر په دی کار کی

ناکام شو، هغوی نه پوهیدل چې امیر د هغوی په خاطر څومره هلې ځلې کړې وې. ځینې وزیر چې د برتانیې له ملیشې څخه تبنتیدلی وو، په خوست کې په افغانۍ ملیشه کې شامل شول. اوس د دې پالیسې تر عنوان لاندې چې له برتانویانو سره د «گاونډیتوب» د اړیکو د ساتلو هڅه وشي، د پکتیا د ولایت والي د غه وزیر رخصت کړل، چې دوی ځانونه بیا متروک احساس کړل او منگلو ته یې شکایت وکړ.

په هر حال، دا د خوست ملایان وو، چې شورش په بیړه سره پر مخ بوته. هغوی له نظامنامو څخه ډاریدل. نظامنامې د اداري قوانینو نوې مجموعه وه چې امان الله خان د مذهبي شریعت پر ځای منځ ته راوړې و، چې ملایانو ته یې ډیر قدرت ورکړی و. هغوی له هغه ورځ څخه ډاریدل چې یو معمولي سړی به بیا د ملا پروا ونه کړي، چې خط یا ورته ولولي یا ولیکي، او د غو خلکو به په خپله په دې باندې قادر شي، چې لیک لوست وکړي شي. یوازې په یوه منطقه کې چې شاوخوا یې غرونه وو، د ملایانو قانون نافذ و. په دې منطقه کې ملایانو ته آسانه ښکاره شوه، چې د دغې سیمې مظلوم او غریب خلک راپاڅوي، چې د جفاکار امیر پر عسکري چاودنې باندې یرغل وکړي.

لښکر د شپې له خوا له کابل څخه د خوست په لور روان شو، چې د خطر مخنیوی وکړي. د دغو عسکرو کم کسان زیاته موده یې په عسکرۍ کې تیره کړې وې، لیکن شاولی، د نادر ورور چې د لښکر قوماندان و، یوه بیانیه ورکړه او وې ویل، چې د کابل ملایان د خبرو اترو له پاره په لاره کې دي او د مخه تر دې چې هغوی راورسیږي، ممکن موضوع حل شي. دی له هغه نه چې امان الله خان احساس کاوه، په خپلو خبرو کې زیات خوشبین و. شپږ زره تنه منگل چې د نورو قبایلو له څلور زرو تنو احتیاطي کسانو سره مخامخ وو، په بد حالت کې وو. والي امر وکړ چې شورشي ملایان دې ورته تسلیم کړل شي چې د شورش په مقابل کې ورته سزا ورکړي، هغوی ونه منلی. والي بیا هغه کسان په خپل لښکر کې شامل کړل، چې له وزیرستان څخه تښتیدلي وو، او والي هغوی رخصت کړي وو، هغوی چې د برتانیې په اردو کې تربیه شوي وو، د جنگ په فن کې یې ډیر مهارت درلود. هغه ځینې داسې کسان درلودل که چیرې والي هغوی نه وای نیولای، نو هغوی به په یقین سره له شورشیانو سره یو ځای کیدل.

د کابل دوه تنه ملایان، چې یو یې شیرآغا، د شوربازار حضرت صاحب و، له عسکرو څخه د مخه متون ته، چې د خوست یو اساسي ښار و، ورسید، او ځانونه یې د دښمن په سیمه

کی وکیل. متون په بشپړه توګه د منګلو د شورشیانو له خوا نیول شوی و. ملایانو له هغوی سره خبری وکړی او د امان الله خان مکتوبونه یی ورته ورکړل، چی په کی لیکل شوی وو، د هغوی له ملایانو سره د نظامنامو په باره کی خبری اتری کولی او ورته وعده ورکړی شوی وه، چی که نوی قانون له شریعت څخه مخالف وی، زه به هغه له منځه یوسم. خبره ومنله شوه. ټولو ملایانو په دی باندی موافقه وکړه، چی د مذاکری له پاره کابل ته لاړ شی. د سولی احتمالات زیات لیدل کیده.

حکومتی قواو د نادر په لارښوونه په ۱۹۱۲ کال کی منګل فتح کړی وو، وروسته هغه خپل لومړی شهرت تر لاسه کړ او له قبایلو سره خپله لومړنی دوستی شروع کړه. اوس امان الله خان له نادر څخه په همدی موقف کی وغوښتل، چی اداره بیا په خپل لاس کی واخلی.

هغه امان الله خان ته وویل، چی زه له هغو قبایلو سره مخامخ کیدلی نه شم، چی ورسره وعده خلاف شوی یم. هغه نه شو کولی په هغه لور لښکر سوق کړی، چی امان الله خان ورسره زیاته بی علاقه ګی ښودله.

نادر تازه د محرقی له مرض څخه ښه شوی و، او صحت یې په خپل کور کی، چی د ښار په اطراف کی و، ورو ورو مخ په ښه کیدو وو. اوس دی بیرته هلته لاړ. د هغه د ځوانی په دوره کی دا لومړی ځل و، چی د عمومی چارو په مرکز کی نه و او کابل آوازه واچوله. دا اوازه خوست ته هم ورسیدله، چی هلته په افواهاتو بدله شوه، چی نادر په دی تورمتی شوی دی چی د خوست له شورشیانو سره لاس لری. دی پنځه کاله د کابل معاش په خپل لاس وېشلی وو، صرف څو میاشتی د مخه، هغه د برتانوی مسودو له پاره د پیسو لست ترتیب کړی و، چی دا حقیقت د وظیفی له مخی، له ولی خان څخه پټ ساتلی و. نادر د قبایلی خلکو نامتو خبر رسوونکی او قهرمان سړی و.

نادر د اپریل په څلورم تاریخ د برتانیی په سفارت کی ډوډی وخوړله. هغه یوازی ناروغ نه و، بلکی خواشینی هم معلومیده. هغه د خپل صحت د پوښتنی په ځواب کی وویل، چی له محرقی څخه ښه شوی یم، لیکن زړه می ډیر ژوبل دی.

د شپی له ډوډی څخه وروسته نادر په داسی حال کی چی د همفریز په ډیره آرامه انګلیسی چوکی کی ناست و، سوړ اسویلی وویست، لکه چی سړی د ستونزی په وخت کی باسی. هغه په داسی خبرو پیل وکړ، چی همفریز، وروسته هغه داسی تشریح کړ: «د برتانیی د

اصولو، رواجونو، شخصیتونو او د ثبات هغه زړه وهونکی ستاینی، چی زه ورسره عادی یم چی د هغه له خولی څخه ووایم.» او د هغوی په مخ کی نادر، د برتانویانو صفت کنلوه، هغوی ته مسخری معلومیدی.

نادر همفریز ته ددی حقیقت مبارکی ورکړه، چی د سرحد د نویو ستونزو، د حل لاره پیدا شوی وه.

تر دی شیبی پوری د نادر رویه داسی وه چی وروسته همفریز د «تقریباً چاپلوسی سلوک» په نوم یاداوه.

وروسته هغسی چی همفریز لیکلی دی «څرګنده شوه، چی پرده د هغه له مخ څخه سملاسی ایسته شوه.»

نادر په توندی سره ځواب ورکړ «تاسو بری ترلاسه کړی دی، دا ربښتیا ده، مګڼ زما او زما د سرحدی افغانانو په ارزښت.»

جنبش بیا پخوانی وضعه اختیار کړه. دیپلوماسی اوج واخیستله، نقاب بیرته پر خپل ځای واچول شو، او د نادر روزل شوی څیره ادیبانه او صمیمانه شوه. هغه پر هغو ناارامیو باندی خبری وکړی، چی په خوست کی منځ ته راغلی وی. همفریز وویل زه پوهیږم، چی شورش غلی شوی دی، نادر وویل، چی نه، نه دی غلی شوی.

نادر وویل: «دا ناکراری له کوم ژر تیریدونکی اصل څخه منځ ته نه ده راغلی، بلکی د امیر د سرزوری سیاست له مخی منځ ته راغلی ده، چی زما مشورو ته غوږ نه دی نیولی.»

وروسته نادر پرمخ لاړ، چی د امان الله د تیروتونو اساسی لست ترتیب کړی.

«لومړی، امان الله هڅه وکړه، چی خپل نوښتونه په بیړه سره پرمخ بوزی ـ افغانان نژاداً متعصب، په پتیو سترګو د یو شی منونکی او له نوی تحولاتو سره مخالف دی. نو که د هغوی د رسم او رواج پرخلاف، لویدیځ تمدن په زور سره وربانــدی تحمیل شی، نو دا کار له خطر څخه خالی نه دی.

دا د خلکو لخوا په عام ډول منل شوی ده، چی نوی اداری قوانین د اسلامی قوانینو مجموعه له منځه وړی، په دی توګه ملایانو او روحانیونو ته دا یو مکمل نامنلی شی دی. بیا هم دا قانون بی له دی چی تشریح شی او په هغه مورد که د خلکو اشتباوی لیری کړی شی، سمدستی د هغه د عملی کولو اقدامات وشو.»

نادر تر دې هم په شخصیاتو باندې خبرې وکړې.

«هغه کسان چې د دې نامعقول حرکت زیات مسؤول دي، محمود طرزي، چې په سراج الاخبار کې يې انتقادي، سیاسي مطالب خپرول، او ترکی سرتیر جمال پاچا وو، چې په خپل فوق العاده عصري افکارو سره يې د امیر نام ځان ته اړولی و. »

نادر او همفریز دواړه په دې پوهیدل، چې ټول ترکان په هغه وخت کې د افغانانو نه خوښیدل، ځکه چې هغوی د خلیفه ګانو قدرت له منځه وړی.

«ترکانو ته کرکه او نفرت... اوس په ټول افغانستان کې عام شوی دی، او کوم تحول چې د جمال پاچا په نوم پورې ارتباط لري د پخوا نه لا هم زیات شکمن شوی دی... »

نادر وویل، چې یوه ورځ به ممکن د کابل په کوڅو کې د بهرنیو ډاکټرانو او انجنیرانو ډلې پس له دې چې استخدام شوي وي ولیدل شي، چې شاوخوا وزګار وګرځي.

«زه بهرنیانو نه ملامتوم. زه پوهیږم چې زیات شمیر يې له کار سره زیاته مینه لري. د دغو باارزښتو شخصیتونو نه ختمیدونکې بهیر د کابل په لور روان دي، ګړ هیڅ‌ډا د مخه کله ځان ته دا تکلیف نه دی ورکړی، چې فکر وکړي دوی باید څه وکړي او په کوم جهت باید لاړ شي. په داسې حال کې چې په کال کې صرف یو روغتون شته چې هغه هم مجهز نه دي، نو د پنځو سو بهرنیو ډاکټرانو موجودیت به څه معنی ولري؟ په اوسنی شرایطو کې دوه ډاکټران کولی شي د کابل طبابتي چارې ترسره کړي. احتیاطي آمادګي ضروري دي، لیکن بې له دې، چې د سبا ورځې په باره کې فکر شوی وي، هرکار په بیړه سره ترسره شوی و. د انجنیرانو له پاره کوم پروګرام نشته. د هغوی د کار لپاره کوم پلان هم نشته، سامان هم درک نه لري، چې د کار په وخت کې ورځینې استفاده وشي.

نادر پس له احساساتي کیده او زیاته يې کړه:

«ښوونه او روزنه په تصادفي توګه پرمخ ځي، او د اوبو په شان پیسې په دې لاره کې لګیږي. آیا دا کوم د تعجب خبره ده چې له دغو بې سنجشو او بې ځایه لګښتونو ځیني خلک متنفر دي؟ ناارامي مخ په زیاتیدو دی، زه هیله کوم د مخه تر دې، چې وخت له وخته تیر شي، د دغو شیانو بندول دې اعلان شي. »

عسکري د نادر مهمه موضوع وه. هغه تر اوسه پورې د حربیې وزیر و.

«په همدې وخت کې په لښکر کې په بې رحمانه توګه کمښت راغی، او دولتي قدرت ته

دا سخته شوه، چې په ولایاتو کې د راولاړو شوو ګډوډیو په مقابل کې مقاومت وکړي. سره له دې چې خبرتیا ورکړې وه، تیولې د غه سهوې صورت ونیولی، او څرنګه چې زما مشورو ته کوم اهمیت ورنه کړې شو، نور نو زما زړه کار ته نه کیږي. زه تصمیم لرم چې له خپل عسکري مسلک څخه لاس واخلم او له ټولو هغو مسؤولیتونو څخه ځان خلاص کړم، چې د عواقبو په هکله یې زه په ویره کې وم.

نادر وویل: تر هغه چې ماته له افغانستان څخه دباندې کومه سیاسي وظیفه راکوله کیږي، زه به بې له دې چې کوم وظیفه ولرم، خپل ژوند ته به ادامه ورکړم. د هغه ورور چې شاولي نومیده او په کابل کې عمومي قوماندان و، له خپلې وظیفې څخه استعفاء وکړه او بوازې د امیر د جنرال له مرستیالانو څخه یو تن و.

نادر خپل شکایتونه دومره په تیزۍ او په شدت سره وکړل، چې د هغه تر خلاصیدو پورې همفریز، ونه شو کړی خبرې وکړي. وروسته همفریز وویل امیر د افغانستان د نیکمرغۍ په خاطر ډېرې هلې ځلې کوي.

همفرې نادر په دې متیقن کړ، چې «دا کوم آسان کار نه دي.»

نادر پټه خوله پاته نه شو. هغه زیاته کړه: «دبرتانیې د امپراتورۍ د دوستۍ او مرستې په غیر ددې امکان نه لیدل کیږي، چې زمونږ هیواد په واقعي توګه پرمختګ وکړي.» هغه بیرته په خپل پخوانۍ سور او تال ګډ شو.

دا خبرې اترې همفریز ته تکان ورکړ. هغه خپلو امرینو ته لیکلي و: «دا د یاد وړ دي، چې نادر د خپل پاچايي کړو وړو باندې دومره په آزاد ډول اعتراض کوي. تر دې وخته پورې دې د هغه په مورد کې ماته په ثابت ډول یو تابع او غوره مال سړی معلومیده. په یقین سره د هغه له خبرو څخه داسې څرګندیږي، چې دی ډېر زیات مایوسه دي، او هغه مشهور راپور ته یې رنګ ورکړ، چې له امیر سره سخت جنګ کړی دی او په نتیجه کې د حربیې د وزارت له وظیفې څخه استفاده کړې ده. د هغه خپله د بایللو موضوع او په مجموع کې له سرحدي قبایلو سره د افغانستان د نفوذ د له منځه تلو ترخې یادونې ښکاري، چې څرګند کړي، چې د هغه د برتانوي ضد پالیسي دسیسه... په هر صورت سره، په موقتي ډول د امیر له خوا رده شوې ده.

«لیکن دده او د امیر په منځ کې په هر رنګ سره، چې اختلافونه علتونه ولري، دا په وضاحت سره څرګندیږي، چې دی اوس خپل اعتبار له لاسه ورکړی دی او د پخوا په شان د

اغیزې په نه لرلو سره، له امیر سره خفه بریښي. هغه کورنۍ چې دې یې مشرتوب په غاړه لري، دومره پیاوړې ده، چې امیر نه شول کولی هغوی له وظیفو څخه گوښه او د اوږدې مودې لپاره یې غمجنه کړي. »

په لیږو ورځو کې اعلان وشو، چې ... خان د نادرخان پرځای د حربیې وزیر مقرر شوی دی او وویل شو، چې نادر به د افغانی مختار وزیر په توگه پاریس ته واستول شي. نادر هیله وکړه چې شاولي یې مرستیال مقرر شي، خو امان الله ونه منل. د هغه ورور، شامحمود، چې د افغانستان په شمال کې قوماندان و، تبدیل او په کابل کې د حربي ښوونځي قوماندان مقرر شو، چې دا دده له شان سره یوه مناسبه وظیفه نه وه. هاشم په روسیه کې مختار وزیر مقرر شو، هغه تر دې وخته پورې په اروپا کې په سفر بوخت و، نو ددې پرځای چې کابل ته راشي، دا د نورالسراج ناکام غوښتونکې سیخ مسکو ته لاړ.

همفریز فکر وکړ، ټول دغه شیان ښیي «چې د امیر موجوده پالیسي دا ده چې (دغه کورنۍ) یا له افغانستان څخه وباسي او یا یې په کابل کې تر دقیق څارنې لاندې ونیسي. »

دمخه تر دې چې نادر پاریس ته لاړ شي، د جولای میاشت وه، او په همدې وخت کې د خوست شورش دومره شدت موندلی و، چې امان الله د هغه کنډک «کم اصل» کسان فعال کړل او دریمې وظیفه یې ورته ورکړله، چې د حبیب الله وژل کیدو وروسته نادر او د هغه کورنۍ یې گرفتار کړي وو. نادر چې د لوی قوماندان په توگه وظیفه ترلاسه کړه، د هغه یو اقدام دا و چې دا خلک یې ټول برطرفه کړل، د نادر لپاره د هغوی، مقرریدل اهانت و، مگر امان الله روزل شوو جنگي کسانو ته ضرورت درلود.

د پسرلي په پیل کیدو سره په غلزي کوچیان افغانستان ته راگرځیدل پیل وکړ. کله چې د پسرلي په موسم کې کرمه پیښه کیدله، نو دا ویره به مدام موجوده وه، چې غلزي کوچیان به هم په پیښه کې برخه واخلي. غوث الدین، چې یو احمدزي غلزي و چې په ۱۹۱۲ کال کې یې پلار منگل بلوا ته راپاڅولی و، او په ۱۹۱۷ کال کې دوه تبعید شوي سرداران یې د پاچاهي د نیولو لپاره تحریک کړي وو، خو ونیول شول. تاریخ تکراریده. دوه نور تبعید شوي سردارانو هڅه کوله، د غلزیو په جامه کې د افغانستان خاوری ته داخل شي، برتانویانو هغه په پاړه چنار کې ونیول او بیرته یې وگرځول.

د خوست ملایان سره له دې، د خبرو اترو لپاره کابل ته لانه وو تللي. هغوی لا په خپلو

کورونو کی وو، او حکومت ته یی اخطارونه ورکول، کیسه داسی وه، چی هغوی له امان الله سره د جنگ کولو په خاطر د یو ملا له خوا حمایه کیدل، چی دغه ملا د امان الله خان له خوا د خبرو اترو کولو په خاطر استول شوی و. دا ملا شیرآغا نومیده. جنرال محمدولی خان د حکومت د قواو عهده دار شو، او په بری سره یی د التیمور د غابنی له لاری خوست ته ورداخل شو. د هغه ځای والی دمخه ماتی ته تیار و، چی خپل په زره پوری یابو او د سرو زرو د برش زره روپی یی پیښور ته استولی وی. احمدزی غلزی د غوث الدین له خوا راضی کړی شوی و، چی امان الله حمایه کړي. امان الله غوث الدین له بند څخه خوشی کړی و، چی له هغوی سره خبری وکړی. د می د میاشتی د خوست د یاغیانو له دریو تنو څخه دوه تنه یی تسلیم شوی وو، او ولی خان هیله لرله چی په پنځلسو ورځو کی بیرته کورته راشی او وضع به ښه شی.

وروسته احمدزی غلزی، یاغیانو ته لاړل. داسی راپور ورکړی شوی و، چی غوث الدین ددی په خاطر له حکومت سرهمکار شو، چی وسله لاس ته راوړی. امان الله خان یوه اعلامیه خپره کره، چی په کی داسی ویل شوی وو: «زما گرانو رعایاو، څنگه چی په فرمان کی په کلکه غوښتل شوی دی چی (له خلکو سره د هغوی په چارو کی مشوره وکره، او کله چی دی پریکوه وکړه، بیا په خدای (ج) باندی عقیده وکړه) زه تل د خلکو د هوسایی او د هغوی د خوښ د ارمانونو په ترسره کولو کی په مینه او احتیاط کار کوم، د خلکو د استازی دی هم د امکان تر حده پوری باید ددی ارمانونو په ترسره کولو کی برخه واخلی، په وینا او په عمل کی ددی دروند مسؤولیت په عملی کولو کی دی له ما سره مرسته وکړي.»

امان الله خان د جولای د میاشتی په پای کی په کابل کی د لوی جرگی د دایریدو اعلان وکړ. همدا وخت چی له خپل ولس سره یی خبری وکړی.

افغانی هوایی قوا د امان الله له خوبونو څخه وه، لیکن تر اوسه پوری په دی باندی بریالی شوی نه وه، چی یوه افغانی الوتکه په هوا کی ووینی. په هیواد کی پنځه الوتکی وی، او دری جرمنی میخانیکان لینت (Linghe)، ویس (Weisss) او برستمان (Brustman) هڅی کولی، چی دا الوتکی د پرواز حالت ته راولی، مگر څه چی هغوی کری وو، دا و چی افقی آبی رنگ یی ورته ورکری و، او پر وزرونو باندی یی د فیتی په شکل تور خطونه ویستل وو. دوی الوتکی چی روسیی ورته ورکری وی، دوه څرخی ماشینونه یی درلودل، چی په کابل کی څوک وربانندی نه پوهیدل، او دومره قدرت یی نه درلود، چی د کابل له غرونو څخه جگ

پرواز وکړي او په هر صورت په بد حالت کی وی. دوی الوتکی چی له ایتالیی څخه رانیول شوی وی، او شکمنه تیښته بیه یی دوه سوه سترلنګ پونډ وه، هم د کار نه وي، په ښار کی افواهات داسی وو، چی برتانویانو په هند کی دا الوتکی په شدت سره له بیړیو څخه لاندی خطا کړی دی. حقیقت دا و، چی د کابل لاره خرابه وه او پیچومی یی هم زیاتی درلودی، تو که په داسی یوه لاره کی الوتکی د اوښانو یا د لاریو په ذریعه راوړل کیږی، حساس سامانونه یی ضرور خرابیږی. د جرمنانو په فکر یوازی الوتکه چی ممکن پرواز کولای شوای یوه انګلیسی الوتکه وه، چی ورته «د خدای له لاری رااستول شوی» ویل کیده. دا الوتکه په افغانستان کی فقط د کابل د کنفرانس څخه د مخه تېکر وکړ او په هغه ځای کی پاتی شو. هیڅ کوم میخانیک د هغه د رالز رایس (Rolls Royce) په انجن باندی نه پوهیده. او نه په دی باندی قادر وو چی د الوتکی تنه او وزرونه په فنی توګه خلاص کړي او په علت باندی یی پوه شی. کوم شی ته چی دوی ضرورت درلود، او د هغه شی غوښتنه یی بیخی ونه کړه هغه د الوتکی د جوړونکو له خوا د هغی د تخنیک د رهنما کتاب و.

همفریز ګومان وکړ «یوازنی انجمن چی امیر یی کله په پرواز کی لیدلی دی «د برتانویانو وه» دا هغه الوتکه وه، چی په ۱۹۱۹ کال کی یی بمبارد کړی و. په دی وجه په دی وخت کی یوازی د برتانیی الوتکه ده چی امیر وریاندی اعتقاد لری. » همفریز افغانستان ته د تحفی په ډول د الوتکو د ورکړی پر موضوع باندی وغږید، چی فکر یی وکړ د پټ استعداد او قوت له مخی د یوی درنی توپخانی څخه یی خطر کم و، نو دغه شدید پیشنهاد کړ، «الوتکی دی د برتانوی پیلوټانو له خوا کابل ته یوړل شی، او رسماً دی امیر ته تسلیم کړی شی. راتلونکی بدنامی په بهرنیو کارګرانو نه وی چی د هغوی ناکامی به له لومړی پیلوټانو سره د یوی نامناسبی مقایسی موضوع منځ ته راوړی. »

په هغه وخت کی چی محمود طرزی له پاریس څخه د راتګ په حال کی وه او ولی خان په خوست کی له شورشیانو سره په جنګ و، د بهرنیو چارو د وزارت کفیل سردار رشید احمد و، چی په روم کی وزیر مختار و، او اوس د شورا د مجلس رئیس و. هغه له برتانویانو څخه شپږ الوتکی وغوښتلی او سمدلاسه یی په لسو او پنځلسو ورځو کی وغوښتل. هغه شپږ الوتکی مشخص کړی، چی شپږ یی بم غورځونکی او دوی الوتکی یی ماشیندار لرونکی وی.

ریچارد مکونا چې د همفریز د رخصتیو په ورځو کې په هند کې شارژدافیر و، پوښتنه وکړه چې «د الوتکو تسلیمول په کوم ځای کې غواړې؟»

«که د هند حکومت جرمني پیلوټانو ته اجازه نه ورکوي، چې د هند له هوايي میدانونو څخه د دغو الوتکو د پرواز ورکولو استفاده وشي، نو باید چې په انګلیس لاریو کې دې کابل ته راوړلې شي. که چیرې الوتکې برابرېدی شي نو زه به خوشحاله شم، چې راته وویل شي، چې پیسې یې نقدي غوښتلې کیږي او یا یې په بدل کې غالي، څرمن او داسې نور شیان باید درکړل شي.»

مکونا چې وویل: «دا عجیب دی چې په پنځلسو ورځو کې شپږ الوتکې له مکملو پرزو سره او هم ورسره نوري اضافي پرزې چې تاسو د هغه غوښتنه هم کړې ده، د اعلیحضرت حکومت ته تسلیم کړې شي.»

شیراحمدخان وویل: «وخت یو ضروري عامل دی، لیکن که شپږ الوتکې تر هغه پورې برابرې نه شي نو له دې نه چې هیڅ نه وي، څلوردانې به هم بهترې وي.»

«زه په دې شک لرم چې ددې مقصد له پاره په هند کې شپږ الوتکې وجود لري.»

د مکونا چې دا یادونه شیراحمدخان ډېر زیات په فکر کې واچاوه. «زه د ډېرو ښو منابعو په حواله پوهېږم، چې برتانویان په هند کې یو زیات شمیر الوتکې لري. شپږ الوتکې څه شی دي، په رښتیا چې هیڅ شی نه دي، که دغه شپږ الوتکې ضایع شي د برتانیې حکومت به وربانډې پوه هم نه شي.»

«زه په دې مورد کې پوره معلومات نه لرم، اما دومره فکر کولی شم، چې دغه زیات شمیر الوتکې چې تایې په باره کې راته وویل، د حکومت د خپلې استفادې لپاره ساتل شوې دي، او د دوکانونو د بازیچو په شان د خرڅلاو له پاره نه دي ساتل شوې.»

هغه توضیحات ورکړ: «الوتکې ماتېدونکي شیان دي، که د ځمکې له لارې له تورخم څخه تر کابله پورې په لاریو کې راوړلې شي، نو حتمي به زیان ورته ورسېږي او که کوم تاوان ورته ورسید، نو افغانان به ووايي چې دا کار یې په مقصد سره کړې دی.»

مکونا چې پیشنهاد وکړ چې الوتکې دې د پېښور په هوايي ډګر کې وپېرودل شي او بیا دې د برتانوي پیلوټانو له خوا ورته پرواز ورکړی شي، چې کابل ته یې ورسوي او یو افغاني منصبدار دې په هره الوتکه کې د مسافر په توګه کښیني، چې برتانوي پیلوټانو ته په کابل کې د کوزېدو په وخت کې لارښوونه وکړي او هم دا خبره واضح شي، چې دا د افغانستان مال دی.

شیراحمدخان په جگ آواز سره وویل: «دا نظریه په مطلقه توگه ناممکن ده. که دا الوتکی د پیښور له هوایی ډگر څخه د کابل په لور پرواز وکړی، نو په ډکه، جلال آباد او په نورو کلیو کی به خلک د هغو په لیدو سره وارخطا شی، او د پخوانیو څرگندونو او تبلیغاتو سره سره به د مشرقی د ولایت خلک فکر وکړي، چی برتانویان روان دي، چی کابل بیا بمبارد کړي. ددی کار عواقب افغان حکومت نه شی زغملی.

شیراحمدخان پیشنهاد کړی و چی افغانی ځوانان دی د پیلوټی د زده کړی له پاره هند ته واستولی شی. مکونا چی بل پیشنهاد وکړ:

«تلفات ممکن دروند وی. که څه هم دا زما او ستا له پاره غیر قابل تصور وی چی که زموږ حکومت وغواړي افغانی هلکان ووژنی یا دا چی که بی دا کار کړی وی، نو هغوی به د الوتکی په ذریعه د هغوی د استولو لاره چی دومره قیمت لاره ده، انتخاب کړي، د افغانانو لپاره په څرگند ډول هیڅ شی زیات غیر قابل ممکن نه دي، چی اعتبار وکړي، په دی شرط چی دا یوه داسی مفکوره به رامنځ ته کړي چی د هغی له مخی د برتانیی د حکومت د هرکار غیر صادقانه تلقی شی.

«ته باید فکر په دی شی خراب نه کړی، چی د بازار ناپوه خلک د برتانیی په مورد کی څه وایی. امیر تصمیم نیولی دی چی ستا پر حکومت باندی په بشپړه توگه اعتماد وکړي.»

«ما د سرچوک پر آوازو باندی فکر نه و کړی، بلکی د اخبار پر یو ډول مطالبو باندی چی تر اوسه په افغانی مطبوعاتو کی خپرېږي، فکر کړی دی.»

شیراحمد ورته ډاډ گیرنه ورکړه چی: «پروا نشته چی خلک څه فکر کوی. زه یقین لرم چی امیر به د تلفاتو له هر شمیر څخه بد نه وړی. په حقیقت کی اعلیحضرت د هغوی توقع کوی. د هلکانو اجل راغلی وی، هرچیری او په هر وخت کی مری. د مثال په ډول، د سردار نادر زوی په دی وختونو کی په پاریس کی مړ شوی دی، هغه په الوتکه کی نه دی مړ شوی. دا رښتیا ده، اما پرنسیپ هغه دی. هیڅ د فرانسی حکومت د هغوی په مرگ متهم نه کړ. دوه افغانی هلکان په ایتالیا کی د پیلوټی درس وایی. هغوی خپله دوره تر اوسه پوری نه ده تمامه کړی، اما هر یوه تر اوسه پوری دوه ځلی تصادم کړی. هغوی مړه شوی نه دی اما دا ایتالویانو ته کوم کریدت نه دي. هغوی شاید له منځه تللی وای، او په هغه صورت کی به هیڅوک د ایتالیی حکومت مسؤول نه گنی. په هر حال تلفات کوم اهمیت نه لري.»

په لندن کې بهرنۍ سکرتر رامسي مکدونالد (Ramsay Macdonald) هندي دفتر ته داسي وويل: «د امير په قضيه کې چې په ټينګه سره هڅه کوي په راتلونکې لويه جرګه کې د ضد برتانوي د دسيسو مخنيوي وکړي، ممکن د انګلستان حکومت ورته د ورزده کولو اورو (Avro) ډوله دوه ماشينونه د تحفي په ډول ورکړي.

په دي ارتباط سره دا معلومه شوي ده چې روسي حکومت هغه الوتکې چې د استولو لپاره تياري وي، د اوښانو او کچرو په ذريعه کابل ته استوي... که چيري د غه الوتکې له بسته کاري وروسته د پرواز لپاره مناسبې نه وي، نو د روسيې حيثيت به د افغانستان په شان يو هيواد ته زيات ټيټ شي... داسي غواقب د برتانيې د حکومت پرخلاف مناقشې زياتوي، چې په بيړې سره او بس له دي چې کومه دقيقه آماده ګي ونيسي، الوتکې برابروي.

اوس د خوست شورشيانو يو لارښود درلود، هغه د ګوډ ملا په نوم سره ياديده، که څه هم د هغه رښتيني نوم عبدالله و، مګر څرنګه چې لږ غوندي ګوډ وه ورته ګوډ ملا ويل کيده. هغه به شنه قبا اغوستله، چې د پيغمبر (صلی الله عليه وسلم) د قبا رنګ و. د افغانستان په فولکلور کې ګوډ ملا يو شخصيت وګرځيد. په وروسته کلو کې به خلکو د هغه کردارونه داسي بيانول، چې له آسمان نه ورته الهام راته او د منګلو قوم ته به يې ويل: «لاړ شي د پلاني ونې لاندي پيسې دي، او تاسو هغه پيسې پيدا کړي» هغوی به هلته تلل او هغه پيسې به هلته وي. وروسته به کيسه ختمه شوه «البته پيسې به برتانويانو هلته ايښودي، ځکه هغوی غوښتل چې خلک د ګوډ ملا پسي روان شي.»

«ګوډ شيطان» هغه مطلب و، چې په اتحاد مشرقي نومې اخبار کې چاپ شوی و. دا يوه داسي فقره وه چې مبهم معلوميده او په سختۍ سره د پوهيدو وړ و، او د غه مجله کې يې ليکلي و: «زه په نمايندګۍ کې وم چې دوه تنه ښاغلي او نور.» د کابل رسمي اخبار امان افغان په جون کې د يوې مودې له پاره خپرونه وځنډوله، ځکه له دې سره يې علاقه نه درلودله چې د خوست د لړو برياليتوبونو په هکله خبر خپور کړي.

ګوډ ملا له هغو کسانو سره بحث وکړ چې امان الله خان استولي وو، او پرته له ښووني او روزنې او (هشت نفري) نور په ټولو ټکو باندي موافقه وشوه. هغه د ښووني او روزنې په برخه کې وويل او هيله يې څرګنده کړه چې يوازي د هلکانو يو محدود شمير چې مناسب وي له بهرنيانو سره معاملې ترسره کړي، بايد عصري زده کړه وکړي. د نجونو په مورد کې هغه وويل:

چې هرڅومره چې له بهرنیانو سره سرو کار ولری، بهتر دی لیکن د هغوی له تعلیم سره یې موافقه وکړه، په دې شرط چې یوازې قرآن شریف دې ووایي او تر واده وروسته دې ښوونځي ته لاړې نه شي او د هغوی نارینه ښوونکي به د اتیاو کلو څخه لږ عمر ونه لري.

ګوډملا وویل: (هشت نفری) ضرور نه دی. که له بهرني قدرت سره جنګ پیل شي نو د منګل قوم به امیر ته سل زره تنه برابر کړي، چې په خپله خوښه بې له کوم معاش څخه ورته خدمت وکړي. اما که وضعه آرامه وي، هغوی به هیڅ نفر ورته ورنه کړي، چې تر عسکری تعلیماتو لاندې ونیول شي.

هغه پوښتنه وکړه: «ولی سرحدي قبایل عسکری تعلیماتو ته ضرورت لری؟» او بلنه یې ورکړه، چې د افغاني منظمو عسکرو له جملې څخه شل تنه دې راشي او د نښې ویشتلو په مسابقه کې دې ګډون وکړي. ګوډملا ډیر ښه نښه ویشتونکي و، او هیڅوک هم دې بلنې ته حاضر نه شو.

په کابل کې د غلودانو کمښت احساس و، چې معمولاً له یاغي سیمو څخه راتلی، امان الله خان امر وکړ چې د شلو میلو په حدود کې دې غلزي کوچیان د غنمو د لوکولو له پاره استخدام نه شي، غلزي قبیلې د اوړي په نیمایي کې خپله شومه له دې لارې څخه حاصلوله. د کابل د شاوخوا سیمو بزګران هغوی ته ضرورت درلود، مګر امان الله وویل زه غواړم د کابل خلک دې خپل کار په خپله وکړي، مثلاً لو دې وکړي، چې د پردو خلکو د بې اساسو خبرو مخنیوی وشي. کوم شي چې د هغه اعلامیه ویله داسې وه:

«لوګری د خپل لو په بدل کې د شلو ګیډیو په بدل کې یوه ګیډه اخلي، دا کار د قران په خلاف دی چې د غنمو اجوره اخیستل منع دي. په دې کار سره ځمکه والو ته تاوان رسیږي، ځکه چې هغوی خپلي ګیډی له نورو ګیډیو څخه غټې جوړوي. همدا ډول ښځي او ماشومان د لو په وخت کې خپل ځان ته وږي ټولوي، چې دا هم د زمیندار له پاره بل تاوان دی.»

«لوګری چې مدام به سیار وو نو په دې کار سره به هغوی په عسکری کې د شاملیدو، له مکتب څخه د خپلو ماشومانو له شاملولو او د خپلو مالونو د مالیې له ورکولو څخه خلاصیدل. حکومت په جدي توګه په زراعتي فعالیتونو لاس پورې کړی دی او تیار دی چې په ارزانه بیه کوچیانو ته ځمکه ورکړي، که دوی هلته میشته شي او دا ځمکې وکړي.»

کله چې د کوچیانو دوی ډولې د جلال آباد کابل د لارې په دواړو خواو کې خپلې کیږدی

درولې وې، حاصلاتو ته دا خطر متوجه و چې په پټوکې خوسا شي. دوی په انتظار کې وو چې وویني څه پيښه به وشي، هرچا به دا ویل، چې دوی خپل د لو کولو عادي کار ترلاسه نه کړي، نو دوی به په غلا لاس پورې کړي. ماموړينو چې نظريې منلې، د هغو کليو پر اوسيدونکو باندې، چې د لارې په اوږدو کې اوسيدل تيږې ووېشلې.

نمونه قطعه، د حربي غنډ چې جمال پاچا روزلې وه، د خوست خوا ته روانه وه چې جنګ وکړي. امان الله شخصاً له هغو کسانو څخه مننه وکړه، چې خدمت يې کړی و، د هغه د کورنۍ دوې مهمې ښځې، ثريا او عليا حضرت په عسکري مراسمو کې ولیدل شوې، چې هيڅ ښځې د مخه په داسې مراسمو کې ځرګند شوې نه وې او هر نفر ته د ګلو ګيډۍ او يو دسمال چې د سرو زرو يوه سکه په کې تاوه شوې وه ورکړې وه، ددې ښځو پر سرونو څنډې لرونکې شپوګانې وې او تر شپو لاندې به نقاب و، چې پر مخونو يې اچولې وو، ليکن د عسکرو له پاره دا لومړی ځل و چې د شاهي کورنۍ ښځې يې په لوېديځ فيشن کې ليدلې.

يو سړی چې له ثريا څخه يې زرې دسمال واخيست د کابل د شمالي د کوهستان د کلکان اوسيدونکی و. دی ډېر زړه ور او غښتلی و، ليکن له کوچنيوالي څخه د ورانکارۍ له مسلک سره علاقه درلوده، او خپله ورانکاري به يې کوله، لکه څنګه چې د يو موږ کوهدامنۍ سړي د انګورو تاکونه يې تباه کړي وو، دی په خپل کلي کې يوازنی هلک نه و، چې انګور يې غلا کول، په دې دره کې د غسې کسان زيات روزل شوي وو، تور ميده دانه انګور چې تر ټولو د مخه به وتل، د دغسې ځوانانو پام به يې ځان ته اړاوه. اما دې سړي خپل دا عمل وروسته داسې بيان کړ، چې دې د خپل پلار د انتقام په اخستو سره د هغه موږ کوهدامنۍ سړي تاکونه تباه کړي وو. هغه سړي د ده پلار ته سپکې سپورې ويلې وې. پلار يې په ټولنه کې ټيټه وظيفه درلوده. هغه سقاو و، خپل ژۍ به يې له اوبو څخه ډکولو او ميدانونه به يې اوپاشي کول. ددغه سړي راتلونکې د تاکونو له دوو پيښو څخه ځرګنديدای شو. هغه به د نورو خلکو دارايي ګانې له ټوک او د خپل ياغيتوب د ښودلو له پاره به يې ناڅاپي بريدونه کول. دې به د قطعه نمونې څخه تښتيده او خپل وخت به يې ياغيتوب سره تيراوه او هغه حرفوي نوم به يې ځان ته غوره کړی و، چې د ده د پلار له وظيفې سره برابر و. دې د سقاو د زوی په نوم باندې شهرت ومونډ.

امان الله خان د جولای د ۱۳ نيټې په مراسمو کې يوه ډراماتيکه څيره نه وه، دې چې توره يې په لاس کې وه، په نورو مراسمو کې به يې ډراماتيکه څيره درلوده. وضعه يې عصباني

معلومیدله. خبری یی مترددی او درستی نه وی. کله چی دی د عیدگاه په مسجد کی هغه لوبی تپولنی ته، چی په مقابل کی یی ولاړه وه، نظر واچاوه، ډیر ملایان تر سترگو شول او ددی له پاره چی د هغوی درناوی شوی وای، د ډلی په اول صف کی ورته ځای ورکړی شوی و. عنایت الله خان حاضر نه و. په وروستیو وختو کی هغه ډیر شهرت موندلی و، ځکه چی له امان الله خان سره د هغه نارضایتی موضوعگانی، د دوو ورونو ترمینځ د اختلاف سبب شوی و، او بازاری خبری داسی وی چی دا کار د هغه له بی خوند سیاست سره مل شو او هغه یی لیری وساته.

امان الله د لمانځه له ادا کولو وروسته چی امامت یی په خپله وکړه، په یوه لنډه بیانیه کی وویل: «مسلمانان په هغه وخت کی پرمختگ کوی چی سره هماهنگی او توافق ولري. ملایانو به معمولاً لمونځونه ورکول او خطبی به یی لوستلی. په همدی وخت کی د هغه د عمومی اداری یو مشر د برتانیی یو مامور ته داسی وویل: «ډیر قبایلی ناپوه کسان افغانان یی یو کال نورهم شاته وغورځول.»

په پای کی نادر دی ته تیار شو، چی پاریس ته لاړ شی. د برتانیی نظامی ... په خپل یادداشت کی داسی کښلی دی: «د هغه تگ ممکن وضعه تر یوی اندازی ښه کړی، ځکه چون داسی شواهد شته چی په موجوده وخت کی داسی وښیی، چی هغه د امان الله پر ضد دی، خو په مرکز کی دده دوامدار موجودیت به په جنوبی سیمه کی د شورشیانو د تشویق سبب وگرځی.»

نادر په ډاگه سره ویلی وو، چی پاریس ته نه ځم، مگر دی نتیجی ته رسیدلی و، چی د امیر اوامرو ته دی باید احترام وشی.

هغه وویل: «زه فکر کوم چی افغان حکومت د عملیاتو د پرمختگ په برخه کی ډیر کم معلومات لري. ولی خان په گردیز کی دی او افغان حکومت دی باید په یقین سره پوه وی، چی د هغی سیمی په نږدی گاونډی برخه کی څه خبره ده، لیکن شاید ددی په ویلو باندی وشرمیږی.»

که نادر د برتانویانو د هندی قلمرو د لاری پر عوض د روسیی په لاره سفر کړی وای، په دی باندی به برتانویان خوشحالیدل. هغوی ورباندی اعتماد ونه کړ. صرف د هغه له خوځیدو د مخه مکونا چی ورځخه پوښتنه وکړه، چی ولی خلک په افغانستان کی په شخصی توگه له برتانیی سره دوستی کوی او په عمومی توگه یی نه کوی. نادر په ځواب کی وویل: دا ځکه چی

د افغانستان اوسنی حکومت په رښتیا سره د برتانیې ضد احساس لري، او هغوی ویرېږي چې د برتانیې پالیسي په قبایلو کې افغاني نفوذ ته زیان ورسوي، او ډارېږي چې برتانویان غواړي افغانستان، ضعیف وساتي او د هغه د پرمختګ مانع وګرځي.

نو نادر د جولای په ۱۲ نیټه له سرحد څخه واوښت او د جرګې په موده کې له افغانستان څخه خارج شو، چې ډېر کسان د هغه له نفوذ څخه په ویره کې وو.

هغه کسان چې کابل ته د لویې جرګې له پاره راغلي وو، د خپلو سیمو مشران وو، کله چې هغوي خبري کولی، نور خلک به ورته په دقت سره غوږ ایښودلي و، همدا وجه وه، چې دوي د نماینده ګانو په توګه انتخاب شوي وو. دوي د پاچا له خوا مرکز ته رابلل شوي وو، پوه شول، چې د دوي نظریو ته د هر وخت نه زیات علاقه لیدل کیږي. څرنګه چې دوي اطرافي خلک وو، نو ځینې بې شرمناک وو، او په دې چرت کې وو، چې له پتکیو، کمیس او پرتوګ او د ملا له دسمالونو سره به ومنلی شي که نه.

دوي ته ډوډي او لیلیه ورکړي شوي وه. دوه ډلي مهم خلک ورته مقرر وو، او غوښتل یې چې د دوي فکر خوښ وساتي. د امیر نژدي مشاور، سردار فیض محمد، چې دوی له هیئت سره په ټوله نړي کې سفر کړي و، او قاضي عبدالواسع، چې د امیر د مذهبي مسایلو لوي حقوقدان و، له هغوي سره د نظامنامو په برخه کې خبري وکړي او د نظامنامو پرګټورو مطالبو باندي ورته اشاره وکړه او دا خبره یې رد کړه، چې نظامنامه د اسلام پر خلاف ده. وروسته ځینې ملایان چې پوهه یې درلوده، د نظامنامې د لغوه کولو په برخه کې یې ټینګار وکړ. په اول کې تقریباً هره ډله د هشت نفري پرضد شدید الحنی خبري وکړي، او ډېري توندي خبري کندهاریانو وکړلی. اته میاشت د مخه، د هغه ځاي ټول نارینه کسان په یو مسجد کې اعتصاب کړي و. امان الله هم همداسې شدید الحنی خبري وکړي. هغه دي خلکو ته وویل، چې ستاسو مخالفت له مسؤلیت څخه د پوره سرغړونې ښکارندوي دي، چې په هغه کې تاسو د نوي مالیي سیستم نه منې، چې دا یو ضرورت دي او په بدل کې تاسو د داوطلبانه سیستم پیشنهاد کړي دي. هغه ته هم غاړه نه ږدي، چې څه نتیجه به ورځینې ترلاسه شي.

د امان الله خان منطق نوي شو، جرګې رایه ورکړه، چې هشت نفري دي وي، لیکن د معافي فیس نیمایي ته ټیټ کړي شوي و، او د عسکري جلب موضوع ته د دي اجازه ورکړله شوه چې کوم سړي چې تکړه وي او وغواړي چې عسکري خدمت ته لاړ شي، د بل سړي پر

عوض باندې پیشنهاد کیداې شي.

د ښځو تعلیم په برخه کې، امان الله مجبور شو چې د شرایطو تابع و اوسي. هغه داشې يې نه و تشخیص کړې، چې د ده د هیواد په لیرې ولایتونو کې خلک په دې برخه کې څومره تریخ احساس درلود. امان الله موافقه وکړه، چې ښځې دې له دولس کلنې وروسته زده کړه ونه کړي، او هغه له ضدیت سره تردې حده پورې علاقه ونبودله، چې د یرو خلکو به فکر کاوه چې د کابل د نجونو ښوونځې به کله چې رخصتې خلاصه شي بیرته به خلاص نه شي، ځینې مقررې، چې د لویې جرګې له خوا په تصویب ورسیدې، او په حقیقت کې د نظامنامو ځینې برخې يې منسوخې کړې، په دې ډول وې:

«تر پیغلتوب د مخه د نجلې واده کول اجازه ده.»

«ښځې دې له هغو نژدیو خپلوانو څخه زده کړه وکړي، چې محرم يې وي.»

«که یو غل خپل د غلا عمل تکرار کړي، اعدام يې روا دې.»

که بندې توبه وباسي او د خپلو تیرو عملونو پښیمانې وکړي نو ابدې حبس يې باید په تدریج سره تنقیص شي.»

«د غیر مسلمانو خلکو ژبې چې ورته اړتیاوې، په دې شرط سره د هغه زده کړه مجاز ده، چې د سړي عقیده خرابه نه کړي او هم په دې شرط چې سړي خپل د یني تعلیم پاي ته رسولی وي.»

«د دوهمې، دریمې او څلورمې ښځې واده کول دې باید مخکنۍ ښځې د موافقت یا د کوم بل ډول حالاتو له مخې نه وي. هغه سړي چې له خپلو ښځو سره، عادلانه چلند نه کوي څه د هغو ښځو میره دې سمدستې محکمه ته احضار کړي شي.»

«د مذهب او عقیدې په اساس کې هیڅ کله ازادې نه وه، او باید نه وي او اجازه به ورته ورنه کړله شي، لیکن د (آزادي) کلمه چې په نظامنامو کې ذکر شوې وه د (شخص حقوقو د ازادي) معنی يې لرله، نه د عقیدې، مذهب او سیاست. څرنګه چې ذکر شوې لغت یوه معنی دار لغت و، د همدې لغت توضیحات په نظامنامو کې ذکر شوې و او له دې امله تصیح په کې منځ ته راغلی و.»

په دغو او نورو موضوعاتو کې د افغانستان ملایان چې زیات شمیر يې په سختې سره لیک لوست کولی شو، د قوانینو هغه مجموعه يې کره کړه چې په فرانسه کې د ناپلیون

بناپارت له خوا تدوین شوي وه، بیا ترکانو ترتیب کړ او وروسته په افغانستان کی بیا د سره ترتیب او تنظیم شو. کومه نتیجه چې ورڅخه ترلاسه شوه، هغه دا وه، چې په ډیرو حالاتو کی قانون تر دي حده غیر صریح و، چې د جزائی قوانینو د تطبیق به وخت کی، هیڅوک نه پوهیدل، چې مطلب څه و؟

ځینو ډلو غوښتل، چې د بهرنیو چارو د وزارت باندي یوه انتقادي رائه تصویب کړي، چې روس دي ته اړ نه کړي، چې د خپلی معاهدي پر تعهداتو باندي ولاړ وي. د شمال خلکو، چې ځمکی یی په افغان ترکستان کی د روسی ترکستان له ځمکو سره تښتی وي، په خاص ډول سره د بخارا د اشغال په خاطر، له روسانو څخه ترخه خاطره درلودله. یو لړ شمیر ملایانو به اعلامول، چې ټول ترکان بی دینان دي، ځکه هغوي د ترکیی په معاهده کی هغه فقره له منځه وړي وه، چې د هغه هیواد مذهبی حاکمیت یی تصدیق کاوه.

د چکنور ملا چې له امان الله سره عجب خان، اردلی او د هغوي د نورو ملګرو د تسلیمولو پر موضوع باندي مرور و، یوه اختتامیه وینا وکړه، چې په هغی کی د امان الله خان ستاینه وکړه، ځکه چې د مذهبی مشرانو پیشنهادونه یی منلی وو، او خپلی نظامنامی بی په بشپړه توګه له شریعت سره برابري کړي وي. کله چې اوازه خپره شوه، چې د کندهار سپین ږیري، چې دوي تقریباً د خوست د شورشیانو په شان یاغیان شوي وو، د خوست د یاغیانو په واسطه لوټ شوي وو، د هغوي یادګاري مډالونه هم په کی شامل وو، نو دا داسی معلومه شوه، چې داخلی جنګونه ممکن پاي ته رسیدلی وي.

د پخوانو زمامدارانو موجودیت په هند کی، د کابل زمامدارانو ته تهدید و. دوي د افغانستان د هغو واکدارانو اولاده وه، چې خپل تاج او تخت یی په هیواد کی له لاسه ورکړي وو، او هند ته تبعید شوي وو. د برتانیی حکومت به هغوي ته په دي حساس وخت کی پیسی ورکولی، چې د افغانستان په چارو کی د انګلیس په دستور لاس ووهی.

عبدالکریم، د پخوانی امیر یعقوب خان کشر زوي و، چې ډیر لږ اهمیت یی درلود، دي افغانانو ته ډیر محقر وه ځکه چې د ګندمک په معاهده کی د افغانستان د بهرنی اړیکو واک برتانویانو ته ورکړي و. عبدالکریم چې د برتانویانو په نظر یو بی ثباته سړی معرفی شوی وه څلور ځلی تیښته کړی وه. په ۱۹۱۷ کال کې وروسته له هغه چې پلار یی وربان‌دي پیسی بندي کړي، او وروسته له هغی پیښی چې پولیس ته یی څوک ویلی و، افغانستان ته لاړ، خو

څرنګه چې د برتانيې د پيسو په وعدو باندې غولول شوي و. برتانويانو دا وعده ورسره په دې هيله وکړه، چې د ده پلار به خپلې پيسې ورباندې وويشي. اميريعقوب خان دا کارونه کاوه، ځکه چې هغه عبدالکريم ته د يو ضعيفه زوي په توګه ځواب ورکړي و، نو برتانويان مجبور وو، چې په خپله د هغه تخصيصيه ورکړي. دا هغه وخت و، چې دې برتانويانو ته لاپې وهلې چې دې د پلار ډير ښه ايسي، او پلار يې دې له خپلو ټولو اولادونو ډير زيات ښه ګڼي. هغه په ۱۹۲۰ کال کې وغوښتل له ډيره دون څخه پېښور ته لاړ شي، مګر ونيول شو، او د دوو اونيو له پاره په کور کې تر څارنې لاندې ونيول شو. عبدالکريم د هغه وخت په باب داسې وويل، «زه د (بنارس) په ښار کې اوسيدم... او د فراغت په وخت کې مې د خپل ژوندانه د ساز او سامان د برابرولو په خاطر، زرګري کوله، ځکه هغه پيسې چې د حکومت له خوا راته ورکول کيدې، د هغه سړي له پاره، چې زما په شان موقف يې درلود، په سختۍ سره بس کيدې. » کله چې د هغه په ښار کې د برتانويانو پرضد د مسلمانانو د پروتيست جنبش اوج وموند، دې له يوې ډلې سره د پوليس مرکز ته لاړ، چې بندي شي، او دې په دې باندې بريالی شو، چې له درو مياشتو زيات د بندي ګرې موده ځان ته حاصله کړي، که څه هم هغه په ربښتيا سره د هند له پاره د مستقل حکومت په فکر کې نه و، هغه له مامورينو سره دښمني کوله.

د عبدالکريم پنځمې تيښتې په هغه وخت کې صورت ونيو- چې لوريه جرګه دايره وه. هدف يې له خپل مخاصم پلار څخه خپل طبيعي حق ترلاسه کول و. دې د پلار د تش په نامه زوي باندې يادېده، او پلار به يې په ډاګه سره ويل، چې عبدالکريم زما زوی نه دی. عبدالکريم به ويل، زه به په يو وخت کې د افغانستان امير شم. آخر به تاريخ له ما سره شي. ځينې ساده افغانان وو، چې فکر يې کاوه دې به نوی امير کيږي.

د دې په څنګ کې، هغه له يو محلي پوليس سره به مناقشه اخته و، او خپلې پيسې يې په ناکافي توګه ترلاسه کولې.

عبدالکريم د اس په ذريعه له بنارس څخه يو ستيشن ته چې اته ميله ليرې و لاړ، تر بل ستيشنه پورې په اورګاډي کې لاړ، او ښکته شو، چې له توقيف څخه وتښتي. بيا تر راولپنډي پورې په پښو لاړه، دا د څو ورځو سفرو، خپلې شپې به يې مسجدونو کې تيرولې. د اورګاډي او د بخار موټر په ذريعه يې ځان د بلوچستان بنو ته ورساوه، او هلته يې له يو سړي سره ملاقات وکړ او ورته وې وويل، چې ميرانشا ته يې ورسوي، چې برتانويانو په هغه ځای کې

چاونی درلودله. په هغه ځای کی دي له یو تن قبایلی سړي سره وکتل او هغه یی په دي باندي متیقن کړ چې دي څوک دي.

قبایلی سړي ورته وویل، «په خوست کی اوس شورش دي او ستا له پاره دا بهترین فرصت دي، چې هیواد دي بیرته خپل کړي، چې پلاز دي له لاسه ورکړي و.

دواړو، له دوو ورځو منزل نه وروسته د افغانستان یو کلی ته ورسیدل، چې نادرکوټ نومیده. په هغه ځای کی دوي د دي قبایلی سړي له یو تن خپلوانو سره اوسیدل، چې نوم یی برلینډ خان (Burland khan) و او د خدرانو مشر و.

خلک ژر پوه شول، چې د پخوانی امیر زوي دلته راغلی دي. هغوي ډلی ډلی ناورکوټ ته تلل، چې عبدالکریم ووینی. د عبدالکریم احترام یی وکړ. یوه اعلامیه په دري ژبه ترتیب شوه او هغه یی د امیر امان الله خان پرځاي امیر اعلان کړ، او ډیرو کسانو له ډیرو قبیلو څخه په اعلامیه کی گوتی ولگولی.

عبدالکریم، چې داسی حترام یی بیخی نه ولیدلی څو اوونی یی په عیش او نوش کی تیري کړي. او شورش چې نژدي و خاموش شی، سمدلاسه شدت وموند.

برتانویان وارخطا شول. دا د هغوي له پاره یو عادي کارو، چې تول پخوانی افغانی پاچاهان په هند کی ترڅارنی لاندي وساتی، په تیره بیا د مخالفت په وخت کی، او دغه مشهور ناراضه سړي، چې برتانویان یی غولولی وو، داسی سړي و، چې د هغه ذکاوت ته هغوي اهمیت نه ورکاوه. هغوي داسی احساس وکړ، چې څه تاوان ورڅخه غوښتل کیږي.

له دي سببه، عبدالکریم د امان الله خان د غوښتنو د بودولو مسؤولیت پر غاړه درلود: هغه د دوي فعالی الوتکی وي.

شیر احمد او مکه نا چې د الوتکو د الوتلو د تسلیمی بحث وکړ او جرمنی پیلوټ برستین غوښتل شوي و، چې رر ـ ـ هیله وشی، چې که هغه الوتکه چې په ډکه کی افغانی لوري ته تسلیم ورکړ شوي وه، له ډکی څخه ورته پرواز ورکړي او کابل ته یی راولی.

هغه وویل، بلی، زه آماده یم، لیکن وروسته یی وویل: «حکومت ماته د پنځو سوو روپو څخه زیاتی نه راکوي او زه داسی نفر نه وینم، چې زما شکایت ته غوږ کیږدي. حکومت له ما سره ښه سلوک نه دي کړي. له ما سره وعده شوي وه، چې که زه ښه کار وکړم، زما تنخواه به جگه کوي، او څرنگه چې زه یوازي د هغو الوتکو عهده دار وم، چې له کاره

وتلي دي، نو زه په دې باندې بريالى نه شوم، چې کومه اضافي پيسې ترلاسه کړم، او دا زما ګناه نه وه.»

د انګلستان حکومت داسې نظريه درلوده، «د عبدالکريم تيښته، په داسې حال کې چې د خوست د شورش له بيا پيل سره تصادف لري، نو دا غير متحمل نه دی، چې د برتانيې پر بدبختۍ باندې تلقي نه شي او موجوده بدګومانۍ به لاپسې زياته نه کړي، چې ګوندي دا کار زموږ په تحريک شوي دي او هم دا چې موږ په پټه له دې جنبش سره مرسته کړې ده. د دومره لږ شمير الوتکو د برابرولو نه منل په داسې له لانجو ډک وخت کې به ضرور د شک او بدګومانۍ تصديق وکړي.» او د انګلستان د حکومت نظريه درسته وه. پنځوس کاله وروسته به هم افغانانو برتانويان په دې باندې مقصر وګڼي، چې عبدالکريم د هغوی په تحريک د خوست شورش ته استول شوي و، چې هڅه وکړي له امان الله څخه، چې يو قانوني پاچا و، پاچاهي ونيسي، او يا عبدالکريم به د يو حرامي په توګه وپيژني.

داسې يو سوال مطرح و، چې چون جرمنان به له تسليمولو وروسته الوتکو ته پرواز ورکوي، نو آيا دا به د ورسايلز (versailles) له معاهدې سره سمون ولري؟ ليکن د هند حکومت د شورش د ختمولو په هکله دومره مشتاق و، چې ژمنه به يې وکړه، له رسمي اجازې د ترلاسه کولو د مخه دې الوتکې ورکړل شي. د انګلستان حکومت ځان ته داسې تفسير کړ، «دا يوه داسې قضيه ده، چې په کې د امير د حمايې له پاره عاجل محلي سياسي پاملرنې د ورسايلز د معاهدې له روحيې سره د يو ځاى کيدو ضرورت زيات کړي دي، او د هند حکومت په غير طبيعي توګه پخوانۍ اصل ته غاړه نه ده ايښې.»

افغاني کنډک د شپارس او اولس کلنو هلکانو څخه جوړو، چې د سرنګهبان په نوم باندې ياديده. کله چې کابليانو و اوريدل چې دې کنډک ته سامان او د سرې پر سر يوه شرې ورکړل شوه، نو يې داسې فکر وکړ، چې د افغان حکومت قوو او له پاره بايد کومه مهمه قضيه پېښه شوې وي.

ځوان کنډک جنوب ته لاړ او په لوګر کې يې ځان ته قرارګاه جوړه کړه، چې د اګست په څلورم تاريخ سهار وختي د قبايلي شورشيانو له خوا ورباندې شديد، حمله وشوه. قوماندان ووژل شو، شورشيانو هغه سرې په بارو تو ولړا، او اور يې ورته کړ. هغوی همداسې يو عمل د لوګر پر يو پخواني نايب الحکومه باندې هم اجرا کړې و، هغوي تر دې حده پورې احساساتي شوي و، چې د تش جسد احترام يې هم نه کاوه.

ډیر شورشیان پرته له تیرونو څخه بل ډول وسله نه درلودله. هغوي به د تبرګ ګوزارونه په شدت سره کول، او په هغه وخت کې پر دغو ځوانو هلکانو باندي یې ګوزارونه کول، نو په چغه سره به یې ویل، «کافر امیر» هغوي چې له دې قتل عام څخه ژوندي وتلي وو، نو کله به چې دغه دردونکې صحنه د دوی په یاد راتله، لرزه به ورباندې راتله. د جهاد ټول شدت په خپله د دوي په مقابل کې و.

غلام نبي خان د روسیې پخواني مختار وزیر څرخ ته لاړ، چې متحدین وغواړي. چرخ هغه ځاي و، چې د غلام نبي پلار د هر هغه چا هرکلې کاوه، چې هلته به تللي وو. علي احمد خان د جلال آباد والي وټاکل شو، او د هغه مقام ته د کندهار او ترکستان په شان ارتقا ورکوله شوه. هغه په خوګیاني قبایلو کې نفوذ درلوده چې زیاته توقع ورڅخه کیدله.

صدراعظم، زوړ عبدالقدوس، چې اورده قبایي اغوستې وه، او فیشني شاولي په ښه عسکري یونیفورم کې، له قران شریفونو سره د لوګر په لور روان شول، چې منګل ډاډه کړي، چې د خبرو اترو له پاره راغلي دي. منګلو ورته احوال ولیږه، چې موږ شاولي ته د یوي داسې کورنۍ د غړي په توګه احترام لرو، چې موږ ورڅخه په زوره توګه خوښ یو. څه موده د مخه یوه یاغي قوه د التمور رغابنې یې ورک کړي و، ځکه چې د دې قوي مختلفې ډلې له جنګ څخه لاس اخستي و، چې بحث وکړي څوک دې امیر شي. دا بحث له هغې ډلې سره کیده، چې د نادر حامي و.

کوم شی، چې دغو مامورینو غوښتل قبایلو ته ووایي دا و، چې هغوي په خپله ممکن د جهاد د موضوع وګرځي. جهاد د هغه مقدس جنګ و، چې په هغه باندې به هغوي په متداومه توګه خلکو ته اخطار ورکاوه چې که یې سوله نه جوړوله.

دوه تنه مامورین، جنوبي ولایت ته لاړل، چې د عسکري له پاره له کوچنیو کلو څخه خلک ونیسي. هغوي په داسې حال کې چې لږ بري ترلاسه کړي و، د شپې له پاره غزني ته لاړل، چې هلته خلک له دې اندیښنې څخه ناروغ شوي وو، چې سلیمانخیلو به په هره شیبه کې ورباندې برید وکړي. سلیمانخیل د هغوي غلزي ګاونډیان وو، چې په سهیلې خوا کې پراته وو، او دوي یې په دوامداره ویره کې ساتلي وو. د اګست د ۱٤ نیټې په سهار هغه موټروان، چې مامورین یې غزني ته بیولي وو، له خپلې تشې لارې سره د کابل په لور روان شو.

لومړي دره، چې دې ورڅخه تیر شو آرامه وه، مګر کله چې شیخ آباد ته ورسید، چې د

کابل- غزني په نیمایي لاره کې ده، هغه د سلیمانخیلو له تیري کونکو سره مخامخ شو، چې په غزني کې یې ویره اچولې وه. په زرگونو تنو سلیمانخیلو دلته لیدل کیدل، او د نورو کوچیانو ډلې هم له دوي سره یوځای شوې وې.

د وردک سیند یوازې د شیخ آباد له جنوب څخه تیریږي. د لوگر له هغه پله څخه چې د سیند د پاسه جوړ شوی و، د اور لمبې پورته کیدې. د اور تودخې او د لمر تودوخې، چې له سپیره سرک څخه انعکاس کیدل، داسې شعلې یې هواته پورته کړې وې، چې په هغه کې موټروان مخاصمې څیرې ولیدلې، چې د هریوه په غاړه د کارتوسو گردنۍ خړول شوې وې. شورشیان د ده موټر ته راټول شول او وربانديې یې غال مغال وکړ. هغوي له ده څخه ډېرې خبرې واوریدې. هغوی پوه شول، چې دې پیښبوری دې او د دوي په جگړه کې کومه برخه نه لري، او د هغه د بې طرفۍ له مخې یې ورته اجازه ورکړه.

آیا تا کوم لیک له خانه سره راوړی و؟ هغه وویل نه. هغوي وربانديې باور ونه کړ، نو هغه ورته هغه یوازنی کاغذ وښوده چې له ده سره و. دا کاغذ د لسو روپو یو نوټ و. هغوي پیسې د مخه لیدلې وې. لیکن نوټونه یې دومره زیات نه وو لیدلي. دا یو هندي لس کلداري نوټ و. هغوي له داسې کاغذونو سره چې نوشتې په کې وي تردي حده بوره شدید عکس العمل ښکاره کړ، چې دا نوټ یې څیرې کړه مبادا چې ورته کوم نقصان ورسوي.

آیا غزني ته تللی وی؟ غزني تر کومې اندازې پیاوړي و؟ هغوي د غزني په باب دومره پوښتنې ورڅخه وکړې، چې موټروان پوه شو، دوي پر غزني بانديې د کومې حملې پلان لري. وروسته موټروان متوجه شو، چې هغه لمبې چې ده لیدلې وې، ټول یې د هغه پله لمبې نه وې، بلکې هغه لمبې وې چې د شورشیانو د کابل او غزني تر منځ د تیلفون پایې یې ویستلې ی او پر هغو بانديې یې خپلې غذاوې پخولې.

د اوړي په نیمایي کې د وردک سیند زیاتې اوبه نه لري، موټروان فیصله وکړه، چې خپل موټر په سیند کې گډ کړي او پورې یې باسي. کله چې شورشیان وربانديې پوه شول، چې هغه څه کوي، نویې د موټر ترشا سره راټول شول او موټر یې ورته په تیلو سره له سیند څخه پورې ایسته. دا کار د افغانانو له خیر خواهانه عملو نو څخه شمیرل کیږي، او له یو مسافر څخه په هر ځای کې داسې خیر خواهانه عملونه کیږي.

وروسته هغوي له موټروان څخه وغوښتل، چې په خپله لاري کې د امکان تر حده پورې نفرو

خېژوي او د دورانيـو تر کلي پوري يې ورسوي، چې د کـابل په لورو. په هغـه ځـاي کې د افغـان حکومت عسکرو واو دوې غوښتله هغه تارومار کړي. هغوي د موټروان اجازي ته و نه درېدل او ټول لاري ته وختل. په افغانستان کې هر موټر حتی په نورمال حالاتو کې له سپرليو څخه له اندازي نه زيات ډک کېږي. او دغه کسان، چې جنګ ته وړي وو، دومره زيات شميربي موټر ته وختل، چې په يوه دقيقه کې موټر يوي خواته کوز شو، او ټاير يې وچاوديد.

د لاري مصيبت د هغوي ټول غوښتنـي او پوښتنـي حل کړي. نور نو لـه هغـه څخـه استـفاده نه کيـدله. بايـد تـرحـم وبـاندي شوي واي. هغـوي وويل کـه نور ستـړي هم شـو، موټروان ته به تکليف نه ورکوو.

موټروان چې په پښه شوي تاير ځان د وراني کلا ته ورساوه، نو عسکري قشلي ته لاړ او ټوله کيسه يې ورته وکړه او د هغې قشلي قوماندان د کابل حربي اداري ته پيغام و استاوه.

امـان الله خـان د مخـه راپور ترلاسـه کړي و. دا راپور د لوګر د ځـوانانو د کنډک د جنګ راپور و. هغـه هڅه وکړه د پېښې په باره کې څه تبليغ وکړي. په هغـه سياسي جارچيـانو په کوڅو کې وګرځيدل، دولونه به يې وهل او اعلان به يې کاوه، چې حکومت په لوګر کې بري ترلاسـه کړي دي او فاتح کسـان بـه نن مـاسپښين بيرته راستـانه شي. د خپلواکي د جشن تقسيم اوقات جوړ شوي و، چې بله ورځ په پغمـان کې شروع کيـده، او هر شي يې تيـارو. امـان الله خـان سمـدلاسـه هغـه وځنډاوه او د يخنی دليل يې وړاندي کړ، حقيقت دا و چې هغـه او د هغـه وزيران زيـات پـه دي فکر کې وو، چې پرتـه لـه کـابل څـخـه د هر ځـاي شورش تر اداري لاندي راولي. په نتيـجـه کې ډير کســان چې د جشـن له پاره راغلي وو ځـايونـه دړلودل، او په هغـه ماسپښين نژدي پنځه زره کسان حربي اداري ته نژدي سره را ټول شول.

له لوګر څـخـه سړي پـه ګـاډيو کـې را ورسيـــدل او د حـربي د وزير اوازيې واوريد، چې د مـراســمـو پـه تـرڅ کې د مبـارکي خبـري کـولي. ليکن يوازي د هغـوي له جملي څخـه پنځوس تنه راغلل.

زيات کسـان چې شـميربي ۲۵۰ تنوتـه رسيـده، د کـابل د شاوخواه وغـتـونـو تـه، لکه بګرامي او شيـرپور تـه يوړل شـول. هغـه کســان چې له هغـو سره يې کـار کـاوه، د هغـوي غم لړل حالت يې وليد، هغوي وليدل چې ډير کسـان صـرف پـه ټبرونو ټپيان شوي وو. امان الله پوه شو، چې بري ترلاسـه شوي نه و. کله چې ثريا د دغـو هلکانو له قضيې څخه خبـره شوه، ټولو

تپې کسانو ته یې تحفې ولیږل، چې د سړي په سر ۲۱۰ روپۍ، وریښمین کالي او لاسي ساعتونه وو.

په هغه ورځ باندې امان الله د منګلو د یاغیانو په مقابل کې د جهاد تینګار وکړ، چې د خپلو زمامدارانو پرضد پاڅیدلي وو. د کابل ملایانو ورسره موافقه وکړه.

اوس عبدالکریم په مکتوبونو کې، د عبدالکریم خان خادم اسلام په شکل لاسلیکونه کول. لږ ترلږه د هغه نیم بخت بیدار شوي و. دي اوس د هغه سړي له متحدینو و، چې پوهېده څنګه ورڅخه کار واخلي. هغه سړي ګوډ ملا و.

هغه اوتمان ته تللی و، چې د متون جنوب لرېدیځ خواته یو کلی و، او شپاړس میله لیرې و. متون د خوست تر ټولو لوی ښار و، چې له سرحد څخه څلور میله لیرې و. له هغه سره یوه ډله خلک وو، چې وروسته د «زما د پیروانو ډله» په نوم سره، معرفي شول او په حقیقت کې هغه د ده لیږدران وو، ځکه چې دي یې د ګوډ ملا کلی ته ورساوه. کله چې ګوډ ملا ګوډ ګوډ په هغه لار روان شو، چې عبدالکریم هلته اوسیده، د رسم او تعظیم مراسم یې ورته په ځای کړل، نو هغه عنصر یې پیدا کړ، چې د امان الله پرضد په خپل جنګ کې له لاسه ورکړي و. د پخواني امیر یعقوب د زوي په واسطه، چې د امیر شیرعلي خان لمسی کیده، ګوډ ملا په پای کې داسې یو سړي پیدا کړ، چې د امان الله جانشین یې وګرځوي.

هغه پوهیده، چې دي لاس ته راغلي سړي څخه څنګه کار واخلي. د عبدالکریم عکس العمل د هر ډول مسؤولیت په مقابل کې، د هرو ستونزو په مقابل کې، تل صفر و. د هغو کسانو په مقایسه چې اوس ورنه را چاپیر وو، او د خپلو سیمو د غرونو او اب او هوا په واسطه توند معلومیدل، دي یو ښکلي وسواسي ضعیف البنیه سړي و. پر قبایلو باندې د ده یوازنی فوقیت د ده پر زده کړه باندې استوار و. او څنګه چې امان الله په کابل څرګند او دا د توري ورځې وې نه د قلم. ګوډ ملا په خپل دي سوغات باندې کوم مسؤولیت نه تحمیلول. هغه د منګلو، خدرانو او احمدزیو قبیلو درې تنه لارښود ملایان وګومارل، چې عبدالکریم ته ځانونه ورسوي او هر یوه ورته خپل یو لور ورکړي او دا افتخار د هغوي په برخه کړي. دغو دریو ناوو، عبدالکریم مصروف کړي و، او په مناسب وخت کې به مدام ځنې قبایلیان راتلل، چې خپل احترام ورته ادا کړي.

په عین وخت کې د عبدالکریم یوازې موجودیت شورشیانو ته یوه نوې انګیزه ورکوله.

امان الله د اگست په ۲۲ نیټه د خپلو سټونزو د له منځه وړلو وسیله ترلاسه کړه. د دوي برتانوي الوتکی راورسیدي. کله چې له پیښور څخه پرواز وکړي، هیڅوا ورباندي ډزي و نه کړي. ممکن دلیل یی دا و، چې د برتانیی عسکري نښانونه او د الله اکبر حرفونه وراندی لیکل شوي وو. د ۱۹۱۹ کال را په دي خوا دا لومړني الوتکي وي، چې د پرواز په شکل افغانستان ته داخلی شوي. کله چې پیلوټانو د کابل هوایی ډگر ته الوتکی ښکته کړي، گلان ورباندي وشیندل شول، د هغوي د راتگ خبره اعلان شوه، یو شمیر کابلیان، چې د روسی الوتکو د موضوع په مناسبت خواشیني وو، که میدان ته راغلی واي، نو تر دي به هم زیات گلان ورباندي شیندل کیده. دیوي الوتکی کلی ته د کوزیدو په وخت تاوان ورسید، مگر هغه انگلیسی الوتکه چې په ۱۹۲۱ کال کی تکر شوي وه، د هغی له پرزو څخه یی په ترمیم کی کار واخستل شو. هغه الوتکه د دغو الوتکو په شان د برستیول (Bristol) جنگی الوتکی وي، چې په ربښتیا سره د خدای (ج) په توکل رالیږلی شوي وي.

په دوو نورو ورځو کی برتانوی پیلوټانو د نندارچیانو د راجلبولو او د جرمنی پیلوټانو د پرهولو په منظور، چې الوتکی ورته تسلیمیدي، نمایشی پروازونه وکړل. امان الله لومړني افغان و، چې په یوي کی یی پرواز وکړ. شیر احمد ته د یو پیلوټ له خوا وویل شو، چې ته به دویم نفریی، چې پرواز به وکړي. هغه د پرواز مخصوص عینکی او خولی اغوستی وي او د الوتکی په څنگ کی د خپل نوبت په انتظار کی و، چې عبدالعزیز د علیاحضرت د کاکا زوي، چې د ولی په غیابت کی د جنگ په محاذ کی د حربی اداري مشر و، شیر احمد ته نژدي شو، مخصوصی عینکی او خولی یی ورڅخه واخستلی او وایی غوستلی او د هغه چوکی یی په الوتکه کی اشغال کړ. هغه شل دقیقی پرواز وکړ او وي ویل، چې ډیر اعلی، او برتانویانو ته یی یو رسید ورکړ، چې په کی ویل شوي وو، افغان حکومت تصمیم لري دغه الوتکی واخلی. وروسته د شیر احمد د پرواز وار راغی، چې د پرواز په وخت کی یی خپل د سمال خپلو ملگرو ته ښوراوه، چې لاندي ولاړ وو.

پیلوټان او میخانیکان له مدالونو سره، چې امان الله ورته د مرکی په وخت کی ورکړي وو، لاړل. افغانانو د دوی د تگ په وخت کی همغسی خوشاله وو، چې د راتگ په وخت کی وو، ځکه هغوی ډاریدل، چې ممکن دغه بهرنیان پر شورشیانو باندی بمونه وغورځوی، چی بیا د دوی خپل خلک وو.

امان الله ورقی برابري کړي، چې د مخه تردي، چې کوم جدي گام واخلی، پر خوست باندي وشيندي، په دي پاڼو کی د خوست خلک داسی مخاطب شوي وو، «اي زما ساده، ناپوه او بدبخت (خوستی) هغو خلکو، چې مضرو کسانو تاسو غلط رهنمايی کړی ياست.» په ورقوکی ويل شوي وو، چې د جهاد اعلان صادر شوي دي، خو د کومې طايفې نوم په کی ذکر شوي نه دي، يوازی د «ورانکارو» نوم ونه پکی ذکر شوی دي.

په ورقو کی ويل شوي وو، که تاسو هر څومره جگ خيزونه ووهی، بياهم زمونږ ياستی. په دي حساب حکومت نه غواړي تاسو تباکړي او له منځه يوسی... اي زما نادانو بچيانو، دغه الوتکی چې زما د مينی او خلوص پاڼی پر تاسو باندی شيندي، سوزونکی گولي هم پرتاسو ورولی شی.

ياغيان به سره راټوليدل، کله به يی چې الوتکه ليدلی، نو ورک به شول. څو ورځی وروسته د لوگر د دري دوه سپين ږيری په کابل کی يو جرمنی پيلوت ته ورغلل، چې ورڅخه هيله وکړي د دوي پر کلي باندي بمونه و نه غورځوي.

د يوي مياشتی په موده کی د بری نښی وليدل شوي. کله چې شير احمد له مکوناچی سره د سپتمبر په اولسمه نيټه ملاقات وکړ، دومره يی ورته وويل:

«راتلونکی اميد ښښونکی دی، ځکه د هغو ياغيانو په منځ کی د بی اتفاقی نښی نښانی ليدل کيږی، چې د وسلی د کمبود احساس کوي. داسی ښکاري، چې غوث الدين، چې دومره يی په چټکی پاچاهی پرېښودله، پښيمان دي.»

مکونا چی وويل: «په سختی سره ليدل کيږي، چې د غوث الدين په مورد کی د پښيمانی کوم ضرورت موجود وی. په احتمال سره د هغه ناکامی يو نيرنگ و، چې د شورشيانو د ډلو د ماتولو په خاطر د افغان حکومت له خوا په کار وړل شوی و.»

شير احمد وويل: «ښه، که چيری ته تر هغی اندازی پوهيږی، نو کوم تاوان نشته، چې تا ته زيات وويل شی. حقيقت دا دی چې غوث الدين اوس په دی لحاظ کی په کابل کی دی. امير له هغه سره مصاحبه وکړه. هغه له خپل ځان سره خپل ځينی احمدزی ملکان راوستی وو، او په همدی مازيگر کی هغه به د لوگر محاذ ته راوگرځی.»

«د دي اوازی په باره کی څه وايی، چی عبدالکريم د برتانيی له حمايی څخه برخورداره دي؟»

«تر دي حاضر وخته پوری افغان حکومت په دي باندي قانع دی، چی عبدالکریم ته یوه روپی او یو کارتوس هم د هند له سرحد څخه نه دی ورکړل شوی او دا عمل په تکرار او دقت سره د افغانی نماینده گانو له خوا څارنه شوی ده.»

محمود طرزی، چی په دی وخت کی په پاریس کی افغانی وزیر مختارو، یوه اختاری مرکه یی کړی وه، چی په کی انگلیسان یی ملامت کړی وو، چی له شورشیانو سره مرسته کوی.

مگو دا چی د هغه راپور یادونه وکړه، چی عبدالکریم د برتانیی له واکمنانو څخه زیات مبلغ ترلاسه کوی. شیراحمد ځواب ورکړ، زه گومان کوم چی دا په کلی توگه غلطی ده، او دا چی عبدالکریم هیڅ پیسی نه لری او موجودی پیسی به په هغه وخت کی په چلند واچوی، چی د افغانستان پاچاهی ترلاسه کړی.

مگر دا چی وویل، «که چیری دا معلومات رسمی وی، چی تا د افغان حکومت څخه ترلاسه کړی دی، ډیر دروند مسؤولیت د هغو په غاړه دی، چی په دی موضوع کی افغان ولس په سنجیده توگه بی لاری کوی او په دی مفهوم پروپاگند کوی، چی شورشیان د برتانیی له حمایی څخه برخورداره دی.»

شیراحمد وویل: «په حاضر وخت کی د عبدالکریم بی اعتباره کول له هر شی نه زیات ارزښت لری، او په دی لاره کی د بری بهترین چانس په دی کی دی، چی وپوهول شی، چی هغه د کافر د لاس اله و، که نه نو، لکه څنگه چی تا به هم حدس وهلی وی، کابل به د جهاد د اعلان له منلو څخه ډډه وکړی.»

مگودا چی وویل: «ته له اور سره لوبی کوی. تعصب آمیزه پاریدنه او بین المللی سوء تفاهمات په آسانی سره حاصلیدلی شی، خو چاره په آسانی سره نه شی کیدلی.»

«دا د ناخوش اینده ضرورت یوه قضیه ده. څنگه چی عبدالکریم له هیواد څخه ووځی، د افغان حکومت به اعلان وکړی، چی زیات تحقیقات دا یی واضحه کړی ده، چی هغه د برتانیی ملاتړ یی نه دی ترلاسه کړی.» شیراحمد یوه پښتو ورقه ترتیب کړه، چی په کی د عبدالکریم د گرفتاری په مناسبت برتانوی جایزه یی پیشنهاد کړی وه، او وی ویل، چی امیر ته می ښودلی دی، چی هغه ددی تازه شواهدو له مخی د برتانیی د ښی همدردی تر اغیزی لاندی زیات راغلی دی.

ناڅاپه شیراحمد په پښو ودرید. هغه یو ډیر غړیدونکی سړی و، چې د خبرو کولو په وخت کې به یې خپلو لاسونو ته په آزاد ډول حرکت ورکاوه. اوس یې د لاسونو حرکت د اتلانو په شان و.

«زما وظیفه سرته ورسیدله، ما همدا اوس واوریدل، چې محمود طرزی په کراچی کښی بښکته شوی دی!»

«تر هغو چې زه په بهرنیو چارو په دفتر کې وم ما د افغانستان او لویې برتانیې په منځ کې د دوستی له پاره کار کړی دی. زه یو افغان او یو مسلمان سړی یم. زما په نظر روسان او برتانویان دواړه بهرنیان او بې عقیدې دی. یو یې هم پر ما باندې کومه ادعا نه لري. لیکن زه هم ورسره کومه دښمنی نه لرم.»

«د ګډ احساس د موضوع په ارتباط زه وینم، چې اصلاً د روسیې پالیسی یوه متجاوزه پالیسی ده، او کوم شی چې هغه هیواد غواړي هغه دا ده چې هند لاس ته راوړي، او دا کار تر هغه پورې نه شي سرته رسولی، څو چې افغانستان د یو خپلواک هیواد په توګه وجود ولري. له بلې خوا لویه برتانیه له افغانستان سره کومه خاصه مینه نه لري، لیکن متجاوزه نه ده، او د خپلو ګټو په خاطر په کلي توګه غواړي چې افغانستان د یو سپر په توګه د بالشویکانو په مقابل کې قوي او بریالی وي. د مامورینو او وطنپرستانو له پاره دا کافي دی.»

د شیراحمد معمولي خندا نه څیره تغییر کړې وه. مکونا چې په دې سړي کې له مهربانی او ... رویې څخه بل څه نه وو لیدلی، اوس یې هغه ولید چې متنفر دی.

«زما شخصي علاقې په کلي توګه هغه شان دی. د مالیې وزیر محمدهاشم خان او عبدالهادی غوندې خلکو له پاره، چې نوی دوران ته رسیدلي دي او ټینګ موقف لري ډیر مناسب دی، چې دوی د خپل پرمختګ له پاره په افغانستان باندې د بالشویکانو تسلط ته سترګې په لاره وي، ځکه چې د بالشویکانو دایمي پالیسي دا ده چې خپل لیډران د ټینګ موقف درلودونکو خلکو څخه انتخابوي. یوازنۍ مرسته چې زه د شاهي کورنۍ د غړي په توګه له روسي فاتحینو څخه توقع کوم هغه به د پاکفایتو نښه ویشتونکو یوه ډله وي.

برتانویان پوهیږي چې له یو سردار سره څه ډول رویه وکړي. څرنګه چې په موجوده شرایطو کې ممکن هر شي پېښ شي، ما تاریخونه کتلي دي او راته معلومه شوي ده، چې لارډ رابرتس (Lord Roberts) په هغه وخت کې چې په کابل کې و، ټول به یې له افغاني نجیبو

خلکو سره په ډیر زیات ادب او نزاکت سره رویه کوله او حتی چی د هیواد د اداری چارو په ارتباط به ورسره مشوری کولی. »

مکونا چی هڅه وکړه، چی موضوع ته تغییر ورکړی: « دا به طرزی ته یو کلک گوزار وي، چی بوه شی، چی هغه مترقی پالیسی، چی دی په عمومی توگه د هغه پیل کوونکی دی، هیواد بی د خانه جنگی په لور بیولی دی. »

شیراحمد ځواب ورکړ: « دا گډوډی محمود طرزی جوړه کړه، هغه ته بنایی چی بیرته یی سم کړي، لیکن خدای پوهیږي، چی هغه به څه وکړی. ممکن هغه حتی دومره احمق شی چی روسانو ته به د مرستی له پاره مخ واړوي. زه به په خپل مورد کی د قونسل د رئیس په توگه خپلی وظیفی ته دوام ورکړم، چی د افغانستان او د برتانیی ترمنځ د دوستی ضرورت گرندی کړم. »

بیا شیراحمد مکوناچی ته وویل چی زه دی د څه له پاره ملاقات ته راوبللم.

« د سپتمبر په ۱٤ نیټه (جرمنی پیلوټ) چی ویز (Weisz) نومیده، د گردیز په لور پرواز وکړ، او امیر په قطعی توگه ورته امر کړی و چی په هر قیمت چی وی په هغه ځای کی دی ښکته شی. ولی ته امر شوی و چی اته سوه په اته سوو یا ردو، د کوزیدو میدان دی جوړ کړی. هغه داسی یو میدان جوړ کړی و، چی پنځه پر دری سوه یارده و. تاسو پوهیږی چی پنځه او دری اته کیږی. نتیجه دا شوه چی د کوزیدو په وخت کی ویز لنبتی ته سم شو. الوتکه په مخ ولگیدله او ځرخ یی مات شو. ویز او افغانی سپرلی ژوبل نه شول، مگر اوس سوال په دی کی دی چی څنگه دی بل ځرخ گردیز ته یوړ شی او څنگه دی په الوتکه کی نصب شی. »

هغوی دی موافقی ته سره ورسیدل چی یو پالتو ځرخ به د ځمکی له لاری ډیر ژر کابل ته واستول شی. وروسته مکوناچی له شیراحمد څخه پوښتنه وکړه، چی که ددی مفکوری له پاره څه دلایل وړاندی کړی، چی د کابل د نماینده گی ټول کسان وایی چی برتانوی الوتکی افغانستان ته په وړیا توگه ورکړی شوی دی.

شیراحمد وویل: « ما د مخه ددی کیسی مخالفت کړی دی. هر وخت که له ما څخه په هغه مورد کی پوښتنه وشی، زه هڅه کوم چی مخالفت وکړم. »

دا ستا ډیره ناقصه مشوره ده. څومره چی ستا په کی گټه ده زما هم ده، چی که وویل شی امیر ته الوتکی په وړیا توگه د برتانیی له خوا ورکړی شوی دی. په دی مورد کی به په کابل

کې عامه ذهنیت ستا او ستا د حکومت شهرت زیات کړي. »

« حتی که د غسی هم وو ، نوري مفکوري دي ، چې ممکن هغه په حساب کې ونیولی شي. »

جرمني پیلوټ ویزه وکړي شو ، الوتکه امتحان کړي. هغه افغاني جامې په تن کړي چې یو افغان غوندي معلوم شي او کابل ته لاړ شي ، چې راپور ورکړي چې الوتکه ترمیمیدلی شي.

جرمني وزیر مختار په کابل کې افغاني نوي هوایي قوا ، تقریباً ورانه کړي وه ، کله چې هغه د برتانیې د سفارت کارکوونکي ته د ورسایلز د تړون په باره کې وویل ، چې روی همرفته د برتانیې او د هغه د متحدینو له خوا پر جرمني باندي تحمیل شوي و. د تخنیکي مسئلو له پاره د هغه علاقه ، برتانویانو ته ، چې ټول پوهیدل د ورسایلز تړون څه وایي ، بیخي نه منونکې و. هغوي پوازي موافقه کړي وه ، چې امان الله ته ټمونه برابروي ، او نه یې غوښتله چې سلاسي له هغه سره سم دا مسؤولیت پر غاړه ومني چې امان الله د ټمونو د غورځولو د پوازنیو وسیلو څخه محروم کړي او د خپلو پوازنیو پیلوټانو د پرواز مانع وګرځي. د لندن په یو یادداشت پانه کې داسي تبصره شوي وه: « لوبه برتانیه په هند کې په دي باندي تورن دي چې هوایي وعدي کوي او په زړه کې یې ترسره کوي (زه فکر کوم فورمول هغه دی) آیا د دي طرزالعمل له واضح مثال څخه بل راوړل کیدی شي؟ موږ چې پر امیر باندي الوتکې خرڅوو د هغو د غوښتنو په مقصد باندي پوهیږو او په دي حقیقت باندي هم پوهیږو چې پوازي جرمني پیلوټان ورته پرواز ورکړي. که چیري پرنسیپ باید تائید شي چې صحیح بریښي ، زه پیشنهاد کوم چې په کابل کې ستونزي منځ ته رانه شي. »

یو مسلمان عالم یو وخت ویلي و: « احتیاج هغه شی هم قانوني ګرځوي چې منع وي. »

د سپتمبر په ۳۰ نیټه جارچیانو په بازارونو کې اعلان وکړ چې له شمال څخه د حکومتي الوتکې » به سمدستي راورسیږي ، او بله ورځ څلور د خدمت الوتکې او یوه مسافر وړونکې الوتکه له روسي څخه د پرواز په شکل راورسیدي. د خلکو ډلې دا الوتکې د کابل پر سر په پرواز کې تماشا کړي ، چې رنګ رنګ کاغذونه او ګلان یې شیندل. دغې الوتکې د تحفې په توګه پیشکش شوي وي ، لیکن له هغو سره بله تحفه هم موجوده وه ، هغه د روسي پر سونلونو د دایمي موجودیت تحفه وه ، چې الوتکو ته پرواز ورکړي او ترمیم کړي.

امان الله پیشنهاد وکړ چې د الوتکې پیسي په هغه شرط ورکول کیږي چې روسي پیلوټان دي سمدستي بیرته روسیې ته لاړ شي. برتانویانو راپور ورکړ: « د امان الله خان د خیالي روس

پرستی احساسات د هغه د نه شهرت مرندلو له دلیلونو څخه دی. » او ځینی دومره په خبرو کی وړاندی ځی چی څرګندوی چی د روسی الوتکو رارسیدل به د بوسو ورروستی لوګی وی... ملایانو او د جګی طبقی زیات شمیر خلکو ویل چی له روسیی سره د دوستی نښانی یی نه خوښیږی او خپلی نظریی په آزاد ډول څرګندوی.

په هغه وخت کی چی دوه هیوادونه په هغه موضوع باندی بحث کاوه، چی په تحقق پوری مربوط و، روسی پیلوټانو چی افغانانو به ورته ورځنی معاش ورکاوه، خپلو پروازونو ته دوام ورکاوه. هغوی د یاغیانو سیمو ته نژدی بمونه ورغورځول مګر دومره یی نژدی ونه غورځول چی ژوبل یی کړی، تش ویرول یی.

د شلمی پیړی له نوی وسلی او خپلو پخوانیو وسلو سره، چی د یخ موسم رارسیدلی یی هم په بر کی نیول، چی کوچیان وهڅوی د هند هوارو میدانونو ته لاړ شی، یاغیان داسی یوی مرحلی ته ورسیدل، چی امان الله یی دی ته وهڅاوه چی ووایی بری که څه هم بشپړ نه دی، موجود او د لیدو وړ دی.

# پنځلسم فصل

## د ۱۹۲۵ کال د جنوری له ۲۱ څخه
## د ۱۹۲۵ کال د اگست تر ۳۱ نیټې پورې

گوډ ملا ونیول شو او کابل ته راوستل شو، او په داسې حال کې چې د حضرت پیغمبر (ص) د قبا په شان یې شنه قبا پر اوږه وه، ډېر غمجن معلومېده. هغه داسې ښکارېده چې گواکې هېڅ کوم زیان ورڅخه سر نه وي وهلی.

«دغه تش په نامه ملایان چې حتی په خپله شیطان ورڅخه ځان په امان کې ساتي» دا هغه مطلب و، چې امان الله خان د گوډ ملا او د هغه د ملگرو په معرفي کولو کې په ۱۹۲۵ کال د جنوري په ۲۱ نیټه هغه وخت کې استعمال کړ، چې هغوی د مراسمو په ترڅ کې مجرم اعلانېدل. ددې مراسمو د وروستیو تفصیلاتو راپور په دې دلیل سره نه دی ورکړی شوی، چې هغه سړي چې لنډ یادداشتونه یې لیکل د داسې چغو په منځ کې چې په کې ویل کېده «ژوندی دې وي پاچا» تر تاثیر لاندې تللی و.

اوس عبدالکریم یوازې د څو تنو په واسطه بدرگه کېده، چې ده به ورته «زما شخصي ساتونکي» ویل، او ځینو د دغو کسانو به هغه برتانویانو باندې خرڅ کړي وای. عبدالکریم اوس خپل باډیگاردان شاته پرېښودل او له افغانستان څخه ووت. افغانستان هغه ځای و چې که دی د داخلېدو په وخت کې لاس ته راغلی وای، نو په هغه شیبه به اعدامېده کوم شی چې هغه له ځان سره یووړ، یوه کمپله وه.

هغه په داسې حال کې چې له سر نه يې پټکې تاو کړی و، چې ځان د ملا په شان وښيي، تيرا او له هغه ځايه تل ته لاړ. په لاره کې له ځينو يو شمير لارويانو سره مخامخ شو، چې د باغيانو په باره کې خبرې کولې او له امان الله سره يې خواخوږي څرگنداوه، نو عبدالکريم هغوی ته ځان معرفي نه کړ. په تل کې هغه په اورگاډي کې کښيناست، چې دريمه درجه ټکټ يې واخيست. وروسته به يې ويل چې دريمه درجه ټکټ مې ددې په خاطر واخيست چې خپل شهرت پټ وساتم، نه د اقتصاد په خاطر ځکه چې له هغه سره سل انگليس طلايي سکې او اته سوه کابلي روپۍ وې. کله چې د اورگاډي له بدلولو وروسته هغه پېښور ته ورسيد، هغه بازار ته لاړ چې خپلې کابلي سکې په انگليسي پيسو باندې بدلې کړي، د هند او افغانستان ترمنځ په دې تجارتي مرکز کې دې معاملې ته د چا پام نه شو.

د اورگاډي بل سفر او د پېښو تگ عبدالکريم يو مهم خان ته ورساوه، چې هغه د باجوړ و او عبدالکريم له هغه سره پيژندل. دا سيمه د باجوړ آزاده سيمه وه. عبدالکريم دې سړي ته ځان ښکاره کړ او له هغه نه يې وغوښتل چې له برتانويانو سره دې د ماشيندارو او الوتکو په خاطر خبرې وکړي. خان ډېر مصروف و، هغه آماده گی نيوله چې د يو بل خان پر ځمکه باندې حمله وکړي چې دده دښمن و، او له يو بل گوټ څخه پر افغانستان باندې د عبدالکريم د يرغل کولو پلان، که څه هم ډېره حريصانه وه، يوه ځانگړي موضوع او د ترسره کيدو امکان يې لږ و. خان عبدالکريم ته په يوې خاص افغاني ميلمه پالنې سره وويل چې يو څو ورځې دې صبر وکړي.

له روانيدو څخه دمخه، عبدالکريم دغه سړي ته يو سند ورکړ چې ډېرې امضاگانې په کې شوې وې، چې دی په کې د افغانستان د امير په توگه انتخاب او اعلان شوی و او ورته يې وويل چې دا سند محفوظ وساتي.

د عبدالکريم مور او وړوکی زوی، د هغې ميرمنې ماشوم چې مړه شوې وه، دده له اوښې، سردار عبدالصمد سره اوسيدل. سردار عبدالصمد د کمشنر يو فوق العاده مرستيال و، چې سرحد ته د عبدالکريم د تلو په وختونو کې گوجرانوالا ته تبديل شوی و. عبدالکريم بيا د اورگاډي په مزدحمه او غير مستريح برخه کې دريمه درجه ټکټ واخيست، چې هلته لږ خوب وکولی شو، او د گوجرانوالا په لور روان شو، او په داسې حال کې چې په هغه ځای کې خپله کورنۍ ونه ليدله، ددې سيمې محکمې ته لاړ، چې د هغوی پته پيدا کړي. هغه ته وويل شو چې عبدالصمد گرداسپور ته تبديل شوی دی.

عبدالکریم چی په گاډی کی بیرته د اورگاډی ستیشن ته راغی، گاډیوان ته یی څه پیسی ورکړی، چی په یوه دسمال کی یی تړلی وی. وروسته متوجه شو چی کمیس یی زیات پړی کړی شوی دی. هغه خپلی بټوی ته متوجه شو، چی تر کمیس لاندی یی تر ملا تړلی وه. بټوه یی ورکه شوی وه. په هغه وخت کی چی دی په اورگاډی کی نیم ویده وه، کوم سړی ورڅخه وهلی وه.

عبدالکریم په خپل پټکی کی چی د خپل ... د اړولو په خاطر یی په سر کړی و، شپږ روپی او څو انی تړلی وی. هغه دا پټکی په هند کی د خپل هویت تر نامه لاندی هیڅ کله نه اغوست. په دغو پیسو باندی هغه گرداسپوره پوری ټکټ واخیست. په هغه شپه دی خپلی سیمی ته ورسید او یو ځلی بیا یی له خپلی مور، خور او وروکی زوی سره یوځای شو.

هغه خپلی کورنی ته وویل چی زه به بیرته افغانستان ته لاړ شم چی امیر شم، او یوازی د مرستی له پاره تم شوی یم. مور یی په ژړا پیل وکړ او له هغه څخه یی غوښتنه وکړه چی له خپل دی احمقانه پلان څخه دی تیر شی. مور یی ورته یادونه وکړه چی حکومت به ستا له اوښی سره په تماس کی شی او ستا آدرس به ورڅخه واخلی. عبدالکریم ته دا خبره منطقی معلومه شوه.

هغه وروسته داسی وویل: «د دی په پوهیدو سره، چی زما په راتگ باندی خلک پوه شوی دی، او زه به ونیول شم، نو ما د سهار د لسو بجو په شاوخوا کی له خپلی مور څخه رخصت واخیست، او د اورگاډی د ستیشن په لور رهی شوم او په یو مسجد کی چی په هغه نژدی ځای کی و، ورغږیدم، ځکه داسی نه خوښیده چی د خپلی مور او نورو خپلوانو په مخ کی می پولیس ونیسی او بلی خوا ته می یوسی. څو دقیقی می په مسجد کی په سختی سره تیری کړی، چی د پولیسو مامور او یو پولیس راغلل او زه یی د ښار د پولیسو ماموریت ته یووړم.»

امان الله له برتانویانو څخه غوښتنه وکړه چی څنگه هغه د عجب خان په موضوع کی ورسره همکاری کړی وه، هغوی دی هم متقابلاً همکاری وکړی او عبدالکریم ورته ورکړی. هغوی ونه منله او وی ویل چی هغه یو سیاسی مجرم دی نو هغه یی د توقیف په حال کی له سرحد څخه لیری، برما ته واستاوه.

همفریز د ۱۹۲۵ کال دمی په میاشت کی داسی لیکلی دی: «بدنیتی ځواکونه په کابل کی په فعالیت کی دی، چی دا کار په شدیده توگه د شورشیانو د بیا منځ ته راتلو سبب گرځی.»

وروسته همفریز د یاغیانو د مجازاتو په باب داسې ولیکل: «د شورشیانو له پاره چې حکومت یې له کلک خطر سره مخامخ کړی دی، او یې له کوم سنجش څخه یې افغانی امیر عسکر یې وژلې دي، دا جزا یوه نرمه جزا وه، او په افغانستان غوندې یو هیواد کې د هغوی د تصفیې قوي اړتیا لیدله کیږي.

د پنځو زرو تنو بندیانو له جملې څخه د اعدام شویو شمیر پنځه اویا تنو ته رسیده. پرته د التیمور له غلزي احمدزیو څخه چې بدترین یاغیان وو، نور د منګلو، ځدرانو، او احمدزیو ښځې او ماشومان ټول له بند څخه خوشې شول. د التیمور غلزي احمدزي له خپلو نارینه خپلوانو سره ترکستان ته یووړل شو، چې هلته ورته ځمکې ورکړې شوې.

ثریا د یاغي کسانو د ښځو له پاره په حرم کې یو دربار منعقد کړ او ورته یې وویل چې ستاسو نارینه د پوره جزا وړ ګڼل کیږي، چې ممکن ورته ورکړله شي، او له تاسو سره چې دا نارینه مو تشویق کړي دي، ډیر ښه سلوک شوی دی.

یو اعدام، د ګوډملا اعدام ټول کابل له ناآرامۍ سره مخامخ کړی و، ځکه چې د هغه جزا د مې د میاشتې تر وروستیو وختو پورې ځنډول شوی و، او په عین حال کې ګوډملا یو قوي نطاق و، او داسې حدس وهل کیده چې ممکن دی له چا سره مناسبات ولري. هیڅوا به تعجب نه وای کړی که چیرې ګوډملا له نیول کیدو وروسته سمدستي اعدام شوی وای. حتی داسې خبرې کیدې چې ولې ورسره اړیکې درلودې، چې دا اړیکې د ګوډملا د قواو د ژر نه ماتیدو سبب شوې وې. داسې ویل کیده چې مشهورو کسانو شورشیانو ته په داسې وخت کې چې معلومیدل هغوی میدان ګټي، تشویقي پیغامونه استول، چې اوس ورباندې پښیمانه وو.

خو د تعجب ځای دی چې د غه مشهور کسان یو هم ګرفتار نه کړی شول.

د برې دوه رسم ګذشتونه اجرا شول، یو د ولې او د هغه د قواو له پاره چې امان الله خان په کې حاضر و، او دوهم یې د علی احمد له پاره چې امان الله په کې حضور نه درلود، په دواړو مراسمو کې ښځینه بندیانو پر اوښانو او خرو باندې وښودلې شوې.

د هغوی د ښځو بندیانو او دا ډول خر ګندیدل هغه غلزي کوچیان خپه کړل، چې خپل مشران یې د نمایندګانو په توګه له یو امان لیک (اجازه نامه) سره کابل ته واستول، چې احتجاج وکړي، دا مشران په بندیخانو کې واچول شول. دا یو ډول رسمي سلوک و، چې ممکن د شورشیانو د بیا توندیدو سبب شوی وای، چې په بشپړه توګه غلي شوي نه وو. د همفریز، له

خبر تیا څخه وروسته، امان الله دغه مشران خوشی کړل. دغه تولـه بی اعتباری د امان الله له لاسه وه. وروسته له هغه چی گوډ ملا په عمومی مراسمو کی په گولی وویشتل شو، ځینی افغانی عسکرو د هغه مړی تر پښو لاندی کړ. که څه هم په دی عمل کی د امان الله هیڅ لاس نه و، توندو کسانو دا عمل د عسکرو له خوا نه، بلکی د هغوی د امیر له خوا وگڼلو.

امان الله قادیانانو ته مجازات ومنل چی د هغه ملگری یی په قار کړی وو.

قادیانان د هند د مسلمانانو یوه ډیره کوچنی او بی اهمیته فرقه وه. د قادیانانو عقیده د هغو مسلمانانو له عقیدی څخه چی په خپله عقیده ټینگه ولاړ وو، توپیر درلود. قادیانانو به ویل چی انسان د مستقلی ارادی خاوند دی او حق لری له خپل ارادی څخه آزادانه استفاده وکړي، هغوی به ویل چی ټول شیان د الله (ج) له خوا نه دی ټاکل شوی، بلکی په عوض کی خدای (ج) انسان ته قدرت ورکړی چی له خپل قدرت څخه گټه واخلی. هغوی همدا راز عقیده درلوده چی له حضرت محمد (ص) نه به وروسته یو بل پیغمبر راشی.

د ١٩٢٤ کال په اوړی کی د دی فرقی دوه تنه افغانستان ته ننوتل چی خپله مفکوره تبلیغ کړی، چی د مذهبی ډلو له خوا ونیول شول او په دی تومتی کړی شول چی دوی د خلکو عقیده خرابوی. یو تن یی توبه وویستله او خوشی کړی شو، لیکن بل تن یی چی مولوی نعمت الله نومیده، د خپل بندی کیدو د قانونیت په باب پوښتنه وکړه. هغه وویل چی د نظامنامو او د میر امان الله د اعلامیو له مخی په افغانستان کی د مذهب آزادی په بشپړه توگه شته.

مولوی نعمت الله یو پردی هیواد ته داخل شو او د هغه هیواد له تاریخی مخالفتونو سره مخامخ شو. هغه خپل میړانه د خوست په ډیر بحرانی حالت کی وښودله. کله چی لویه جرگه جایره وه او د امان الله ډیر زیات ضرورت دا و چی ټینگه مذهبی ډله آرامه کړی. برسیره پر دی په سرحد کی پر امان الله باندی تور لگول شوی و چی هغه په خپله قادیانی دی. هیوادوالو ته د هغه خبری داوی چی هغوی دی فکر وکړی چی څوک باید تمجید کړی او د چا لاسونه باید ښکل کړی. دا ډول خبری داسی څرگندولی چی امان الله د انسان د مستقلی ارادی طرفدار دی.

مولوی نعمت الله د مذهبی محکمی په امر سره د اگست په ٣١ نیټه د کابل په شیرپور ی د خپلی عقیدی په خاطر سنگسار شو.

څلویښت کاله وروسته یو امریکایی ناول په غزنی کی د یوی ښځی سنگساریدل تشریح کړی چی د هغه د بدعمل له امله یی صورت نیولی و چی په فرضی ډول د دوهم عمومی جنگ

څخه وروسته به هغه معامله ترسره شوی وی. افغانانو، په داسی حال کی چی که د مولوی نعمت الله موضوع هیره کړی وی، په غضب به شی. هغوی به انکار وکړی چی د غسی یو عمل له ډیرو کلو راهیسی صورت نه دی نیولی. دا په ۱۹۲٤ کال کی ټکان ورکونکی هم و.

یوه اونی وروسته له دی سنگساره، امان الله د ماسپښین د لمانځه له ادا کولو وروسته، په جومات کی خبری وکړی او د ټولو هغو قادیانانو په بدو ویلو یی شروع کړه چی دده په قول به د قانون له مخی باید اعدام شی. د ۱۹۲۵ کال په فبروری کی دوه نور قادیانیان سنگسار شول.

د خلکو د وریرولو له پاره سنگسار په پوره توگه یوه د منځنیو پیړیو جزا وه. حتی د هغو مسلمانانو له پاره چی د خاصی توجه وړ مسلمانان نه وو. په هند کی کله چی قادیانان راغلی وو، د سنگسار خبری د مصیبت منع گرځیدلی وی. د هند د مسلم لیگ مشرانو، امان الله د احتجاج یو لیک واستاوه، هندی اخبارونو داسی محکوم کونکی مطالب به یی خپرول چی افغانی رسمی اخبار «امان افغان» ددی ضرورت احساس وکړی چی د نعمت الله د ملامتی او د هغه د اعدام د طریقی پشتیبانی وکړی. د ۱۹۲۵ کال د اپریل د میاشتی په دریو مقالو کی د نوموړی شخص په باره کی داسی راغلی وو:

«اسلام یو غیر مسلمان سړی ته د عقیدی پوره آزادی ورکړی ده، لیکن یو مسلمان ته اجازه نه ورکوی چی خپله عقیده بدله کړی او بی دینه شی. لکه چی ټول اروپاییان او د هغوی پیروان کیږی ... هر مسلمان د خپل مذهب په مقابل کی مسؤولیت لری. دا شی په هغو اروپاییانو کی نه دلیدل کیږی چی له خپلو انسانی صفتونو څخه په اوښتو سره د وحشی حیوان نه هم بدتر شوی دی.»

څو میاشتی دمخه د امان افغان اخبار د ترکیی د اخبار مطلب را نقل کړی و، چی د امریکی د متحده ایالاتو په جنوب کی یو نگرو د سپین پوستو له خوا بی له محاکمی څخه وژل شوی دی، چی په دی مورد کی یی ویروونکی توضیحات ورکړی و. د مطلب په پای کی نتیجه گیری داسی کړی وه چی «لویدیځ هیوادونه چی وایی د ختیځو هیوادونو جزاگانی د بربریت جزاگانی دی، نو کله چی د هغوی کتاب روا وگڼی هغوی په خپله د وحشی ترینو عملونو مرتکب گرځی.»

اوس د سنگسار په دفاع کی اخبار د نړی په نورو برخو کی د جزاگانو طریقی تشریح

کولي. د متحده ایالاتو په جنوبي برخه کې د سپین پوستو له خوا د یونګرو د بې د محاکمې له حکمه څخه د اعدامیدو کیسه چې په ترکې ژبه او ممکن د نورو ژبو له لارې هم خپره شوې وه، یوه غلط فهمي وه، او د هغې بې موردي جملې په لور لارښوونه یې کوله، چې د امریکې کانګرس په دې وختونو کې یو قانون پاس کړی و چې په هغه کې د مجرمینو او لیونیانو د خصي کولو اجازه ورکړې شوې وه. مقاله داسې پای ته رسیدلې وه: «اعدامونه د خلکو د حالت له مخې صورت نیسي او باید همداسې وي، څو چې د جرمونو مخنیوی شوی وي. »

امان الله د خپلې تندۍ او عمومي خوشبینۍ سره سره، په ځانګړي توګه د راتلونکې په باره کې پریشان و. هغه یو فرمان صادر کړی چې په کې د قادیانانو ګرفتارول نور منع اعلان شوي و، لیکن له خپلو اصولو سره د هغه د خیانت کولو تاریخ باقي پاته شو. هغو کسانو چې د مخه ده ته کافر ویل، تر دې حده پورې مخالف شوي وو چې امان الله چې په یو وخت کې په افتخار سره ویل چې «اولس زما باډیګارد دی» اوس یې تر هغه پورې په عوامو کې د ګرځیدو جرأت نه شو کولی څو چې مخالف نفر په هر ځای کې د هغه له مخې څخه ایسته کړي شوي نه وای.

د هغه د وژنې تهدید آمیزه اعلانونه بیا وځړول شول.

شاآغا د شوربازار حضرت، چې امان الله د هغه له حمایې څخه برخوردار و، په ۱۹۲۵ کې وفات شو. شیراغا چې امان الله ورته خطرناک معلومیده، اوس د دې بانفوذه کورنۍ مشر شو، او په ۱۹۲۵ کال کې د خوست په بغاوت کې له خدمت څخه وروسته چې مخالفه نظریه یې پیدا کړې وه، چې دې پر کومه خوا ولاړ دی، هغه د امان الله سره موافقه وکړه چې دا به بهتره وي چې هغه دې هند ته لاړ شي. دا هغه وخت و چې هغه له افغانستان نه لاړ او تبعید شو چې له هیواد څخه دا لیرې والی هغه د کوچیانو یو روحاني مشاور وګرځاوه.

دا تل د امان الله د خپلواکۍ جزو وه چې هغه کاپیتولاسیون (Capitulation) (بهرنیو حکومتونو ته خاص امتیازات ورکول - مترجم) یې نه منله، چې د هغه په خاطر نور ختیځ هیوادونه هم موافقه وکړه. هغه لویدیز کسان چې په جرم باندې مرتکب کیږي، په خپلو محکمو کې به محاکمه کیږي.

یو ایتالوي انجنیر چې داریو پیپارنو (Dario Piparno) نومیده نابېره بې پر یو افغاني پولیس باندې ډزې وکړې او هغه یې وواژه، چې د هغه د ګرفتارۍ له پاره راغلی و. دا انجنیر

په پټه اعدام شو. ایتالیا په غصه شوه او غوښتل یې چې ورڅخه معذرت وغوښتل شي او تاوان هم واخلي، چې امان الله دا تاوان ورته له هغه څخه لږ دمخه ورکړی و چې د ایتالیې نماینده له افغانستان سره خپلې اړیکې وشکولې او له افغانستان څخه لاړله.

وروسته یو جرمني ډاکتر ستراتیل ساور (Stratil Sauer) پر خپل موټر سایکل باندې له آسیا څخه تیریده. په افغانستان کې یو افغان یې په بیروبار کې په موټرسایکل وواهه او مړ یې کړ او ویل وویل چې تصادم وشو. د پیپارنو برعکس، چې یې له افغاني غرور سره په داسې وخت کې لوبې کړې وې چې امان الله د خوست په شورش کې اخته و او مجبور و چې بهرنیانو ته خپله خپلواکي څرګنده کړي، ستراتیل ساور علني محاکمه شو. سره له دې چې هغه په څو کاله بند محکوم شو، سمدستي وبخښل شو او آزاد کړی شو.

دغو کسانو دواړو افغاني مسلمانان یې مړه کړي وو. په هغه وخت کې چې یو جرمن بل جرمن وژلی وای، افغاني قانون یوازې مداخله وکړه چې ذمه ووهي چې د وژل شوي سړي خپلوان په انتقام اخیستلو لاس پورې نه کړي.

له دغو پېښو وروسته، د برتانیې د نماینده ګۍ غړو ته امر وشو چې خپلې ټمانچې دې ایسته کړي، په خپلو جعبو کې دې کښیږدي او هلته دې وساتي. عبدالکریم د برما د شویبو (Shebo) عسکري قشلې ته واستول شو چې هلته ورته یوه بنګله ورکړې شوه او د هغه دوو تنو نوکرانو ته هم یو کروړ ورکړ شو، چې له دې بنګلې څخه دباندې و. حکومت چې د دغه هستوګنځي یې ورته برابر کړې و، نور د هغه له پاره هیڅ کوم شی برابر کړی نه چې اجرا کړی یې وای. یوه ورځ د سیمې نوي قاضي یا د قضایي قوې نوي امر شویبو ته راغی او دا تقریباً پنځه ویشت کلن مشر دده قوي او هیجاني نفر یې ولید (دی له خپل دې عمر څخه هم ځوان معلومیده) چې هیڅ ډول مشغولیت او مصروفیت نه لري او د یو پټ تکلیف استعداد په کې لیدل کیږي نو امر یې وکړ چې د پولیسو له عسکري قشلې څخه دې ورته یو اس ورکړ شي. هغه خپلې مور ته چې په هند کې وه ورکړی شوی لیکونه واستوی او خپلې ناارامي ورته څرګندې کړې. مور یې تجویز نیولې و چې ورته یو ښځه واستوي.

هغه ملګري چې عبدالکریم یې له ځان نه راتاو کړي وو، زیاتره برمایي هلکان وو چې لاتراوسه پورې د خپل شباب په دوره کې وو. دغه ځوانان د عبدالکریم تر اغیزې لاندې وو. دې سړي چې هڅه کړې وه چې پاچا شي تر اوسه پورې یې هڅه کوله د «خپلې تولنې پاچا شي.»

همدا راز هغه له دوو انګلیسانو سره هم ملګری و چې واټ او مکنامارا نومیدل، هغه له دوی سره د عیسوي مذهب په باره کې خبرې وکړې او په پای کې یې یو انجیل واخیست او شروع یې وکړه چې په شوبیو کې په یوازنۍ انګلیسي کلیسا کې د ماښام په مذهبي سرودونو کې ګډون وکړي.

د ۱۹۲۷ کال په لومړیو وختونو کې عبدالکریم د هغه کلیسا رئیس ته چې ریورنډ ستاکنګس (Revended Stockings) نومیده، وویل چې غواړي عیسوي مذهبي شي.

ریورنډ ستاکنګس د عبدالکریم د روح د لاس ته راوړلو له پاره کومه بیړه ونه کړه. هغه ددې له پاره هلته استول شوی و چې د انګلوساکسیون د وګړو ملایي وکړي، نه ددې په خاطر چې خلک له لارې وګرځوي. د برتانیې پالیسي دا وه چې اصلي مذهب په جدي توګه ځان ته پرېږدي او د انسانانو د زیات قرباني کیدو او د کونډو د سوزولو عملیې له منځه یوسي. د لارډ کرزن د وایسراتوب په دوره کې یو مسیحي ملا چې دده نژدې ملګری و، خپله وظیفه یې په هند کې له لاسه ورکړه، ځکه دایې هیره کړې وه چې د هغه ملایي په کوم ځای کې پای ته رسیږي. برسیره پر دې، داسې استنباط کول کوم سخت کار نه چې د داسې یو مترددځوان په مورد کې شوې وای چې د هغه عیسوي کیدل به د مذهبي عقیدې له مخې نه وي، بلکې کومه بله انګیزه به ولري.

د عبدالکریم له پاره پرته له اسلام څخه د بل مذهب قبلول به په افغانستان کې د هغه د پاچا کیدو امکانات بیخي له منځه یوسي. لیکن دا هم د افغانستان له پاره ډېر زیات توهین و چې عبدالکریم په خپل قدرت کې درلود چې ورځینې کار واخلي. هغه د خپل پلان په باره کې خپلې مورته ولیکل، او دا غمجنه ښځه چې په داسې یوه تولنه کې روزل شوې وه چې هلته عیسوي مذهب ته یو مشهور اوښتل شوی سړی ددې کار په خاطر وژل شوی و، په خواشینۍ سره خپل زوی ته ځواب واستاوه. هغې بیرته عبدالکریم ته ځواب واستاوه چې که داسې کار وکړې نو له هغو پیسو څخه به چې پلار دې ستا له پاره ماته راکړې دي هیڅ درنه کړم. څرنګه چې د عبدالکریم ژوند تل په ناداری تیر شوی و، نو تلګرام یې ورکړ چې سهوه یې کړې ده.

د شوبیو اسلامي تولنه پـه دې باندې خبره نه شوه چې عبدالکریم څه په فکر کې لري او که څه هم په خپله ریورنډ ستاکنګس داسې فکر نه کاوه چې له دې ځوان سره به د عیسوي کیدو کومه خاصه علاقه وي، نو حوالدار واټ ورته وویل چې مور نارامه یو. نو کله چې عبدالکریم

ریورنډ ستیاکنګس ته لاړ او ورڅخه غوښتنه یې وکړه چې په عیسوي مذهب واړول شي، هغه ته په دقت سره وویل شو چې له وخت نه استفاده وکړه او په دې موضوع باندې ښیا فکر وکړه.

تقریباً د فبروري په پیل کې عبدالکریم په ناارامو حواسو خبري وکړې. اول هغه وویل چې ښځه یې په خطر کې ده او دا چې د افغانستان امیر دده کلک دښمن دی، او دده د وژلو له پاره یې سري استولي دي او د پولیسو په قواو کې له خپل یو دوست څخه یې غوښتنه وکړه چې قاتلینو ته متوجه واوسي.

وروسته یې د انتحار په باره کې په خبرو پیل وکړ چې دا لومړی ځل نه و. د بنارس په بندیخانه کې هغه هڅه کوله چې ځان غرغره کړي. یو ځلې یې په برما کې مامورین تهدید کړي و.

یوه شپه، په هغه وخت کې چې واټ او مګنامارا له ده سره ملاقات کاوه، په صحیح توګه یې ښودلې وه چې څنګه به ځان ووژني.

دا خبرې چې واټ ته یو کې معلومې دي، نو یې ورته مشوره ورکړه چې «د خولې له لارې ځان ووژنه، دا آسان ترینه طریقه ده.»

عبدالکریم مخالفت وکړ او وې ویل «دا به ښیرې خرابي کړي.»

دده په کور کې دوې هنداري وې چې دواړه سره موازي او سره مخامخ ایښودلې شوې وې. عبدالکریم په خپله ښیره او قوي وجود باندې مغرور و. هغه به خپله ښیره په یوه هنداره کې لیدله او بیا به یې له دې چې خپل د وجود حالت ته تغییر ورکړي، خپلې اوږې به یې د مخامخ هنداري په انعکاس کې لیدل. دا داسې یو چل و چې په هغه سره به تل هغه خلک مصروف ساتل، چې دده د لیدو لپاره راتلل.

اوس هغه، په هغه نوم وجود سره داسې یوه کارنامه وښودله چې هرڅوک یې نشي ښودلی: په یوه وړوکې تمانچه یې ځان په ځټ وویشت.

داسې خبره وروسته حتی په حوالدار واټ کې خطري زیاتې کړې او د سیمې قاضي القضات چې اس یې ورته برابر کړی و، زیات وارخطا شو او د فبروري په ۱۷ نیټه د عبدالکریم کور ته پولیس واستاوه چې کور یې تلاشي کړي چې عبدالکریم ناریه وسله درلودله که نه. هغه هیڅ وسله نه درلودله. تحقیق بریالي سر ته ونه رسید. بله ورځ هغه جرمني ماوزر (Mauser) تمانچه لاس ته راوړله، چې څلور انچه اوږده وه.

په هغه شپه دی له یو شپاړس کلن برمایی دوست مونګ پوټن (Maung Potun) سره وعده کړی وه چی ورسره سهار د وخته ووینی چی د جرابو او نکټایی ګانو د اخستو په خاطر دی بازار ته لاړ شی. هغه به مدام د ملګرو په لټه کی و.

لیکن وروسته له هغه چی یی ملګری تللی و، عبدالکریم تولی کړکی او دروازی وتړلی، میز او چوکی یی د دواړو هندارو په منځکی کیښودلی، خپله وصیت نامه اوخدای په امانی ځینی لیکونه یی ولیکل او همغسی چی دوو تنو انګلیسانو ته یی ویلی و، هغسی خپل ځان وواژه.

پوټن، په داسی حال کی چی د خپل دوست کور کلپ ولید او غږ ته یی چا ځواب نه ورکاوه، نوکران یی راوغوښتل او خپل نری لاس یی د کړکی زنځیر ته ورساوه، کړکی یی خلاصه کړه او کوټی ته یی نظر واچاوه. هغه پولیس ته غږ کړ. عبدالکریم خپل عمل دومره ښه سر ته رسولی و چی پولیس دی ته اړ شو چی د ګولی د ځای د پیدا کولو له پاره د هغه څیره وینښتان د څو ثانیو له پاره په ګوتو ایسته کړی. په رسمی راپور کی داسی ویل شوی و: «مړی یو خوش قواره سړی دی.»

د خپل خدای په امانی په یو مکتوب کی عبدالکریم غوښتنه کړی وه چی که څه هم زه د عیسوی کیدو د مخه مړ شوی یم، لیکن زما مړی دی باید د عیسویانو د مړو په شان ښخ شی. په عوض کی، کله چی یی د مړینی خبر د هند په دیره دون کی دده ناسکه ورونو ته ورسید، نو د هغه د فاتحه خوانی مراسم د هند په افغانی مهاجرنشینه سیمه کی سر ته ورسیدل، چی د هغی سیمی مسلمانان او همدا راز تقریباً پنځه دیرش تنه افغانان چی په ښار کی په تجارت اخته وو ګډون کړی و. کومه سیاسی بیانیه ورنه کړی شوه، لیکن په خصوصی توګه داسی حدس وهل کیده چی د خودکشی د جرم د مرتکب کیدو په عوض، هغه د کابل د مقاماتو د امر په اساس وژل شوی دی.

کله چی عبدالکریم مړ شو نو پر هغه میز باندی چی دده په مخ کی د خپل زوی په نوم یو لیک پریښی و، چی په کی یی غوښتی وو چی په اخبار کی خپور کړی. دا کار ونه شو. په لیک کی یی خپل زوی ته ویلی و چی که ته د افغانستان امیر شی، له افغانانو سره ښه واوسی.

# شپاړسم فصل

## د ۱۹۲۵ کال له اکتوبر څخه د ۱۹۲۷ کال

## تر اګست پورې

کندهار د خپل فاتح کیدو او مفتوح کیدو په اوږدو تاریخ کې، له لیرې ختیځ څخه تر لویدیځ پورې د خلکو د تګ راتګ د لارې په توګه، هیڅ کله یې شی نه و زده کړی، لکه چې د ۱۹۲۵ کال د اکتوبر د میاشتې له لیدنې کتنې څخه یې زده کړی و.

امان الله هغوی ته د مخه یو یادداشت ترتیب کړ چې په کې ویل شوي و چې امیر به یې غوښتنې ومنې چې د غو لاندې شیانو په باره کې وې:

۱ - د محلي مامورینو په باره کې شکایتونه.

۲ - د ضبط شوي مالونو د بیرته ورکولو عریضې.

۳ - د یاغیانو معافي.

٤ - د هغو بندیانو د معافولو غوښتنې چې یې د بند موده زیاته وې.

د برتانیې نظامي آتشه په خپلو یادداشتونو کې داسې لیکلې دي: «محلي مامورین چې یې ویل په وروستیو څو اوونیو کې رشوت نه دي اخیستي، د امیر د راتګ په احوال باندې وارخطا معلومیږي. د امیر او د هغه د ملګرو له پاره د زیاتو شیانو په برابرولو سره نرخونه په غیر طبیعي توګه جګ شوي دي. د مامورینو له څرګندونو سره سره، چې د چارو په برخه کې بریالیتوبونه ښیي، د کندهار په شاوخوا کې غلا او داړه ماري زیاته شوې ده، او ویل کیږي چې

دا ډول آزارونه او تجاوزونه د هغو منظمو ډلو له خوا اجرا کیږي چې د محلي بانفوذو خلکو له خوا ورته پیسې ورکول کیږي، چې دا ډول عملونه اجرا کړي. »

علیاحضرت خپل زوی له څلوېښتو تنو ښځو سره کندهار ته واستاوه، چې ډیر جواهرات یې هم ورسره ولیږل، چې د کندهار ښځو ته یې د تحفې په توګه ورکړي چې د دوی له خپل تېره څخه وي. بله ورځ، د اکتوبر یوولسمه نیټه، امان الله د کندهار په لور روان شو. ډیر حکومتي موټري او لارۍ د هغه د کالیو بکسونه وړل، او څلوېښت عرادې نورې لارۍ موټرې او موټرونه د سفر له پاره برابر شوي وو چې قیمتونه یې د بازار له نرخ څخه زیات اوچت وو.

د کندهار څخه د باندې، امان الله له خپل موټر څخه کوز شو، او له هغو خلکو سره یې روغبړ وکړ چې ورته په انتظار کې ولاړ وو. وروسته له هغه په موټر کې سپور شو او د خرقې شریف د مسجد په لور یې حرکت وکړ. په هغه ځای کې د دوی په انتظار یوه بله ډله ولاړه وه، په دې ډله کې ملایان زیات وو. امان الله خان ټولو ته لاس ورکړ.

څو اونۍ وروسته یو ورځ د کندهار ټول دوکانونه وتړل شول، لکه چې پخوا د هشت نفري د احتجاج په ورځو کې تړل شوي وو، لیکن د دوکانو نو داتړل په یوه رسمي امر سره صورت نیولی و. څوزره تنه د کندهار په ارګ کې د دربارمکافات یاد تاوان ورکولو دربارته سره راټول شوي وو، چیرې چې امان الله خپله افتتاحیه وینا وړکړه او بیا یې د هرې اداري څانګو په باب بحث وکړ. امان الله د روغتون مدیر برطرف کړ، او په رسوایی سره یې له دربار څخه وایست. یو ډاکتر یوه اونۍ کسرمعاش شو او مجبور کړی شو چې د یو ساعت له پاره هلته ودریږي، څو خلک ورته په ځیر سره وګوري او فکر وکړي چې د ده اعمال هم د روغتون د مدیر د اعمالو په شان و چې د روغتون د ناروغانو د علاج او تداوي شمیر یې غلط ښودلی و.

د پولیس آمر له مډال اخیستو څخه محروم شو، او له ترفیع څخه هم پاته شو، د هغه سرکاتب له کاره برطرف شو. امان الله ته دوی بې احتیاط څرګند شول.

د کرنې د څانګې مدیر، چې دروړ یې د کندهار والي و، برطرف شو، ځکه امان الله له هغه سره د هغه د وظیفې په باب خبرې وکړې، او هغه یې په نظر ناپوه ښکاره شو.

د ولایت د محکمې رئیس د ټګی او چل وِل په ګناه مجرم وګڼل شو، ګرفتار کړی شو او امر وشو چې د کابل محبس ته دې یووړل شي او دارایي دې ضبط شي.

د خزانې، ښوونې او روزنې او د پوستې خانې مامورین وستایل شو او نښانونه ورته ورکړل

شول. د برتانیې نظامي آتشه د گمرک د مدیر په باره کې وویل چې هغه «چې یو رذیل او بدنام سړی دی او پوهیږي چې چاته رشوت ورکړي او له چا څخه رشوت واخلي، په مډال ښکلی کړی شو او اعلان وشو چې دی یو محترم سړی دی.» دی په پېښور کې د پوسته خانې آمر و چې په ۱۹۱۹ کال کې د زیات تکلیف سبب شوی و.

د سیمې د عسکري منصبدارانو اوقات تریخ و، په دې چې امان الله د دوی هر یو د خپلو قوانینو د مجموعې، نظامنامې، له مخې امتحان کاوه. یوازې یو سړي په کافي اندازه د قوانینو په باره کې معلومات درلودل او د امان الله پوښتنو ته یې مناسب ځوابونه ورکړل. امان الله سمدستي د هغه رتبه جگه کړه او په بدخشان کې یې ورته وظیفه ورکړه. یو بل مامور سرسري پوهه درلوده، امان الله وویل دی به زما نوري پوښتنې وزغمي. امان الله په خپل دربار کې د کندهار د ټولو وگړو په مخ کې د نورو په برخه کې وویل، چې دوی هم ډیر ناکام دي، او ډیر ژر به له کابل څخه مامورین واستوي، چې د دوی ځای ونیسي.

د کندهار د والي په باب امان الله وویل: «والي یو صادق سړی دی او د احترام وړ دی، لیکن بطي او بې پروا دی.»

د امان الله خان د ملاقات په موده کې هغه ته وویل شو، چې په دې وختونو کې یو بندي په جرم اعدام شو، چې د محبس په سوري کولو کې یې برخه درلوده. دی د محبس د سوري کولو یوه ورځ د مخه بندي شوی و. امان لله د دې پوښتنې مسؤول مامور ته زولنې ورواچولې.

هغه وروسته په کابل کې پر هغو شیانو باندې خبرې وکړې، چې په کندهار کې ورته معلومې شوې وې: «زه د کندهار له والي څخه دا شکایت لرم، چې هغه د حکومت او د کندهار د پرمختگ او نیک مرغۍ او نورو مهمو چارو په باب هیڅ کوم بحث او پیشنهاد ونه کړ. د هغه یوازنۍ تقاضا دا ده چې ورته اجازه ورکړې شي چې ورانکار عناصر اعدام کړي او هم دا چې که هندوان مسلمانان کیږي، نو ورته دې مکافات ورکړې شي. که یو سړی له اسلام څخه دفاع کوي دا به د هغه د عقیدې او عمل په خاطر وي او په دې حالت کې به کوم مکافات ورته نه ورکول کیږي.»

د ښوونې او روزنې په هکله، امان الله وویل: «تر اوسه پورې بې ارزښت او ناپېژندل شوې ښوونځي رواج لري. ما امر ورکړی چې هغه ښوونځي دې وتړل شي، او د منظمو ښوونځیو شمیر دې زیات کړی شي. هغه خلک چې خپل زامن له ښوونځي څخه ایستلي وي او

یا بی ښوونځی ته نه دی لیږلی، هر یو بی پنځه روپی جریمه شوی دی. د ښوونی او روزنی په برخه کی زما خبرو دومره اغیزه وکړه چی خلکو خپل ماشومان ښوونځی ته ولیږل. په نتیجه کی تقریباً له شپږ سوو څخه تر اتو سوو پوری نوی شاګردان د څو ورځو په موده کی په ښوونځیو کی شامل شول.

د سوداګرانو، دری ژبو خلکو او د هندوانو ښوونځی بیل وو. دا بیلوالی په اولس کی تفرقه منځ ته راوړی. هرڅوک چی د افغانستان په خاوره کی دننه ژوند کوی، که په هره طبقه او فرقی پوری مربوط وی، هغه یو افغان دی او په افغانانو کی د فرقو او طبقو امتیاز وجود نه لری، د هری فرقی او طبقی مذهب او عقیدی ته احترام کیږی. دری ژبی او پښتانه مسلمانان دی، هیڅ توپیر په هغو کی نشته. هندوان، البته، مختلفه مذهبی عقیدی لری. هندو او مسلمان شاګردان باید په یوه ښوونځی کی سره سبق ووایی. د دینی مضامینو د تدریس په ساعتونو کی دی هندوان خپل خاص ښوونکی او ټولګی ته لاړ شی او مسلمانان دی خپل ته. د مختلفو مذهبونو، طبقو او فرقو د خلکو له پاره، باید ځانګړی ښوونځی وجود ونه لری.»

سوداګران په دی عادت شوی وو چی د زده کړی په مقابل کی هر یوه د لس پیسی په اندازه ټکس ورکړی، امان الله هغوی مجبور کړل چی موافقه وکړی چی دغه په سلو کی ۹۰ سوه یوی روپی ته جګ کړی. هغه کابلیانو ته وویل: «په دی لحاظ هغوی د کابل له سوداګرانو څخه وړاندی دی. په کندهار کی تجارت زیاتره په فردی توګه پرمخ بیول کیږی. ما ورته مشوره ورکړه چی شرکتونه دی تأسیس کړی. ما امر وکړ چی کانالونه دی وکیندل شی، څو له هغو ځمکو څخه استفاده وشی چی ځمکی یی حاصلخیزی دی او ښاری پرتی دی.» امان الله پیشنهاد وکړ چی د کار لپاره باید ماشینونه لاس ته راوړل شی، چی د خلکو د نیک مرغی په لاره کی به مرسته وی.

امان الله وویل: «د کندهار د پولیسو او قضا چاری په بد حالت کی وی. په تیره بیا د قوماندان د دفتر وضعه ډیره خرابه وه. غلا دومره زیاته شوی وه، چی هیڅ آرام خوب نه شو کولی. د یو حیوان د ښکار کولو او د یو انسان د وژلو په منځ کی لږ تفاوت و. زوړ قوماندان یو سړی د بی پروایی او بی احتیاطی په جرم اعدام کړی و چی د اعدام مستحق نه و. ځکه نو قوماندان او د پولیسو سرمامور پنځه کاله بندیان شول. د پولیسو د ځانګی یو سرکاتب له کاره برطرف شو. نوی قوماندان ته یوه درجه کسرد رتبی ورکړ شو چی د قانون په تطبیق کی بی

کوم فعالیت نه و ښودلی. غلا دومره رواج درلود، چی هر خان او مشر سړی غله ساتل او د غلو غلو به په سیالی سره غلاوی کولی. ځینو کسانو به قانون تل نه مراعات کاوه او نورو ته یی هم بلنه ورکوله چی د قانون مراعات ونه کړي. ځینو نورو په چاقو لاس پوری کړی و. د داسی خلکو په برخه کی ما امر وکړ چی دوی دی کابل ته راوستل شی، او دلته دی تر هغه وخته پوری وساتل شی، چی خپل شهرت دوباره لاس ته راوړی او د خلکو ذهنیت د دوی په مورد کی تغییر وکړی. ځینو نورو کسانو چی حرفوی غله او لاری وهونکی وو او شریعت وربائدی د قتل حکم کاوه، په مرګ محکوم شول. همدا راز ما امر وکړ چی که د خان نوکران غلاوی وکړی نو خان دی مسؤول وګڼل شی.»

امان الله یادونه وکړه چی د کندهار په خزانه کی (۱۸۰۰۰۰۰) روپی د مالیی د باقیداری له امله کسر لیدل کیږی. «خلکو تقاضا وکړه چی مالیات لږ زیات شی، چی دا نقیصه له منځه یوړله شی او هم دا چی باقیداری دی کمه شی. لیکن ما په دی باندی موافقه ونه کړه او عریضه می توټی توټی کړه.

په نظر کی و چی کندهار دی هم د دارالامان ولری. امان الله وویل د حکومت د نوی تعمیرونو له پاره می ښکلی سیمه انتخاب کړی ده، او په دی باندی خبر نه و چی ددی ښکلی سیمی په انتخابولو کی کندهاریان خوښ نه وو، په دی چی د هغوی میوه لرونکی باغونه په کی له منځه تلل. امان الله وویل: «که څوک وغواړی چی په سیمه کی مانی او شخصی کورونه جوړ کړی کولی شی، په دی شرط چی د حکومت پلان تعقیب کړی.»

همدا راز هغه امر کړی و چی د محافظینو لاسونه دی لنډ شی، څو د وړو کسانو حق تلف نه شی.

کندهار د یوی مودی له پاره هغسی نه و. شپږ میاشتی وروسته د برتانیی د استخباراتو یو صاحب منصب داسی راپور ورکړ: «له کندهار څخه د امیر تر لیدنی کتنی وروسته د مامورینو په کارونو کی اصلاحات منځ ته راغلی دی او ویل کیږی چی د راتلونکی لیدنی کتنی ته به هغوی هوښیار وی.»

دی کار ژر له هغه وروسته صورت ونیو، چی یوی الوتکی د کندهار پر ښار باندی پرواز وکړ، او له هوا څخه یی د امان لله د پیغام پاڼی د «کندهار په اصیلو خلکو باندی» وشیندلی چی په کی هغه ویلی وو چی د وروستی لیدنی کتنی په وخت کی زما په زړه د کندهاریانو په

واسطه «یوه فوق العاده مینه» پیدا شوی ده چی دا مینه د یو بل ملاقات ضرورت یی منځ ته راوړی دی. د برتانیی نظامی آتشه داسی لیکلی و: «د امان الله لیدنه کتنه محلی مامورین دومره ویرولی دی چی اوس هغوی په دی اندیښنه دی چی کوم بل ناګهانی نااعلان شوی ملاقات به بیا صورت ونیسی او په نتیجه کی ټول مامورین خپلو چارو ته زیات متوجه دی.»

امان الله دوباره په خپل حال راغی. د خوست اړو دوړ پای ته ورسید او امان الله خپل پلانونه داسی پرمخ بیول چی ګوندی هیڅ کومه پیښی صورت نه وی نیولی.

«د علم او جهل ځلی» هغه مطلب و چی ده د هغی مبارزی ځلی په هغه نوم یاداوه. دا هغه طریقه وه، چی ده ورته د دوو مجردو کیفیتونو ترمنځ شخړه ویله، هغه مجرد کیفیتونه علم او پوهه و. د هغه په محاسبه کی دا نه و شامل چی دغه مبارزه د دوو ډلو خلکو ترمنځ هم ده. هغه به شیانو ته تل په مجرد شکل سره کتل نه بی له دی چی فکر وکړی، چی دغه مجرد کیفیتونه په ژوندی کسانو کی شته، چی د احساساتو خاوندان دی. دا احساسات ممکن منطقی نه وی یا احمقانه وی، یا په کلی توګه د هغوی د ګټیو په خلاف وی، لیکن بیا هم وجود لری.

لکه یو فرانسوی لیکوال چی وروسته یی خپل نظر ښکاره کړ، «په امان الله خان کی د بصیرت دغه نشتوالی ښایی چی د هغه د ښو ماهیتونو له افراط؛ ډیر ښه جرأت، او بیړی ځخه راوتلی وی. ده خپل هغه پلانونه چی فکر یی کاوه د ملت له ګټیو سره برابر دی، پرته له دی چی خپل چاپیریال ته نظر واچوی، تر اجرا لاندی نیول. همدا راز، ښایی په داسی حال کی چی هغه ټاکلی وړتیاوی درلودی، د تواضع هغه ډیری ښیګنی بی نه درلودی چی ضروری وی: احتیاط او بصیرت چی د خلکو په ارواو هیلو کی نفوذ کوی او د پیښو نتیجی اټکلوی.»

د دوو انسانانو په منځ کی جزوی توپیرونه زیات دی، یو انتخاب چی مدام مشکل وی، اکثراً د مصالحو له لاری حل کیږی. د علم او جهل په منځ کی یوازی یو انتخاب شته.

ځنګه چی شورش پای ته ورسید، امان الله خان د یوی یادګاری ځلی په جوړولو اقدام وکړ. هغه دا ځلی د ۱۹۲۷ کال د جون د میاشتی په ۲۲ نیټه خلکو ته اهدا کړ. دا یوه داسی پایه وه چی له مرمر او ګرینایټو له ډبرو ځخه د کابل د سیند د پاسه جوړه شوی وه. دغه ځای چی دا منار وربانلدی درول شوی و، د بالاحصار عظیمو ورانیو ته ورته وه، چی د انګلیسانو له خوا وران شوی و. دا منار په خپل شاو خوا کی د غره د لمنی منظره درلودله. د شورشیانو نومونه په سرمرو کی کیندل شوی او د منار په مخکنی مخ کی لګول شوی وو او کلمی زر ورق شوی وی.

په درو نورو مخونو کې د هغو صاحب منصبانو نومونه کېندل شوي وو چې په عملیاتو کې مړه شوي وو او شمېر یې له دریو سوو تنو څخه زیات و.

د لمر پریوتلو په وخت کې ټول ډیپلوماتان، وزیران او د هغوی مرستیالان، لښکر او لس زره تنه ننداره‌چیان د دې پايي لاندې او په سړک کې په انتظار کې وو. په شپېږو بجو طورم وغړول شو او د عسکري موزیک بانډ د «سلامي» موزیک وغږاوه چې د امیر د احترام په خاطر و. امان الله خان د رالزرايس (Rolls Royce) د سپینو زرو په موټر کې راغلی.

ملکه ثریا ورسره وه. دا لومړی ځل و چې یوه افغانۍ ملکه په داسې یو عام مراسم کې ګډون وکړ. ثریا، په لویدیز لباس او شپو ملبسه وه، چې په موډ برابر و لیکن شپو یې یو ډبل تور حجاب درلود، چې د هغې د رخسار پېژندل یې ناممکن کړي و. په دوهم موټر کې د هغه دوې لوڼې راغلې، چې هغوی هم اروپايي جامې اغوستې وې او دا داسې سن و چې د افغانۍ پخوانۍ عنعنې له مخې چې نجلۍ پیغله شي نو ستره کېږي. تر هغه وروسته امان الله خان خپله دا غوښتنه چې چادري دې له منځه یوسي، عملي کوله.

امان الله په خپله وینا کې وویل: «د خپلواکۍ په لاس ته راوړلو کې افغانستان له خپل بهرني دښمنانو سره بریالی برخورد وکړ او ددې له پاره چې علم، عصري ساینس، ښوونه او روزنه او تمدن په هیواد کې منځ ته راوړل شوي وي، افغانستان مجبورو چې د ناپوهۍ پر ضد مبارزه وکړي. ځینو خود غرضو خلکو د خپلو اغراضو د وړاندې بیولو په خاطر نه غوښتل چې په هیواد کې علم رواج وموميی. او د (خوست) د شورش علت همدا شی و. د خدای(ج) نه شکرګزار یو چې افغان لښکر ددې اور په منځه وړلو کې بریالی شو!»

امان الله خان وویل دا خبره ما نه خوشحالوي، چې وایم په خوست کې مې خپل وروڼه ځیلې دي ځکه چې هیڅوک په دې نه خوشحالیږي، چې خپل د وجود کومه برخه یا پرې کړي او یا یې زخمي کړي. مګر «زه غواړم دا ټکی څرګند کړم چې هر هغه څوک چې د علم دښمن وي، هغه به د پاچا د دښمن په توګه وپېژندل شي.» او هغه په خاص ډول د ملایانو په ارتباط دا څرګندونه وکړه.

څو شیبې وروسته علیاحضرت شاهي کورنۍ ته د شپې میلمستیا ورکړه چې د ... موضوعات یې هم ورسره بحث وکړ چې آیا امان الله خان له خوست څخه رسمي لیدنه ... وکړي او که نه. په خپله علیا حضرت ددې سفر په کلکه مخالفه وه، ځکه د هغه ځای د قتل

ویره ورسره وه. یو کال دمخه په جنوبي ولایت کی د شورش او برغلونو راپور ورکړ شوی و. د برتانيي استخباراتي څانګی داسی لیکلی و «دغه شیان عادي دي، مګر ددي په خاطر چی تیری شوی اونی شدید اوني وي، نو معلومیږي چی د علاقه مندو ډلو له خوا له منځه یووړل شي. دا چی دا شورشونه له خلکو سره مبدا ولري، او یا امیر نارضایتی منځ ته راوړي، چی خپل لاسونه بر وښیي، ځکه هغه د مقاومت کولو قوي احساس لري معلومه نه ده د عنایت الله نوم ذکر شوی و.»

امان الله خان د «مقاومت کولو د کافي قدرت» احساس کاوه، که دا قدرت د ۱۹۲۵ کال د کندهار د لیدنی په وخت کی نه وای، نو د ۱۹۲٦ کال په دوهم ځل ورتګ کی و چی دا ځلي په کندهار کی هغه ښه وضعه درلودله، په دي چی انتقادونه ډیر کم وو.

امان الله د خدای په اماني په وخت کی وویل: «پر ما ګرانو! د خدای په نامه لویه قرباني د سري د وجود قرباني ده، ځکه نور هرڅه په آساني سره بیرته لاس ته راتلی شي او ژوند ډیر خوږ دي، په دي توګه ژوند باید د خدای په لاره کی قربان شي. لیکن څنګه باید دا کار وشي؟ نه د خودکشي په واسطه نه، په دي باندي هم نه چی یو نفر خپل ځان په تمانچه وولي، بلکه ددي په واسطه چی د یو نفر د ین او هیواد له دښمنانو ځیني وساتل شي ... د جنګ د آماده کیدو له پاره څو ګتي وجود لري. دا کار په تاسو کی د اختلافونو مخنیوی کوي ... که هیڅ شي هم نه وي، چی ستاسو پام ځان ته راوړي، نو ضرور به ستاسو په فکرونو کی اختلافات وي.»

امان الله کندهاریان دي ته وهڅول چی خپل ماشومان، هلک وي که نجلی په ښوونځي کی شامل کړي. هغه د افغانانو په دي رواج چی له ښځو سره بده رویه کوي، خواشیني و، او خپل اوریدونکي یي وهڅول چی د ده په شان یوه ښځه وکړي.

هغه په ښوونځي تفتیش کنترول کول. په یوه ښوونځي کی یوی نجلی ورځخه غوښتنه وکړه چی پلار یي له بند څخه خوشي کړي او امان الله دا کار وکړ. هغه به عسکري قشلو په بدله ځیره ته، یوازي پیره دار وریاندي یوه و او له دي عسکر سره یي وعده کوله چی که دا راز چاته څرګند نه کړي، نو معاش به یي زیات کړي.

امان الله خان وویل: «زه د کندهار له مامورینو څخه ډیر خوښ یم. سږني کارونه د پرو سږ کال له کارونو سره نه شي مقایسه کیدلی. زه د یو شمیر لاري وهونکو او مجرمینو په اعدام باندي خواشیني یم، مګر دا د محکمي فیصله وه او مجرمینو هم د خپلو جرمونو په خاطر ځانونه ملامت ښودل.»

هغـه د لسـو تنو سوداګـرانو له پاره د سلو زرو روپو د پور ورکولو منظوري اعلان کړ چې په دې کافي سرمايې باندې دې هغوی خپلې چارې پر مخ بوزي، بل دېرش زره روپۍ پور بزګرانو ته د کرنې د چارو د ښـه کېدو په خاطر ورکړې او تقريباً پنځه دېرش زره روپۍ د کندهار او کابل ترمينځ د سړک د ترميم له پاره منظورې کړې.

هغـه وويل: «کله چې پروسږکال دلتـه راغلم د وطني توکريو سـاده توته مې هم ونه ليدله. اما اوس ځنګه چې احساس کوم د کندهار خلک د وطني توکرانو د جوړولو په لور ميلان ښکاره کوي، ما باقي دادخان ته چې د محلي توليداتو په هکله عـلاقه مندي ښيي او د پيسو کمښت په دې لاره کې مانع ګرځېدلې و، لس زره روپۍ پيشکش ورکړې.»

امـان الله خان يو انتـقـاد درلود او هغـه دا و: د کندهار د ښـوونځـيو شـاګـردان په خـپلو جنبشـونو کې سست دي او ښه نه پوهېږي چې څنګه احتـرام وکړي. هغـوی دې ته ضرورت لري چې په دې لاره کې وروزل شي.»

ثريـا ، د عليـا حضـرت په شـان، زياتره نجوني راوړلې. د هغې لومړنۍ زوی د کـولړا په نـاروغـي مـړ شـو. بل زوی يې چـې د ۱۹۲۳ کـال پـه نيـمـايي کې زېږېدلی و، اتلس ميـاشتـي وروستـه د سينـه بغل او بـرونشيت لـه کبلـه مړ شـو. جرمنی ډاکتـرانو د هغـه عـلاج کـاوه، په وروستـيـو شـيبـو کې امـان الله د بـرتانيې له نمايندګۍ څخـه يو جـراح وغـوښت او هغــه وويل چې ډېـره خـواري مې وکـړه. بل کـال، رحـمت الله د امـان الله زوی چـې پـه کـال ۱۹۲۱ کې د هغـه زېږېدنه د کـابل د کنفـرانس شـدت يې نوم کړی و، سـخت نـاروغ شـو او امـان الله سـمـدستـي د کـابل ټـول ډاکتـران راوغـوښتل چـې ټـول لس تنـه وو او مـختلف مليتـونه يې درلودل. نه تنو په يو ډول تشـخيص باندې مـوافقه وکړه، يو ايتـالوی ډاکتـر مـخـالف نظر ورکړ چې د لس ورځې له وظيـفې څخـه برطرف کړی شـو. د رحـمت الله صـحت ښـه شـو او امـان الله مـختلفـو نمـاينده ګيـو ته او هغـو کسـانو ته چې د رحـمت الله د صـحت په برخه کې مرسته کړې وه، د خپل ځان او د ثريا له خوا مننه وکړه. بل کال د ثريا کره بل زوی وشو، چې په کوچنيوالي کې مړ شو. په افغـانسـتان کې زيات ماشومان په کوچنيتوب کې مړه کېږي.

رحمت الله څلور خويندې درلودې، آمنه په ۱۹۱۵ کال، سلطانه په ۱۹۱۷ کال، عابده په ۱۹۱۹ کال او حميده په ۱۹۲۳ کال کې زېږېدلې وې. دا احتمال موجود و چې که د امان الله

پلانونه په هیواد کی تطبیق شوی وای نو د هغه له نجونو څخه به یوی هم خپل مخ نه وای پټ کړی.

د ارگ حرامسرای د توجه وړ و، په دی چی که د غه کورنی د یوی بلی کورنی په واسطه زیاته شوی وه، د امیر حبیب الله ماشومان، ځینی یی په خپله د امان الله د ماشومانو په شان واړه وو. ثریا او امان الله له دوی ټولو سره سرگرمه وو. په افغانستان کی به هیڅ ته د غسی یوه صحنه اریانوونکی نه وی.

افغانی کورنی په قدرت سره یوازی له میړه، ښځی او اولادو څخه متشکله وی، خپلوان، حتی د کاکا، ماما او ترور عیال سره یوځای اوسیږی او داسی خلک هیڅ نشته چی د هغوی په کلتور کی د ځای او پناه گاه نه ورکولو مفهوم نه وی. دوی چی بهرنیان څه حتی جانیانو ته هم پناه ورکوی، په دی باندی خبر نه وو چی په نړی کی داسی کورونه هم شته چی خپلو خپلوانو ته ځای نه ورکوی. څومره چی د یو نفر موقف جگ وی، په همغه اندازه د هغه مهمان نوازی زیاته وی.

امان الله خان چی یوه ورځ د کابل په سرکونو کی خپل موټر چلاوه، یوه ښځه یی ولیدله چی د هغی په قضیه دی خبر و. دا ښځه اروپایی وه، طلایی رنگه ویښتان یی درلود، او پر مخ یی حجاب هم نه و، دا یوه جذابه ښځه وه او په کابل کی لکه چی کله کله برتانویانو شکایت کاوه، «هر شی څرگند دی» دا یوه جرمنی ښځه وه، چی یو افریدی له عمومی جنگ وروسته، د سرحد غوندی سیمی ته راوستی وه، یو برتانوی منصبدار، چی دداسی ودونو په مورد کی خبری کولی: په نافهمی سره یادونه کړی وه ځکه هغه احساس وکړ چی افریدی جرمنی ته یوازی د برتانیی د امپراتوری په ملاتړ تللی دی چی په عمومی جنگ کی وجنگیږی. هغه ته دا معلومه نه وه چی دا د برتانیی امپراتوری سره چی له افریدو څخه یی د جنگ کولو په مقابل کی مننه کړی وه، دا خلک چی په خپل وطن کی کلک خلک وو، د خپلو متحدینو له خوا دومره داده نه وه، نو اروپا ته له رسیدو وروسته، بیرته وتښتیدل.

د یوی جرمنی پیغلی او د یو افریدی سړی په منځ کی دا یوه طبیعی خبره وه چی باید د مینی د اور شغلی ولگیږی. کله چی د منځنی ختیځ یو سړی د خیال او هوس په لوم کی ولویږی، او ووای چی «ښکلی طلایی ویښتان لرونکی نجلی» زما خوښیږی. او ووایی چی «طلایی ویښتان» هیڅکله له لاسه نه ورکوم او داشی په دی جرمنی ښځی کی زیات لیدل

کیده. د داسی یوی ښځی له پاره چی له جنګ څخه ستړی شوی وی، او د خپل د وطن نارینه چی له جنګ څخه بیر ته راستانه شوی وی ضعیف او ناتوان ووینی، داسی غنم رنګه قوی سړی چی ځان ورته صادق او فرمانبردار وښیی، د یوی داسی مرغی په شان ښکاری چی د جنګ له دوړو څخه راپورته شوی وی. هغه ودونه چی برتانوی منصبدار یی پریشانه کړی و، د هغی مقولی ښکارندوی و چی د مینی پرخلاف و.

ځینی افریدی کسان به چی له دغو نجونو سره غیړیدل، ځانونه به یی ورته غټ معرفی کول، او ویل به یی چی موږ شهزادګان یو، حتی که دوی ځانونه غټ هم نه وای ښودلی، د دوی جذابیت به دغو نجونو دومره امیدواره کول چی د هغوی ډیر لیری او د غیر مشهور هیواد عیبونه به یی پټول چی وروسته تول دروغ وختل.

ډیری پیغلی هغو غرنیو سیمو ته لاړی او هلته دا ورته معلومه شوه چی دوی د دغو افریدو بوازنی میرمنی نه دی، بلکه هغوی دری او څلور ښځی درلودی. ځینو به داسی کیسی کولی چی د داسی دوه مخو کسانو په یوه ښځه یو ښځه او بل ځنګ کی بله ښځه ویده وی. دی ښځی له دی وضعی څخه اعظمی استفاده وکړه، خپل میړه یی خوشی کړ او له خپلو دوو ماشومانو سره کابل ته راغله او په دی لټه کی وه چی په یوه پردی خاوره کی ځان ته نوی ژوند پیل کړی.

دی ښځی ولیدل چی موټر پر سرک باندی ودرید او یو مهم سړی ورڅخه ښکته شو. که چا په هغه وخت کی موټر درلود، هغه به یو مهم سړی و. دی سړی ځان ورته معرفی کړ. دا په خپله امان الله و. امان الله د لاری په سر هغی ښځی ته د کور د ورکولو پیشنهاد وکړ، علیا حضرت هغی ته په خپل کور کی دوی کوټی مفتی ورکړی. هغی له دی کور څخه بوازی په دی خاطر لاړله چی فکر یی وکړ له خپلو ماشومانو سره د تل لپاره د میلمه په توګه په هغه ځای کی ژوند نشی کولی، نو یی له یو افغان سره واده وکړ.

د امان الله لوبی او ناسکه خویندی د نجونو ښوونځیو ته تلل چی په اشرافی کورنی پوری مربوطی وی او دا هغه وسیله وه چی هغه وعده یی خرابوله، چی امان الله د خوست د شورش په وخت کی لویی جرګی ته کړی وه چی د ښځو ښوونه او روزنه دی محدوده شی. په اول کی ځینی انتخاب شوی نجونی په ارګ کی درس ته تللی. وروسته په ۱۹۲۵ کال، د اپریل په میاشت

کې، حتی د ګوډ ملا د اعدام د موردي د زياتيدو د مخه، نجوني په عمومي توګه دوباره تر ښووني او روزني لاندي تيول شوي وي.

د خوست د شورش په باره کې د محمود طرزي، توضيحات داسې و: «افغانان له خپلو ميندو څخه د ناپوهي شيدي رودلي تر څو چې ښځې زده کړه ونه لري، پرمختګ امکان نه لري. » دا هغه زيات تريخوالي بيان کړ، چې د ښځو د تعليم موضوع يې تر ټولو شخړو زيات هيجاني ګرځولي وه. هغه دا هم توضيح کړه چې ولي ملايان هڅه کوي ټول هغه کسان تحريک کړي چې د دوی تر نفوذ لاندي دي، هغوی پوهيدل چې امان الله او د هغه مشاورين د طرزي په شان داسې تبصري کولي: «هغه کسان چې وظيفه لري مذهب ته لکه د نورو په شان بل ډول تعبير ورکوي، عموماً تر ټولو ډير ناپوه دي. »

د ښځو د ښووني او روزني په مورد کې چې امان الله ته يې کومې دښمني رامنځ ته کړي وي، او تر لويې جرګې پوري هغه ددې عنادونو اټکل هيڅکله نه کاوه امان الله د هغو دښمنيو په مقابل کې مقاومت وکړ. هغه حتی په خوست کې د ښځو د ښوونځي پيشنهاد وکړ چې د شورش مرکز و، چې هم يو ضرورت و او هم سخت مخالفت ورته موجود و. هغه به په کندهار کې هم نجوني ښوونځي ته استول، مګر په هغه وخت کې يې نه استول چې يو غټ مخالفت سره مخامخ کيدۀ، په کندهار کې داکار هغه وخت د خطر سبب شو چې کتابونه د بيري په واسطه راورسيدل او داسې خبري هم کيدي چې يوه «ښوونکې او روزنپوهه» ښځه هم ورسره راورسيدله.

کله چې امان الله په ۱۹۲٦ کال کې په کابل کې د نجونو ښوونځي يې د جون په مياشت کې وکوت، نجونو ته يې مشوره ورکړه، چې د اس په سپرلي او عصري ارت باندي هم ځانونه پوه کړي. د کابل اخبار يو لنډ مطلب خپور کړ چې امريکايي ښځې حتی په شمشيربازي کې برخه اخلي. نو اوس افغاني مکتبي نجونو د نورو اشرافي ښځو په پرتله د واليبال په لوبه پيل کړي وو.

امان الله خان نجونو ته وويل: «که تجويز وشي تاسو بايد د اروپايي ښځو په شان دا چانس ترلاسه کړي چې په الوتکه کې سفر وکړي. زه فکر کوم چې چادري په افغانستان کې د يو بې معنی شي په شان رواج موندلي دی... واقعي حجاب او پرده د روح پرده ده او پرده يا چادري ته بايد داسې اجازه ونه کړي شي چې د يو هيواد د پرمختګ په لاره کې خنډ وګرځي. »

څو میاشتی وروسته په کوڅو کی داسی فرمان وځړول شو: «اعلیحضرت چی غواړی رعیت بی په زده کړه کی پرمختګ وکړی، د کابل ټولو اوسیدونکو ته امر کوی چی خپل زامن دی که شپږ کلن وی یا تر هغه پورته، ښوونځیو ته واستوی. که څوک له دی فرمان څخه سر وغړوی، نو یا له یوی اوونی څخه تر لسو اوونیو پوری بندی کیږی یا له دیرشو څخه تر څلویښتو افغانیو پوری جریمه کیږی.

«ټولو هغو کسانو ته چی په حکومتی دستګاه کی کار کوی، امر کیږی چی خپلی لوڼی دی ښوونځی ته ولیږی، که چا داکار ونه کړ، نو له وظیفه څخه برطرفه کیږی.»

لږ وروسته هغه به لا هم په کندهار کی چی هلته ۱۶۵۸ تنه زده کوونکی چی ټول هلکان وو وویل: «ما خپل اصل مقصد ترلاسه کړی دی. اوس مور عالی مکتبونه لرو او وروسته تر دی به پوهنتونونه تأسیس کړو. خدای ته شکرګذار یم چی خپل مقصد ته ورسیدو.»

د شاهی ماڼی مخی ته به هر مازیګر خلک راتلل. د بی سیم یوه دستګاه درول شوی وه، امان الله، ثریا، د هغوی خپلوان او میلمانه د لندن او پاریس په شان له لیری سیمو څخه د خلکو خبری اوریدلی.

برتانویانو او فرانسویانو سره سیالی کولی چی د بی سیم دستګاه افغانستان ته څوک برابره کړی او تر کنټرول لاندی یی وساتی، فرانسویانو په آزاده ډول د ساویج ورونو (Sauvage Brogthers) د شرکت له لاری لوازم برابر کړل، چی د روسیی د زاړه بی سیم دستګاه پر ځای نصب شی او په دی وسیله خپل مهارت څرګند کړی. برتانویانو له مارکونی (Marconi) سره په پټه د بیمی په شکل د لوازمو یوه سری تبادله په دی فکر وکړه چی کیدی شی د فرانس سامان او لوازم له منځه لاړ شی. کوم شی چی برتانویانو په ریښتیا سره غوښتل هغه دا و چی د روسانو لاس له هغه بی سیم څخه لیری وساتی.

په کابل، او وروسته په مزار شریف کی د دی امکانات برابر شوی وو چی خلک سینما ته لاړ شی. لومړی فلم چی په افغانستان کی وښودل شو په لویدیزه نړی کی ښوونه او روزنه نومیده، په دی چی فلمونه ټول له امریکی یا له اروپا څخه راوړل کیدل، دا هغه فلمونه وو چی یو ځلی په خپله د هغوی په هیوادونو کی ښودل شوی وو، او څرنګه چی دا فلمونه بی آوازه فلمونه وو او پښتو یا دری لیکنی یی هم نه درلودی چی بی له هغه یی خلک په لوستلو نه

پوهیدل، نو د فلم موضوع او د هغه ټولنیز مفاهیم خلکو ته د فلم د کارکوونکو له حرکاتو څخه ځرگندیدل.

د لومړیو میاشتو په اثنا کې، څنگه چې هر فلم ختمیده، یو سړی به جگیده او د لویدیزې نړۍ پرروان تمدن باندې چې نندارچیان یې په فلم کې لیدل، تبصرې کولې. ژر هرچا خبرتیا اوریدلې وه، له دې کبله چې سینما ولـه مزدحمه وه، او وډروله شوه. لیکن د امان افغان اډیتور زیات علاقه مند و چې پیشنهاد وکړي چې د فلمونو د سانسور له پاره یوه ډله پیشنهاد کړي او هم دې په راتلونکې کې داسې فلمونه بندوي. هغه فلمونه چې غربي اخلاق او عشقي صحنې لري، د مقدسو کتابونو فلمونه او هغه فلمونه چې آسیایي ضد پروپاگندونه لري. دا کار، څنگه چې برتانویانو یادداشت کړ، ډیر موجوده فلمونه به یې له منځه وړي وای او په خپله امان الله ځینې فلمونه د سیاسي علتونو په موجب سانسور کړل. کله چې د روس او جاپان د جنگ فلمونه ښودل کیدل او په تیره بیا چې روسان یې په بده رڼا کې ښودل. هغه د نندارچیانو په منځ کې ودرید او امر یې وکړ چې د فلم نمایش دې بند شي.

ثریا او د هغې وریندارې په یو نوي برم سره یو میلمستیا ورکړه چې د علیاحضرتي په میلمستیاگانو کې دا خصوصیت نه لیدل کیده، په دې چې په هغو کې ښځې مخ لوڅې نه وې. کله چې نارینه و په ۱۹۲۵ کال کې د خپلواکۍ کالیزه نمانځله، ثریا هم په ارگ کې د ښځو ټولنیز مراسم اجرا کړل، چې وروسته په اخبارونو کې «د کابل د تعلیم یافته گانو» په توگه تشریح شو. د کورد ډیپلوماتیکو او د نورو بهرنیو نجونو تشریح به هم وروسته صورت ونیوله. څنگه چې ثریا کوټې ته داخله شوه، نو د دې پرځای چې خپلو میلمنو ته هرکلی ووایي او خلک د هغې لاسونه ښکلې کړي، لکه څنگه چې د علیاحضرتي دا کار و، نو یې یوه بیانیه ورکړه، چې یوې بلې افغاني ښځې په بلې بیانیې سره ځواب ورکړ. په وقفه کې هغې له خپلو میلمنو سره ملي اتن وکړ. ثریا له اروپاییانو څخه وغوښتل چې هغوی دې خپل ډانس وکړي. مگر د یوه هم هغسې گډا نه وه زده چې په یوازې صورت اجرا شوې وای، او موسیقي یې هم په کلي توگه توپیر درلوده، ځکه دا موسیقي افغاني موسیقي وه، چې رباب، تنبور او زیربغلي په کې وه.

د شپې ډوډۍ په دوو کوټو کې وخوړل شوه، د ډیپلوماتانو ښځو له ثریا سره ډوډۍ وخوړله او نورې بهرنۍ ښځې په دوهمه کوټه کې وې. د ډوډۍ په نظم او ترتیب کې څه غفلت وشو، د دوهمې کوټې ډوډۍ چې ثریا ته معلومه نه وه، ښې ترتیب نه درلود. روسي او جرمني میرمنې

کورو ته لاړی او ویل به یې چې مور بېزاری یو. په دې خاصه دیپلوماتیکه میلمستیا کې برتانوي میرمنې ښه خوندي وې، ځکه چې برتانویان یوازنې کسان وو چې په افغانستان کې دیپلومان وو او د هغو میرمنو په ډوډۍ کې تر نورو بهرنیو ښځو غوره والی درلود. لیکن د روسیې سفیر، لیونید ستارک پر افغانستان باندې رسماً اعتراض وکړ.

مادام ستارک په لومړي ځبر خونه کې وه، نو ځکه یې ډوډۍ په سویه وه، اما ستارک د کابل د روسیې ښځو په منځ کې نوري دلچسپي درلودې. هغه په حقیقت کې د مسلمانانو د څلور ښځو دود، سره له دې چې غیر رسمي وه، ځان ته غوره کړې وه. مادام ستارک د هغه قانوني ښځه وه او ارمنۍ وه. هغه له یوې سکرترې سره هم سر و کار درلود، د نماینده ګۍ د یو نوي رارسیدلي سړي ښځې هم د هغه په نفساني اعراضو کې شریکه وه. یوه ورځ اعلام وشو چې مامي ستارک په ناڅاپه توګه مړه شوې ده. د هغې مړي په الوتکه کېښودل شو، چې روسیې ته یې واستوي او د برتانیې د نماینده ګۍ غړو، په داسې حال کې چې فکر یې کاوه، چې دا ښځه په خپله د ستارک له خوا وژل شوې ده، خپل د احترام مراسم یې په هوایي ډګر کې سرته ورسول. په حقیقت کې هغې خودکشي کړې وه او ستارک یې له دوو ښځو سره چې یوه یې حامله وه په کابل کې پرېښود.

برتانویانو د ستارک له عشقي ژوند او د هغه له تنوع سره کومه علاقه نه درلودله، بلکې د هغه د ښځو له نازکو مزاجونو سره یې څه علاقه درلودله، چې هغوی دې ته مجبوریدل چې د ژمي سوړ اقلیم، په جلال آباد کې تیر کړي، چې له هغه ځای څخه روسي مامورین د افغان او انګلیس د معاهدې له مخې منع وو. ستارک د بحرني قوې د کورنې یو اصیل زوی و، چې د تزاریست له بحري قوې څخه تبنتیدلی و، چې یو کلک انقلابي سړی شي. کله چې روزګار دی په کابل کې د دیپلوماتانو د ډلې رئیس مقرر کړ، برتانویانو به دې ناموفق وګڼي «ځکه دی به د هیأت ګټې تر پښو لاندې کړي که چیرې دې له افغان حکومت سره د خپلو ګټو په ارتباط کومه رابطه ټینګه کړي.»

د مامي ستارک جانشین د برتانویانو له خوا د اعتراض موضوع شوه، کله چې ستارک له یوې ښځې سره جلال آباد ته لاړ، هغه په یوه داسې سیمه کې ژوند کاوه چې برتانویان پوره متیقن وو، دلته د هغوی پرخلاف له کابل څخه زیاته توطئه کیدی شي. ستارک په کابل کې د جاسوسۍ د شبکې له پاره کافي بودجه درلودله، حتی چې د امان الله د پولیسو آمر د

تنخواخورو په ډله کې و او داسې موافقه شوې وه چې که روسان کوم نفر ګیر کړي، چې د انګلیس لپاره جاسوسي وکړي، هغه دې بندي شي. برتانویانو پر ښځو باندې که چیرې د هغوی پولو ته نژدې کیدې، کوم اعتراض نه کاوه، صرف د هغې پر میړه باندې یې کاوه، د هند حکومت داسې تبصره وکړه: «یوه ښځه په ځانګړې توګه زیات تاوان نه شي رسولی. د هند د حکومت متحدین څو کاله دمخه ماتاهاري (Mata Hari) اعدام کړې وه، چې په یوازې صورت تاوان رسولی و، بیا هم هغې دا کار شکمن وګاڼه، چې ستارک به دهغوی ښځو په باب چې ضعیف سړي ولري، داسې ضعف ولري. په ۱۹۳۰ کال کې د کابل د برتانیې مختار وزیر داسې لیکلي دي: «د هغه نوې ښځه، ملګرې اولګا (Olga) په دې وختو کې له روسیې څخه د الوتکې په ذریعه کابل ته راورسیدله. هغه یوه یې مخې ښځه ده او په ستر باندې یې عقیده نه درلودله.

څو میاشتې وروسته، د ښځو په دوهمه میلمستیا کې، ټولې میلمنې اروپایي وې، جرمنان او روسان خپل پخواني خفګان له یاده وویستل او زیات شمیر یې دې میلمستیا ته راغلې. په خپله امان اللّه هم حاضر و، د هغه مقصد دا و چې ثریا ته رسماً واک ورکړي او هم افغانی لوړ ښبان ورته ورکړي، چې دمخه ښځو ته دا شي منظور نه و.

د ترکیې د مختار وزیر ښځه وارخطا وه، چې له یوه داسې سړي سره مخامخ کیږي چې د هغې له کورنۍ څخه نه و. که څه هم مصطفی کمال په دې لټه کې و چې د ترکیې ښځې هم مجبورې کړي چې حجاب ایسته کړي، د هغې د زوړ دود د دستور غریزه غالبه شوه، او هغې ته اجازه ورکړله شوه چې د امان اللّه تر راتلو دمخه دې ځان وباسي.

ثریا د یو صفت له امله د ښبان مستحقه وه. هغې زړورتوب درلود. کله چې امان اللّه خان په ۱۹۲۷ کال کې له خوست څخه لیدنه وکړه، چې د هغه په مقابل کې ثریا او علیا حضرت ورته په مایوسۍ سره خبرتیا ورکړله، خو دواړه ورسره لاړې. د خوست د نارینه و له پاره د شاهي کورنۍ د ښځو لیدنه یوه نوې منظره وه او یو نامتو څمکه وال، چې د پسونو رمه یې درلودله، دې ته تیار و چې امان اللّه ته څو پسونه چې د دوو ملکو له پاره یې اختصاص ورکړي وو، ورتقدیم کړي.

امان اللّه خان د خوست د شورشیانو جزاګانې لا دمخه فسخ کړې وې. اوس هغه د عمومي عفوې وعده ورکړه او د سرکونو د ترمیمولو پرته نور ټول اجباري او د بیګار کارونه یې له منځه

یوړل. هغه وویل چی ابتدایی ښوونځی به پرانستل شی او هم یی وویل چی که څوک غواړی خپل زامن د زده کړی له پاره کابل ته واستوی، نو د هغوی زامن به د عامه دارایی په لګښت زده کړه وکړی.

ددی پوښتنی په مقابل کی چی د هغوی د خپګان منشا څه شی دی، د خوست نارینه وو د نظامی حکومت ظلم او تیری او د ملایانو غیر عادلانه حکمروایی بیان کړل، او غوښتنه یی وکړه هغه قوانین چی په ټول افغانستان کی تطبیق کیږی، پر دوی باندی دی هم تطبیق شی. امان الله ورته وویل، نظامنامی، چی تاسو د هغه پر ضد بغاوت وکړ، له هغو معتبرو قوانینو څخه دی چی د سولی او عدالت د منځ ته راوړلو په منظور می ترتیب کړی دی.

دومره چی د امان الله د کورنی ښځی د نوی نظم په مورد کی خوشاله وی، نارینه ټول نه وو.

د هغی د تره زوی محمد عمر، د امیر عبدالرحمن زوی، په عصبانیت سره د خدماتو د مدیریت وظیفه یی ونه منله، ځکه د عیش او نوش پیسی په ده پوری مربوطی وی. هغه له خپلی ښځی، دوو ماشومانو او له دوو نرسانو سره هند ته لاړ، د برتانیی د نماینده گی جراح ورته تصدیق ورکړی او ویی ویل چی د هغه د ښځی علاج یوازی په هند کی کیدای شی، له بلی خوا د محمد عمر ښځه د برتانیی نماینده گی ته وویل چی امان الله دده په مقابل کی نامنلی انتقامی حرکت کاوه. د برتانویانو نظریه دا وه چی محمد عمر غوښتل آزاد ژوند وکړی. هغه افغانستان ته بیرته راتګ ونه مانه، حتی چی امان الله هم ورته بلنه ورکړه.

کبیر د امان الله ناسکه ورور و چی یوځلی هند ته تبنتیدلی و، د روغتیا د وزیر په توګه یی خپل منصب ساتلی و. کبیر یو جرمنی ډاکټر ته په داسی ویلو سره خپله وظیفه پای ته ورسوله چی د ایکس د وړانګی دستګاه دی ودروله شی. ډاکتر څرګنده کړه چی د ماشین اصلی قیمت کم دی، خو د هغه د فعالولو پیسی زیاتی کیږی او نور عاجل مدرکونه شته دی چی دا پیسی باید هلته ولګیږی.

کبیر وویل: «د تادیی وړ پیسی به هیڅ نه وی له دستګاه څخه به کار وانه خیستل شی، لیکن موږ باید په دی باندی قادر واوسو چی ووایو موږ په کابل کی د اکسریز دستګاه لرو.» د ایکس د وړانګی دا دستګاه د کبیر بی عزتی وه. په دی چی وروسته له هغه چی امان الله

فارسي سکرتر يوه دستګاه وپيرودله، چې بيه يې د هغې دستګاه د پيسې يو پر لسمه وه چې هغه غوښتل ورباندې ولګوي، کبير استعفا وکړه.

امان الله د ورځې لس ساعته کار کاوه، حتى په جلال آباد کې هم چې هلته د مې په مياشت کې هوا ګرمه او د صحت لپاره تاوان رسوي، برتانويانو په تصديق سره وويل: «د کال په دې وخت کې به د هغه پلار په اوونيو اوونيو له حرامسراى څخه د باندې نه راووت. د جلال آباد د اداري چارو په کتلو سره، چې د عليا حضرت له خوا يې مرسته کيدله، چې د ټولو مامورينو د شخصيت په باره کې سختې پوښتنې کولې، امان الله داسې کارګران درلودل چې په هغه ځاى کې يې د سلطنتي کورنۍ له پاره دوهمه درجه ماني جوړولې او ممکن امان الله لويه ماني خلکو ته د هوټل له پاره ورکوله. په پغمان کې يو هوټل لا د مخه جوړ شوى و او کارګران يې د روزنې له پاره د تاج محل مشهور هوټل ته واستول شول چې په بمبيي کې و.

امان الله خان يو ورځ په ناڅاپي توګه استالف ته لاړ او هلته يې وليدل چې پيره دار غير حاضر و، هغه دې سړي ته امر وکړ چې لاړ شي او يو بدنام او رسوا جنايت کار ګرفتار کړي چې په دې توګه دې وبخښل شي که نه نو وبه ويشتل شي.

بله ورځ جنرال محمود سامي چې په وروستيو وختو کې د عمومي قوماندانۍ رئيس ته يې ترفيع کړې وه، د امان الله په دفتر کې ښکاره شو چې څو کتاره پټې او مدالونه يې بند کړي وو. دا جنرال لکه د نورو په شان چې د امان الله پخوا او شاکي وو، ډير احتياط يې کاوه چې له وطني ټوکرانو څخه ځان ته جامې جوړې کړي. امان الله چې د غو پټو ته وکتل، پوښتنه يې ځينې وکړه چې که دا پټو د هيواد په فابريکو کې جوړ شوي وي خو جوړې شوي نه وي. امان الله په خپلې بياتې سره د دغه جنرال له ټټر څخه ټولې پټې بياتې کړې.

د يو افغان واکمن د دربار په باره کې د بدګوماني فضا هميش موجوده وه. د امان الله د نيکه تر زمامدارۍ لاندې يو سړى به هيڅکله متيقن نه و چې تر بلې ورځې پورې به ژوندى وي او که نه، اوس هغه بيخي متيقن نه و چې امان الله به بله ورځ څه وکړي. که څه هم ممکن دا به د هغه د مرګ معنى نه درلوده. امان للّه خان په اوونۍ کې يو ځلې روحاني چارې اجرا کولې، د جمعې په ورځو کې به يې په جوماتو کې وعظ کاوه، دا کار معمول نه و، ليکن امان الله خپلو اوريدونکو ته وويل چې خداى (ج) ستاسو د عبادتونو پروا نه لري. امان الله په خپله يوه خطابه کې په داسې حال کې چې خلکو ته يې نصيحت کاوه، چې د هرشي احترام دې بايد د اسلامي

اصولو له مخې وشي، له یوې مهمې موضوع سره تماس ونیسو او وې ویل چې کونډو ښځو ته دې اجازه ورکړله شي چې په آزاد ډول دوباره واده وکړي.

که څه هم د جمعې ورځ لا هم یوه مبارکه ورځ وه د استراحت او رخصتي ورځ چې دفترونه او دکانونه تړل کیدل، اوس د پنجشنبې ورځ تاکل شوې وه. کله چې امان الله دا ډول بدلونونه راوستل، هغه د هند رسم او رواج په فکر کې درلود، چې هلته رخصتي د یک شنبې په ورځ وه، دا کار یې پر هغو باندې تر یوې اندازې پورې تحمیل کړ چې اوس یې له کوم سوال څخه په هغه ځای کې د یک شنبې د ورځې رخصتي منل شوې ده. د جمعې په ورځ د لمانځه له پاره دوه ساعته وقف شوي و. په پای کې امان الله وغوښتل چې د یک شنبې ورځ دې رخصتي شي، چې په دې کار سره له نورې نړۍ سره برابر شي او د هغې ورځې نه به افغانستان چمتو وي چې د نړۍ د سوداګرۍ یوه برخه شي.

د نوي نظم په اوله جمعه کې، امان الله د کابل هر دفتر ته ځانګړی سفر وکړ چې ځان خبر کړي چې خلک کار ته حاضر یږي او که نه. همدا راز هغه په جوماتونو کې هم د خلکو حاضریدل تر غور لاندې ونیول.

څو میاشتې وروسته د ګمرک مامورینو د رسالو یو صندوق ضبط کړ چې امان الله د هغه د سوځولو امر ورکړی و. په دې رسالو کې د هند یو شمیر مسلمان روحانیون لاسلیک کړي و او د مذهب پر بنیاد یې د متبرکو ورځو پر تغییر او تبدیل باندې یې انتقاد کړی و.

عنایت الله چې یو نوم او غیر حریص سړی و، نور نو سیاسي تهدید نه ګاوه. کله چې امان الله د جلال آباد خواته وخوځید، په دې وخت کې یې خپل مشر ورور ته اجازه ورکړه چې په کابل کې پاته شي، نه د هغه تر څارنې او نظارت لاندې.

کوم شی چې د آرام عنایت الله د قهر محرک کیده، شیراحمد وه چې د شورش په وخت کې د بهرنیو چارو د وزیر کفیل و. په پغمان کې د کوترو د ویشتلو په هواخورۍ کې، عنایت الله ادعا وکړه چې یوه مرغۍ زخمي کړې ده. شیراحمد ورته وویل ته دروغ وایې. هغوی یو بل ته سره سخت وویل که څیرې دوستان دوې سره بیل کړي نه وای نو جنګ به یې سره کړی وای. وروسته د هغوی قضیه محلي محکمې ته راغله، مګر تر هغو فیصله ونه شوه چې د کورنی اغیزې یې ګټیورې واقع نه شوې، ځکه څو میاشتې وروسته د محمود طرزي کشرې لورې په هغه وخت کې چې د یو رسمي کنفرانس نندارچې وه، ناڅاپه یې په خپل جګ غږ سره کنفرانس

گډوډ کړ، چی زما او زما د کورنی له پاره مرگ تر دی بهتر دی چی عنایت الله د شیراحمد له خوا توهین او تحقیر کیږی.

هغه چا چی شیراحمد ته د عبرت درس ورکړ، علی احمد و. د امان الله د غه ځلیدونکی د اکا زوی، چی غټ غټ بریتونه یی درلودل، په یو بل کنفرانس کی خپله نظریه په ډاگه د شیراحمد په مخ کی څرگند کړ. هغه وویل چی شیراحمد د وژلو لایق دی، او هم یی هیله وکړه چی باید په لنډه موده کی ووژل شی.

علی احمد د روسانو او برتانویانو په دواړو نمایندگیو کی شهرت درلود. د دواړو نماینده گیو پر مکرر ملاقات کولو باندی هر نفر یو شان څرگندونه درلودله. وارد کړی شوی ویسکی، چی د هغه مینه ورته افسانه امیزه وه، په هغه ځای کی ورکول کیده. له دغو نماینده گیو څخه به هر یوه چی خپله یوه یی په کار اچوله، داسی عقیده درلوده چی بله نماینده گی ورته د څه له پاره دعوت ورکړی دی، ددی له پاره د شرابو په جامونو کی ورڅخه معلومات ترلاسه کړی.

یو سړی چی علی احمد ورسره هم ذوق نه و، امان الله و. دوی له کوچنیوالی څخه یو له بل سره مخالف وو، او دا اوازه هیڅکله ریښتیا نه شوه چی امان الله غواړی علی احمد ووژنی. مگر د اکا دا مشر زوی خپل مخالفت بی پټ نه کړ چی نه غواړی کشر د امیر په توگه ومنی. د مثال په ډول، په یوه تپولنیز مراسم کی امان الله ټولو ته وویل چی د شپی لباس واغوندی، علی احمد د ښکار په پتلون او په یو وړین جاکټ کی څرگند شو. دا یوه ریشخندی وه، مگر د امان الله سلطنتی مقام له دی وضعی څخه متأثر نه شو.

دواړو په ۱۹۲۷ کال د عیدگاه په مسجد کی د کمکی اختر د لمانځه د ادا کولو په مراسمو کی گډون وکړ چی د برتانیی نظامی آتشی په دی مورد کی داسی وویل:

«داسی توقع کیدله چی امیر به ارگ څخه پلی راغلی وای، او تقریباً د یو نیم میل په اندازه پر سرک باندی په مختلفو فاصلو کی غیر وسله وال پولیس چی یوازی پولیسی ډنډی ورسره وی او سری قرمزی دریشی گانی یی په تن کی وی درول شوی وو.

«په پخوانی مخصوص ځای کی یو شمیر دیپلوماتان د پاچا د رسیدو له پاره سره راټول شوی و چی ډراماتیک معلومیدل. د قوی موټرانو غږ، چی د سپین زر په شان ځلیدل، تر غوږ شو او غازی پاچا چی خپل رالز رایس (Rolls Royce) موټر چلاوه راغلی و او بیرته تلی و. مې وروب چی ویسی (Mume Vorobchievieci) د ملکی گنډونکی وویل، الیویټ پیور

(Ilavait Peus) هر شی چې له دې څخه استنباطیږي، د ملکې د شان او موقف سره مناسب نه و.

«سره له دې چې په دې شیبه کې پاچا بیخي یوه مشهوره څېره نه ده، ددې امکان زیات دی چې هغه یا ناروغ و او یا تر فشار لاندې و. د شرقیانو دا بې کفایتي چې د یوه شهزاده د وخت پېژندنې له صفت څخه قدرداني کوي، واقعاً د خندا وړ ده او سردار عنایت اللّه چې د هغه د معین السلطنتی لقب سرې دې متوجه کوي چې هغه د پاچاهي وارث دی، ددې عمل ثبوت دی. هغه په یو موټر کې چې دوې چوکۍ درلودې د لوېي په منځ کې راورسید، حال دا چې حبیب اللّه طرزي د بهرنیو چارو د وزارت مامور په ګاډي کې د لوبې له ختمیدو څخه څو دقیقې وروسته راغی.

«مراسم که څه هم لنډ وو، بیا هم بې تاثیره نه وو لکه چې د شاهانه غږ په څواب کې پنځه زره تنه چې ترشا ولاړ وو، په یو آواز سره چې د حضرت پیغمبر (ص) د صداقت او راستې چغې وهلې. سړي داسې انتباه اخیستله چې که دا چغې دمخه غلې شوې نه واې، نو په نتیجه کې به ممکن د افغانستان له پاره یوه آینده په فکر کې وه.

«دا چې پاچا په رښتیا سره عصباني و، معلومه نه وه، ځکه چې هغه په بیرته راتګ سفر کې لا هم په خپل موټر کې و، چې هغه بې په کراري سره په یوه مزدحمه شاهراه کې واچاوه. که هغه د کوم خطر پیشګویي کړې واې، نو دا هوښیاري به یې کوله چې د موټر د چلولو اجازه بل چا ته ورکړې واې، ځکه یو موټر چې د یو په چرت کې ډوب پاچا له خوا وچلول شي او له خپلې اصلي مسیر څخه انحراف وکړي، مسؤول ګڼل کیږي. هر څوک د هغه په لیدو باندې خوشال معلومیده، چې هغه بې لیدل چې خپل لاسونه د خپل رعیت د هرکلي کولو په مقابل کې په آزاد ډول ښورول.

«دغه بریالي وتنه بیا هم د کابل د والي شهزاده علي احمد خان له خوا تر شعاع لاندې واقع شو، چې پر یو ښکلي ځلیدونکي تور جنګي اس باندې سپور و، چې د اس ښکلا د هغه د خاوند د غټو بریتونو سره رقابت کوله شو او د منځنی غرور یې په بشپړه توګه منعکس کولې شو او پداسې باندې سست او پر کاله نه معلومیده.

«په دې ډول وه هغه پرده، چې د لوبې له پاره تیاره شوې وه او تر هغه وروسته د ګومارل شوو کسانو مختلف منظم صفونه تیر شول او ژر په هغه ټولنه کې ورک شول، چې ځلیدونکې

جـامی یی درلودی او د هغـوی خـوشـالی ځـیـری ددی زره وهونکی مـارش په باره کی داسی بریښیدی لکه چی یوه بله روژه یی تیره کړی وی. »

بیا هم په بل وخت کی علی احمد امـان الله تت کړ: د برتانیی په نماینده گی کی د اور پر مړ کولو باندی. امان الله غوره وګڼله چی په بدله جامه هلته لاړ شی څو ونه پیژندل شی. علی احمد له ځـان سره د سپرلی متروکـه راوړی وه. په کـابل کی داسی رواج و چی که په کومه مانیی کی بـه اور لګیـده، نو یوه جنایتکاره ډلـه بـه منډی وهلی چی کـه کـوم شـی پاته وی هغـه لوټ کړی. په هغـه وخت کی چی د نماینده گی په مانیی کی چی په یو وخت کی د عبدالرحمن خان د هرکلی کـولو سـالون و، او د ډیورنډ مـعـاهده هم هـمـدلتـه لاسلیک شـوی وه، د اور لمبی اوچتی شوی، یو لږ شمیر افغـانانو داسی هلی ځلی وکړی. علی احمد په خپلی سپارلی متروکه برید وکړ او لوټ کوونکی یی په ځمکه وویشتل. دی په هغه ځای کی ډیر نامی سړی و.

د نظامی آتشی ډبلیو. کی. فراسر تایلور (W.K. Fraser Tylor) په راپـور کی د اور په باره کی داسی ویل شوی وو: « بارټون فون کالټنبورن (Barton Von Kaltenborn) چـی افغانی حربی ځانګی ته استخدام شوی و، د شاهی حکومت یو زړه ور پلی دی او نه غواړی چی د خپل هیـواد جـمـهوری نظام لاندی ژونـد وکـړی، هغـه د خپلو اصـولو او درو ایرن کـراسس (Irron Crosses) [1] د خـاصـو مـرامـونو پیـرو و او د پاچا او ملکی مکمل پورتیریتونـه یی ساتلی وو چی په دی کار سره زیات شخصی خطر هم ورته متوجه و.

« له اور څخه یو د کرسمس کیک، دولس بوتله شامپاین او شپږ دیرش بوتله ویسکی خوندی پاته وو. »

علی احمد د کابل والی و. دا هغه وظیفه وه چی امان الله له دی وظیفی څخه پاچاهی ته خیز وهلی و. هغه د خپلی انتخاباتی حوزی له پاره له همغی علاقی څخه کار اخیست چی امان الله یی تشویق کړ، چی د ښه نیت احتیاطی عسکرو ذخیره جوړه کړی، چی د بحران په وخت کی یی وغواړی. هغـه بـه په ښار کی تل ګزمـه ګرځیـده او اعلان به یی کاوه چی هرڅوک کـه د مامورینو د فساد په مورد کی اثباتیه شواهد لری ورته راپور دی ورکړی او دی به شخصاً له هغه څخه وارسی وکړی. په اوونی کی به دوه ځلی د اوړو تاجران، قصابان او نور به یی راغوښتل او

---

۱ - د بالتیا د هیواد د اوسنی هغه صلیبی ډوله شکل چی یی په څنډو کی سپین زر کار شوی و او د جرمنی له خوا هغو کسانو ته ورکول کیده چی په جنګی کارو کی یی پوره مهارت درلود.

د مستهلکینو د خوشالتیا په خاطر به یې نرخونه ورسره سمول. هغه ددې همدردۍ په درلودلو سره مشهور شو.

علي احمد کټ مټ د امان الله په شان عمل کاوه، نو طبعاً زیات وخت نه و تیر شوی تر هغه چې یو استخباراتي راپور داسې وویل: «علي احمد د امیر بدګوماني راپورته کړې ده.»

نورالسراج په ۱۹۲٦ کال د اکتوبر په میاشت کې له حسن جان سره نامزده شوه. د امان الله د نولس کلنې خور د نامزادۍ مراسم په افغانستان کې ځکه بې ساري و چې بېخي یو متمدن مراسم و. هیڅ یو ملا په کې ګډون نه درلود.

د واده په مراسمو کې د واده والاو اهمیت (د زوم اهمیت) لږ وښودل شو. یو افغاني واده، ددې سره سره چې ښځې د خپل ټولنیزې غریزې له مخې ځینې هیلې لري، په نارینه و پورې اړه لري. زوم د واده په مناسبت یوه میلمستیا ورکړه چې ددې میلمستیا ټولنیز اهمیت د هغه له ټولنیز دریځ څخه څرګندیده.

د خوښۍ ددې مراسمو د تجلیلولو په خاطر ټولو هغو کسانو ته چې په همدې ورځ باندې ودونه کړي وو، تحفې ورکړې شوې. دې کار په زوم پورې اړه نه درلوده چې د هغه شاهي نسبت د هغه د پیژندل کیدو باعث ونه ګرځید، مګر هر شي د پاچا پر وړوکې نازولې خور پورې اړه درلوده. په خپله د واده مراسم د لویدیځو هیوادونو د ودونو په شان وو، په کوم کې چې زوم اصلاً بې ارزښته وي. نورالسراج یو تیر ایستونکې حجاب پر مخ اچولې و او یو سپین اوږد کمیس یې اغوستې و چې یوه رومانیایي ګنډونکې مېمې وروب چې ویس (Mme Vorobchievieci) چې د دربار ښځې ورته مېمې زیزي (Mme Zizi) ویل جوړ کړې و. دا په کلي توګه د نورالسراج واده و، نه د حسن جان.

ددې واده په میلمستیا کې یو غیر مریي موجود وجود درلود، چې هر یو ورباندې تبصرې کولې، سره له دې چې شاهي کورنۍ آګاهي نه درلوده. له میز سره یو خیال وجود درلود، د خیالونو ټوله کورنۍ، د نادر په مشرۍ د مصاحبان کورنۍ، چې هاشم ورور یې هیله درلوده له نورالسراج سره واده وکړي.

نادر چې په پاریس کې وزیر مختار و، د ۱۹۲٦ کال په مني کې یې استعفا وکړه. هغه د خپلې استعفا علت ناروغي وښودله، هغه د توبرکلوز د علاج له پاره سویتزرلیند ته لاړ، او خپل هیواد ته د بیرته راتګ په باب یې څه ونه ویل.

هاشم په روسیه کی وزیر مختار و، لیکن تقریباً په همدی وخت کی تهران ته تبدیل شوی. هغه غوښتل د مخه تر دی چی خپله نوی وظیفه اشغال کړی، کابل ته راشی. امان الله ور ته اجازه ورنه کړه، مگر رخصت یی ورته ورکړ چی له نادر سره په سویتزرلند کی وویني.

د کورنی ځینی کسان یی په افغانستان کی پاته شول، مگر د نورالسراج په واده کی چی په یو وخت کی رسماً د هاشم له پاره په نظر کی نیول شوی وه، او اوس د حسن جان ناوی شوه، یو هم حاضر نه شول.

په همدی وخت کی د دی کورنی فعالیتونه چی برتانویانو ته معلوم و، لکه «نادر او د هغه ډله» په لندن کی د علاقی موجب وگرځیدل.

په ۱۹۲٦ کال، د جنوری په لسمه نیټه نادر له سر ریچارد هاکسن (Sir Richard Hodgson) سره چی په روسیه کی د برتانیی مختار وزیر و، او پاریس ته په رخصتی تللی و، وغږید. هغه غوښتنه وکړه چی که دا زمینه ورته برابره شی، چی د «هند د اداری ځینو اعتمادی نفر» ته خپل نظر وړاندی کړی. دده نظر یی داسی وی چی د برتانیی یو قوی متحد او د روسیی ضد شی. هغه وویل زه او زما ورور هاشم، چی په روسیه کی مختار وزیر دی، او زما هم مفکوره دی، ژر کابل ته غوښتل کیږو.

«زه فکر کوم زموږ موجودیت په کابل کی ضرور دی. زه کوشش کوم له هر امکان څخه استفاده وکړم. څو له برتانیی سره د تفاهم زمینه برابره کړم، چی په کی زه بوازی د افغانستان د خپلواکی تضمین وینم.»

وروسته نادر وویل: «په سرحدی سیمه کی د سرحد د تاکلو دوستانه ترتیب او تنظیم به یوه قوی مرسته وی، په دی چی یو طبیعی سرحد د ډیرو مناقشو علتونه له منځه وړی.» هغه د کونړ سیند د سرحد په توگه پیشنهاد کړ، چی د افغانستان په لگښت به د برتانیی د سیسی په خاوره کی گډ شی.

دا لومړی ځل نه و چی نادر هڅه کړی و، د برتانیی د بهرنیو چارو د اداری له ځینو غړو سره خبری وکړی. په ۱۹۲۵ کال کی د می په ۱۳ نیټه ډگروال ای ډی انریکویز (E.D. Enriquez) یو متقاعد هندی صاحب منصب، چی نادر یی هم په کاپور تالا کی، چی هلته ډگروال د مهاراجانو د زامنو عهده دار و، او هم یی په پاریس کی لیدلی وو او ورسره یی ملاقات کړی و. انگریز چی د نادر په نماینده گی عمل کاوه، د بهرنیو چارو د اداری او د نادر

ترمنځ د یو ملاقات غوښتنه وکړه. دا د ټول پروتوکول سپکاوی و. د انګلیس او افغان د موضوعاتو د بحث کولو له پاره صحیح طرزالعمل د لندن او کابل د محترمو وزیرانو او په خپله د حکومتونو خبری کول و. یوه میاشت وروسته نادر به پاریس کی د برتانیی له سفیر لارد ګریوا (Lord Greve) سره په افغانستان کی د برتانیی پهٔ مصرف، د اورګاډی د تاسیساتو د جوړولو په باره کی خبری وکړی، داسی معلومیده چی هغه د امان الله خبرو اترو څخه چی یی د سرکونو په باره کی له همفریز سره کړی وی، خبر نه و. نادر له برتانیی سره د دوستی د پالیسی په هکله وویل: «افغان حکومت په ریښتیا سره ډیر ناتوان دی، چی په خپله دا کار وکړی.»

له هاګن سره، پر دغو پیښو پوری تړلی، د نادر د خبرو راپور ددغه لاندی مکتوب څرګندونه وه، چی د هند د حکومت د بهرنیو چارو د سکرتر سر ډینس بری (Sir Denys Bray) له خوا لیکل شوی و.

«په لحاظ زه په خپله فکر کوم دا مشکله ده چی په پاریس کی د نادرخان دغه خاص خبری اتری له هغو ډیرو مهمو پیښو سره ارتباط ورنه کړو، چی موږ په هغه مورد کی څه معلومات لرو، چی هغه خبری اتری په مسکو کی د سوکرمان (Tsukerman) او د یو مرموز او څرګند لوړ مقام افغان ترمنځ په ۱۹۲۵ کال، د دسمبر د میاشتی د ۱۳ نیټی څخه په دمخه وختو کی شوی وی. په دواړو خبرو اترو کی د کابل د ناکراری او ناآرامی په باره کی زیات ویل شوی دی. هاشم خان (په دی چی نورڅوک مرموز شخصیت کیدی شی؟) د امیر په باره کی زیاتی خبری وکړی، د خپل ورور په باره کی یوه خبره هم ونه کړه. هاشم تقریباً د خیانت آزادی خبری وکړی او د یو شورش په منځ ته راتلو کی د روسانو د بی طرفی له پاره هغه وسیله له منځه یووړله چی د خلکو د نظریو او رایو د معلومولو په خاطر ورڅخه کار اخیستل کیده. زه دا منم چی نادر په دی مناسبت هیڅ کومه ښکاره خبره ونه کړه، خو بیا هم هغه زموږ د حمایی له پاره یو ډیر قاطع امر وکړ، او کوم افغان به ددی په غیر چی موږ به کومه کودتا کی حمایه کړی، دومره وران خیالات ولری، چی تجویز ونیسی چی د خپل خدای ورکړی هیواد افغانستان یوه لویه تږته مونږ ته راکړی؟»

د ۱۹۲۶ کال په اګست کی هاشم ته یو کال رخصت ورکړ شو، چی له ناروغ نادر سره واوسی.

هغه په خپله د برتانیی سفیر هاکسن ته وویل چی د افغانی چارو کومیسار «چی زما په موجودیت کی هغه ښه اداره کولی شی، ما ته د یو دښمن شخصیت په سترگه گوری.»

هاشم، هاکسن ته نوری زیاتی خبری هم وکړی.

هغه په نژدی راتلونکی کی په افغانستان کی د یو انقلاب پیشگوی وکړه.

هغه وویل: «دا احساس په زیاتیدو دی چی امیر چی بیا په بیکاری اخته شوی دی په دی باندی قادر نه دی چی تصمیم ونیسی، او بی له کوم تدبیر څخه د روس تر اغیزی لاندی راغلی دی او د خپل هیواد د خیانت په مسیر کی قرار لری... زه په خپله به د یو تحول هرکلی وکړم، ځکه زه په دی باندی قانع یم چی اولس درک صحیح درک دی، او هم دا چی که په موجوده رژیم کی د اساسی بدلون راوستل له ناکامی سره مخامخ شی، نو د روسیی د نفوذ مرحله به ظاهره نه شی.»

هغه هاکسن ته مشوره ورکړه چی د هغه له جانشین سره دی د سری موضوعاتو په مقابل کی بحث وکړی.

ددی مباحثی موضوع د اولسونو سرنوشت و. اما دغه بحث د وخت په لحاظ د کابل هغی پیښی ته ډیر نژدی و چی په خالصه توگه یوه شخصی پیښه وه. یوه نولس کلنه نجلی د واده په سپینه جامه کی او یو زوم چی هغه هاشم نه و. یغمان په ۱۹۲۷ کال کی چی د جشن صحنه وه، په دی وخت کی له ختیو څخه جوړ شوی تیت او پرک کورونه ددی پرځای چی د یو افغان ښار په شان معلوم شی، د اروپایی ښار په شان معلومیده او د اروپایی ښارونو خوند ورڅخه اخیستل کیده. که یو نفر له یوی جگی غونډی څخه لاندی خواته نظر اچولی وای، سمدستی په دی باندی پوهیده چی امان الله دا ودانی منځته راوړی دی. دا تعمیرونه غټ او لوی وو، زیاتره له لرگو څخه وو، مربع شکله وو، ټولو برنډی درلودی او په یوه نقشه جوړ شوی وو. پارکونه، د گلانو ځایونه او باغچی یی درلودی چی په منظم هندسی شکل تیار شوی وو، په پارکونو کی مجسمی هم لیدل کیدی چی د رومیانو او گریکانو خاطری بیا ژوندی کولی. د موزیک د ډلی ل له پاره هم خاص ځایونه جوړ شوی وو. نوی هوټل، چی د بهار په نوم یادیده، د مخه تر دی چی افتتاح شی، یو بریالیتوب و او هره کوټه یی د جشن له پیل کیدو څخه یوه اونی دمخه اشغال کیدله. امان الله چی ډیر خوښ و، چی پنځوس زره روپی یی ورکړی، چی د هوټل له پاره ظرفونه واخیستل شی، هره ورځ به د غرمی ډوډی هلته خوړله.

ثریا، حاضره شوه او په هغه وخت کی چی د افغانانو او د برتانیی د نمایندګانو ترمینځ د خرو کوترو د ویشتلو لوبه یی ننداره کوله، نودی هم راوپاریدله چی تو پک را واخلی او په کی ګډون وکړی. دا ډیره موفقه وه.

کله چی امان الله بیانیه ورکوله، نو داسی کار یی وکړ چی په افغانستان کی هیڅکله نه و شوی. هغه ښځو ته چی په یوه خاصه ساحه کی ګوښه کړی شوی وی مخ واړاوه او په مستقیمه توګه یی هغوی مخاطب وګرځولی. امان الله له هغو سره د وظیفو په مورد کی وغږید، چی د اولس او راتلونکی نسل په خاطر ور په غاړه وی او هم د ماشومانو د روزنی په برخه کی هغوی خپلو مسئولیتونو ته متوجه کړی شوی.

وروسته امان الله د آرت او هنر نندارتون پرانیست او ویی ویل: «څو کاله دمخه د افغانی محصولاتو د غه نندارتون پر یو میز باندی ځای په ځای کیده، سږ کال دا محصولات په یو مناسب کور او د هغه پورغولی او حویلی کی ایښودل شوی دی. په لنډه موده کی به د محصولاتو د نندارتون له پاره کوټی په کار شی... بهرنی هیوادونه اوس د افغانی سامانونو د تولیدولو تقلید کوی، چی دا به په خپل ذات کی د افغانی محصولاتو او د هغه د تقاضا عالی ثبوت وی.»

که څه هم دا جشن د قناعت وړ و، خو د نورو کلونو په شان نه و. امان الله ډیر شیان په فکر کی درلودل.

هغه آماده ګی نیوله، چی بهرنی لویدیزی نړی ته لاړ شی. د هیلو او امیدونو خاوره به له هغه شی ځخه زیات شی، چی آوازه یی خپره ده.

# اولسم فصل

# ۱۹۲۷ع کال

هغه هیواد چې امان الله ته یې لومړی رسمي بلنه ورکړه، ایتالیا وه، چې دوه کاله د مخه د امان الله مناسبات ورسره دومره وران شوي و چې نژدې و اړیکې یې بیخي سره وشلیږي.

بل هیڅ کوم افغاني پاچا په یوه اروپایي هیواد کې پښه نه وه ایښې، له سفر څخه د امان الله د دوو تنو اسلافو د انکار وجه دا وه چې هغوی ویریدل، تاج او تخت به ورڅخه پاته شي.

د هند حکومت وویل: «د داخلي حالاتو د ثبات له پاره د امان الله نوي پریکړه د هغه د زړه ورتوب او هم د هغه د شخصي موقف څرګندوي. موږ باور لرو چې د هغه زړه ورتوب په راتلونکې کې هم بې ځایه نه دی... »

د ۱۹۲۷ کال د سپتمبر په ۲۲ نیټه، په لندن کې افغاني مختار وزیر شجاع الدوله، چې په دې وخت کې د استخباراتو مدیر او د امان الله خان زوړ ملګری و، د لندن د بهرنیو چارو دفتر بې خبر کړی و چې امان الله د دسمبر په نیمایي کې د لندن د لیدو کتو له پاره خپل هیواد څخه روانیږي. د زیاتو هیوادونو په پایتختونو کې د مسکو په شمول، افغاني مختار وزیران همدا ډول اعلامیې خپرې کړې.

د هند حکومت په دې باره کې لیکلي دي: «په مجموع کې دا به زموږ په ګټه وي، ځکه چې دا له پاچا سره د پاچا د ملاقات موضوع ده. »

اوس امان الله په ریښتیا سره یو پاچا و، امیر نه و. د ۱۹۲۶ کال په جون کې هغه ځان ته نو لقب ټاکلی و، چې په عصري نړۍ کې ډېره پرمعنی وه او برتانیې، چې د هغه دورې په پیل

کی پردی لقب «ستاسو اعلیحضرت» باندی مناقشه کوله، اوس دا لقب ورته بو عادی موضوع معلومیدله.

نه لندن او نه مسکو د امان الله لیدنه کتنه په نیک شګوم وګانه، او روسیی موافقه ونه کړه. مګر هر یوه دی ته متوجه و چی دهغه بل په هیواد کی څه پیښیږی. دغه کنجکاوی ډیره شدیده وه څکه په هغه کال د می په میاشت کی یوه پیښه سرته رسیدلی وه. د سکاتلیند د اورګاډی د محوطی کارکوونکی په لندن کی یو دفتر ته په ٤۹ مورګیت کی ننوتل او داسی شواهد یی پیدا کړل چی روسان چی په ظاهره کی تجارتی چارو ته ګومارل شوی وو په حقیقت کی جاسوسی کوله. لویه برتانیا له روسیی سره سمدستی سیاسی اړیکی وشکولی.

د اړیکو دا شکونه دری کاله دوام وکړ، او په دی وخت کی په لویه برتانیی کی کارګری حکومت په قدرت کی و، بالشویکی حکومت یی د روسیی د یو حقیقی حکومت په توګه په رسمیت پیژندلی و. د هند حکومت اټکل کړی و چی دا نوی دوستانه اړیکی ممکن افغانستان ته د «ساختګی اهمیت» ارزښت ولری. همفریز د بهرنیو چارو د وزارت سکرتر سر استین چمبرلین (Sir Austin Chamberlan) ته داسی لیکلی وو: «دا د افغانستان د پیاوړو ګاونډیانو د ګتیو ټکر دی، چی افغانستان خپل بین المللی اهمیت ترلاسه کوی. که چیری افغانستان له شمال لویدیز لوری د ارکتیک د بحیری په واسطه محاط وی، نو دا به تش یو بی ارزښته نوی خپلواکی ته رسیدلی یو هیواد وی، چی د انګلستان د حکومت د توجه وړ به نه وی.»

مګر افغانستان د شمال لویدیز لوری له روسیی سره هم سرحد و، چی دا د ۱۹۲۵ او ۱۹۲۷ کلونو په مینځ کی لویه برتانیی ته لږ نه بلکی زیات د خطرونو اسباب برابر کړی و. څینی پیغامونه چی د هند او انګلستان ترمینځ په ۱۹۲۵ او ۱۹۲٦ کلونو کی سره تبادله کیده، په دی ډول وو:

«دا موضوع په لومړی درجه اهمیت لری چی امیر په خپله تاج او تخت وساتلای شی. هغسی چی دی د قناعت وړ سړی نه دی، بل کوم بهتر نفر هم شته چی کاندید وی، او بالشویکان هم د یو انقلاب له پاره فعالیت کوی.

«دلته هر دلیل د منلو وړ دی، چی د روسیی خطر مخ په زیاتیدو شی.»

«د روسیی د نماینده ګی وروستنی غړی دی وختو کی په کابل کی زما ایتالوی همکار ته

ویلي دي چې په افغانستان کې د روسیې سیاست د «انقلاب» په ساده عبارت خلاصه کیدی شي.»

همفریز د ۱۹۲۵ کال په جون کې لیکلي دي: «زما په نظر خطر موجود دی، که زموږ کړه وړه افغانانو ته ساړه وي، نو هغوی به دا څوړند شي پریږدي، چې ډیر لیری د روسیې په خاطر وځنګیږي...»

په ۱۹۲٦ کال د اګست د میاشتې په یو د یرشم تاریخ امان الله له روسیې سره یو نوی تړون لاسلیک کړ. په راتلونکې اوونۍ کې هغه له همفریز سره په یوه شخصي کوټه کې ملاقات وکړ، چې نور هیڅوک ورسره نه و او هغه ته یې ډاډ ورکړ چې دده دا تړون د برتانیې د منافعو پرخلاف نه دی. هغه یوه ضمني پیښه یاده کړه چې له دا ضمني پیښه د افغانانو د نظریو څوړنده رقاصه استولې وه چې له روسیې څخه لیرې ځنګیدله د آمو په سیند کې د اور تاتاګای (Urta Tagai) نیول د روسیې عسکرو له خوا وه چې د افغانستان جز و. په پای کې روسانو هغه تخلیه کړه خو یوازې له زیات تریخوالي وروسته.

امان الله وویل «زما سترګې د ارتاتاګای د پیښې په مناسبت د روسیې ژر زیاتیدونکي نفوذ ته خلاصه وي. فکر کیږي چې په دغه وسیله یوازې غواړي افغاني سیمه د روسیې له زیات تیرې څخه وساتي، دا کار تر یوې اندازې پورې د کاغذ پر مخ د موافقې له مخې امکان لري.» هغه د معاهدې په مورد کې د همفریز نظریه وغوښتله.

«زه فکر کوم چې یوازې هغه شي چې نتیجه یې له روسیې سره د نوې معاهدې امضا کول وه څرګندوي چې ستاسو اعلیحضرت له هغه روش څخه راضي دي، چې په هغه کې شورویانو د پخواني تړون شرطونه په نظر کې نیولي دي.»

امان الله له خپل ځوکۍ څخه په توندۍ سره جګ شو او په کوټه کې ښکته او پورته یې قدم وواهه، او د روسیې د ۱۹۲۱ کال د معاهدې د رعایت د ناکامۍ په باره کې داسې احساساتي ډوله خبرې یې وکړې: «زه خبر یم چې شوروي نماینده ګان هڅه کوي چې انقلابي دوکتورین زما په خلکو کې خپور کړي، او زه دومره ړوند نه یم چې فرض کړم یو کمونیستي حکومت هر شی کیدی شي، خو زما او زما د تاج او تخت دښمن نه شي کیدی.»

همفریز پوښتنه وکړه: «روسي پرسونلونه د خپلې قوې د یوې برخې د ورسپارلو د پخوانۍ تجربې امتحان کولو ته ولې ادامه ورکوي؟ تر اوسه پورې افغاني الوتکې د روسیې پیلوټانو په

واسطه په کار اچولی کیږي. نوري روسيي الوتکې هم رارسيدلي دي، چې دا پیلوټان د کابل ښاريان راوبلل، چې د مراسمو په ترڅ کې په دې الوتکو کې پرواز وکړي، او همفريز چې د چا ورته پام نه و، پر اس باندې سپور و، ددې پروازونو ننداره يې کوله.

امان الله خان وويل: د افغانستان له پاره الوتکې يو ضرورت دی او ما ونه شو کړی چې پرسونل او یا د هغه سامان له کوم بل هیواد څخه لاس ته راوړم. که ته يوازې دومره راته ووايي چې زه د هغوی د وظيفې د اجرا کولو تضيمن څنګه وکړم، نو تر هغه چې ځوان افغانان د برتانيي او يا نور بهرني پرسونل له خوا وروزل شي، زه به په خوښي سره د خپل هوايي قواو اداره له سره جوړه کړم او په راتلونکي کې به د روسانو له احتياج څخه خلاص شم...»

«دا په پرله پسې توګه زما په مغزو کې کښينول شوي ده، چې افغاني هوايي قوا یوه نظامي قوه ده. که چيرې برتانوي پیلوټان ورته ورکول کیږي او داخلي جنګونه په افغانستان کې بيا پيل کيږي، ستاسو اعليحضرت به په يقين سره احساس وکړي چې تاسو اعتبار له لاسه ورکړی دی که چيرې پیلوټان پر افغاني شورشيانو باندې د بمونو له غورځولو څخه ډډه وکړي او دا هم لا يقيني نه ده چې د برتانيي حکومت هغوی ته اجازه نه شي ورکولی چې په داسې جګړه کې برخه واخلي. که چيرته ستاسو هوايي قوا مازې د ملکي هوانوردی له پاره په نظر کې نيول شوې واي، موضوع بيا فرق کاوه.»

همفريز مشوره ورکړه چې سويس او بلجيمي پیلوټان به دغسې موانع ونه لري.

امان الله وويل لګښت به مانع وګرځي «که څه هم روسي پیلوټانو ته افغاني حکومت معاش ورکوي، هغوی د بهرنيو نورو پیلوټانو په مقايسه په ډير لږ معاش قانع دي.»

همفريز وويل: «اجازه راکړه چې خبر درکړم چې هغه کم عقل سړی چې د نورو د ګټو په فکر کې وي، تاوان کوي. آيا خبر يې چې د روسيي پیلوټانو د معاش يوه برخه په منظمه توګه د انقلابي پروپاګند له پاره بيله ايښودل کيږي؟» امان الله دا شي اوريدلي و او بيا يې وويل چې روسي پیلوټان به څومره ژر چې امکان ولري ايسته کړل شي.

همفريز پوښتنه وکړه: «آيا د کابل دا آوازه حقيقت لري چې په لنډه موده کې په هيواد کې د شوروي حکومت د اجنتانو له شبکې سره په هيواد کې يو روسي بانک تاسيسيږي؟ د همفريز حکومت له پاره دا خبره دومره ربړونکې وه چې د دهلي په فرمان تأسيس شوي بانک يې تشويق کاوه چې افغانستان ته د متقابل عمل په توګه يو پيشنهاد وړاندې کړي.

امان الله دا نظریه یوه ریشخنده نظریه وګڼله، چې ممکن د افغانی تجارت کنترول د روسانو په لاس ورکړي.

همفریز تینګار وکړ: «داسې ښکاري چې د روسانو یوه ډله په دې وروستیو کې د سړک او تلګراف د ساختمان له پاره آزاد پرېښودل شوي دي. دهغوی فعالیتونه دي باید تر دقیقې څارنې لاندې ونیول شي.»

امان الله پیشنهاد وکړ چې د تلګراف و سړکونو د جوړولو کار دې برتانیې ته ورکړل شي.

د مخه تر دې چې دواړه سره بېل شي، امان الله وویل: «هرڅه چې په ظاهر کې داسې څرګند شي چې هغه زما هدف وي، زما ثابته پالیسي دا ده چې ځان د انګلستان خواته نژدې کړم. په دې شرط چې هغه ماته ددې کار په کولو اجازه راکړي او له روسیې سره به صرف د ګاونډي توب ښه شرطونه په نظر کې ونیسم.» په هغه جمله کې د هغې وعدې انعکاس موجوده وه چې د هغه پلار ورکړې و او هغه بې د عمومي جنګ په وخت کې ساتلې وه چې خپله دوستي که ظاهرداري هم وي، وساتي.

هغه زیاته کړه: «زه ډېر خواشینی یم چې د دوستي د پرمختګ په باره کې د برتانیې ځواب له هغه څخه هم زیات بې خونده دی چې ما پیشګویي کړې وه...»

«زه له هغې ټینګې عقیدې څخه نښم تېر یدی چې تاسو له شورویانو سره په یوه خطرناکه لوبه لاس پورې کړي دي.»

په حقیقت کې برتانویانو تصمیم درلود چې د روسیې په ضد د افغانستان له پاره د مرستې پیشنهاد وکړي، لیکن دومره په زیره کې او دقت سره چې امکان یې درلود. هغوی به نقدي مرستې نه کولې چې ممکن په هغو لارو لګېدې چې د مرستې ورکوونکي له پاره د منلو نه وي. یوه تحفه چې معلومېده په کې کومه نیمګړتیا نه لیدل کېده، د کابل نه تر خیبره پورې د جلال آباد له لارې د سړک جوړول و.

ددې کار له پاره امان الله یو کال د مخه غوښتنه کړې و، او داسې ویلي وو:

«هر مسافر چې د هند له سرحد څخه تېرېږي او افغانستان ته داخلېږي، د سړک د زیات خرابوالي له امله له ستونزو سره مخامخ کېږي. زما د هېواد د احترام په خاطر او د تجارت د پراختیار په منظور دا ضرور ده چې د خیبر نه تر کابل پورې سړک جوړ او بې له کوم ځنډ څخه سم شي. یوه موجوده حالاتو کې یوه نوې لارې د شپږو میاشتو په موده کې د اوسپنو په تو تو

بدلیږی او ګړندی موټران چی په یوه ګیلن تیل باندی باید شل میله یله واټن ووهی په سختی سره کولی شی چی پر دی سړک باندی پنځه میله لاړه شی. »

برتانویانو وروسته له ډیرو تلګرامونو، لیکونو او کنفرانسونو، موافقه وکړه چی کټ مټ هغسی اجراات وکړی چی امان الله غوښتل. په حقیقت کی هغوی صرف هغه ډول مرسته لکه چی د هغه پلار او نیکه ته یی ورکړی وه او فقط لکه چی روس وعده کړی وه، لیکن په تیت او پرک توګه یی ورکړی وه.

اما هغوی دا مرسته له هغه ځخه پټه ساتله. هغوی د افغانستان له پاره د شپږ سوو زرو روپیو کلنی مصرف ټاکلی و، مګر د دی پر ځای چی دا پیسی په منظم ډول یی نقدی ورکړی وای د تحفو په ډول به یی هر کال ورته لږ لږ ورکولی. امان الله باید دی ته نه وای حاضر شوی چی په دی ډول یی هغه پیسی اخیستی وای.

د نوی سړکونو پروژه د برتانوی انجنیرانو له خوا د سروی تر حده پوری پر مخ لاړه. لیکن د امان الله کونسل تحفی ونه منله چی په هماغه ترتیب سره ورکولی کیدی. هغوی تولی پیسی نقدی غوښتلی چی دوی یی په خپله مصرف کړی. برتانویانو ونه منله. هغوی دا وضعه د امان الله د وزیرانو د رشوت خوری او هم د محمدولی او محمود طرزی حمایی ته په دی مفهوم نسبت ورکاوه چی د هغوی موقف هغوی ته لږ چانس برابر کړی و.

کله چی احوال راغی چی امان الله د اروپا د سفر پلان لری، داسی معلوم شو چی له هغه بی ارزښته او سوه زره روپیو ځخه ښه استفاده کول، ده ته په لومړی سر کی د برتانیی د امپراتوری ته د برم او جلال ځرګندول و.

امان الله خان د فبروری په میاشت کی له سر فرانس همفریز سره چی د منصوری له پاره لندن ته تللو، مخه ښه کړی وه. هغه وویل چی زه به ژر له کابل ځخه مزار شریف ته لاړ شم، او د هیواد په شمالی برخو کی به د بالشویکانو پروپاګند شنډ کړم.

له مزار شریف ځخه یو رارسیدلی راپور، چی برتانویان یی په قار کړی وو هغه تبصره وه چی د مزار شریف د یو کلیوال له خوا په پیښور کی شوی و او په دی ډول وه: سره روسان په مزار شریف کی بی له کوم بندیز ځخه هری خواته ځی. کله چی د سخی صاحب له زیات ځخه تیریږی نو خپل سرونه لوځوی. یو نفر یی د سخی صاحب امام ته یو څه پیسی ورکړی. » دا د دی تبصری موجب شو « څه کم یو کال د مخه روسان په مزار شریف کی مبتکرانه او نه زغمیدونکی سلوک

کاوه. په تیرو اتو میاشتو کی د هغوی په کړو وړو کی په عمومی توګه د مسلمانانو او په خصوصی توګه د هغوی د مذهبی مشرانو په برخه کی د یادونی وړ بدلون لیدل کیږی. داسی ښکاری چی امر شوی وی چی له مسلمانو هیوادونو سره ځانونه محبوب القلوب وګرځوی. » د ازبکستان د رئیس د دی جملی په ارتباط چی ویلی یی وو پر هغو خاورو باندی د روسیی نوم ایښودل شوی دی، چی له افغانستان سره تړلی دی، هغه ورځ یی پیشګویی کړی وه کله چی شمالی افغانستان به په شوروی ازبکستان کی شامل شی، دا یوه بدمرغی وه.

په هغو ورځو کی چی امان الله خان د مزار شریف د لیدو له پاره تیاری نیوه، د کابل کوڅی له بار شوو اوښانو او یابوګانو څخه ډکی وی. هغه به د ټولو وسلو ډیره قوی سهمیه له ځان سره اخیستله، چی د کابل بهترین عسکر په کی شامل وو او تقریباً د کابل د قشلو ګرځنده توپخانی چی د کابل د شاهی قواو د ټولو نورو څخه ټاکل شوی وی له ځانه سره وړلی. ممکن دی په هغه ځای کی ورته ضرورت احساساوه، یا ممکن د بیرته راتګ په وخت کی دده ورته ضرورت پیښیده، دا عاقلانه نه وه چی دا شیان یی په کابل کی د نورو له پاره پری ایښی وای.

علی احمد چی لا هم د کابل والی و، د امان الله په غیاب کی، چی مزار شریف ته تللی و، د شپی ډوډی له پاره یی یو میلمه د می د میاشتی په ١٤ نیټه راوباله. دا میلمه باسیل جه ګولډ (Basil J. Gold) نومیده او د همفریز په غیابت کی د برتانیی د نماینده ګی شارژدافیر و. علی احمد له ګولډ څخه پوښتنه وکړه چی سکه روسیه پر افغانستان باندی یرغل وکړی او یا یی په چارو کی په آزاد ډول لاس ووهی، نو برتانیه به څه رویه ځان ته غوره کړی؟ » وروسته یی وښودله چی هغه په اکاډمیکه توګه غږیږی.

« زه پیشګویی کوم چی دی پوښتنی ته به په عملی توګه د څو اوونیو یا څو میاشتو په موده کی په لاندی شرایطو ځواب وویل شی:

« افغانستان په بشپړه توګه د امان الله پاچا له کارکوونکو د هغوی د کار له طریقی او د هغه له مشاورینو څخه کرکه کوی چی هغوی ټول د روسیی د ګټو تابع دی او زیاتره د اعتراض آمیزه « نوی » مکتب پوری مربوط دی. دغه نارضایتی د اردو په زیاتره برخه کی د کابل او جلال آباد د کندهار د سیمو په زیاتره برخو کی او په سرحدی قبایلو کی مخ په زیاتیدو وو، ... له بلی خوا زه په خپله له سرحدی قبایلو سره ډیر آشنا یم. »

« هغه وخت راتلونکی دی چی مسؤولو وطن پالونکو او برتانیی خوښوونکی ډله ځان

ښکاره کړی. پلانونه دمخه پرمخ تللی دی، مگر په واقعی توگه بشپړ نه دی. که چیری له بهر څخه مداخله نه وی، نو په دی کی شک نشته، چی بوه بریالی کودتا به وشی، چی تقریباً وینه توپونه به په کی نه وی. »

«که کومه کودتا وشی، آیا د برتانیی حکومت به اوس له صحنی څخه لیری وساتی؟ بوه کودتا ضروری ده، مگر دا به ضرور وی چی له روس سره شرطونه منځ ته راوړل شی، خو چی د هغه هیواد اغیزی ختثی شوی وی. »

د گولډ هغه توضیحات داسی پیل شو: «ما داسی صمیمی چل باز هیڅ کله نه دی لیدلی. هغه علی احمد ته د وفاداری په باره کی لکچر ورکړ.

په لندن کی همفریز له موضوع څخه خبر شو او وی ویل چی علی احمد هڅه کړی وه چی د همدی موضوع په باب زما نظر معلوم کړی. «د هغه لوړ شخصیت بی گټی دی. »

څو ورځی وروسته امان الله خان بیرته کابل ته راغی او وبی ویل چی سفر می په مزار شریف کی دومره گټور و چی د افغانستان شمالی برخی می د مرکز تر اغیزی لاندی راوستی.

تقریباً په همدی وخت کی په لندن کی د افغانستان مختار وزیر شجاع الدوله چی پر امان الله باندی ډیر گران و، د هغه د تکلیف سبب گرځیدلی و.

برتانویان ددی نژدی دیرش کلن ځوان د نه منلو په فکر کی ولویدل. کله چی دی له عبدالهادی څخه د قدرت د نیولو له پاره انتخاب شوی و، ځکه د هغوی په دوسیو کی دا افواهات درج وو چی شجاع الدوله چی د امیر حبیب الله د دربار د نوکران مشر و، هغه سړی و چی په ۱۹۱۲ کال کی یی امیر په گولیو په مغزو ویشتلی و. همفریز وویل چی که څه ما د سند په ارتباط د نورو د نومونو ذکر اوریدلی دی، چی هغه می نه وو اوریدلی، او سر ویکتور ویلسلی (Sir Victor Welesley) داسی وویل: «که دا په یقین سره ثابت وی چی امیر د هغه سړی په واسطه وژل شوی وی، موږ باید اعتراض وکړو مگر دا سخته ده چی تش په افواهاتو اوازو باندی سړی پرمخ ولاړ شی. »

په هر حال قتل یوازنی تعرض نه دی، او د اخوان په لندن کی ځان د درو عملونو تورن وبنود، چی برتانویانو ته د غندنی وړ و، بی ادبی او ناوړه سلوک. دی هغوی ته دا یادداشت لیکلی و:

«له تاسو څخه هیله کوم چی دومره احسان راسره وکړی، چی دلته نژدی په یو ځای کی د

تینس د لوبی سامان شخصی راته د کنسنگتن (Kingsington) په باغ نصب کړی او د لوبی یو انگړ راته جوړ کړی ځو زه وکړی شم، هر وخت تینس وکړم او وخت می خوشی تیر شی. په اوس وخت کی زه د صحی عواملو له امله تینس څخه پرته نوری لوبی نه شم کولی... څه وخت چی ما د تینس د غه غوښتل شوی شیان تر لاسه کړل، نو ددی لوبی د سامان د درولو لگښت پر خپل ځان ومنم. »

د ۱۹۲۷ کال په سر کی د پاسپورټ په مورد کی یو جزوی اختلاف پیدا شو، چی دا اختلاف په دی منتج شو چی شجاع الدوله یو ځیړ انتقادی یادداشت سر فرانس همفریز او سر ویکتور ویلسلی (Wellesley) ته چی شجاع الدوله ورته په قتل تورن و، ولیکی. دوی شجاع الدوله د یوی مرکی له پاره راوغوښت. یو ترجمان هم موجود و، لیکن د افغانی مختار وزیر د فارسی او د ویلسلی د انگلیسی د ترجمی په منځ کی ځینی خلاوی موجودی وی. د شجاع الدوله تیولی خبری سختی وی. »

د برتانیی د بهرنیو چارو وزیر، سر واستین چیمبرلن چی څو ورځی وروسته یی پر یوه بله عادی موضوع باندی سلا مشوره کوله، د شجاع الدوله له غوسی او کرکی ډکه وینا ته اریان پاته شو، چی همفریز ته یی کوله، چی دا وینا د هغه د کابل له وظیفی څخه د لیری کیدو له غوښتنی سره یو ځای و.

چمبرلین لیږ تر لیږه داسی فکر وکړ چی شجاع الدوله وویل، چون خبری د مفسر له خوا تصفیه شوی، هغه دوباره په یو قوی احتمال فکر وکړ چی غلط پوه شوی و. لیکن فرض کړی چی د افغان په ربښتیا سره هغه شی ویلی وو، نو آیا هغه د خپل ځان له خوا عمل کاوه یا امان الله په ربښتیا سره په دی فکر کی و، چی همفریز د کابل له نماینده گی څخه ایسته کړی؟

غلام صدیق د بهرنیو چارو د وزارت د کفیل په توگه کار کاوه، ځکه چی محمود طرزی د امان الله له لور، سلطانه جان سره چی د توبرکلوز په مرض اخته وه، سویتزرلیند ته د علاج لپاره تللی و. د بهرنیو چارو دفتر د «ښځی په قفس کی» له میسوری څخه د غلام صدیق د ویستلو په باب خبری وکړی، د ترکیی د وزیر د چل ول په باب خبری وکړی، چی په موقت توگه د کابل د دیپلوماتیکو ډلو رئیس و، او خپل موقف ته به یی د همفریز په بیرته راتگ سره له لاسه ورکاوه چی په رخصتی تللی و، د امان الله ددی ممکنه غوښتنی په باب خبری وکړی، چی په کابل دی یورام او نرم وزیر ولری، ځکه د نوی معاهدی د خبرو کولو وخت رارسیدونکی و.

لیکن هیڅوک پوره متیقن نه و، چی امان الله له دی غوښتنی څخه کوم ډول معامله کوی، حی که دا شی په رښتیا سره جوړ شوی هم وای، نو د ناخرګند او ناخوښاینده موضوع له منځه یووړله شوه.

البته، د برتانیی او په تیره بیا د سرفرانسس همفریز له خاطرو پرته.

د اکتوبر په ۲۹ نیته همفریز له غلام صدیق څخه د امان الله د سفر تقسیم اوقات ترلاسه کړ. همفریز شکایت وکړ چی د «سرکونو د زوروالی په خاطر» د هند پروګرام نامناسب و. د هغه منظور د ډیلی چی پایتخت و، فرعی سرکونه وو. ډهلی یوازنی ځای و چی وایسرا ددی احساس کاوه چی د هغه د شان او دبدبی په مطابق هرکلی په کی وشی.

غلام صدیق وویل: «پروګرام تغییر نه منونکی جوړ شوی دی. زه به امان الله پاچا ته موضوع په پوره توګه بیان کړم.»

دواړه کسان د هند د حکومت په باب د امان الله پر کړو وړو باندی پوره خبر وو. د هغی اوږدی مودی له نقطه نظره چی برتانویانو له افغانستان سره خپلی اړیکی، لندن ته نه بلکی هند ته پرینبودلی وی، چی په دی توګه افغانستان بی د نړی په سترګو کی د یو متوسط قدرت په کړی کی اچول، امان الله له ډیلی سره هیڅ سر او کار نه درلود.

اوس افغانانو پلان درلود، چی د هند له مشر څخه تیر شی او مستقیماً له لندن سره بحث وکړی، ځکه چی غلام صدیق تقریباً سمدلاسه په دی ویلو سره څرګنده کړه چی «زه باور لرم چی د هند د حکومت سرحدی چال چلند له افغانستان سره بس احترامانه او له ضرره ډک دی.

همدا راز زه به د برتانیی کابینه له دی اندیښنی څخه وژغورم چی بی موجبه اندیښنه کوی چی روسان پر هند باندی برید کوی.»

همفریز وویل: «دغسی ویل په کلی توګه صحیح نه دی.»

همفریز وروسته وویل: «امان الله ته زما حکومت داسی څرګند شوی دی د هند د مداخلی د پروګرام په باره کی ورته پوره مشوره ورکړی شوی ده.

امان الله ورته وویل: «په اصل کی ما دا هڅه نه وه کړی چی له هند څخه په رسمی توګه لیدنه کتنه وکړم. زما خواهش دا دی څومره چی امکان ولری له هند څخه ژر تیر شم.

امان الله وویل چی ما دمخه یو نوم ځان ته ټاکلی دی، چی له هند څخه له یوی نامعلومی لاری څخه د تیریدو په موده کی له هغه نوم څخه کار واخلم. هغه د عزیزالرحمن په نوم یادیده.

«دا حقیقت چی ته له هند څخه د عمومی شاهراه په عوض په نورو لارو چی تجارتی لاری نه دی، په پټه تیرېږی، بوه خواشینی کوونکی انطباع به منځ ته راوړی.»

- «زه به خپل حکومت ته څه ځواب ورکړم.»

- «ورته ووایه چی ما خبری کړی دی.»

- «دا مهم ځواب نه دی.»

همفریز راپوره ورکړ چی «دمخه تر دی چی ما رخصت واخیست، پاچا خپله پخوانی مهربانی له ما سره پیل کړ او ویی ویل چی زه متأسف یم چی می له تا سره مخالفت کړی دی، او دا یی زیاته کړه چی د تا د راتګ څخه دمخه زما نیت درته بنه و.

«آرامی» داسی یوه کلمه نه وه چی تل د افغانستان په ارتباط استعمالیده، اما کله چی امان الله د اروپا په لور د خپل سفر پلان جوړ کړ، د «اوسنی آرامی» په باره کی خبری کیدی، او په راپورونو کی داسی پیشګویی کیدله چی که هغه د غرو له پیچومو څخه د واورو د لیری کیدو دمخه راشی، نو ټول شیان به سم وی. له بهترینو حاصلاتو څخه یو چی ډیر مشهور و، ربیل شوی و. له هغه ناآرامی څخه چی تل د هغه توقع کیدله، نوره ناآرامی زیاته نه لیدل کیده. امان الله یو نایب درلود، چی پر هغه باندی یی اعتماد درلود او دمخه هم د هغه په غیابت کی د امان الله نمایندګی کوله.

دا نایب، ولی نومیده، چی یو ځوان سړی و او امان الله ته یه په پوره توګه خپل اصلیت ښودلی و، او په دی وخت کی داسی کومه د قدرت وړکورنی یی هم نه درلوده، چی د شخړو په وخت کی د ده حامی ګرځیدلی وای، یوازی امان الله د هغه حامی و او هغه یی د پخوانی ربنتنولی له مخی چی یی ښودلی و، غوره کړی و.

«یو صحیح او سالم او د تعمیری فکر خاوند کاریګر» هغه خبری وی چی همفریز د هغو له مخی د ولی ارزښت بیاناوه. «معلومیږی چی دی به په دی مجهز وی چی د زیاتو شخړو حساب تصفیه کړی... دا به د ولی وظیفه وی ترڅو چی امیر له خپل سفر څخه بیرته راځی افغانستان متحد وساتی. که په افغانستان کی کوم سړی په تنبلی او بیکارګی شهرت ولری، نو یقیناً هغه سړی دی. په هر حال زه احساس کوم ددی لپاره چی اداره کار وکړی، دی به ممکن قضاوت وکړی چی باید عمل وکړی.»

داسی فکر موجود و چی پاچا به دومره هوښیار شی چی نادر او د هغه ورونه دی د خپل غیابت په موده کی له افغانستان څخه د باندی وساتی.

بهر ته د وظیفې په خاطر د نادر او هاشم تر استولو وروسته، بلورور یې شاولي او د هغوی د اکا زوی، احمدشاه د همدغسې یوې ورته وظیفې هیله وکړه او په ځواب کې ورته وویل شول چې ستا له کورنۍ څخه همدا دوه تنه کافي دي چې په بهر کې وظیفه اجرا کړي. په هر حال، شاولي پاریس ته ددې په خاطر استول شوی و چې د محصلانو بدرګه وکړي او نو دری واړه ورونه په سویتزرلیند کې وو.

د هغوی، د هغه ورور په باره کې چې دلته و، د برتانیې نظامي آتشې په خپلو یادداشتونو کې په ۱۹۲۶ کال د اپریل په میاشت کې داسې لیکلي وو: د نادر ورور شاه محمود، خپل کلک مخالفت ته دوام ورکوي چې په جلال آباد کې د نایب الحکومه منصب تر لاسه کړي که څه هم دی په دې پوهیده چې امیر دده د کورنۍ پر یوه غړي باندې هم اعتبار نه کوي. هغه وغوښتل چې د دغه منصب تر منلو دمخه دی باید له نادر سره سلا مشوره وکړي. » په جلال آباد کې بو ځلي شاه محمود تقریباً داسې څرګند شو چې د نادر په نوم او خواهش اداره په خپل لاس کې لري، څکه په یادداشت کې ویل شوي وو: «والي د خپلې کورنۍ د دوستۍ عنعنه زموږ له سرحدي قبایلو سره ساتي. له بلې خوا د افریدو ډله، چې څو میاشتې دمخه کابل ته راغلي وه تر دې وخته پورې په دې طمعه وه چې کوم نفر دې د هغوی خبر او احوال واخلي. » وروسته به دا اوازه خپره شوه چې شاه محمود کله چې په جلال آباد کې د والي په توګه وظیفه اجرا کوله، هڅه یې کوله داسې پروپاګند وکړي چې افغانستان به په یو جمهوري دولت بدل شي. او نادر به یې لومړنی جمهور رئیس وي.

په هغه وخت کې چې امان الله خان د خپل سفر تیاری نیو، نادر ته یې ولیکل او ورڅخه وې غوښتل، چې افغانستان ته دې راوګرځي، څنګه چې دا خبره هرچا اوریدلې وه، چې د نادر صحت بیخي خراب دی، هیڅا به دا ګومان نه کاوه چې امان الله خان به دومره بې سنجشه وي چې مغه بیرته راوغواړي. دا څرګنده وه چې امان الله هڅه کوله دمخه تر دې چې اروپا ته لاړ شي له دغه پرنفوذه کورنۍ سره ښه رابطه وساتي، په تیره بیا وروسته تر هغه چې ده نادر ته یو زړ پوری د هغه د صحي معالجې په خاطر ولیږل.

په عین حال کې شاه محمود، چې د دربار له وزیر سره یې شخړه کړې وه، د جلال آباد له نایب السلطنتي څخه استعفا وکړه، مګر امان الله ورڅخه وغوښتل چې د بل نفر تر ټاکل کیدو پورې خپلې وظیفې ته ادامه ورکړي، او دی په دې بریالی نه شو چې کوم بل نفر پیدا کړي.

د امان الله د دلـي لـومړيني نفر چي اروپا ته تله گندونکي سمي وروب چي ويس وه، هغه ددي په خاطر تله چي د هغه د کورني د بنځو له پاره چي وطني جامي يي نه خوښيدي، تکي خوښي او راوايي خلي. دوی به اروپايي ښځي په خپله په اروپايي شرايطو ملاقات کولي.

بل سفر تقريباً په همدي وخت کي صورت ونيو. د شوربازار حضرت، گل آغا، او د هغه وراره معصوم، د خيبر له لاري د سر هند په لور وخوځيدل چي شيرآغا ورور يي په هغه ځای کي اوسيده.

په لندن کي د بهرنيو چارو دفتر خان پر هغو غير رسمي يادداشتونو مصروف کړي و چي څنگه د افغاني پاچا د هر کلي وسيلي برابري کړي. »

« دا پوهه حاصله ده چي همفريز د ايتن (Eton) او اکسفورد نه په غير، په نور تعليم او تربيي باندي اصرار نه کوي، ځکه چي په موجوده وخت کي په افغانستان کي زيات شهرت نه لري. »

مانيامني مصروفيتونه نه ليدل کيږي، چي دا اريانوونکي کار دی، ليکن په دی کي به کوم شک نه وي چي د تياتر دعوتونه او د ځينو شخصي ميلمستياگانو ترتيبول به ممکن وي. دا توقع بايد وشي چي پاچا به په هغو ساعتونو کي سياسي بحث کول ونه غواړي. »

« زه فکر کوم هرڅومره چي حضرت اعليحضرت ته د مانيام له خوا لږه اجازه ورکوله کيږي چي پرته له تياترونو او کنسرتونو څخه بل چيري لاړ نه شي، هغومره به زموږ د مدنيت درناوی شوی وي. څرنگه چي هغه نه پوهيږي پر ستيج باندي څه ويل کيږي، او هم ممکن لويديزه موسيقي ورته په زړه پوري نه وي، نو برا ځيني شي چي ممکن هغه ته په زړه پوري وي د تياتر هغه صحني وي چي په کي لباسي رقاصي گډي شي. »

له هغو ورځو را په دی خوا چي امير حبيب الله محمود طرزي دی ته گومارلی و، چي د جولس وانس (Jules Verne's) اثر وژباړي، چي د سپوږمی په لور سفر په نامه سره ياديده، افغانانو دی کار ته چي انسان کولی شي ډيرو ليرو ځايو ته سفر وکړي دلچسپي پيدا کړه. د امان الله د نه کلن زمامداري په موده کي د هغه اخبار، امان افغان د سفر د اختراعاتو په باره کي يو څو پراگرافونه تشول: هغه وسيله چي الوتکي ته توان ورکوي د شپي له خوا پرواز

وکړی، سپوږمی ته د راکټ په ذریعه د انسان د استولو پیشګویی او دا چې څلور سوه ټنه وزن به ولري او په ساعت کې به څلور سوه میله سرعت ولري.

اوس امان افغان د امان الله د سفر په باره کې لیکنې کولې، او دا سفرونه دومره تعجب اوره وو، چې یو افغان پاچا له پاره نور به سپوږمی ته تګ نه منل کیدونکی نه برېښیده، چې د اروپا سفر برېښېده.

امان الله د ډیپلوماتیکو ډلو د خدای په امانی کولو په مراسمو کې په خپله وعده کلکه وفا کوله، دی کار ته د اروپاییانو له خوا ښه لیبیک ویل کیده. بله ورځ د یوی ستری تولنې په وړاندې چې له مانۍ څخه د باندې وی، امان الله خلک دی ته وګومارل چې د اخلاص مندانه وعدې په توګه خپل لاسونه پورته کړی او ډاډ ورکړی چې دده د غیابت په موده کې به سره ښه سلوک وکړی. امان الله خان او د هغه د سفر ملګری خپل لاسونه پورته کړل او ژمنه یې وکړه چې په هر وخت کې په کلکه سره د اسلام اوامر په نظر کې ولري.

وروسته تر هغه، څرنګه چې وخت نه و چې هر نفر یې په غیږه کې نیولی وای، نو د خپل رعیت له هری طبقې څخه یې څلور تنه انتخاب کړل او په داسی حال کې چې له سترګو یې اوښکې بهیدلی، هر یو یې په غیږ کې ونیو. دغه څلور تنه د عسکرو، متعلمینو، مامورینو او د بازار له طبقو څخه وو.

هغه د کندهار له لاری هند ته لاړ، چې هغې خاوری ته د دسمبر په لومړی نیټه داخل شو او د احترام په توګه د توپ یو ویشت ډزی وشوی. په هغه ځای کې امان الله مامورینو او متعلمینو ته داسې وویل:

«په سر کې زه د خدای(ج) او حضرت پیغمبر (ص) شکر باسم، بیا د اوښکو په ډکر سترګو او په ګرمه زړه غواړم تاسو ته د خدای په امان ووایم. ټول دغه شیان چې یې تاسو یادوی، ما نه دی اجرا کړی. اول خدای(ج) او دوهم تاسو ترسره کړی دی. زه د خدای(ج) شکرانګی ادا کوم او له تاسو څخه هم مننه کوم او له خدای(ج) څخه غواړم چې ما ته نور هم توان راکړی، چې تاسو ته خدمت وکړم. له افغانستان څخه بهر ته زما د سفر مقصد ستاسو د ګټور په خاطر دی. زه غواړم هغه نوی شیان سره راټول کړم چې موږ یې نه لرو. هرڅوک که وغواړی له هیواد څخه بهر سفر کولی شی. ملایان وایی که موږ خارج ته لاړ شو، موږ نه پوهیږو چې آیا موږ بیرته راځو که نه. زه ډیره زیاته علاقه لرم چې بیرته راشم او تاسو ووینم، اما که می ونه شو کړای بیرته راشم، تاسو باید نصیحت په فکر کې وساتی.»

هغـه خلکو ته وویل چې وطن پرست واوسی او د خپلی خاوری دفاع وکړی، او دا شی په فکر کی ولری چې دوی ټول یو قوم دی.

«پاچا رایه او حق نه لري چې امر صادر کړي. چا دا حق له منځه یووړ؟ په خپله ما، او د خپلی لس مشوری له مخی دا حق له منځه یووړ. ځکه چې خدای (ج) فرمایلی دی، چې موږ باید له خپلو خلکو سره د مشوراې له مخی پرمخ ولاړ شو. نو زما مشورو ته غوږ کیدی، او هیڅ کله د یو ظالم پاچا تر لاس لاندی ژوند مه کوی. خرافت پسنده هم مه اوسی. د مثال په ډول ځینی کم عقله ملایان مذهب بی تاسو ته په زنځیرونو کی حصار کړی دی او د هغه په برخه کی تاسو ته غلط شیان ویلی دی. یوازنی شیان چې تاسو بی باید وکړی، هغه شیان دی چې خدای (ج) او پیغمبر (ص) امر کړی دی ځه چې ملایان وایی هغه ونه منی.

«همدا راز زه تاسو ته وایم چې تاسو باید د سړیو، ملکی کسانو، روزونکو یا ښوونکو ترمنځ د اختلافاتو په باره کی فکر ونه کړئ. تاسو ټول د یوه هیواد یاست، او ټول سره ورونه یاست.

«ددی نصیحت په خاطر زه غواړم ستاسو نظر بی واخلم.» خلکو خپل لاسونه پورته کړل.

«زه تاسو ته دا پیشنهاد هم کوم چې د خپلو ښځو په مقابل کی ښه سلوک وکړی نه بد سلوک، ځکه هغوی هم د خدای (ج) په دربار کی امیدونه لری، انسانان دی او حق هم لری. له یوی ښځی ځخه باید زیاتی ونه کړی، په دی چې لګښت بی پوره کولی نه شی. تاسو باید خپل ماشومان ښوونځی او بهرنی هیوادونو ته واستوی. تاسو باید خپله ټوله شتمنی د خپلو ماشومانو په روزنه کی ولګوی.

«ټول دغه شیان چې ما تاسو ته ویلی دی، د خدای (ج) او د پیغمبر (ص) له اوامرو ځخه دی.»

د دسمبر په لسمه نیټه د امان الله ډله له کندهار ځخه د سرحد په لور روانه شوه چې د کالیو او سامانونو یو سلو پنځوس بکسونه هم ورسره وو. ثریا لومړنی افغانی ملکه وه چې له خپل هیواد ځخه دباندی قدم کیښوده. د هغوی یوازنی زوی چې ژوندی پاته شوی و، او شپږ کلن و، نورالسراج او د هغه میره حسن جان، او بی بی خور د ثریا خور او یوه ترکی خدمتګاره له دوی سره ملګری وو. امان الله علی احمد هم له ځانه سره راوستی و، ځکه که پری ایښی بی وای نو بی خطره به نه و. هغه شیراحمد هم له ځان سره اخیستی و په دی چې له ولی سره، چې د پاچا نایب و، توافق نه درلود.

غلام صدیق تیار دا پلان درلود چی په اروپا کی بهرنی چاری ځنګه پرمخ بوزی، دا پاچا د ډلی شمیر یو د دیرشو تنو ته رسیده، چی ګندونکی، ډاکتران او نوکران یی هم په بر کی نیول.

هغوی د ټیټو غونډیو او باغونو په منځ کی د داسی وچو شیلو په لور وچلیدل چی د لمر رڼا په کی لږه لیدل کیده، ځکه چی له هری خوا ځخه د غرونو تیغی وتلی وی. بیا د یو پراخ میدان په لور لاړل او وروسته له یو ټیټ پیچومی ځخه واوښتل، تر هغو چی دبری (Dubrai) له سرای ځخه تیر شول. دا سرای اته ویشت کوټی درلودی چی کړکی یی نه درلودی او د امان الله پلار هغو کسانو او د هغوی د ځارویو له پاره جوړ کړی وی، چی کاروانونه یی د هند او افغانستان ترمنځ تګ راتګ کاوه چی د ژوندانه د ضرورت وړ شیان به یی وړل او راوړل او شپه به یی دی سرای کی کوله، د ټوپک لرونکو مورچلونه او سنګرونه داسی ښودل چی دا لاره هر وخت بی خطره نه وه.

وړاندی د شخړی یو بل یادګار موجود و. دا یوه مربع شکله کلا وه چی د غونډی په سر و، او جګ جګ برجونه او کاږه واږه دیوالونه یی درلودل او یو کوچنی بازار په دی ځای کی و، چی تجارتی معامله په کی نه کیدله، ځکه چی د دی ځای سړی نه لیرو کلیو ځخه چی د غونډیو تر شا و خواو نه لیدل کیدل، پارول شوی وو. دوی شیان نه رانیول لیکن په عمومی تحریک کی یی برخه اخیستله چی هرچا د هغه احساس کولی شو.

له دی ځایه سرک په یو هوار میدان کی شګلن و او د موټر ارابی په شګو کی تلی او بندیدی. د دی له پاره چی د پاچا موټر تیز لاړ شی، نو د هغه له پاره یو مخصوص سرک جوړ شو چی د مخه له هغه ځخه چا استفاده نه وه کړی.

د امان الله موټر په دی نوی سرک باندی د دوو سپینو پایو ترمنځ چی د پیره دارانو په شان د سرحد د ښودلو په خاطر درول شوی و په حرکت کی و او د دی پایو په اخوا خلک د دوی د هر کلی له پاره ولاړ وو.

# اتلسم فصل

## د ۱۹۲۷ کال د دسمبر له ۱۰ نیټې نه

## د ۱۹۲۸ کال د مارچ تر ۸ نیټې پورې

برتانویان چې زرې پټې لرونکې یونیفورمونه یې اغوستې وو، هلته ولاړ وو. دا د احترام گارد و، چې د ټوپک د سیخ په شان نیغ او بې حرکته ولاړ و، چې امان الله یې معاینه کړی او ورابې د یر اعلی عسکرې موزیک افغاني ملي سرود وغږاوه، چې په هغه شیبه یې زده کړی و. د شاهي هوایي قوا الوتکې، چې یو ځلي یې څه ناځه د افغانستان په فضا کې خطر اعلاماوه، د هند په فضـا کې الوتنې وکـړې. امـان الله یو تلگرام ورکـړی شـو چې پـه کې پاچا جـورج وی (King Geurge V) ورته په خپله امپراتورۍ کې هرکلي ویلی وو.

نژدې زر تنه قبایلي افغـانان له غرونو څـخه بندر ته راښکـته شوي وو، او ځیـنې یې چې د پاچا موټر د تیریدو په حال کې لیدلی و، پر خپلو اسونو سپاره شول او د هغه له موټر سره یوځای په حرکت کې شول، اوس هغوی په جوش او خروش کې پرمخ لاړل چې دا کار د مراسمو د اخلال ویره پیـدا کړه، هغوی هیـره کړه چې هلتـه سـرحد و، او له هرڅـه څـخه دا د افغـان او انـگلیس د اړیکو رمز و.

د توپ یو د برش ډزې وشوې. د احتـرام په مراسمو کې یو ویشت ډزې معمـول دي، لیکن د بهرنیو چارو په دفـتر کې کـوم نفر د یو بـرطرف شوي جنرال د خاطرو کتـاب پیدا کړی و، چې په کې یو وخت د سیام د زمامدار په احترام د یو دیرشو ډزو مطلب لیکل شوی و. سره له دې چې یو

خاص پوه او ځیرک مامور یوه خبره وکړه چې له امکان څخه لیرې وه. امان الله چې په هیڅ شکل انګلیسي نه شوه لوستلی، له دې پټ کتاب سره اشنا و، دا مهمه وه چې داسې چانس ترلاسه نه کړي چې هغه تحقیر کړي.

د ډهلي له لارې څخه د امان الله د سفر کولو نه منل، هغه یې په رسمي توګه غیر رسمي کړی و، د هند د حکومت لومړنی عکس العمل دا و چې د اورګاډي، بیړیو او هستوګنځي پیشنهاد بیرته واخلي، چې په دې منظور برابر شوي و چې تر هغه پورې چې امان الله په هند کې وي د دولت میلمه به وي. لیکن په یاد یې راغلل چې برتانیه له روسیې سره د جنګ په صورت کې به دې ته ضرورت ولري، چې افغانستان دې د هغې په خوا کې وي. د هند د حکومت په فکر کې دا هم راغلل چې میلمه پالنه یې له کوم قید او شرط څخه پیشنهاد شوې وه.

اماان الله خپل لومړي اورګاډي ته متوجه شو، او که یې فکر کړی وای، چې ټول اورګاډي دغسې معلومیږي، نو دې به وروسته د ټل له پاره مایوسه کیده. ددې اورګاډي دوې کوټې طلایي او سپینې وې، چې د افغانستان شاهي تاج په کې انځور شوی و. د انګلستان ملي بیرغ او د برتانیې د دربار شین بیرغ پر بامونو باندې رسیده. د اورګاډي کوټې د برما د هیواد د ساج په لرګو استر ورکړې شوې وې، تشناب یې په سپینو کاشي خښتو جوړ او د سپینو زرو پرزې په کې کار شوې وې، د خوب کوټې یې ابي رنګ درلودې او د سرو زرو په انتیک کارۍ سره ښکلې شوې وې، او له امان الله سره حتی مشوره وشه چې دې او ملکه ثریا د خوب بیلې کوټې غواړي که نه په اول کې هغه د بیلې کوټې غوښتنه وکړه، لیکن په اخرې شیبه کې له خپل فکر نه وګرځید.

امان الله او د هغه ملګري له خپلو بکسونو سره اورګاډي ته وختل، چې داسې معلومیده لکه چې لاره یې ورکه کړې وي. دا د ښه ذوق اورګاډي د بلوچستان د تانې په څنګ کې چې د امپراتورۍ وروستې تانه وه، له داسې زیرې لرونکو سرو سره مخامخ شول چې ګوتې یې د ټوپکونو پر ماشو باندې ایښې وې. اورګاډي د سمندر په لور په حرکت پیل وکړ چې له افغانستان څخه لیرې و. د امان الله مهم سیاحت پیل شوی و.

په کراچۍ کې امان الله د لومړنې ځل له پاره سمندر ولید او د مانلا (Manela) په نوم بیړۍ کې د بمبیې په لور وخوځید. د لندن ټایمز خبریال چې په دې بیړۍ کې و راپور ورکړ چې «کوم شی، چې پر هرڅا باندې اغیزه کوي د پاچا تعجب او دده پوهه او ځیرکي ده. سرې

احساس کوي، چې دلته يو پاچا او يو سړي دی، هغه کم ـ ابه شخصيت چې په کې حاکميت درلودونکې شي د ژوند استعداد دی. »

کله چې مانلا نومې بېړۍ په بمبيي کې لنگر واچاوه، يوازې له هغه وروسته امان الله په رښتيا سره هند ته داخل شو، کراچۍ د لارې يوه هډه وه. دلته طاق موجود و چې « د هند د مدخل » په نوم سره يادېده، چې دی لوبې نيمې وچې ته د زرگونو انگليسانو هرکلي کړی و چې دا د هغوی د امپراتورۍ وياړ و.

د مخه تر دې چې امان الله له بېړۍ څخه راکوز شي، هغه ته وويل شو چې وايسرا ناروغ دی او نه شي کولی د هرکلي کولو له پاره راشي.

هرچا به د وايسرا په ناروغۍ شک کاوه، ځکه چې دا د « حيلې او مکر سرخوږی » ممکن په هغه وخت کې ورته پيدا شوی وي، چې هغه واورېدل چې امان الله هغه ډول سفر نه کوي، چې د هند حکومت يې غواړي. واقعـاً وايسرا چې لارد اروين (Lord Irwin) و، وروسته لارد هاليفيکس (Lord Holifix) کېده، خپل پلار ته ليکلي وو چې « زه په دې ويره کې يم چې بمبيي به يوه ستړې کوونکې اونۍ وي، مصروفيتونه به په کې ډېر زيات وي او ... کله چې دا اونۍ ختمه شي، نو زه به د يوې اوونۍ له پاره په بستره کې پرې وزم. »

لارد ارون له هغه څخه دمخه بستری ته لاړ چې هيله يې کړې وه. هغه د ملاريا په ناروغۍ اخته شو. او ژر يې بيا خپل پلار ته وليکل چې: « د افغاني نفر ليدنه کتنه ډېره ښه تېره شو. په سر کې يو دوه يې ستړي غوندې معلوميدل او سر فرانس همفريز دی کار ته گومارل شوی و، چې ورسره دې په آسانه سره خبرې وکړي. زه عقيده لرم په هغه وخت کې چې هغوی واورېدل زه ناروغ يم او نه غواړم چې په بمبيي کې هغوی ووينم، هغوی تصميم ونيو، چې ضرور نه دی په رسمي لباس راکوز شي او په دې توگه يې خپل رسمي لباسونه بېرته په خپلو درندو بکسونو کې کېښودل، چې د ساحل له لارې يې استول، په هغه وخت کې چې همفريز بېړۍ ته وخوت چې پاچا ته د احترام مراسم په ځای کړي. هغه اعتراض وکړ او ويې ويل چې سمدستي دې خپل رسمي لباسونه ټول بېرته وباسي، او کله چې هغوی په دې کار کې ځنډ وکړ، همفريز وويل که جورج پاچا له دې څخه خبر شي، نو وبه وايي چې تاسو له هغو وحشي کسانو څخه ياست چې ضرور نه غواړي هيڅ کله د کابل له ځنگلونو څخه ووځي. »

البته، افغانانو د وايسرا په ناروغۍ باندې گومان نه کاوه او همفريز که څه هم داسې په

نرمی سره چې خپل ځان وایسرا ته معرفي کړي و ، له هغو سره په نرمۍ ونه غږېد او په توندۍ سره یې ورته وویل چې خپلې فللینې جامې دې وباسي او د هغه مراسم په خاطر دې خپلې فیشني جامې واغوندي ، چې د دوی په انتظار کې وو. امان الله چې د لویدیځو خلکو په رسم او رواج بلد نه و ، د وارخطایي له امله یې د بېړۍ له کپتان سره یې خدای په اماني ونه کړه که څه هم چې دی په خپله یو ښه باتهذیبه سړی و.

همفریز داسې وویل: « غلام صدیق سپین سترګي وکړه او په ټینګه یې وغوښتل چې د بمبیي والي او د والي ښځه دې باید داسې کښېني چې د هغوی شا اسانو ته وي. تل به داسې توقع کیدله چې غلام صدیق به د داسې پریشانیو طریقې اختراع کړي. »

د هند حکومت هغه موضوع هیره کړې نه وه چې د اخوان سړي څه د پاسه شپږ کاله پخوا له هند څخه شړي شوي و او په دې پوه و چې د هغه په یاد و. په داسې حال کې چې هر نفر آماده و ، چې دننه راشي ، هغه د چوکۍ د ترتیب او تنظیم په برخه کې مناقشه وکړه ، او ماښامنی رسمي میلمستیا وځنډول شوه. په دې مرحله کې هغه د ارون میرمنې په انتظار کې پریښودله ، دا بله انګلیسی ښځه وه چې تحقیر شوه. برتانویانو تل له طرزي څخه د بهرنیو چارو د وزیر په توګه شکایت کاوه. اوس یې بیرته د هغه غوښتنه وکړه.

له بلې خوا د هند خلک په وجد راغلي وو.

د لندن په پیغامونو کې چې له بمبیي څخه استول شوي و ، داسې ویل شوي وو: « سرکونه د داسې د یوې سترې ټولنې له خوا بند شوي وو ، چې بې ساري نه درلود ، او دا ټولنه چې په اسلامي عصر پورې منحصره نه وه ، هغه ته ښکاره خوښي ور په برخه کړه ، په تیره بیا په هغه وخت کې چې د هغه له موټر څخه ګرد چاپېره ډېر زیات خلک راټول شوي وو ، چې زیاتره په کې پښتانه او افغانان وو چې د بندر له لارې سره راټول شوي وو.

هند د امان الله خان له خوا له هغه وخت راهیسې د توجه ور ګرځیدلی و ، چې هغه له انګلستان څخه هغه شی حاصل کړی و چې ډېر زیات شمیر هندیان به یې د خپل ځان له پاره خوښول ، د خپلو چارو کنترول او اداره کول. برتانویانو دغې جاذبې ته د یوې احتیاطي موضوع په څیر پاملرنه وکړه. لیکن دې ته حاضر وو چې د ښه راغلي په نارو ، د لاسونو په غزولو ، د هندوانو او مسلمانانو د یو شان تورو سترګو په توصیف کې د هغه ثمر ووینې. د برتانیې د تاج

وارث له یوی بلوا سره مخامخ شوی و ، چی ٤٥٠ تنه په کی وژل شوی وو. دلته هرکلی او ښه راغلاست په خپل اختیار سره ویل کیده.

امان الله خان یو ځلی په خپل موټر کی ودرید او د ښوونځی د یو شاګرد په شان یی خوښی وکړه. هغوی په بازارونو کی وربانذی د «ظل الله» غږ کاوه.

امان الله د مهاتماګاندی له میرمنی سره چی د مسلمانانو غونډی ته راغلی وه، په هغه صحنه کی هرکلی وکړ او اعلان یی وکړ چی هندوان زمونږ ګاونډیان او ورونه دی او د مذهب د درناوی غوښتنه یی وکړه. په لندن کی هغوی وویل: «دا چی د امان الله له پاره به دا «ښه کار» وی که نه وی چی د سولی د منځ ته راوړونکو رول ولوبوی، کله چی هغه په پردی خاوره کی په یوه لنډه لیدنه کتنه بوخت دی. دا چی که هرڅوک د امان الله خان پر ځای د یو پاچا په موقف کی وای دغو مره اندازه د اسلامی یووالی (پان اسلامیزم) تبلیغ به یی کړی وای. نو دا به بهتره وه چی د هند حکومت دغه کار په ابرومندانه توګه زغملی وای. راځی چی لږ تر لږه توقع وکړو کله چی امان الله پاچا دلته راورسیږی نو د عبادت کتاب به ایسته کړی.»

د دسمبر په ۱۷ نیټه راجپوتانه (Rajputana) تر سمندره پوری د اتوکو او یو شمیر بطریو په واسطه چی شاهی مراسم او تعظیم یی اجرا کول، بدرګه وکړه او ار. ای. ام. اس. کلایف (R. I. M. S. Clive) تر لومړی لس میله واټن پوری ورسره و، وروسته یی د یو د برشو توپونو په وهلو سره ورڅخه بیل شو. افغانی ډله په آسانی سره په بیړه کی ځای په ځای شو، او دا کار پر هغوی باندی چی په بیړه کی و، اغیزمن واقع شو، په تیره بیا چی ښځی د لومړی ځل لپاره د خلکو په وړاندی خپلی چادری ګانی ایسته کړی. کرسس، چی دوی د هغی په باره کی لږ څه اوریدلی وو، په هغه وخت کی راورسید، چی د راجپوتانی په بهر کی وه. ثریا چی د بیړی له ډیرو ماشومانو سره ذوسته شوی وه، د کرسس یوه ونه او تحقی هغوی ته ورکړی. امان الله هر شی ته په خیر سره کتل او عاقلانه پوښتنی یی کولی.

همفریز له راجپوتانی څخه لندن ته داسی تلګرام وکړ: «ما له پاچا او د هغه له وزیرانو سره د روسیی له لاری د هغوی د بیرته راتګ د ستونزو په باره کی خبری کړی دی او فکر کوم ښه چانس تر لاسه دی، چی هغوی دی د پی او (P O) بخار بیړی په واسطه له پورت سعید څخه بیرته راتګ ومنی، او له هغه ځای څخه دی د بمبیی او پیښور له لاری کابل ته لاړ شی... په راتلونکی اوړی کی ممکن مخصوص اورګاډی ورته وساتل شی، چی دوی په کی له هند څخه سفر وکړی.»

کله چی افغانان د سویز په کانال کی سفر کاوه، ځینی شیان یی تر سترگو شول، چی دوی ورسره اشنا وو، اوښان. لیکن د دی پرځای چی په کراکرار تگ وکوی، د هغوی غتی غتی پښی چی د درانو بارونو لاندی پر خامو سرکونو باندی نرمی نرمی ایښودل کیدی، دا اوښان د اسانو په شان روزل شوی وو او کله چی په عسکری طریقی سره یی د کیمل کورپس (Camel Corps) عسکر وړل، د بدرگه کولو په منظور د امان الله په خاطر سره راتیول شول، خو امان الله ورته کومه توجه ونه کړه، ځکه هغه د بیړی حرکت ته، چی له موانعو څخه تیریدله، زیات متوجه و.

د دسمبر په ٢٦ نیټه راجپوتانه په پورت سعید کی لنگر واچاوه، او څنگه چی افغانی ډله ښکته شوه چی د قوا د پاچا د وررونو له خوا یی هرکلی وشی، د بیړی ټولی عملی خوښی وکړه. دا ځلی د لباس په مورد کی کوم شکایت موجود نه و: ناریننه وو خپل ډیر ښه یونیفورمونه واغوستل.

کله چی ثریا او نورالسراج د سمندر په څنگ کی روانی شوی، بیرته یی خپل مخونه پټ کړل. اما څرنگه چی دوی له آسیا څخه وتلی وی، نو په مخ پټولو کی یی هم بدلون ولیدل شو. دوی پر خپلو مخونو باندی مازی یوه توره نری پرده اچولی وه او له اوږدی وریښمینی جرابی پرته نور څه نه په پښو کول. که د مصر مسلمانان چی د سمندر په غاړه کی له دوی سره ملگری وو، په دی وضعی باندی متأثره کیدل نو خپل تاثیر به یی دوی ته نه څرگنداوه. په دی ځای کی د ورځپانیو عکاسان موجود وو، د دوی عکسونه یی واخستل، چی په ټوله نړی کی چاپ شول او په دی توگه د امان الله د تورسرو ښایست ټوله نړی ته معلوم شو.

افغانستان د امان الله د بریالیتوب په باره کی پوره متوجه و. د برتانیی د بهرنیو چارو دفتر د هغه څارنه کوله، او ډاډه و، چی د رپوتر لاسلیک تصدیق په ټولو اخباری راپوررونو کی شته چی د خبرونو یو مشهور اژانس د برتانیی رسمی بی سیم مخابره لری، یا به یی د دهلی په بهرنی او سیاسی څانگه برابر کړی وی ... دا ټکی ډیر مهم دی. د رپوتر ابلاغیی، چی افغانان ورسره اشنا دی، د برتانیی د رسمی بولتینونو څخه به زیات ارزښت ولری او په دی توگه به هغوی ومنی چی دا هماغه ابلاغیی دی چی د موضوع په ارتباط ټولنیری ته استول شوی دی او داسی ښودل شوی وی چی د تبلیغ په توگه به ور څخه کار واخیستل شی.»

بیا هم د «رپوتر» دغی مخابری یوازی خبری وی. د شاهی کورنی د لیدنی کتنی

عکسونه په اروپایي مطبوعاتو کې څرګندې شوې، چې په افغانستان کې په ندرت سره لیدل کیدل. اما اوس یې کاپي ګانې هلته استول کیدې او ګردې ګرځول کیدې، په تیره بیا د ثریا عکسونه چې بې جالي حجاب بې پر مخ و او په مصر کې پلې روانه وه او له کافرانو سره یې عکسونه اخیستل شوي وو. حتی غرنی قبایلیان چې لږ کسان هلته باسواده وو، دغه عکسونه یې ولیدل.

کله چې امان الله او فواد پاچا په یو سرخلاص موټر کې د قاهرې له سرکونو څخه تیریدل، د رسم ګذشت په حال کې شاګردانو او د خلکو ټولنو به چغې وهلې چې «افغانستان او مصر!» کله چې امان الله خان نماینده ګانو ته خطاب کاوه، په هغه شانداره ټولنه کې دغې چغې وهل کیدې چې «ژوندې دې وي د افغانستان ولس! ژوندې دې وي دموکرات پاچا!» دغه شیان د امان الله د هغه نظر له مخې منځ ته راغلل چې امان الله د مصر پارلمان د «یو داسې مقدس ځای په توګه وباله چې اولس په کې خپلې هیلې څرګندولې.»

لارډ لاید (Lord Loyd) د برتانیې یو لوړ رتبه نماینده به داسې وویل: «امان الله خوشالوونکې کره وړه درلودل، په ډیره ساده او طبیعي توګه له خلکو ځینې د هغوی د ورځنی چارو په باب پوښتنې کولې، چې په دې ساده او طبیعي سلوک سره هغه د خودخواه فواد پاچا د سختې رویې په پرتله د خلکو پام بې ځان ته اړولی دی. د ختیځ د هوسایې په خاطر د هغه ښکاره مینه او د لویدیځ پر ضد د هغه د قهرماني څرګند فعالیتونه د خلکو د پام د راګرځولو د ادعاګانو طبیعي تایید او تصدیق ګڼل کیږي...

«یوازې په یوه لحاظ د امان الله پاچا د ملاقات دوره د اعتراض وړ وه چې د هغه له شهرت څخه کموله. کله چې هغه خپل یونیفورم نه اغوست، نو خپله خره قباپي اغوستله او جګه خولی به یې په سر کوله، چې د تجدد پسند و او مترقي عناصرو له خوایي د پرمختګ د نښې نښانې په توګه د هغه استقبال کیده. په داسې کالیو کې د ازهر (مسجد) ته ورتګ سخت و او د مسجد په باب یو ډول اوازه لویدلې وه. د یو مذهبي سړي له پاره دا سخته ده چې په داسې جګه خولۍ سره د لمانځه د ادا کولو په وخت کې د رکوع او سجدې عمل اجرا کړي، لیکن داسې معلومیده چې علماوو خپله نارضایتي څرګندوله. په واقعیت کې، په باوري توګه ویل شوي دي چې هغه میلمستیا چې باید د اعلیحضرت په ویاړ د علماو له خوا ترتیب شوې وای، د پاچا د نه منل شوي خولۍ په خاطر صورت ونه نیوه.»

کوم شی چی کلک مسلمانان یی هک پک کړی وو، دا و چی امان الله له پیک لرونکی خولی سره چی د هغه پرمخ باندی یی سیوری اچاوه، لمونځ کاوه، حتی یو عسکر چی که عسکری خولی یی پیک درلود، د لمانځه د ادا کولو په وخت کی به یی له احتیاط څخه کار اخیست او د خپلی خولی پیک به یی شا ته گرځاوه، څو د خدای(ج) او دده د مخ په منځ کی هیڅ شی نه وی. د هغه خولی پیک امان الله ته د مذهبی حمایی په بیه تمام شو.

امان الله د جنوری په پنځمه نیته په بیړی کی اروپا ته لاړ او هلته د ناپلس (Naples) په مدخل کی یی د افغانستان د زاړه دود دستور یوه برخه ولیدله.

نادر او د هغه دوه ورونه هاشم او شاولی، د هغه د لیدو لپاره راغلل. د دوو کلو راهیسی چی دی او نادر سره بیل شوی وو، ډیرو شیانو تغییر کړی وو. امان الله ډیر پورته تللی و. دلته هغه داسی یو پاچا نه و، چی خپل قدرت سره سره نه له نادر سره د رواج او رسم او د کورنی اړیکو په واسطه تړلی و، چی یی حتی له هغه څخه سترگی نه شوی پټولی. دلته د امان الله ورغ او ساعت و، نادر هغسی اخبار نه شو ترلاسه کولی، چی د امان الله عکس به په کی نه و. امان الله په ښکاره خپل د پرمختگ لوبه گټلی وه. له بلی خوا نادر کوم رسمی موقف نه درلود. هغه او ورونه یی په خصوصی توگه ژوند کاوه، بیا هم امان الله پیشنهاد وکړه چی نادر بیرته افغانستان ته لاړ شی، نادر شرطونه وړاندی کړل.

هغه شرطونه یوازی سیاسی شرطونه نه وو، چی د قبایلو د بی ځایه طرفداری او د هغوی د پرمختگ د تگ لاری په باره کی وو. نادر د شخصیتونو په باره کی خبری وکړی. هغه اصرار وکړ دمخه تر دی چی زه بیرته افغانستان ته لاړ شم، یو شمیر کسان دی باید له خپلو منصبونو څخه ایسته کړی شی، چی د هغوی نومونه په دی ډول وو: ولی نایب السلطنت، غلام نبی، محمد سامی، غلام صدیق، محمود طرزی. ځینی په کی هغه کسان وو چی دده موقف یی اشغال کړی و، له ځینو سره ده عدم توافق درلود.

امان الله ته ددی کار موافقه داسی معنی درلوده چی ټول هغه کسان باید لیری کړی شی، چی له ده سره یی دی درجی ته د رسیدلو مرسته کړی وه، دا به یوازی د نادر معنی ورکوله، او نادر یوازی هیواد اداره کوی. هغه وویل نه.

کله چی هغه د فرانسی له ریویرا (Riviera) څخه لیدنه کتنه کوله، ورونو یی بیا ورسره

خبری وکړی. هاشم له نورالسراج سره ملاقات ونه کړ. د هغه مجلسونو په باره کی افواهات منځ ته راغلل او نادر خپل د «نفرت» عکس العمل ښکاره کړ.

د هند په پراخه ساحه کی، چی خلک د سرحد له لاری تگ راتگ کاوه، څه پیښه مینځ ته راغله. دا پیښه د خوست د بلوا په پرتله چی ځو کاله د مخه شوی وه، یوه جزوی پیښه وه.

په خپله سرحد، چی ناارامی په کی یو معمولی شی گرځیدلی وه، له هروخت نه په کی کراری زیاته وه. برتانویانو چی به دا آرامی لیدله، نو داسی به یی فکر کاوه چی امان الله د غو قبایلی خلکو ته ډیری پیسی ورکړی دی، چی د هغه د غیابت په وخت کی دی آرامه واوسی. هغوی په دی باندی پوهیدل چی ځینی ... د خپل سلوک په باره کی بیانیی ورکولی.

نه، کشاله وړاندی په هندوستان کی منځ ته راتله.

د بلوچستان د جاسوسی د اداری یوه نماینده چی ډیر لږ معلومات یی درلودل، داسی وویل: «حتی هغه سړی چی د جاسوسی په چارو کی هیڅ معلومات نه لری، داسی تشخیصولی شی، چی د کوم شی تخم شیندل شوی دی.» هغه په ډیره اسمعیل خان کی وویل: «بی له کوم شکه یو شی د تیارسی په حال کی دی.» ډیره اسمعیل خان له افغانی سرحد څخه دومره فاصله لری، چی د یوی مرغی له پاره به صرف سل میله وی، اما یو سړی به له غرونو او غونډیو څخه چی وزیر په کی اوسیږی او د خپل واکمنی د ترلاسه کولو په باره کی ډیر حریص وو، تاو راتاو، ښکته او پورته لاړ نه شی، ځو چی هلته ورسیږی، او بیا به سړی د سلیمان خیل افغانی غلزی سیمی ته ورسیږی چی نیم کوچی او نیم ده نشین دی او د غزنی خلک یی ډار کړی وو او د خوست د شورش په وخت کی د کابل نژدی سیمو کی هم نفوذ کړی و. نماینده زیاته کړه: «حضرت صاحب په کی دخیل دی.»

دده مطلب شیر آغا حضرت و. وروسته له هغه چی له افغانستان څخه د یوی دوه اړخیزی موافقی له مخی له افغانستان څخه ووت، ځکه چی د امان الله ریفورمونه د هغه نه خوښیدل، د هند د سرهند (Sir hind) په ښار کی میشته شو، لیکن شیراغا د دسمبر په ۱۸ نیټه ډیره اسمعیل خان ته ورسید چی له زرگونو کوچیانو سره یی لیدنه کتنه وکړی. هغه د کوچیانو له خوا دومره قدر او درناوی کیده لکه چی افریدو د خپل د ملامحمود اخونزاده درناوی کاوه چی ورسره زاکری (Zakiri) په زیارت کی گډون کاوه.

دا غږ د لاهور د «ترجمان سرحد» د اخبار د چلونکی غوږ ته ورسید، چی هغه نه یوازی

هغه چاپ کړ بلکه داسې حالت ته یې ورساوه چې ډیر افغانان او هندیان چې د برتانیې د مقاصدو په باره کې شکاک وو، مجبور وو چې د هغه صحیح قرینه په پام کې ونیسي.

« د هغه پیر لومه چې له افغانستان څخه تبعید شوی دی.

« یو پیر چې له افغانستان څخه تبعید شوی دی، د څه مودې راهیسې په دیره اسمعیل خان کې اوسیږي. د هغه نوم پیر فضل دی (د شیراغا اصلي نوم فضل عمر و) او کوچیان له هغه سره لیدنه کتنه کوي. خلک ورته د شکاکي په نظر گوري. داسې ویل کیږي چې هغه د افغانستان د یو مشهور متوفي پیر زوی دی چې امیر حبیب الله ورته زیاته عقیده درلوده. د امان الله د لاربښوونو سره سره هغه د نظامنامو د ناکامولو په جنبش کې د رهبري وظیفه اجرا کوله چې دا جنبش په بلوا بدل شو. اعلیحضرت یوازې هغه له خپل قلمرو څخه وشاړه او د خپل پلار د احترام په خاطر یې نور څه ورته ونه ویل. وروسته له هغه دا پیر له افغانستان څخه لیرې شو، هغه په هند کې مختلفو ځایونو ته لاړ او په دیره اسمعیل خان کې میشته شو ... داسې فکر کیږي چې دیره اسمعیل خان یې ددې په خاطر غوره کړی و، چې له هغه ځای څخه د افغانستان او د هغه د تحول پرخلاف د کوچیانو د راتیریدو په وخت کې په پروپاګند لاس پورې کړي. دیره اسمعیل خان د آزادۍ خوښوونکي پیښور په پرتله د پروپاګندي فعالیتونو لپاره مساعد و. د هغه د ژوند د نمایشي وسایلو نشتوالي د هغه د جګي سويې ژوند، د کوچیانو ورسره لیدنه کتنه، د کوچیانو د تګ راتګ په مسیر کې د دیره اسمعیل خان ټاکل او د هغه دوه کورونه تر لاسه کول، هغه واقعیتونه نه دي چې ورته تصادفي واقعیتونه وویل شي. »

اد یتور وویل چې دا دوه کورونه هغه ته د سیاسي د نماینده ګۍ له خوا ورکړی شوي وو، چې د برتانیې د حکومت معنی یې درلوده او ددې په خاطر ورته سخته سزا ورکړی شوه.

برعکس، برتانویانو د شراکت راهیسې پر شیراغا باندې شکمنه وو، کله چې د بلوچستان د جاسوسي اداري راپور ورکړ چې هغه د افغانستان له دغو مهمو خلکو سره په منظمه توګه مکاتبه درلوده. شیراحمد د شورا رئیس، محمد عثمان د کندهار والي چې د امان الله او ثریا په واده کې د یو نامناسب نڅا کوونکي په راوستلو سره چې د نڅا له کالیو سره راوستي و، خپل موقف له لاسه ورکړی و او په دې وخت کې د کابل د دیني مدرسې آمر و، عبدالعزیز د حربیې د وزیر کفیل، چې له ولي سره یې توافق طلبي رقابت یې کاوه، زلمی یو منګل ملک چې د خوست له شورشیانو سره له مستقیمي مرستې کولو وروسته هند ته تبتیدلی و، مګر په دې

وختونو کی امان الله ورته اجازه ورکړې وه چې خوست ته بېرته راشي، او د غزني يو حاکم او د سليمان خيل غلزي يو سرکښ نفر و.

د برتانويانو د معلوماتو له مخې، دغه خلک ټول د شيراغا مريدان وو.

د بلوچستان د استخباراتو نماينده وويل: «ماته داسې يوه اشاره شوې وه چې ممکن شيراغا د افغانستان د حکومت پرخلاف د کومې توطئې په لټه کې وي.»

حتی د ۱۹۲۷ کال د مارچ د مياشتې په لومړيو وختونو کی، يو يادداشت د هند د حکومت دوو ايالتونو او د برما حکومت ته استول شوی و، چې د پټو مزاحمو کسانو د توقيف محل و: «د مرحوم سردار محمد ايوب خان (د تيری شاهی کورنی د غړو يو تبعيد شوی شخص) د مشرزوی په نوم د کندهار د ځينو مخورو کسانو په لاسليک د يوی دعوت نامی راپور رارسيدلی دی، چې په کی ورڅخه غوښتی دی، چی کندهار ته دی راشي، چی د افغانستان د پاچا پر ضد د شورش زمينه برابره ده. په موجوده حالت کی د هند حکومت مايل نه دی چی دی راپور ته زيات اهميت ورکړی مګر په کندهار کی بې له کوم شکه نارضايتي موجود ده او دا مشوره به د سلا وړ وی، چی هغه افغانی مهاجرين چی ډير مهم دی تر څارنی لاندی ونيول شی.» او يوه اوونی وروسته «د کويټي بشپړی پلټنی وښودلی چی د راپور موضوع حقيقت لري.» او دوه نومونو چې ذکر شوی وو، د اکرم او اعظم نومونه وو چی د پخوانی امير، محمد ايوب زامن وو چی دولس کاله دمخه د اسونو د يو سوداګر له خوا چی غوث الدين نوميده هڅول شوی و چی د افغانستان د تاج او تخت د ترلاسه کولو په خاطر دی افغانستان ته راشي، او کله چی يی فورډ (Ford) له يوی غوا سره ټکر وکړ، توقف يی کړی و.

اوس د ۱۹۲۸ کال په جنوری کی د جاسوسی څانګی د بل راپور راتګ پيل شو.

په کندهار کی يوه رسوايي پيښه شوه چی د بولدک د حاکم په برطرف کولو باندی تمامه شوه چی ويلی يی وو غواړم له شيرآغا سره لاهور يا ډيره اسمعيل خان کی ووينم. «ددی له پاره چی د هغه د حرکاتو څارنه وکړم زه په دی بريالی شوم چی خپل يو نفر د نوکر په توګه ورسره واستوم.»

«هغه په دی باندی پوه شو چی له شيرآغا سره د خپلی ليدنی کتنی د موضوع په يادولو سره يی اشتباه کړی وه، او وروسته يی هڅه وکړه چی کومه انطباع چی هغه ورکړی وه، له منځه يوسي.»

په همدې وخت کې يو بل ملا چې د غزني اوسيدونکی و، د کويټې له لارې تير شو، هغه د خوست د شورش له محرکينو څخه و او که چيرې علي احمد ورته وختي خبر نه وای ورکړی چې وتښتي نو امان الله به دې تير کال د گرديز ليدنې کتنې په وخت کې گرفتار کړی وای. همدا راز دی له يو بل ملا سره ديره اسمعيل خان ته ته. دې بل ملا برتانويانو ته د نورو خلکو د راتگ په باب خصوصي معلومات ورکول. يو يې د ځدران ملک و چې د خوست له بند څخه تښتيدلی و، بل يې د يو سړي زوی و، چې په کابل کې بندي و. داسې ښکاريده چې شيرآغا داسې يو شی شوی و، چې هغوی ټول په هغه لور ور روان وو او هغه له څو تنو ملايانو سره هلته رسيدلی و چې ځينې يې کابليان وو.

يو مجلس بايد داير شوی وای او دا هغه شی و چې برتانويانو واوريدله:

«زما رپوټ چې وايي چې ددې مجلس د دايرولو دليل دا دی چې هغه پلان په اصولو برابر کړي چې د هغه په واسطه د اافغانستان جديد يا نوی پارټي «د ريفورم پارټي» له منځه وړل کيدی شي. هغه وويل چې علما او د افغانستان ټول عوام ددې نوې پارټۍ مخالف دي، ځکه هغوی فکر کوی ددې پلان په عملي کيدو سره به افغانستان او اسلام ته زيان ورسيږي. هغوی عملاً د پاچا پر ضد نه دي بلکې غواړي د هغه د غيابت په موده کې ددې نوې پارټۍ په محوه کولو سره هغه ته يو کلک گوزار ورکړي او په دې کار سره د يو اجرا شوي عمل په توگه پاچا مجبور کړي چې له خپل موجوده سلوک څخه د اسلام د اصولو په ارتباط لاس واخلي. بيا هم، که پاچادا خبره ونه مني، هغوی به آماده وي چې يو جمهوريت منځ ته راوړي.»

پارنياله (Paniala) چې د ديره اسمعيل خان په شمال کې يو کوچنی کلی دی، د جنورۍ په ۲۸ نيته، کله چې شيرآغا د خپلو پيروانو په بلنه هلته لاړ او د فبرورۍ د لومړۍ نيټې په منځ کې، کله چې هغه د کوچيانو د ډيرو کيږدېو له ليدو وروسته بيرته ديره ٠اسمعيل خان ته راغی، ددې مجلسونو ځای و.

پانياله دومره کوچنی ځای دی چې په ډير نقشو کې نه ليدل کيږي، دا ځای چې خلک په کې خپل غذايي اړتياوې د کفايت په اندازه برابر وي او زيات نه برابروي يو ښه آرام ځای دی، ليکن د مجلس په وجه د افغانستان په تاريخ کې مهم وگڼل شو، چې ددې په باره کې يو راپور ورکوونکي يو افغاني ملا چې حاضر و برتانويانو ته مفصل راپور ورکړ.

راپور ورکوونکي وويل: شيرآغا په پوره تياری سره راغی چې په خوست کې هغه ډوا

شورش منځ ته راوړی چې په ١٩٢٤ کال کې نژدې و، امان الله له قدرت څخه وغورځوی. هغه ته د محمد غلزي د قبیلې د ملکانو د پټو مجلسونو له خوا د حمایه کیدو تضمینونه شوی و چې خپل ژمې یې د یره اسمعیل خان ته نژدې تیراوه. هغوی د امان الله له هلو ځلو څخه منتظر وو چې عسکري خدمت ته یې راجلبول، کله چې هغوی خپلې رمې د اوړي په خاطر د لویدیځ په لور وړلې، نو د افغانستان عسکر به ورته ظالم معلومیدل.

د شیراغا له دقیقو پلانونو سره سره ځینې کسان موجود وو، چې غوښتل یې هغه پلانونه د هغوی له مفکورو سره سم اصلاح کړي. دوه افغاني تبعید شوي پاچاهان چې هند ته تبعید شوي وو د مرحوم سردار ایوب دوه زامن وو چې څو کاله د مخه یې ناکامه هلې ځلې وکړې چې افغانستان ته داخل شي، چې د غلزي د طایفې د مشر غوث الدین له خوا تحریک شوي وو. پر غوث الدین باندې اعتبار شوی و، چې له انګریزانو څخه پیسې واخلي او د نورو پیسو په خاطر دې هغوی امیر تسلیم کړي. اوس ځینو کسانو پیشنهاد وکړ، چې دغه کسان دې افغانستان ته معرفي شي چې د امان الله پر ضد یې په توطئه کې برخه درلوده او همداسې چې د ١٩٢٤ کال په شورش کې د عبدالکریم نامطلوب ګڼل شوی و دده عمل هم وګڼل شي. د غوث الدین د خپلې طایفې دوه تنه په پانیاله کې حاضر وو او ویل به یې چې مور ددې له پاره راغلي یو چې له دغو کسانو سره مرسته وکړو او د فبروري د اوومې نیټې په شپه یې د مذهبي مراسمو په ترڅ کې یو یې د افغانستان جلال آباد او بل یې خوست ته یوسو.

شیراغا په خپل پلان کې د دغو کسانو معرفي نه خوښوله، چې د تاج او تخت د عودة کوونکي وو. دا سې ورځ به راشي چې ډیر افغانان به یقین وکړي چې هغه د خپل ځان له پاره تاج او تخت غوښت او په دې توګه یې بل کاندید ته موقع نه ورکوله، کوم شي چې هغه ملایانو ته چې په پانیاله کې ورڅخه راتاو وو وویل هغه دا و چې دغه شاهي فراریان به موضوع ګډه وډه کړي. هغه وویل چې خوست د اسلام په خاطر راپورته شوی دی، چې بې دینه پاچا له منځه یوسي. اوس علت په خالصه توګه مذهبي و د خوست خلکو به دومره سخت جنګ تش د یوې شاهي کورنۍ د له منځه وړلو په خاطر نه کاوه، او د خپلې حمایې ټول شیان به یې په خطر کې نه اچول. هغه په پای کې موافقه وکړه چې له دغو ځوانو سړیو څخه ممکن یو تن د جلال آباد د شاوخوا یوې سیمې ته داخل شي، لیکن خوست یوازې د هغه و.

شیراغا چې له دې ستونزې څخه خلاص شو، اوس یې د مذهبي قانون په رڼا کې خپل

اساسات، د امان الله پر نیمګړ تیاو باندی د بحث کولو په واسطه، کیښودل. ټول حاضر کسان یې په دی باندی پوه کړل چی د بلوا کولو په واسطه به دوی د خدای(ج) او پیغمبر(ص) اوامر پر ځای کړی وی، وروسته یې خپله دقیقه نقشه خلاصه کړه.

شیرآغا وویل: زما دوه تنه خپلوان په کابل کی ددی کار په خاطر په فعالیت مصروف دی. زما ورور ګل آغا او وراره می معصوم چی د شاآغا زوی دی. هغه د زمیندارو خلکو د فعالی همکاری هیله وکړه چی کندهار ته نژدی یوه سیمه وه، او د امان الله د طایفی چی درانیان وو، یوه مهمه تکیه ګاه وه. په پانیاله کی د کندهار د یوه قاضی نه توقع کیدله. شیرآغا ورته له لاهور نه تلګرام وکړ چی هلته په لیدنه کتنه مصروف و، مګر هغه را ونه رسید.

څو تنو ملایانو ته د شورش دندی ورکړی شوی. حاجی دوست محمد ته ویل شوی وو چی د شیراغا اشارو ته دی تیار واوسی او د هغو کوچیانو د پارولو په خاطر دی دوکی (Doki) لورالی (Loralai) او تل (Tal) ته لاړ شی چی د پسرلی په پیل کیدو سره بیرته له هند څخه افغانستان ته راګرځی. دوو تنو ملایانو ته چی یو یې محمد حسن نومیده او مستعار نوم یې عبدالرحیم و او بل یې محمد جان و ویل شوی وو چی سمدستی دی خوست ته لاړ شی او د منګلو او ځدرانو په قبایلو کی دی شورشیان وپاروی. ملک بلند هم ځدرانو ته تاکل شوی و حال دا چی ملک غلام خان ته امر شوی و چی د ګریز خواته لاړ شی. ګریز یوه سیمه ده چی په تیر کال کی لې اړ دوړ سره مخامخ شوی و.

حاجی دوست محمد راپور چی وویل: «ملایان... ډیر د روسیی ضد دی او داسی توقع کیږی چی روسیی مرستی حکومت ته رارسیدونکی ده، ځکه هغوی فکر کوی چی... ټول افغانستان به د هغوی د اهدافو قربانی شی.»

هغه د شیرآغا نوم یې ذکر کړ چی په پلان کی د نورو مهمو کسانو په جمله کی د نادر د ورور شاه محمود چی په دی نژدی وخت کی د جلال آباد له نایب الحکومه ګی څخه راغوښتل شوی و، عبدالعزیز چی د حربیی وزیر و او د محمد عثمان نوم ونه راوړی وو، چی د کندهار پخوانی والی و او اوس د کابل د دینی مدرس عهده دار و.

په دی خیرو سره برتانویانو د اکرم او اعظم سردارانو له پاره چی په هند کی وو د خاص څارنی امر صادر کړ، چی په پټه توګه د سرحد له لاری افغانستان ته ونه تښتی. دوی په لکهنو

کی سابقو ته حاضر شوی وو. د فبروری اووم تاریخ راورسید چی د دوی د تیښتی ورځ ټاکل شوی وه، لیکن دوی لا په مسابقه کی وو. د مارچ اتمه نیټه شوه او کوم شورش ونه شو.

شیراغا بنو ته لاړ چی له کوچیانو سره ووینی لیکن یوه اوونی وروسته د یره اسمعیل خان ته راستون شو. «یو سړی چی دمخه یې زما له پاره کار کاوه، له دیره اسمعیل خان څخه راغلی دی او ماته یې ویلی دی، چی شیراغا د پانیال د حضرت صاحب ته «مینه څرگندوی.» وروستی نفر د غلزو خلکو له پاره یو ستر شخص دی. په خپله شیر آغا په مرتب ډول سره له غلزیانو سره لیدنه کتنه کړی ده.»

باسیل گولد (Basil Gold) چی د همفریز په غیاب کی د برتانیی د نماینده گی رهنمایی کوله، ولی ته د اخبار تبصره وښودله چی پر شیراغا باندی د هغه د نظر د غوښتلو د یو معذرت په توگه شوی و. ولی د هند له حکومت څخه مننه وکړه چی له ده څخه مشوره غوښتل شوی وه، او وی ویل چی زه ددی سړی په باره کی معلومات لرم او فکر کوم خطرناکه منبع به نه وی مگر وی ویل چی د هغه په مورد به په موقع سره دوباره خبری وکړم.

وروسته برتانویانو په خپل اقدام لاس پوری کړ. د شیراغا په مورد کی د دوی ډیر معلومات د خصوصی راپورونو په تاریکه ساحه کی و، مگر هغه د یو شی په باره کی بیخی ازاد و، په اروپا کی د ملکه ثریا د بی چادری گرځیدنی په مورد کی د هغه کلک انتقاد او د شاگردانو د «بی دینی» تدریس. هغه پر دغو موضوعاتو باندی دومره آزاد غږیده چی گرفتار کیدو ته ځان د هند د هغه قانون له مخی وقف کړی و چی سړی د هغه پاچا په بد ویلو باندی بندی کیده چی له هند سره یی دوستی وی.

د دیره اسمعیل خان د کومشنر مرستیال امر وکړ چی د شیراغا دی دده حضور ته احضار شی. دی سړی چی په خپله اوامر صادرول اوامرو نه یی نه منلی د کومشنر د مرستیال امر یی رد کړ او ونیول شو. څنگه چی هغه هلته لاړ، اعتراف یی وکړ چی امر ورته رسیدلی و مگر وی ویل چی زما د غوښتل کیدو دلیل راته ونه ویل شو، او زیاته یی کړه چی د کومشنر مرستیال غوښتی وای له ما سره ووینی، باید خپل مقصد یی واضح کړی وای. «د مصاحبی په وخت کی د شیراغا رویه لږ څه شدیده وه ... ما ترتیبات نیولی دی چی هغه‌دی له دیره اسمعیل خان څخه نن شپه لاړ شی. لاهور د هغه منزل مقصود دی.» په دی توگه شیراغا له افغانی سرحد څخه لیری یووړل شو، چی هلته د هغه تبلیغ ډیر خطرناک و.

د کومشنر مرستیال وویل: « ما ورته د احضار کیدو دلیل تشریح کړ مگر هغه ونه منله او وویل چی په داسی فعالیتونو کی می برخه نه ده اخیستی. »

له شیراغا سره په لاهور کی د هغه مور تر هغه وروسته یو ځای شوه، چی هغه له یو سردار سره لیدنه کتنه وکړه، چی افغانستان ته د هغه پیژندګلوی تجویز شوی و. هغه خپلو مریدانو ته وویل، چی زه به یا سرهند ته لاړ شم یا بمبیی ته. مگر هغه د می په میاشت کی د شمال لویدیځ ایالت لوړ رتبه کومشنر ته په یو لیک کی سرحد ته د بیرته راتلو وروستی هلی ځلی وکړی، چی په کی دا مغرور سړی د « مهربان حکومت » په وړاندی ځان ددی پلمی په کولو سره متواضع وښود چی سکه مریدان وغواړی نو سرحدی ایالت ته د عارض ورتگ کله کله آزاد وی ... دا یو منل شوی حقیقت دی چی ستاسو مخلص عارض د گټی کومه بله منبع نه لری. هغه د خپلو مریدانو له خوا حمایه کیږی. همدا راز د هغه د کورنی او د نورو مربوطو کسانو له پاره هستوگنځی او د ضرورت وړ شیان د نوموړو مریدانو له خوا برابریږی. که هغه له دی ځخه منع کیږی نو په دی باندی به قادر نه وی چی د ځان، کورنی او د خپلو نورو مربوطو کسانو له پاره د ژوند اړتیاوی برابری کړی. د هغه د توښی منابع به ورځخه پاته شی او دی به له خپلی کورنی او ورسره تړلی کسانو سره له لوړی سره مخامخ شی. هغه داسی فکر نه کوی چی مهربان حکومت به دده په مورد کی داسی عمل وکړی. ددی په ځنگ کی هغه دا یادونه وکړه چی باید خپل هیواد افغانستان ته لاړ شی. که هغه له دی ځخه منع کیږی، نو هغه به په دی قادر نه وی چی د خپل بیرته راتگ پیسی ورکړی. دا لومړنی دلیل دی چی دی یی ددی امر د له منځه وړلو په خاطر غوښتنه کوی. یا که چیری امکان ولری، نو حکومت دی د مهربانی له مخی ده، دده کورنی او د هغه د نورو متعلقینو له پاره د ژوند وسایل برابر کړی. »

د کومشنر سرنارمن بالتین (Sir Norman Balton) په یو یادداشت کی داسی ویل شوی وو: « هغه صرف ددی په خاطر ایستل شوی و چی له دی ایالت ځخه د افغانستان پر ضد دسیسی د جوړولو دستگاه په توگه استفاده کوله. زه دا تجویز کوم چی له کابل ځخه تپوس وشی چی آیا لا هم غواړی چی دی له هیواد ځخه بهر وی؟ »

سلطان احمد د بهرنیو چارو د وزارت کفیل، د فیض محمد د اکا زوی، وویل چی شیراغا افغانستان ته د بیرته راتگ اجازه غوښتی ده. او د هغه ډیر زیات دراکیت به ددی باعث

وګرځی چی د هغه اهمیت په خپله دده او د خلکو په سترګو کی لوړ لاړ شی. لیکن هغه تصمیم وځنداوه او برتانویانو د شیرآغا ساتلو ته د افغانستان حکومت په غوښتنه له سرحد څخه لیری دوام ورکړ.

په کویټه کی افغانی تجارتی نماینده به مصور اخبارونه رانیول او د قبایلیانو په لاس به یی کابل ته استول څو د هغه ځای مامورین هم د ثریا عکسونه په اروپایی جامه کی ووینی. هغه په دی هکله له یو هندی صاحب منصب سره اظهار نظر وکړ چی د امان الله د طرفدارانو او د هغه د دښمنانو له خوا وربانـدی په پس پس خبری وشوی چی امکان لری امان الله به په نورو هیوادونو کی عمری میلمه شی.

# نولسم فصل

# د ۱۹۲۸ کال د جنوری له ۸ څخه

# د ۱۹۲۸ کال د مارچ تر ۱۳ نیټې پورې

په یو اخبار کې لیکل شوي وو: «د شاهي مشتریانو مواصلت.»

یو خوش باور ته د ۱۹۲۰ کال زیاتره لویدیځ کسان خوش باوره وو، دا څرګنده وه چې یو هیواد چې په پیړیو پیړیو هیڅ شی نه وي پیرودلی، باید هر شی ته اړتیا ولري. زیاتره دغو کسانو چې د افغانستان د پاچا له راتګ څخه خبر شول، مجبور شول چې اطلسونو ته مراجعه وکړي، چې افغانستان چیرې موقعیت لري. هغوی به وروسته امان الله ته د هغه په هیواد کې د ټول عمر د ګټې داډ کیرنه ور کوله. کومه ماهره ښځه دغه د یادونې وړ اصطلاح یې بیان کړه: «د امان الله خان اړتیاوې د چک کتابچه هم نه شي پوره کولی!» چې معنی یې موهوم مشتری و. د ډیرو اروپاییانو په فکر، امان الله د چک له کتابچې سره هم خپلې هیلې نه شوې پوره کولی.

هغه څه چې هغوی زیاتو افغانانو ته معلوم نه وو، د چک د هغې کتابچې منابع هم ورته معلوم نه وو. څلور کاله د مخه یو ایټالوي متخصص چې له افغانستان سره د پیسو مرسته کوله ویلي وو چې د افغانستان د پروژو له پاره زیاتې پیسې موجودې دي. د خوست شورش د هغو ذخیرو زیاته برخه له منځه وړې وه. هغومره چې د رشوت له لارې پیسې تللې وې، هغومره په جنګ کې هم تللې وې، غوث الدین د خپل د احمدزي غلزي د دوه جانبه پیچلي رول په خاطر

۰۰۰ ۱۵۰ روپی ترلاسه کړی وی. لیکن د امان الله سفر، چی د ډیرو افغانانو په فکر د عیاشی یو پرمصرف سفر و، دومره پرمصرف نه و چی هغوی فکر کاوه. امان الله یو ماهر او خاص میلمه و. هغه به صرف هغو هیوادونو ته چی له ده څخه یی ښه هرکلی کاوه، د هند له لاری د هغه سفر او په راجپوتانه کی د مصر په لور، د روان سرک له خبرو سره سره، د هند حکومت ته تقریباً د لسو کالو نه ترلاسه شوو پټو مالی مرستو، یا د ۶۳۰۰۴۹۱ روپیو په ارزښت تمام شو. د هند حکومت په دی خبره باندی په قار شو، چی امان الله هیڅ پوه نه شو چی کوربه یی څوک و، او په دی باندی یی ټینګار وکړ چی د انګلستان له حکومت څخه مننه وکړی.

امان الله په روم کی د خپل ایتالیی مختار وزیر په واسطه د امریکی متحده ایالاتونو ته پیشنهاد وړاندی کړ. لیکن ورته وویل شو چی د امریکی د لیدنی کتنی ټول لګښت به دی په خپله وکړی او سره له دی چی هغه به د دولت د سکرتر د مرستیال له خوا په قرانطین کی هرکلی وشی، خو دولتی میلمه به نه وی. د واشنګټن هدایات داسی هدایات وو چی له سفر څخه د سړی زړه تورول او او دی خواب دا کار وکړ.

د امان الله د سفر لګښت دده د ارګ له شخصی خزانی څخه کیده. د رسمی خریداری په هکله، هغه هیله څرګنده کړه چی ځینی کسان د خرڅلاو زیاته علاقه لری، له خپلو محصولاتو سره دی افغانستان ته راشی، چی په دی توګه یی له ځانه سره سرمایه راوړله. ستر هیوادونه تر اوسه پوری داسی یوه پالیسی نه ده غوره کړی چی کوچنی هیوادونه دی یا په خپلو پیسو ودریږی او یا دا چی د شیانو د رانیولو په خاطر دی ورته نقدی پیسی ورکړی. د ګټو په دی معامله کی په داسی یوه ساحه کی چی هلته ستر هیوادونه له ده څخه زیاته تجربه نه درلودله، امان الله یو نابلد او مبتدی امیدوار و.

د ایتالیی پاچا چی شین بخنی یونیفورم یی اغوستی و، د امان الله تر سیوری لاندی راغلی و چی آبی یونیفورم او توره شپو یی اغوستی و چی د ښنګی څخه جوړ شوی شفتالو ډوله ګل په کی توميل شوی و. کله چی هغوی د روم د اورګاډی په ستیشن کی سره ولیدل، د ایتالیی اصلی واکدار، صدراعظم بنیتو موسولینی (Benito Mussoleni) هم حاضر و چی خلک په داسی علاقی سره امان الله له هغه سره مقایسه کاوه چی ځینی حتی د دواړو په مخونو کی شباهتونه ولیدل، چی یو یی مربع شکله او بل یی ګردی و. امان للّه د «ختیځ موسولینی» په

نامه سره یاد شو. هغه ادبي معمولي عبارت چې لویدیځ موسولیني په هغه باندې معرفي و، دا و: «هغه اورګاډي ته دي ته مجبور کړل چې په خپل وخت حرکت وکړي.»

تر روغبړ کولو وروسته موسولیني له دروازې څخه غلي ووت او د پس کوځو له لارې د ګولیو ضد په موټر کې لاړ، دا د دواړو ترمنځ یو توپیر و. امان الله د خلکو په شور او هل هلو کې په یو سرخلاص موټر کې روان و چې ویتوریو ایمانویل (Vittorio Emanuele) هم د هغه په څنګ کې و. ثریا چې د سره ګلاب د ګلانو یوه دسته ورسره وه چې ورته تقدیم شوې وه، هم له دوی سره سپره شوه. دا د هغې لومړنۍ تجربه وه چې په عامو مراسمو کې مخ لوڅې ګډون وکړ او د لویدیځو ښځو په شان یې عمل کاوه.

ویتوریو ایمانویل پاچا، امان الله یې دومره خوښ کړ چې له نورو پاچاهانو څخه دده احترام یې زیات وکړ. د هغه ملکه، چې له مونتینګرو (Montengero) څخه چې د افغانستان په شان یو هیواد و، راغله، هم امان الله یې خوښ کړ. هغوی دوه شاهي مړونه او ښځې وي چې که قسمت دوی پاچاهي ته نه وای رسولی، نو میلو ته به سره تلل او یو بل ته د خپلو ماشومانو عکسونه ښودل. د ایتالوی د لیدنې کتنې جایزه دغه دوستي وه.

د کویرینل (Quirinal) په ماڼي کې له درو ورځو وروسته، امان الله مجبور ګرینډ هوټل ته وخوځید. ددې له پاره چې له یوولسم پاپ پي یس (Pope Pius xi) سره چې د «واتیکان بندي و» ملاقات وکړي، او د هغو کسانو له جملې څخه له یوه سره هم ملاقات ونه کړ، چې د پاچا له رسمي هستوګنځي څخه راغلي وو. امان الله چې په هیواد کې یې نه یوازې د کاتولیکانو مبلغین نه وو حتی هیڅ کاتولیک د هغه په هیواد کې نه و، لومړنی زمامدار و چې د پاپ له خوا ورسره لیدنه کتنه وشوه. ممکن افغانستان په نړۍ کې یوازینی دغسې یو هیواد وي. پاپ فکر وکړ چې له امان الله سره همدردي ښودل به په افغانستان کې په یو وخت کې د کاتولیک د مذهب د رواجولو لومړنی ګام وي، لیکن د کلیسا له اوردې حوصلې سره هغه دا غوښتنه په ازاده توګه ونه کړه.

امان الله د کلیسا او ددې سړي په باره کې چې غوښتل یې ورسره ووینې مخکښې خبرتیا نه درلوده. کله چې ورڅخه پوښتنه وشوه ستا په هیواد کې کوم کاتولیک شته، هغه ورته ځواب ورکړ چې ډېر زیات. په دې ځواب سره هغه غوښتل چې لومړي خپل مهربان میلمه پال خوښ کړي او بل دا چې هغه په واقعي توګه نه پوهیده چې کاتولیک څه شی دی.

واتیکان په رارسیدو سره هغه له شهزاده ماسیمو (Massimo) څخه چې د پاپ د تشریفاتو رئیس و وغوښتل، کله چې د تاج کوټې ته داخل شي، نو دا ور څخه هیره نه شي چې د هغه جناب میرمنې په ګوته نه کړي. شهزاده وویل چې پاپ ښځه نه لري، امان الله حیران پاته شو. له حاضرینو وروسته هغه د پاپ د بهرنیو چارو له وزیر پیترو کاردینال کاسپري Pietro) (Cardinal Casparri سره ملاقات وکړ چې ورسره د پاپ د مجردې په باره کې خبرې وکړي چې یوه خواشینې کوونکې موضوع ده. هغه د مقدس کالیج په باره کې پوښتنه وکړه او پوه شو چې د هغه غړو ودونه نه وو کړي. وروسته امان الله کاردینال کیسپرې ته وویل چې زه فکر کوم تاسو خو باید له مجردې حالت څخه خلاص یاست. امان الله وویل په اسلام کې داسې شې نشته، دا یو نه منونکې شې دې چې د ښځو په نه کولو سره سړي کولې شي خدای(ج) خوشاله کړي.

همدا راز امان الله ته د پاپ د «بندي کیدو» حالت د تعجب وړ و. هغه پاپ... ته وویل: «زه اورم چې ستا او د پاچا په منځ کې مخالفت موجود دی. زه په هغه باندې نه شم پوهیدلې، ولې پاچا دومره ښه سړی دی! ستاسو جناب به ووینې چې په درو یا څلورو کلو کې به تاسو له واتیکان څخه ووزې. زه په دې متیقن یم.»

ویتوریو ایمانویل، په خپل وار سره دومره د امان الله تر اغیزې لاندې تللې و چې هغه نښان یې چې ورته منظور کړی و، په ایتالیا کې لوړترین نښان و، د انزیاتا (Ananziata) کالر، چې د دوولسو نیوونکو له پاره ټاکل شوی و، چې د اسپانیې او انګلستان پاچایان هم په کې شامل وو. د غه اعطا دوه پاچایان سره «د تره زامن» وګرځول او په حقیقت کې ویتوریو ایمانویل مجبور و، وروسته ځان د اکا زوی وښيي.

فرانسویانو ددې په کشفولو باندې هیڅ وخت ضایع نه کړ چې د ثریا نوم تقریباً له سورایر (Sourire) سره شباهت لري، چې یو فرانسوي لغت دی او د «مسکا» معنی ورکوی او زیات استعمالیده. د ثریا د تیرو وختونو ګوښه توب د هغه حیا موجب ګرځیدلې و چې دا حیا هغه یې د فرانسوي ښځو په محیط کې چې د زیږیدنې له نیتې څخه زده کړه کړې وي څو وکړې شي د نارینه و په ټولنه کې توافق وکړي، محبوب او په زړه پورې ګرځولې و. خیاط ښې جامې جوړې کړې وي، ثریا به ښه اصلي ذوقي لباسونه اغوستل چې صفت یې کیده.

ثریا بدنصیبه وه چې لویدیځې نړۍ ته د هغې داخلیدل په داسې وخت کې صورت ونیو چې

لنډی لمنی اغوستل کیدی او د خوځنده یا فلیپر ستایل (Flapper style) په نامه سره یادیدی... د ثریا گنډونکی ښه هوښیاره وه چې د فلیپر ډوله کمیسونه یی ورته نه جوړول او پخوانی کمیسونه به یی ورته جوړول چې لمن به تر زنگنو ښکته وه. دا هغه نمونه وه چې د انگلستان ملکه به لس کاله وروسته اغوستل، په داسی حال کی چی نورو ښځو لا هم لنډی لمنی اغوستلی.

امان الله او ثریا د جنوری په ۱۹ نیټه له روم څخه نیس (Nice) ته لاړل او ښځه ورځی یی په خوښی سره تیری کړی، خو د دوی یوازنی بده خاطره له نادر سره د دوی خبری وی چی د فرانسی د ریویرا (Riviera) لمر لرونکی ورځی یی وربانذی خرابی کړی. امان الله خبریالانو ته وویل: «زه غواړم په اروپا کی ښه او بد په خپلو سترگو ووینم او په دی توگه یی ځان له هغو دولتی میلمنو څخه ریالیستیک ښوده چی ویل به یی په اروپا کی هرڅه ښه دی. امان الله د قماربازانو ځایونه ولیدل او د حسن جان نندازه یی د قمار وهلو په حال کی وکړه. امان الله چی په خپله قمار ونه واهه، حسن ته ځیر و، چی قمار یی بایلود.

د جمهوری ریاست مخصوص موټر چې بهرنیو مخورو میلمنو له پاره تاکل شوی و، له ابی اورگاډی (Blue Train) سره ضمیمه شو چې شاهی ډله پاریس ته ورسوی. امان الله په اخبارونو کی د «آسیا د ډیر آزاد او تکړه پاچا په نامه سره یادیده، دا د هغه هیواد د ټول حکومت لیدنه کتنه ده، په دی چی له موسولینی څخه زیات، له استالین څخه زیات امان الله د خپل هیواد له هری لوری پوره حکومت دی. »د پاریس یو پیغام د هغه اهداف داسی لست او ترتیب کړی وو: «هغه غواړی چی فرانسه دی په بانکی مسئلو کی ورسره مرسته وکړی، له جرمنی څخه غواړی چی د طبیعی منابعو په کار اچولو کی ورسره مرسته وکړی. له انگلستان څخه غواړی چی وسله دی وربانذی خرڅه کړی او له روسیی څخه غواړی چی نورو ته تشویش خلق کړی.

د فرانسی په دوه میله اوږده پراخه جاده کی د فرانسی عسکری موزیک د افغانستان ملی سرود وغږاوه، چی دوی هم په هغه شیبه کی زده کړی و. هدایت الله د امان الله د لومړنی واده زوی په افغانی نماینده گی په انتظار ناست و چی په شخصی توگه له خپل پلار سره یوځای شی. امان الله خپل زوی شپږ کاله دمخه لیدلی و، چی په یوه لنډه رخصتی راغلی و. لمر ځلیده او د فرانسی ټوله کابینه له جمهور رئیس گیستون دومرگیو (Gaston Doumergue) سره د

بایس دې بیلون (Bois De Boulogne) په استیشن کې په انتظار کې و، چې «ابې اورګاډي» دومره په ماهرانه توګه تم ځای ته ودریده، چې د امان الله د مخصوص موټر دروازه له هغه سره قالیني سره جفت او برابر شو چې د اورګاډي د ستیشن په صحن کې غوړول شوي وه.

امان الله او ثریا ښکته شول. ثریا چې فرانسوي ژبه یې زده کړې وه وویل، بانجور (Bonjouur) خپل لاس یې اوږد کړ. د فرانسي جمهور رئیس د ثریا لاس ښکل کو، عکاسانو په دې شیبه کې ژر عکاسي وکړه.

د افغانستان د ملکې د یو بهرني سړي له خوا د لاس ښکلولو صحنه د هند او افغانستان ترمینځ د سلیمان د هغو تیولو غرونو په لړي کې تیکان ورکوونکې خپې منځ ته راوړې چې ویروونکې قبایلیان په کې اوسیدل. دغه تیکان ورکوونکې خپې تر بمبیي پورې ورسیدې او هلته یو اخبار یو کارتون چاپ کړ چې یو ملا د ملکې د مخ لوڅې عکس په لیدو سره په تشویش کې ولوید. د لاهور یو اخبار چې میلاپ (Milap) نومیده ځرګنده کړه چې د محمد ایوب خان په لاسلیک سره چې یو پښتون دی، یو لیک رارسیدلی دی او غوښتنه یې کړې ده چې د دغسې موضوعاتو له چاپولو ځخه دې ډډه وشي، لکه چې په دې وختو کې د میلمستیا هغه صحنه خپره شوې ده چې د افغانستان ملکه په هغه کې مخ لوڅې ګډون کړی دی. محمد ایوب خان په پوره غلطۍ سره ولیکل: «د دې تور په بدل کې افغان حکومت یو تن مهاشا مهور سند (Mahasha Mhursand) یې په مرګ محکوم کړی دی او هغه سر به د پاچا په وړاندې د اسلام په خنجر پرې کړی شي. د اخبار چلوونکې دې یا باید معافي وغواړي او یا دې ځان په رابي (Robi) کې واچوي چې په دې وسیلې سره جنت ته ځي او هلته به ښاپیریان ورته غسل ورکړي.» د اخبار چلوونکي وویل، د حقایقو په خپرولو سره په مرګ محکومیدل کومه بدمرغي نه ده او زه د ښاپیریو له موضوع سره کومه علاقه نه لرم.

په کندهار کې ځینې کسان چې ددې لیک په شکمن توب کې یې برخه درلوده، ویل چې دغه ملکې مخ لوڅې عکسونه ممکن صحیح نه وي، بلکې د برتانیې له خوا د پروپاګند په توګه باید په دوران کې اچول شوي وي.

په هرات کې روسي قونسل پولیاک (Poliak) خوښ و، چې دا خبر خپور کړي چې د افغانستان ملکه په خپل سفر کې مخ لوڅې وه. په لندن کې چې ددې سفر فلم جوړ شوی و،

داسې تبصره کېدله: «دا قلم چې هيواد (افغانستان) ته واستوو، موږ مجبور يو ځينې برخې يې چې لازمې نه دي هغه ترې ايسته کړو.» ځينو کسانو به تعجب کاوه چې پر ثريا باندې د فير کولو عکس العمل به څه وي، چې پزه يې توږل شوي ده.

ولي د جنورۍ د مياشتې په يو وخت کې پوه شو چې د بډوډۍ د تيږې له ناروغۍ څخه مخ په ښه کېدو دی، هغه تصميم ونيو چې د امان الله د بيرته راتګ څخه وروسته، چې د پاچا له نيابت څخه خلاصيږي، د علاج له پاره به اروپا ته لاړ شي. په عين حال کې د پسرلي احتمالي خطر ته متوجه و چې په دې موسم کې غلزي او نور کوچيان د افغانستان خوا ته ځي، هغه د خوست شاوخوا سيمو ته د نورو وسلو د لیږلو امر صادر کړ. دا يوه بدمرغي وه چې د تګاو ملا، د کابل په شمالي سيمه کې يو بانفوذ مذهبي مشر، اجازه غوښتله چې خپله دارايي خرڅه کړي او له افغانستان څخه مکې معظمې ته لاړ شي، دا د شيرآغا يادونه وه، ولي خان دا تصميم د پاچا تر بيرته راتګ پورې وځنډاوه.

هغه هڅه کوله چې يوه ډله قبايليان په آرامۍ کې وساتي چې د هغوی په مورد کې يو مامور په غضب سره ويلي وو چې که ټول غرونه خالص سره زر شي او ټول يې د غو قبايليانو ته ورکړای شي، لا هم به دوی ته کافي نه وي. هغه هڅه وکړه په غزني کې د يو ښوونځي په پرانيستلو سره د امان الله حراست ته ځواب ووايي او له هلکانو ځينې وغواړي چې ورته حاضر شي، د غزني ښاريان په قار وو. په کندهار کې يو تورن قاتل د مقتول د کورنۍ په لاس ورکړ شو او هغه د قصاص په قصاص د زوړ روايت له مخې، چې امان الله ژمنه کړې وه دا شي له منځه وړي، قصابي شو. يو ملک چې کندهار ته نژدې ژوند کاوه، د خپلې مالیې د باقيدارۍ د نه تحويلولو په خاطر ونيول شو او د ضمانت له ورکولو وروسته ورته وويل شو چې کابل ته دې لاړ شي، اما په عوض کې دې هغه لوري ته لاړ چې ولي ته به خطر منځ ته راووړ، که چيرې په ټولو هغو شيانو باندې پوه واى، چې برتانويان پوهيدل هغه ديره ء اسمعيل خان ته لاړ، کله چې شيرآغا هلته و.

ولي خان لکه د بل هرچا په شان، بدشګومه آواز واوريد. د برتانيې د نظامي آتشې په يو يادداشت کې ويل شوي وو: «له جلال آباد څخه خبر ورکړی شوی دی چې د پاچا پر ضد د دسيسې د اوازې په نتيجه کې په ختيځو ايالتونو کې ناکراري منځ ته راغلې ده. داسې معلوميږي چې په ختيځو برخو کې د جمهوريت د طرفدارۍ تبليغ د کابل د پخواني والي، شاه

محمود له خوا باید شوی وی، نه له کابل څخه. د شاه محمود د څو تنو طرفدارانو چی په ختیځو ایالتونو کی وظیفه درلودله، اوس تبدیل کړی شول. » د لندن تبصره داسی وه: « (دا اوازه) تر یوی اندازی پوری ویرونکی ده، ځکه چی د هغو قبایلو له خوا حمایه کیدی چی بی له کوم شکه د دغی کورنی (نادر) تر نفوذ لاندی دی. »

وروسته د اپریل په پای کی په هند کی د دوو تبعید شوو سردارانو، اکرم او اعظم په باره کی چی د پاچاهی د نیولو د نقشی اوازه خپره شوی وه، چی دا اوازه په سرحد کی د یو مرموز ځلور ویشت کلن اجنبی په ظاهریدو سره حقیقت واوښتله. له دی اجنبی سړی سره یوه نه کلنه نجلی هم وه چی د هغه په قول خوری وه. په کابل کی او هم ښکته او پورته په قبایلو کی دا کیسه خپره شوه چی اکرم په قبایلو کی پیدا شوی دی. دا سړی ونیول شو، او کابل ته راوړل شو او اعتراف یی وکړ چی زه اکرم د پخوانی امیر یعقوب لمسی یم، او د یو خیالی گدایی گر کیسه بی به دروا غو وکړه چی زه یی خپلی سیمی ته په ښو کی د یو سید کور ته راوستی یم، چی یو هندی ښارگوتی و. شیرآغا به په تصادفی یا غیر تصادفی توگه دی کورته راته او دا کیسه یی هم وکړه چی دی سید زه په خصوصی توگه خوست ته ولیږلم. په هغه وخت کی د یعقوب د لمسی په نوم سند په منځ که نه و. ځینی اوازی داسی وی چی دا سړی عبدالکریم نومیږی چی د خوست د بلوا په وخت کی هلته و، هیڅوک په دی باندی نه پوهیدل چی عبدالکریم خان په برما کی وژلی و، او ځینوی چی دا خبری اوریدلی وی، باور یی وریاندی نه کاوه.

کوم بزرگ به ممکن ورته د ټولو خیالونو او آوازو رښتیا کول ښودلی وی. د اکرم او اعظم په باره کی خبری دیری کیدی چی ولی خان د مخه خپله رضامندی ښودلی وه چی هغوی دی په افغانستان کی له ځان سره ولری، چی هلته یی کولی شول هغوی تر څارنی لاندی وساتی. دا اجنبی سړی هرڅوک چی و، پرته له یو مرموز شی بل څه نه و. د ده په مورد کی بیا هیڅ کومه خبره وانه وریدل شوه.

لیکن ولی خان نوری ستونزی درلودی، چی هغه په حقیقت کی د کوهدامن په سیمه کی د غلو او داړه مارو یوه ډله وه چی نیول شوی وه، خو په مکمله توگه نه. ځینی مجرمین د هند خوا ته وتښتیدل، او په آخر کی په پیښور کی ونیول شول. یو باندیست چی د کوهدامن په سیمه کی د ولی خان د باغوان اوښی و، دمخه تر دی چی وتښتی ولی ته یی یو پیغام واستاوه چی په کی د عفوی غوښتنه شوی وه، ولی د خپل باغوان په لاس ورته ځواب ولیږه چی زه نه شم کولی د امان الله په غیابت کی داسی وعده وکړم.

د کابل د برتانيې شارژدافير، داسې يو راپور خپور کړ: «افغان حکومت يوه شفاهي ليکن په کلکه سره غوښتنه کړې ده چې دا خلک دې يا بنديان شي او يا دې له سرحد څخه ايسته کړای شي. دا واضح ده چې که دغه سړي ازاد پرېښودل شي، نو افغان حکومت به ډير زيات تکليف کې شي.

له نيول شوو کسانو څخه دوو تنو ته چې اعظم او عثمان نوميدل وويل شو چې داسې کوم سړي دې چې پيدا کړي چې د دوی د راتلونکې ښه سلوک ضمانت وکړي او د پيښور د قاضي قناعت حاصل شي. دوی په کرمه کې چې د پاراچنار په شاوخوا کې يوه سيمه ده، ځينې دوستان درلودل، چې حاضر وو د سړي پر سر د دري زره روپو تضمين برابر کړي، ليکن قاضي د هغو کسانو نقدي ضمانت نه منلو چې له پيښور څخه د باندې اوسېدل، په دې توګه هغوی په درې کاله بند محکوم شول.

د کوهدامن د ډلې ځينې کسان خوشبخته وو. د مثال په توګه سيد حسين چې خپله د احترام وړ کورنۍ يې پرې ايښې وه او په باندېتې لاس پورې کړی و. د پيښور پوليسو ونه کړای شو چې ګرفتار يې کړي. همدا راز هلته يو سړی و، چې په خپل ژوند کې د دوهم ځل له پاره په لنډه توګه د احترامانه ژوند خاوند شو. هغه د پيښور د مالګې منډيې په سيمه کې د سماوار دوکان درلود. ليکن په دې کار باندې د هغه چاره نه کېدله. دی او ورور يې په داړه ماري کې ګير راغلل او بنديان شول، دوی خپل ځای د کابل کوهدامن وښود. د دوی شواهد د هغوی د محکوميت له پاره کافي نه وو نو خوشي شول او ژر له پيښور څخه ورک شول.

د دې سړي د ربښتيني ژوند لومړۍ مرحله د خوست د شورش او له هغه څخه دمخه و، کله چې دی د قطعه غونډ په لومړۍ درجه کنډک کې له تيښتې څخه دمخه خدمت کاوه، دی و چې د خپل پلار، ربښتيني کسب د سقاو د زوی د نوم په يادولو سره خلکو ته ښکاره کړی و. ځر ګندول. همدا راز دی و چې له ولي خان څخه د هغه چانس له پاره چې د احترام وړ وګرځي، غوښتنه کړې وه.

کله چې امان الله په برلين کې د خريدارۍ له پاره ته، نو د ډېرې وخت له پاره به مالونو ته نه متوجه کېده او له يو پټ ځای څخه به يې د کوڅې خوا ته کتل چې خلک دده د ليدو په خاطر سره راټول شوي دي که نه، يا زياد شوي دي که کم. اکثر اوقات به خلک زيات سره راټوليدل ځکه دغه اشاري مشهوري شوي وي او د هغه پيشګوی کېدله او کله چې امان الله د برلين د

تولنــې خــوا ته ســر ښــکاره کــاوه، خلـکو بـه هم ورتــه ســر وربښــکاره کــاوه. د امــان اللّه دا کار د هغوی خوښیده.

برلین ته د هغـه مواصلت د جرمنی د جـمهوریت ته دوی ستونزی پیدا کړی وی چی یوه یی لویه او بله یی کوچنی وه. کوچنی ستونزی د هغه د غذا مسئله وه. د جرمنی په زیاتو خوړو کی د خو گ له غوښی څخه استفاده کیدله چی مسلمانان ورڅخه منع دی، همدا راز ساسیج، ورتس، وستفالین هیم (Westphalianham) د جرمنی ډیره مخصوص خواړه سمدستی ایسته کړی شول، او البتـه کـوم شی چی پاته شـول، هغـه له ببـر سره نه خـوړل کیـده. د لندن په ابزرور کی داسی ویل شـوی وو: «غـذا چی د افغـانستـان د سفارت له خـوا تر دقیـقی څارنی لاندی تهیـه کیدله یوه ساده مینیو ده او څښاک یی هم یوازی اوبه دی چی د جرمنی په میلمستیا گانو کی داسی شی بیخی نه لیدل شوی.»

په افغـانسـتـان کی د امان اللّه دښمنانو په وربانـدی تور لگاوه چی امان اللّه د خو گ غـوښه خوری او واین څښی. هغه هیڅ کله په دی عمل لاس نه پوری کاوه، حتی هغه په فرانسـه کی د میلمنو د واین له جامونو سره د «خالص اوبو جام پورته کړ.»

جرمنی صرف په هغـه وخت کی په جمهوریت باندی بدل شوی و چی په عمومی جنگ ورته ماتی ورکړی شو او قیصر یی تبعید کړ. امان اللّه لومړنی پاچا و چی د جمهوریت په ورځو کی ورسره لیدنه کتنه کیده، نو د هغه د توجه او احوال گیری په باره کی کوم تثبیت شوی پروتوکول وجود نه درلود. ځینی جرمنان همداسی چی پرسیانیزم یی په زیات اندازه غـوښتله، جمهوریت یی هم پـه همـاغــه اندازه غـوښت او د هغـه پذیرایی یی ســختــه کـړه، لیکن مـقـام دتـه د غـاړی ایښودلو غوښتنه له قانون څخه وتلی نه شی.

لکه چی همداسی و، هیڅ شی د جمهور رئیس پال فون هندنبر گ (Paul von Hindin-burg) له توری کـرتی او توری جگی شپـو څـخه ناخـوش آینده نـه و چی د امـان اللّه د احتـرام او هرکلی په وخت کی به یی و اغوست او ثریا ته چی د رنگارنگو گلانو یوه دسته ورکوله. د امان اللّه کـالی، سور او آبی یونیـفورم او په سر عـسکری خولی وه، چی پـه کی له جواهرو څـخه جوړ شوی د سپین الو ښبان الگول شوی و، چی د ملاقات له شان څخه زیات وو.

د کینی لوری ځینی اخبارونو شکایت وکړ چی «یوه مجلله میلمستیا به په سختی سره امکان ولری او څه به وشی که چیری د یو کوچنی مشرقی ظالم سړی په عوض له یو پاچا یا له یو جمهور رئیس سره ملاقات شوی وای چی د یو واقعی قدرت خاوند وی.»

کوم شی چی مهم و دا و چی د برلین گندونکی مصروف ساتل شوی وو چی د شاهی کورنی د ملاقات کولو له پاره اوږده مناسب کالی جوړ کړی او د حکومت مامورین له هغو کسانو څخه شکایت کاوه چیی د تولنیزی پروسی په برخه کی پیش قدمه وو او میلمانه یی خوښ ساتل، چون کومه رسمی مناسبه مهمانخانه نه وه، د جرمنی جمهوری دولت یوه زیاته اندازه پیسی ولیعهد ته ورکړی چی د شهزاده البرخت (Albrecht) مانی چی په ول هلمستراس (Willhelmstrasse) کی وه او ده ته هغه د ملکیت اجازه ورکړی شوی وه په کرایه واخلی. امان الله او د هغوی نژدی کسان په دی مانی کی او نور ملگری یی په یو هوټل کی اوسیدل.

جرمنی خپل نظامی قدرت امان الله ته وښود. لیکن د ورسایلز د معاهدی له مخی دا یو نمایشی شی و، کوم هدف او غایه په کی نه و. هیڅ کومی الوتکی الوتنه ونه کړه، چی د افغانستان واکدار تر اغیزی لاندی راولی، چی لومړی پیلوټ یی جرمنی و، د معاهدی له مخی دا منع وو چی د خوست د شورش په کرارولو کی دی له جرمنی پیلوټانو څخه کار واخیستل شی. که چیری برتانویانو اغماض نه وای کړی، په هغه ځای کی کوم ټانک هم نه لیدل کیده. کله چی امان الله له یو مخصوص ځای څخه ددی مانوری ننداره کوله، خلکو بایسکلونه تیرول چی کالی او د لرگو ټانکونه ورپوری تړلی وو.

نیویارک تایمز راپور ورکړ: «دا څرگنده ده چی سپاهیان ډیر باکفایته او بااستعداده روزل شوی وو. دا هم د جمهور رئیس فون هندر برگ له پاره یوه مهمه ورځ وه. که څه هم ننداره ورته آشنا وه، د هغه څیری څرگندوله چی ددی ننداری په بیا لیدو سره خوشاله و. » په یو افراطی اخبار کی لیکل شوی وو، «یو ځلی بیا څومره په زړه پوری خوشاله ده چی داسی ښه په دسپلین کی عسکر ورونه گورو چی په متحد شکل سره چی اختلافات یی ایسته غورځولی دی، مارش کوی! د پروسیا (Prussia) برم او عزت! پخوانی اوسپنیز عسکر!

کله چی یوه ډله له چپی جرمنی عناصر په کوڅه کی سره راټول شوی وو او چغی یی وهلی چی «مړ دی وی دغه بیکاره وخت تیروونکی سړی! دی باید کار کول زده کړی! » دی پیښی لکه د بلی پیښی په شان، پر امان الله باندی کومه اغیزه ونه کړه. امان الله چی نه پوهیده دا خلک څه وایی، ویی خندل او خپله شپو یی ایسته کړه. وروسته هغوی د خپلو موټو په پور کولو پیل وکړ. امان الله وکړی شو چی په هغه باندی یوه شی نو پولیس د غه منتقدین تیت او پرک کړل.

د هغو جرمنی ښځو له جملی څخه چی له افریدو سره یی ودونه کړی وو، او له هغوی سره افغانستان ته تللی وی، یوه د برلین چالوټی بوتچر (Charlotte Boettcher) وه. هغی له خپل

میره عبدالله سره خوشاله نه وه او هڅه یې کوله چې له هغه څخه لاړه شي، خو کله چې هغه مړ شو د ښځې ناخوښي حتی لا زیاته شوه. د عبدالله مړي چې د هغوی د غریب او له ختیو څخه جوړ شوي کور څخه د ښخولو له پاره وویستل شو، د هغه ورور، شارلوټي له لاسه ونیوله او ورته وې ویل: «اوس ته زما ښځه یې.»

دا یو زوړ رواج و چې د کورنی کونډه د همدې کورنی بل غړي واده کړي. امیر عبدالرحمن خان ډېرې هلې ځلې کړي وې چې دا زوړ رواج له منځه یوسي، او ویل به یې چې یوه ښځه چې د بوی خوا یې کورنی په منګلو کې ایساره شوې وه، په ټول عمر کې به بندي وساتله شي. که امان الله بوه یده نو دا شي به یې منع کاوه. لیکن شارلوټي ددې واده په باره کې کومه علاقه نه ښودله، ځکه هغه پوهیدله چې لیور یې ورته کومه دلچسپي نه لري. هغه له چارلوټي څخه د خپل ورور لږ پاته شوي سره زر غوښتل چارلوټي هغه سره زر ورته ورکړل.

چارلوټي په دې ویره کې وه چې لیور به یې د خپل ورور څلور ماشومان هم واخلي. یوه بله جرمني ښځه چې د چارلوټي ملګرې وه، په دې ورځ د چارلوټي کور ته راغلې وه. دا هغه ښځه وه چې امان الله ورته د خپلې مور په کور کې پناه ورکړې وه. هغې ښځې هوښیاري کړې وه او چادري یې په سر کړې وه. په دې وخت کې چادري خپل ارزښت ثابت کړ، په دې چې هغې د چادري لاندې د چارلوټي ډېر وړوکي ماشوم له ځانه سره یووړ، بې له دې چې لیور یې ورباندې پوه شي.

هغې ښځې، ماشوم د جرمنانو روغتون او د هغه روغتون یو ډاکتر ته چې فراولین لیهن (Fraulein Lehn) نومیده یووړ، چې د دې کیسې په اوریده سره یې د چارلوټي او د هغې د ماشومانو له پاره د پناهګاه پیشنهاد کړی و. دې ډاکتر وویل چې زه به یو تصدیق ورکړم چې ټول دغه ماشومان صحي علاج ته اړتیا لري، ډېر قانوني خلک، چې له داسې غیر انساني وضعې سره مخامخ کیږي، د قوانینو په تنظیم او سنبالولو کې په خپل ځان کې یو منبع احساسوي.

د جرمني نماینده ګۍ د چارلوټي په خاطر منځګړیتوب وکړ او ورته ویل شوي وو چې چارلوټي ازاده ده او هر وخت چې وغواړي له افغانستان څخه تلی شي، لیکن ماشومان د محلي مقاماتو په توقیف کې وو او چارلوټي به له هغوی څخه پرته نه تله. هغه پاته شوه، کله چې افغان حکومت ورته د میاشتې ډیرش ډالره تخصیص ورکړله، دا پیسې له څه څخه زیاتې وې چې افغاني مامورینو به دیرش کاله وروسته اخیستې، کله چې نرخونه او عایدات جګ شوي وو.

په برلین کی د چارلوټی مور چی ایما بویټچر (Ema Boettcher) نومیدله او یوه زړه ښځه وه، امان الله ته یوه درخواستی ولیږله چی په کی ورڅخه غوښتی وو چی لمسیانو ته یی اجازه ورکړی چی له خپلی مور سره جرمنی ته راشی. د جرمنی د بهرنیو چارو دفتر چارلوټی ته اجازه ورکړه چی امان الله ته ځان ورسوی او درخواستی دی ورته ورکړی. هغه عریضه ومنله او ورڅخه یی هیله وکړه چی که څه هم ما په دی مورد کی کوم شرط نه دی ایښی، خو که دا ماشومان مسلمان وروزل شی بهتره به وی.

امان الله په برلین کی د عمومی بریښنا کمپنی وکتلی چی سمدلاسه یی د یو کتونکی خواته په بیړه سره لاړ، هغه یی له لاسه ونیو او دواړه مخونه یی ښکلی کړل، او د څو دقیقو خبرو له پاره یی یوی خواته گوښه کړ. دا سړی فون هینتینگ (Von Hinting) نومیده چی د عمومی جنگ په وخت کی په افغانستان کی د یو هیأت رهبری یی په غاړه لرله او هڅه یی کوله چی امیر حبیب الله راضی کړی چی خپله بی طرفی پریږدی او له ترکانو او جرمنانو سره دی یو ځای شی. امان الله پر فون هینتینگ باندی غږ وکړ چی «په برلین کی زما ډیر زوړ او بهترین آشنا.»

امان الله د شیانو په لاس ته راوړلو هم مصروف و. د جرمنی حکومت ورته دری میاشتی مسافر وړونکی جرمنی اصیلی الوتکی ورکړی چی نوم یی «د هغو دوو هیوادونو ترمنځ د دوستی سمبول چی یو له بل څخه ډیر لیری پراته دی، ځکه چی دا هغه وسیله ده چی د هغی په واسطه دا دوه هیوادونه کولی شی تل یو له بل سره افهام او تفهیم وکړی.» امان الله د لاسونو په پړقولو دمخه لیدل شوی و، کله چی د هرکلی کولو او بیانیه یی ورکوله. هغه هیله څرگندوله چی هغه هوایی کرښه چی برلین له مسکو سره نښلوی ژر به کابل ته هم امتداد پیدا کړی. هغه د کابل - هرات او تهران د تښتولو خبری اتری پیل کړی.

جرمنانو، امان الله ته د پنځو ملیونو طلایی مارکونو کریدت یا پور بی له کومی گټی څخه د اتو کلو له پاره ورکړ، او د الوتکو په علاوه، یو د لاری موټر یی هم ورته ورکړ، چی امان الله خیال درلود د ښوونځی شاگردان دی په کی ښوونځی ته یوړل شی.

امان الله په دی پور باندی، د چاپ ماشین، دوی وړوکی اصیلی الوتکی، او ژرنده او د فابریکی سامان الات چی په کی د صابون جوړولو سامان آلات هم شامل وو. هغه له یوه جرمنی کمپنی سره د درو کلونو له پاره د کال په ۸۳۰۰۰ روپیو په بیه د لاجوردو د خرڅولو موافقه وکړه چی د ډول ځلیدونکی ابی رنگه لاجورد پرته له افغانستان څخه د نړی په نورو برخو کی

نه پیدا کېدل. امان الله د خپل هیواد د منرالونو راز راز نمونې اروپايي هیوادونو ته له ځان سره وړې وې. یو شمیر اروپايي شرکتونو دا منرالونه ولیدل اما چون د کانونو ایستل په افغانستان کې دومره شهرت نه درلوده، نو هیڅ یو شرکت کومه قطعي وعده نه شوه ورکولی، که څه هم هغه له کرپ (Krupp)[۱] سره د اوسپنې لرونکو ډبرو په هکله موافقې ته رسیدلی و.

امان الله د جرمنې په څرخایونو کې یو ډول اسان ولیدل چې دده په هیواد کې چا نه پېژندل. یو ډول منډلي اوپن اسان چې د پرچرون (Percheron)[۲] په نامه سره یادیدل، چې هم په زراعتي چارو کې او هم د درانه بارونو په وړلو کې ګټور اسان وو. هغه له ځان سره یادداشت کړ چې یو شمیر وارد او د افغانستان زراعتي سیمو ته یې وویشي.

ایتالیا ورته یو زرهدار موټر ورکړی و او د پنځه ویشتو پیلوټانو د روزلو وعده یې کړې وه او هغه هلته دوه دیرش میله توپکونه وپیرودل. فرانس ورته وسله ورکړه او ورته یې د پنځو زرهي لرونکو موټرو، دوو څمکنۍ او یو غرنۍ هاوان او د دوو لاریو د پیرودلو اجازه ورکړه. بلجیم موافقه وکړه چې تصدیق شوي افغاني شاګردان په خپلو ښوونځیو کې د زده کړې له پاره ومني.

د امان الله خان د سفر د ټولو امتیازاتو د په نظر کې نیولو سره، چې د لارې تر نیمایي حده پورې ونه رسیدل، یو برتانوي مامور پیشنهاد وکړ چې د افغانانو شکایتونه ممکن کم شوي وای که چیرې ورته ویل شوي وای چې د هغوی د پاچا د سفر معنی یوازې د هغوی د پیسو لګول نه وو بلکه سفر یې یا به خپل مصرف وباسي او یا به کومه ګټه ورځخه لاس ته رانشي.

امان الله خان کابل ته احوال ولیږه. کله ملایانو د صابون جوړولو د ماشین له موضوع څخه خبرشول، ځینو یې وویل چې امان الله خیال لري چې د مسلمانانو جسدونه ویلې کړي او ورڅخه خپل صابون لاس ته راوړي.

---

۱- له ۱۸۱۲ - ۱۸۸۷ پورې د جرمنې د وسلو او مهماتو جوړونکی. (ژباړونکی)

۲- یو ډول تیز او ټکره سامان دي چې د فرانسې د لې پرش (Le Perche) په سیمه کې روزل کیږي او امریکې او نورو ځایونو ته یې هم نسل وړل شوي دي. (ژباړونکی)

## شلم فصل

## د ۱۹۲۸ کال د مارچ له ۱۳ نیټې څخه

## د ۱۹۲۸ کال د اپریل تر ۵ نیټې پورې

پنځم جورج پاچا چې په یو وخت کې ویلي وو امان الله ته به هیڅ کله «ستاسو اعلیحضرت» ونه وایي، دا کار یې وکړ.

د ۱۹۲۸ کال د مارچ ۱۳ او ځای وکتوریا لندن و. د امان الله ټیکه ځو کاله د مخه د لندن د ملکې وکتوریا له خوا د غوښتل کېدو خیال په خپل فکر کې راوړی و، چې د لویانو مجلس یې په یو خوا او د عوامو مجلس یې په بله خوا کې وي. د امان الله لمسی دا خیال ترسره کولو او که چیرې عبدالرحمن په جنت کې دا شي اوریدلی شوای، نو دا به ورته له حور او غلمان څخه هم زیات خوښي ورکوله، چې د هغو شیانو ته په خپل ژوند کې ارزښت ورکړی و.

امان الله او ثریا په یو سرخلاص موټر کې د برتانیې د پاچاهانو په څنګ کې د بکنګهم (Bukinghum) ماڼۍ په لور لاړ، چې یونیفورم لرونکي کسان، هغه کسان چې یې په خولیو کې بڼکې ټومبل شوې وې او د موزیک ډله هم ورسره وه. نژدې ټول لندن د دوی ننداره وکړه. لندن ټایمز د دې پاچا هره لیدنه کتنه داسې په مکمله توګه تشریح کړه چې هر لندني پوهیده چې د امان الله د لیدو په هیله چیرې لاړ شي، او د ټایمز د اخبار چټک لوستل دا فکر یې منځ ته راوړل چې په نړۍ کې نوره کومه پیښه نشته.

په هغه شپه په دولتي میلمستیا کې نژدې له ۱۷۳۷ کال را په دې خوا امان الله لومړنی

افغان و، چی سترگی یی د کوه نور غټ الماس باندی ولگیدی. کله چی نادر افشار له فارس څخه راوخوځید او هند یی فتح کړ، دا الماس د ډهلی د تاج ملکیت و. د مغلیانو امپراتور، چی له خپل فاتح سره د سولی د شرایطو په مورد کی لیدنه کتنه کوله، خپل یواځینی ارزښتمن شی یی په خپل پټکی کی پټ کړ. لیکن هغسی چی شهزاده گی فاطمه سلطانه د خپل الماس په برخه ک بدنصیبه وه، دی هم و. نادر افشار د الماس د پټولو له موضوع څخه خبر شو، او تجویز یی وتیو چی سوله په عنعنوی توگه د پټکیو په تبادلی سره اعلام کړی. مغل ونه شو کړی چی انکار وکړی. نادر افشار له مرگ سره داسی په ظالمانه توگه مخامخ شو چی په هغه ډول یی ژوند کاوه، او د هغه ملکی الماس په ظالمانه توگه مخامخ شو چی په هغه ډول یی ژوند کاوه، او د هغه ملکی الماس یی د هغه د باډیکارد مشر ته چی احمدشاه درانی و، ورکړ. احمدشاه درانی داسی کورنی تشکیله کړه چی تر امان الله پوری ورسیدله. لیکن د دوو زمامدارانو په منځ کی بی شهرته شاه شجاع منځ ته راغی، د هغه له الماسونو څخه یوه شهزاده گی فاطمه سلطانی د نیکه د لاس ته ورغلی و، د کوه نور له الماس څخه د رنجیت سنگهـ له خوا، چی پینبور یی له افغانانو څخه ونیو، او چی په خپل وار سره د برتانویانو له خوا ماتی خوړلی وه، په جبر سره واخستل شو او رنجیت سنگهـ دا یی مناسبه وگڼله چی الماس ملکه وکتوریا ته ورکړی. ډیر وخت د کوه نور الماس د لندن په برج کی اینبودل شوی، چی د نورو الماسونو په جمله کی د سیلانانو د تحسین موجب وگرځی.

سره له دی، په دی شپه امان الله الماس د ملکه ماری پر سینی باندی ولید، چی د نشان المراعلی په څنگ کی، چی امان الله ورته منظور کړی و، د هغی پر سپین اوږد کمیس باندی ځړول شوی و.

یوه میاشت وروسته همفریز مجبور شو چی ولیکی چی: «په دی مرحله کی دا مشکله ده چی پیشگویی وکړی چی ددی ملاقات اعظمی اغیزی به څه وی. لومړی دا خطر موجود دی چی هغه انتباه چی امان الله له لویی برتانیی څخه ترلاسه کړی ده یا محوه شی او یا په بشپړه توگه د هغه د شوروی د وروستی تجربو د جذابیتونو تر اغیزی لاندی واقع شی.»

ددی له پاره چی د امان الله ملاقات نه محوه کیدونکی گرځولی وی، برتانویانو د ښکلا هر شی، هر اس او هر گل یی برابر کړ، هیڅ یو مراسم له منځه وی نه وړل شو.

په نیویارک تایمز کی لیکل شوی وو چی «برتانویانو قوی پری، پاچا، ملکه او د ویلز

(Wales) شهزاده په لاس کی لری. برتانیه کیسی ته مسکا کیږی، چی برلین د خپلو مالونو او صنعتی استعدادونو د قوی پرو لوبی وکړی، خو کومه اغیزه یی ونه کړه، توقع کیږی چی روسیه د خپلو پرود (ستا او زما) لوبی وکړی. روسیه او افغانستان دواړه ختیځ هیوادونه او د امپریالیزم پر ضد دی.

«لندن احساس کړی چی د دوی د (زما او ستا) پری د هغوی د (زما او ستا) له پرو څخه بهتر دی. دا دهند د امپراتور، چی د ځمکی پرمخ د محمدی امپراتوری ډیره لویه امپراتوری وه، د مسلمانانو د یو دوست پاچا د برم او عزت یوه یلنه وه. (زمور دواړه د یو کلوپ غړی یو) هغه خبره ده چی د برتانیی پاچاهان په کراره سره د افغانستان پاچاهانو ته وکړی.»

دا هغه ستراتیژی وه چی امیر حبیب الله یی د هغه د جنګ د مودی په بیطرفی کی د هغه جورج پاچا د په لاس لیکل شوی لیک په واسطه خوښ ساتلی و، چی اوس یی زیاتی پیسی او انرژی په خپل زوی باندی مصرفول. دوباره پاچاهی ستراتیژی بریالی شوه.

امان الله پر همقریز باندی د خپلو د نورو هیوادونو د لیدنی کتنی د اغیزو په هکله اعتماد وکړ:

«ایتالویان او فرانسویان توند مزاجه دی او په ندرت سره په خپلو مفکورو، باندی پوهیږی. جرمنی د نیستی له لاسه تکر تکر دی، او نیمایی خلک یی پاچایی او نیمایی یی جمهوریت غواړی. ثبات وجود نه لری. په لندن کی هر څه په دقت او د وخت پیژندنی له مخی پرمخ ځی، هیڅ ګډوډی نه لیدله کیږی. زه په هوسایی او بی له کومی ستونزی څخه له یو ځای څخه بل ځای ته ورل کیدم. په دی لویه وچه کی زما پروګرام تر دی حده پوری اتفاقی و، او زما کوربه دومره سرګردانه و چی زه لږ د هغه د ختمولو په فکر کی کیدم. د پاریس په دولتی مراسمو کی له یو ساعت څخه زیات وخت ضایع شو، د مخه تر دی چی دا معلومه شی چی ملکه ثریا ورسیږی. په جرمنی کی پروګرامونه زیات اغیزمن وو، لیکن کله کله خلکو د داسی شعارونو په ورکولو سره، چی (مړ دی وی جمهوریت، ژوندی دی وی شاهی) جمهور رئیس یی وارخطا کاوه.

هغه د انګلستان په مورد کی وویل: «له هغی شیبی څخه چی زه په ډوور (Dover) کی ښکته شوم او ویلز شهزاده ته می لاس ورکړ، احساس می وکړ چی زه په یوه شاهی او دوستانه

فضا کـی قـرار لرم، چی دا فـضـا د فرانسـی او جـرمنی جمـهوریتونو لـه سـری فـضـا څخـه بیخی توپیر درلود. »

او دده له اردلیانو څخـه یو تن وویـل: « هیڅ یو انګلیس جنت ته د تلو حق نـه لری. په دی چی هغوی په دی دنیا کی عیش کړی دی. »

په هنفیلډ کی یوه مـیلمـسـتـیـا ورکـړی شـوه، چی هلتـه یو مـشـهـور باغ یوه کـړه وړه لاره درلوده. امان اللّه اصرار وکړ چی دده له غړو څخه دی یو تن دی کړی وړی لاری ته ننوزی، چی رهنما ورسره نه وی او وبی لیدله چی دده بدنصیب غړی په دی باندی بیخی بریالی نه شو چی خـپله لاره پیـدا کـړی او ووزی. امـان اللّه خـوښ و، ویل چی دا د اسی یو شی دی چی زه یی هم باید پـه کـابل کی تاسـیس کـړم، په دی چی دا بـه له هغـه څـه نه چی په یو وخت کی ورڅـخـه په هیواد کی له یوه ناوړه حریف نه د ځان د خلاصولو په خاطر کار اخیستل کیده، ډیر ښه وسیله وی.

د لیور پول (liver pool) په یوه ملکی میلمستیا کی امان اللّه د لاس یو جزیی هنر اجرا کړ او د لارد مایر (Lord Mayor) د غوږ له شا څخه د قری توس یی وویست.

دمخـه تر دی چی امـان اللّه لومړی شـخصـیت وی چی په الوتکه کی د لندن په فضـا کی والوزی، خپل لومړنی انګلیسی عبارت یی د انګلستان هوایی وزیر ته استعمال کړ ورتـه وویل: « څنګه یی؟ » دا شی د مـارچ په ۲۱ نیـتـیـه صـورت ونیـو، چی د افـغـانانو د کـال لومړی ورځ یا نوروز و.

هغـه خـپله دوهمـه انګلیـسی جـمله په هغـه وخت کی اسـتـعـمـال کړه چی لـه بریا سـره په یو سپورتی رالز رایس (Rolls-Royce) موټر کی د ننداری په هغه کوټه کی ناست و، چی غوښتل یی په هغـه ځای کی یو ساعت پاته شی خو دونیم ساعـتـه پاته شـو. هغـه د خپل مـوټر ماشـین چالان کړ، خـپله شپـو خولی یی جګه کړه، او په صـحیـح انګلیـسی یی وویـل: « ښه، اوس نو د خدای په امان، زه کـابل ته ځم. » هغه خپل موټر څو متره وچلاوه، بیا یی په چوکـی کی استراحت وکړ تا به ویل چی نه غواړی لاړ شی.

ثریا په کافی اندازه انګلیسی زده کړی وه، چی یوه انګلیسی څلور کلنه نجلی یی د ګلو یوه ګـیډی ورته ورکـړه، په غـیږ کی یی ونیـوله او داسی یی وویل: « ګـرانی، زمـا انګلیـسی وړی نجونی خوښیږی، لیکن زه مدام شرمیدم چی د هغوی له جملی څخه یو تن ښکلی کړم. » د ملکه شارلوتی په روغتون کی هغی د خپل هیواد د دوو ماشومـانو د زیات اخلاقی درجی په باب خپله

خواشینې ښکاره کړه. هغې په داسې حال کې چې یو ماشوم ته یې کتل، سمدستي یې د روزنتون مشر ته مخ واړاوه او وی ویل: «زه ډیر علاقه لرم چې په مطلقه توګه نوی ماشوم ووینم.» هیڅ کوم نوی ماشوم پیدا نه شو کړی، لیکن هغې د ولادت خونه او بوه ډله میندې یې ولیدلې چې ولادت ته ستـــرګې په لاره وې. په هند کې هغې انګلیسي ښـــځې چې د پردې په میلمستیاګانو کې له ثریا سره خبرې کړې وې، د ثریا د «بې خونده محاوروي موضوعاتو او د خوښ ساتلو د مشکلاتو د مسئلې» راپور ورکړ.

له افغانۍ قیوداتو څخه تقریباً له دري نیمو میاشتو ازادۍ وروسته ثریا په کلي توګه په لندن کې د «زړه راښکونکې» په څیر معرفي شوې وه.

امان الله په انګلیسي باندې ښه پوهیده، چې د اکسفورډ په پوهنتون کې، چې د مدني حقوقو افتخاري دوکتورا ورته ورکول کیده، په انګلیسي مفاهیمو باندې پوه شي. کله چې دیپلوم یې لوستل کیده نو هغه ژبه چې ده اوریدله، انګلیسي نه وه. هغه ته وویل شو چې دا لاتیني ژبه ده.

ثریا چې په کابل کې د برتانیې د نماینده ګۍ له نفرو سره د کوترې په ویشتلو کې ګډون کړی و، د برتانیې نماینده ګۍ یې په تعجب کې اچولې وه، له امـــان الله سره یې د شفلډ یوه فابریکه وکتله او ورته بلنه ورکړله شوه، چې د یو پیاده عسکر پر نقش باندې چې د ګولۍ ضد واسکټ یې په تن کې و، فیر وکړي. هغې خپل کوربه ګـان لومړي د منلو په خـاطر او دویم له هدف څخه صرف د نیم انچ لیرې والي په خاطر په تعجب کې واچول. د شفیلډ د اورګاډي د تم ځای په څنډ وکې، چې شاهي اورګاډي هلته ورسید، تقریباً دري زره بوټي اینبودل شوي وو، او د مانچسټر ګارډیان (Guardian) داسي تبصره وکړه: «دمخه تر دې چې زموږه واکمنه کورنۍ دغه ور عادت چې زیاتره په تشریفاتو سره ترسره کیده، ترلاسه کړي، دغه هرکلي د تیرو وختونو د شاهي هرکلي مفکوره را په یادوله.»

امان الله خان د ګرینویچ په رصدخانې کې د نصف النهار پر دایرې باندې د سپینو زرو پر ساعت باندې په اړتو پښو داسې ودرید، چې یې پښه یې د ځمکې د نیمې کرې په لویدیځه برخه او چپه پښه یې په ختیځه نیمه برخه کې وه او وی ویل: «وګورئ زه په خپله اوس یو لویدیځ سړی یم.»

کوم شي چې انګلستـــان یې د امـــان الله او ثریا په نظر ډیر محـبوب او زړه ته رانژدې

گرځولي و، لکه څنگه چې نیویارک ټایمز پیشگویي کړې وه، د انگلستان قوي پرې، پاچا او ملکه، د شاهي کورنۍ شخصي توجه وه. د هغې کورنۍ غړي د دوی ډېره زیاته خوښېدله، د یورډیوک (Duchess of York)، د جارج پاچا د دوهم زوی ښځه وه چې وروسته به پاچا پنځم جورج کېده. په یو، یو گل باندې ښکلې کړې شوې، غرمنۍ ډوډۍ کې یو مشهور فارسي عالم تیار وو، چې د امان اللّه او د ډیوکس (Duchess) له پاره ترجماني وکړي، مگر هغه یې رخصت کړ او د اشاراو او حرکتونو په ذریعه له خپلو خبرو اترو څخه خوند اخیست او په خپلو تیر وتنو باندې خندیدل.

وروسته له هغې چې امان اللّه د لیورپول له یوې غریبې سیمې څخه په پل موټر کې تیریده دایي ولید چې د کورونو د گلانو امیلونه کوڅه یې پوښلې وه، داسې وویل: «په انگلستان کې هیڅ کمونیستان نشته. هغوی ټول د پاچا طرفداران دي.»

هغه وویل: «زه نه شم کولی د وندسور کاسل (windsor castle) د لیدنې کتنې په هکله بې له هیجان څخه خبرې وکړم. جورج پاچا او ملکه ماري امان اللّه ته د خپل شخصي ژوندانه په باب داسې گرمه بلنه ورکړې وه، چې حتی یو دوست ټولواک ته له ښودل شوې و.

«دا د هغو پیاوړو پاچاهانو نښانه ده، چې په پیړیو پیړیو حکومت کړی دی، او د هغه شان شوکت او دبدبه د نړۍ له هیڅ کومه بله ماڼۍ سره پرتله کېدی نه شي.» له وینډ سور کاسل څخه د موټر په ذریعه په لیرې تلو سره، امان اللّه او ثریا یو بل ته وویل چې په سختۍ سره به کاسل (Castle) له خپلو خیالونو څخه وباسي.

سیاست او له هغه سره واقعیت، په موضوع کې داخل شول، کله چې سر استین چمبرلین د برتانیې د بهرنیو چارو وزیر د مارچ په ۲۰ نیټه باندې د خبرو کولو په خاطر پر امان اللّه باندې غږ وکړ، چمبرلین د دې بلنې توقع کړې وه، ځکه چې امان اللّه د ژورنالیستانو ټولې پوښتنې په دې سره رد کړې وې چې «وروسته تر هغه چې مې له سر استین چمبرلین سره خبرې وکړې، د هغه په باره کې به پوه شم.»

هغه موضوع چې امان اللّه وړاندې کړه، چې ډېره په خوش آیندې سره نه وه، د سرحد هغه تکراري موضوع وه. د هغوی خبرې یوه نه قانع کوونکې پای ته ورسېدې په هغه وخت کې چې چمبرلین وویل: «زه په خپله د هغې خپگان د منشا د چاره کولو له پاره پیشنهادونه نه شم کولی چې زما په خالصه توگه خیالي ښکاري.»

«خیالي» هغه لعنت و چې د غلام صدیق له خوا هم استعمال شوی و کله چې چمبرلین، د امان الله په غوښتنه، ورسره څو ورځې وروسته خبرې وکړې. غلام صدیق وویل: سنقشی ته د یو نظر په اچولو به دا شی څرگند شی، چې روسیه له بې شمیر تاوان او د خلکو په انتقال ورکولو کې د ډیرو ستونزو په غیر، هند ته کوم خطر نه شي کیدلی. که چیرې له روسیې څخه د برتانیې د ډاریدو (اخباري) خبرو نه صحیح نه وي، نو دا به یو خیالي خطر وي چې اساس یې د هند د حکومت عمل تشکیلوی او ممکن دا هغه بدگوماني وي چې روسیه به د افغانستان په مرسته پر هند باندې یرغل وکړي. د امان الله په فکر کې داسې مفکوره بیخي وجود نه درلود. او لویه برتانیه دې د خپلې بدگومانۍ اثباتیه مدارک برابر کړي.»

اوس غلام صدیق په بشپړه توگه د افغانستان د بهرنیانو چارو عهده دار و. د مخه تر دې چې هیأت انگلستان ته ورسیږي، محمود طرزي کابل ته روان شوی و. هیأت چې د هغه د رول په باره کې فکر کاوه، چې افغانستان یې په خپله موجوده جنگ جگړه یې حالت کې پرې ایښی و، د موسی په شان و، چې له موعوده ځمکې څخه محروم گرځول شوی و. آوازې داسې ویلې چې هغه افغانستان ته د دې له پاره راغلی دی چې د تهدید آمیزو ناکراریو رسیدگي وکړي، هغه په دې هم خپه و چې زوم یې، چې دې ورسره په هغه لاره کې په تلو پیل کړی و، چې د بکنگهم تر ماڼۍ پورې رسیدلی، د مشورو په مجلسونو کې له نظره غورځول شوی و.

په برلین کې، یو ژورنالیست د غلام صدیق خبرې داسې نقل کړې، «مونږ انگلستان ته څو چې خپل بدترین دښمنان په هغه هیواد کې ووینو.» هغوی دې مخالفت ته پریشانه نه وو. لیکن دا ورته اریانوونکې معلومیده چې افغانان به د کوم شي د غوښتلو له پاره انتظار ویستلی وي، او وروسته به د سرحد د پالیسی د شکایتونو په باره کې د دوهم ځل له پاره تقاضا کړې وي.

«مونږ به افغانستان ته څه شي ورکړو؟» هغه پوښتنه وه چې په لندن او هند کې ورباندې بحث کیده. څرنگه چې شاهي ملاقات لومړی یادونه شوی وه، پرابلم افغانستان ته یوازې گټې رسول نه و، بلکې په دې مرحله کې د برتانیې امپراتورۍ ته گټه رسول وو، او تش په دې نه چې افغانستان د کور ودانۍ موضوع وگرځوي.

په دې ورځو کې روسیه دومره په ویره کې ولیدله شوه چې په ۱۹۲۷ کال د امپراتورۍ د دفاعي کومیتې یوه کوچنۍ کومیته د هند دفاعي چارې معاینه کړې وي، او راپور یې ورکړی و

چی پر افغانستان باندی د روسانو د حملی یادونه هم په خاصه توګه شوی وه. کومیته له افغانستان او سرحدی قبایلو سره د جنګ امکانات او «له روسیی سره د جنګ احتمالی حالت» یی هم په نظر کی نیولی و. نتیجی یی د امان الله پر تحفو باندی اغیزه وکړه.

همدا راز د برتانیی د ګټو په اساس ځینی تحفی وی چی هغه هیواد به امان الله ته د هغه د ورکولو په فکر کی نه و. یو یی د افغانستان د فابریکو له پاره ماشین الات وو، «د برتانیی د ماشین الاتو د رانیولو په خاطر د هند د پیسو نامطلوب وقف کیدل به له افغانی مارکیټ څخه د هند مال وویستل شی» او د الوتکی تحفی، پرزه جات او نور ...، د هغوی د هوایی میدانونو له پاره تر هغه وخته پوری چی میدان د روسانو په لاس کی وی. »

د هند حکومت غوښتل چی له لست څخه ماشیندارونه چی ممکن د تحفی په توګه یی ورکول، وباسی او وویل: «زموږ نظامی مشاورین نه غواړی د افغانستان د وسلی د ترلاسه کولو موضوع آسانه کړی، ځکه چی موږ ټول د خپل ځان په مقابل کی د افغانستان د ضد دریدو له موضوع څخه سترګی نشو پټولی، او موږ علاقه نه لرو، چی خپل عسکر د هغو اتوماتیکی وسلو د ضربی تر خط لاندی راولو چی له هغو وسلو سره شباهت لری چی دوی په خپله په هغه مجهز دی او زموږ له خوا ورته ورکړ شوی دی. توضیحات دومره ضرور نه بریښی، لیکن که چیری کوم یو ضرور وی چی ورکړ شی، موږ دا پیشنهاد کوو چی افغانانو ته دی وویل شی چی موږ د بخشش له پاره هیڅ نه لرو. »

سر ګلاډ جیکب (Sir Claude Jacob) د هند د دفتر یو رسمی مامور په یوه یادداشت کی لیکلی دی: «ما ځینی عجیب شیان لوستلی دی، لیکن د هند د حکومت د تلګرام جملی می نه دی لوستلی ... ( موږ پیشنهاد کوو چی افغانانو ته دی وویل شی، چی موږ د بخشش له پاره هیڅ نه لرو ) یوه ضعیفه عذرخواهی ده. فرضاً د برتانیی امپراتوری د بخششی ورکولو له پاره ماشینداری نه لری! زه نه پوهیږم د افغانستان د پاچا غوښتنه چی دومره موده مو ورباندی تیره کړه څنګه رده کړو. په هر صورت، د ټوپک تر شا نفر دی چی اهمیت لری نه په خپله ټوپک، او زه فکر کوم زموږ هندی عسکر چی د برتانوی صاحب منصبانو له خوا ښه لارښوونه شوی دی، هر افغانی عسکر ته به ماتی ورکړی، ولو که ښه وسله وال هم وی. »

امان الله لاریو ته ضرورت درلود، خراب سرکونه د هغه موجوده لاری یی له منځه وړی وو. هغه، دمخه تر دی چی له کابل څخه حرکت وکړی، امر کړی و چی خرابی لاری دی په یو

ځای کې سره راټولې کړې شي. هغه په دې فکر کې و چې نوی به وغواړي. برتانویانو د لاریو بخشش په خپل پلان کې ونیو، لیکن جرمنانو له پوره چالاکۍ څخه کار واخیست، چې خپلې ځینې لارې وربانديې خرڅې کړې او هغه یې راضي کړ چې له برتانویانو څخه دې د شپږو عرادو غوښتنلیک فسخ کړي چې هغوی به ورته ور کولی.

کوم شی چې برتانویانو وروسته امان الله ته ورکړ، وسله وه، چې بیه یې له یو ملیون روپیو څخه زیاته وه. په دې تحفه کې درې عرادې زرهي لرونکي رالز رایس (Rolls-Royce) شپږ ویکرز (Vickers) ډوله ماشیندار له یو بنډل سامان سره، د ۲۰۷۵ توپکونو، یوه بطریه له یو بنډل سامان، یو اتلس پاوه توپخانه له تجهیزاتو سره، د ۳۰۷۵ د لنډو توپونو یوه بطریه چې له مورچل څخه ګولۍ ولي، او د هاوتزر په نامه سره یادیده، او د پورتني هرې بطریې له پاره پنځه پنځه سوه ګولۍ، او زرداني ۳۰۳ توپکي او سل زره داني کارتوس.

لې تر لږه هغوی په خپله وعده وفا وکړه، دمخه تر دې چې لست تکمیل شي، د اګست میاشت وه، او څرنګه چې ټول شیان سمدستي ترلاسه نه وو، نو تسلیمول به یې په څو میاشتو کې صورت ونیو. د انګلستان محتاط حکومت چې د هند د حکومت پیسې یې لګولې وویل: «دا به وخت غواړي چې د یو په (خپل قسم کې مرسته) د تجربوي پالیسي په ارزښت باندې قضاوت وشي.»

امان الله د رالز رایس د موټر شخصي تحفه ترلاسه کړه، دا هغه سپورتي ماډل نه و چې دده زړه په دوکان کې وړی و، بلکې د لیموسین (Limosine) په نامه یو ډول موټر وه چې په اړخ کې یې دده د کورنۍ د هغه کرتې عکس نقاشي شوی وه، چې د انګلستان د لیدنې کتنې په وخت کې یې اغوستې وه. دا موټر ورته په ۲۶۳۷ سټرلینګ پونډه تمام شو چې تر ډېبیې پورې د بیرې کرایه او له هغه ځای څخه به یو سرپوښ موټر کې تر پېښور پورې کرایه یې هم په بر کې لرله.

هغه د رالز رایس سپورتي موډل موټر د خپل ځان له پاره واخیست چې پیسې یې نقدې تادیه کړې او بیا یې په خاصو شرایطو د دو نورو رالز رایس موټرونو فرمایش یې ورکړ او د هغوی بیعانه یې هم تادیه کړه.

ثریا له داسې یو هیواد څخه راغلې وه چې غالي په هغه ځای کې په دقت سره په لاس اوبدل کېدلې او بهرته صادرېدلې او ډېرو کورنیو به چې توان یې درلود د خپل کور د ښکلا او

وياړ په خاطر هغه غالي پيرودلي، يوه غالي يې په اکسمنستر (Axminister) کې وپيرودله چې د ماشين په ذريعه جوړه شوې وه. ثريا د خوب د کوټې له پاره دوې جوړې فرنيچرونه واخيستل چې يوه جوړه يې خړه او بله جوړه يې کمرنګه نصواري وه. په هغه وخت کې دا فرنيچرونه د «انګليسي صنعت فرنيچر» په نامه سره شهرت درلود. هغې د ادمس ستايل (Adams style)[1] فرنيچر د کتابخانې له پاره واخيستل چې دوه د کتابونو الماري څو داني باړو لرونکې چوکۍ چې بخملي پوښونه يې درلودل، د طلايي کبانو لپاره برنجي لوښي، مرمري مجسمې او رويال ډالتين چين (Royal Dotton Chino) په کې شامل وو. امان الله له ثريا سره د دغو شيانو په پيرودلو کې په داسې مينه او علاقه ګډون وکړ، چې مدام به يې پلورونکي ته ويل، چې سامان دې داسې ځای په ځای کړي چې دوی د شيانو قضاوت وکړی شي.

دوی د دارالامان نوې ماڼۍ په فرنيچر سنبالوله. ددې ماڼۍ کار د خوست د شورش په وجه معطل شوی و، ليکن امان الله تصميم نيولی و چې په ۱۹۲۹ کال د مارچ د مياشتې په ۲۱ نيټه، چې د نوروز ورځ وه، او پوره يو کال له هغه نوروز څخه وروسته چې په هغه ورځ باندې امان الله لومړی پاچا و، چې د لندن د فضا د پاسه پرواز کړی و، خپل نوې ماڼۍ ته به لاړ شي.

کله چې امان الله او ثريا د برقي سامانونو فرمايش ورکړ، دوکانداران وارخطا شول، هغوی ددې اټکل نه و کړی چې افغانستان حتی د پاچا کورنۍ، برق نه لري. امان الله د اتوماتيکي برقي ګرامافون تر تاثير لاندې تللی و، هغه دري دانې د خپلې ماڼۍ له پاره وپيرودل، او بيا يې تصميم ونيو چې د ملکه مارۍ له پاره يوه بله د تحفې په توګه واخلي.

د امان الله او ثريا له پاره په قصر يا په هوټل کې تحفې هره ورځ را رسيدلې. تجارتي مؤسسو چې غوښتې ورسره معامله وکړي، د خپلو توليداتو نمونې يې ورته ورکولې. په افغانستان کې د داسې تجارانو پر ضد چې يې تحفې ورکولې، د کوم حساسيت موجود نه و. په پيړيو پيړيو به يو کاروان يا يو تجار به قبايلي مشر يا واکمن ته تحفې ورکولې. نو امان الله او ثريا کوم دليل نه درلود چې انکار وکړي، د مثال په توګه، د سرو زرو او سپينو زرو د کافي صافونکې اله، چې ورته په ماڼۍ کې د برق د راتلو وروسته واستوله شوه څرګنده شوه. همدا

---

۱- د انګليس ادمز د ورونو د موبل سازۍ او معمارۍ سبک. دوی د انګلستان د پاچا دريم جورج په وخت کې ژوند کاوه او د روم په کلاسيک سبک يې معماري کوله. (مترجم)

راز ځینی تشریفاتی تحفی هم موجودی وی، لکه د لیورپول اتحادیی له خوا د بیړی موډل، ټوپکونه او د زین سازی دستگاه.

کله چی افغانانو له لندن څخه روان شول، لس لاری وغښتل شوی، چی د دوی بکسونه یوسی. دوی ځینی شیان د تحفو په شکل پر سرک باندی وغورځول، چی څلور افغانی گړندی ښکاری سپی چی وریښمین وینښتان لری هم په کی شامل وو، چی په افغانستان کی ورته تازی او په لندن کی ورته افغانی ښکاری سپی ویل. د کراچی بندری مقاماتو ته یو یادداشت ورسید، چی په کی ورڅخه غوښتنه شوی وه چی هغو بیړیو ته دی مراقب واوسی چی ژر رارسیدونکی دی او وربانددی د «اعلیحضرت امان الله پاچا، کابل، افغانستان» مارک وهل شوی دی.

امان الله به خپلی مور ته لیکونه استول او په کی د هغو میلمه پالنو ستاینه کوله، چی له دوی څخه کیدله. هغه ولی خان ته هم هدایتونه په لیکونو کی صادرول. یو په کی هغه اوامر وو چی دولتی ساختمانونه دی د هغه تر راتگه پوری وځنډول شی. ځکه هغه ته د اروپا لیدنی کتنی د تعمیرونو په باره کی نوی مفکوری ورکړی وی. بل هدایت یوه خبرتیا وه چی افغانستان د بین المللی پوستی په اتحادیه کی شامل شوی دی.

اوس هغه تصمیم نیولی و چی له هغی مودی څخه چی ده په خپل پلان کی نیولی وه په بهر کی زیات پاته شی، او د ډیرو سیاحینو په شان چی خپل سفر اوږدوی، هیواد ته ولیکل چی نوری پیسی دی ورته ولیږی.

# یو ویشتم فصل

## د ۱۹۲۸ کال د اپریل له ٦ څخه

## د ۱۹۲۸ کال د جون تر ۲۰ نیټی پوری

له کومو ستونزو سره چی جرمنان مخامخ شوی وو، نو همداغسی ستونزی روسانو هم درلودلی، د امان الله هر کلی کول په داسی یوی طریقی سره چی هم احتمالاً دی راضی او هم د هغوی گټی په نظر کی نیول شوی وی، حال دا چی د هغوی عمومی وضعه لا تر اوسه د هغو خلکو په شان وه چی د دہ له موقف څخه متنفره وو. هغوی له دی گټی خبر وو، چی برتانویانو د (پاچا ملاقات له پاچا سره له موضوع څخه) ترلاسه کړی و.

له نیکه مرغه، د روسانو د واکمن قهرمان لیډر لنین له خوا په یو لیک کی، چی دا د روسی واکمنو مقاماتو له خوا لوړی لیک و، چی یو افغانی واکمن ته استول شوی و، امان الله ته . ـ ح . ډبل شوی وو. دغه کار د هغه د پاچاهی د پیژندلو، د تایید او د قبلولو موضوع راسخ ـه کړه او دغه کار هم وشو. هغوی د هغه له پاره یوه مانی برابره کړه، چی په کی واوسی.

امان الله چی لا په انگلستان کی و، نو د لندن د اخبارونو دا آوازی ردولی، چی انگلستان هڅه کوی له روسیی څخه د امان الله د لیدنی کتنی مانی وگرځی، سره له دی چی دا آوازی ربښتیا وی. یو برتانوی ډگروال څو تنو افغانانو ته په پټه سره مشوره ورکړه، چی دا به بهتره وی چی له روسیی څخه لیدنه کتنه ونه کړی. کله چی د امان الله له اردلیانو څخه ځینو روسیی ته تمایل نه ښوده، حقیقت مطبوعات ته ورکول کیده، چی چاپ شی.

د امان الله د لیدنی کتنی په باب همفریز داسی وویل: «یو خطر» لیکن زیاته یی کړه «دا داسی یو خطر دی چی زه یی فکر کوم...»

سربیره پر دی امان الله، همفریز ته یو پیغام ورکړی و چی کابل ته یی یوسی، چی دی به له شاهی ډلی څخه مخکی هلته ورسیږی. «هغوی ته ووایه، چی په دریٔ اوونیو کی می وکړای شول د افغان - انگلیس د دوستی په زیاتوالی کی څومره گټور گامونه واخلم، چی په دوو کلونو کی زما د بهرنیو چارو اداره یی نه وو اخیستی.»

همفریز وویل: «زه د هغه د زړه نه پوهیږم. هغه به د تنگ نظری او تعصب یو ډول احساس وکړی، چی د شخصی گټی او شخصی میلان په واسطه منځ ته راغلی وی. دا هغه شی دی چی موږ کولی شو اصولاً له یو افغانی واکمن څخه دی توقع وکړو.

په هغه وخت کی چی امان الله خپل تانسلونه عملیات کول، د روسی لیدنه کتنه ضرور باید ځنډیدلی وای.

یو کال د مخه د برتانیی د نماینده گی جراح په کابل کی د هغه د عملیات خواهش یی کړی و، خو امان الله د مزار شریف او د خپل هیواد د نورو ولایتونو په لیدنه کتنه ډیر مصروف و، د خپل ستونی څخه به همیشه په تکلیف و، که څه هم هغه یو قوی او تکړه نطاق و او قوی غږ یی درلود، خو عوامو ته د خطابی په وخت کی به یی تل د اوبو یو گیلاس په مخ کی و، او یو یو غړپ به یی تری کاوه. په ۱۹۲۱ کال کی د کابل کنفرانس په نژدی وختو کی د ستونی ناروغی امان الله ډیر کمزوری کړی و. په دی توگه هغه په دی وخت کی په شخصی توگه بیرته جرمنی ته لاړ او په افغانی نماینده گی کی اوسیده. کله چی ډاکترانو دده د ټانسلونو عملیات ترسره کړل، چی د هغه د بلجیم د سفر ځنډ وگرځیده له سویتزرلیند څخه اته کلن سلطان جان راغی، نو پلار او لور دواړو خپل ټانسلونه ویستلی وو. د برلین د انگرز (ungers) په کلینیک کی به عموماً ماشومانو دا ډول عملیاتونه کیدل. امان الله نرسانو او نورو کارکوونکو ته سل ډالره بخشش ورکړ او وعده یی وکړه چی د لسو کالو له پاره د هغه ناروغ مصرف ورکوی چی د روغتون او افغانی نماینده گی له خوا انتخاب شوی وی او دده بستره یی انتقال کړی وی. په ټولو ښارونو کی چی هغه ور څخه لیدنه کتنه کړیوه، امان الله غریبو کسانو ته مرسته ورکړی وه. د افغانی پاچاهی کورنی خصلت دا و.

د شخصی موقف په درلودلو سره سره چی خفیه اداری په برلین کی د هغه ساتنه کوله، او

کله چې دې له هغوی څخه ځان تیر کړ او د راډیو په برج کې چې د سیل ځای و ، د ایسټر منډې (Easter Monday) د رخصتۍ والاو له ډلې سره د ټکټ اخیستلو له پاره په لیکه کې درېدلی و ، چې تکلیف ورته ورکړ شو.

لیکن جرمني د امان د لومړي ملاقات راهیسې تر هغه څخه زیات ناراحته و. هغه د مخه د برلین له یو جواهر پلورونکي سره موافقه کړې وه ، چې یو زیات شمیر افغاني نښانونه جوړ کړي ، ځکه چې ده هڅه کوله په هغه ځای کې یې پیشکش کړي ، او تر جنګ د مخه به جرمني مډال خوښوونکي په خوښي سره منل ، مګر اوس هغوی نوی اساسي قانون درلود. او هغه دا حرکت وکړ او لندن ټایمز داسې څرګنده کړه: « چې امان الله نښانونه پیشکش کړي دي او د دې سره سره چې د اساسي قانون په یوه فقره کې راغلي دي چې له بهرنیو حکومتونو څخه د نښانونو راوړل منع دي ، خو د هغوی مخه ونه نیوله شوه. دا لمړ اعلی نښان چې ډېر لوړ نښان دی او همدا راز د ډیوک سره قبا (Red Ducal Cloak) د جمهور رئیس فون هنډیر برګ او د نورو مامورینو له خوا منل شوي و. نورو به ویل چې موږ دانښانونه د شخصي تحفو په توګه منو چې زموږ په شخصي نښانونو کې زیاتوالي راشي ... د محافظه کارو مطبوعات وایي چې نورو مشهورو سوسیالیستانو نښانونه ومنل. ځینو رد کړل ، مګر ډېر لږ نه. »

د متحده ایالتونو په آبرلین او هایو (Oberlin Ohio) کې یو سړي لمسول شوی و چې په نیویارک ټایمز کې ولیکي او دا په ګوته کړي چې په پخوانۍ افغاني عنعنه کې د عزت قباوې د یو نفر پر اتباعو باندې ویشلې کېدلې او د هغه قبلولو معنی ورکوله. « دا به د جرمني د جمهوریت له پاره ښه وي ، چې د اعلیحضرت د تحفې د منلو مطلوبیت په دقت سره په پام کې ونیسي ، او د مخه تر دې چې داسې یو شی وشي چې د قبلولو دقیقې نتیجې بې یقیني شي ، ځکه چې که د ټولنې تاریخي اهمیت لاهم وجود ولري ، نو جرمني به د افغانستان د پاچاهي یو لیرې ولایت په ډول وي چې د امیر هندربرګ له خوا اداره کیږي. »

له جرمني څخه د نیویارک ټایمز به رالیږل شوي ټلګرام کې ویل شوي وو ، « په تیره پیړۍ کې ممکن هیڅ یو پاچا ، لوی یا وړوکی د اروپایي حکومتونو له خوا دومره زیاد آزاد پذیرایي شوی نه وي ، یا به یې ډېر زیات اروپایي لوړ رتبه کسان له اختلافونو سره مخامخ کړي نه وي. »

جرمني مطبوعات همدا اوس د امان الله د هرکلي قیمت داسې محاسبه کړې دي: د بخششي الوتکې له پاره ۰۰۰ ، ۱۸۰ مارکه چې په هغه کې امان الله په هغه وخت کې غوښتنه کړې وه ،

چی یو میز له دوو چوکیو سره دی په کی ځای په ځای شی، چی دی د الوتلو په وخت کی پری کار وکړی، ۴۰۰۰۰ مارکه د نورو بخششونو په خاطر چی د اتومات تیلفون دوی مکملی دستگاوی هم په کی وی، ۸۰۰۰۰ مارکه د هغه د مانی کرایه او ۶۷۰۰۰ مارکه د لارو او سرکونو په ښکلا او نور چی په مجموعی ډول یو میلیون مارکو یا ۲۵۰۰۰۰ ډالرو ته رسیده.

امان الله او ثریا د می ورځی په پولنډ کی تیری کړی. دی کار روسان ناراضه کول چی خپل راتلونکی میلمه په داسی یو هیواد کی وینی چی خپله خاصه رخصتی تیروی، چی په اروپا کی د بالشویک د پرمختگ خنډ گرځیدلی و او له هغه هیواد سره یی بد شرایط درلودل. هغوی د انگلستان لیدنه کتنه په عادی توگه قبوله کړی وه، مگر تر کومی اندازی چی هرچا ته معلوم و، یوازی څلور تنه پولینډیانو په یو وخت کی د افغانستان خاوری ته پښه ایښی و، یوازی څلور تنه پولینډیانو په یو وخت کی د افغانستان خاوری ته پښه ایښی وه، کاونټ پوټو کی (Count Potoki) چی د برتانیی په نمایندگی کی اوسیده او د برتانویانو له خوا ډیر زیات صمیمیت ورسره کیده، په دی معنی چی اشتباه شوی وه، چی د یو انگلیس دی، او دری تنه د روسیی د عدالت بدبخت مهاجرین چی په هرات کی نیول شوی وو، او په داسی حال کی چی یو پول هم ورسره نه و د کابل بندیخانی ته استول شوی وو، او د برتانویانو له مداخلی څخه وروسته خوشی شوی وو، چی له هغه وروسته یو تن یی مسلمان شو، او نور یی ورک شول.

لیکن امان الله له پولینډ سره یو ترون لاسلیک کړ، او پولینډیان د ترومپت په یو لنډ غږولو سره هغه هرکلی وکړ، او په لاره کی قیمتی غالی تر پښو لاندی وغړولی او خپله اتشبازی یی ورته داسی په ماهرانه توگه وښودله چی امان الله غوښتنه وکړه ددی لوبی متخصصین دی افغانستان ته هم واستول شی.

کله چی امان الله د می په دریمه نیټه مسکو ته ورسید، د می د ورځی تزئینات لا په واټونو کی ځلیدل. داتزئینات خاص د هغه له پاره پاته شوی و. تر دوهم نیکولاس (Nicholas II) وروسته هغه لومړنی پاچا وو، چی د شوروی اتحاد خاوری ته داخل شوی و، او شورویانو چی شاهی سیستم یی پری ایښی و او نیکولاس یی وژلی و، له امان الله سره د یو پاچا په توگه ښه چلند وکړ. کوم نوم چی هغوی تل د امان الله له پاره ورڅخه کار نه اخیسته د «پادشاه» نوم و، چی یوه فارسی کلمه ده. ممکن ددغه نوم په یادولو سره روسان مغشوشیدل، لکه څنگه چی د هغه د میلمستیا او هرکلی د طریقی په وجه مغشوشه وو. د اورگاډی د انتظار

ایستلو غولي د هغه د رارسیدو په خاطر په ختیځو غالیو سره فرش شوی و، مامي الکساندر اکالیونتال (Mme Alexander Koliontal) په ناروې کې د شوروي اتحاد سفیر، چې مسکو ته په خاصه توګه غوښتل شوی و، چې د ثریا مهمانداره شي، خپلې میلمنې ته د سرمایه داری د ګلابو عتعنوی ګیډۍ ورکړه. میخائیل کالنین، د شوروي اتحاد جمهور رئیس، چې ساده تور بالاپوښ یې اغوستی و، او یوه نرمه شپو یې په سر وه، د امان الله هر کلمه یې وکړ. د ثریا په پرتله چې پر ابې کرتی یې د سمور پوستکي لګول شوی و، او د امان الله لباس یو مناسب پرولتاریایي لباس و.

له عسکرو او مامورینو څخه سربیره صرف دوو سوو تنو مخورو کسانو ته د ستیشن د داخلیدو اجازه ورکړې شوې وه، اما پر سرکونو باندې تقریباً پنځوس زره تنه لیکه ولاړ وو، چې د دوی د تیریدو په وخت احساسات وښيي. لویدیځو اخبارچیانو چې د دوی د تیریدو مراسم یې مشاهده کول، په تعجب کې پاتې شول، چې دومره خلک د امان الله د لیدو په خاطر راغلي وو، یا د خپل د مشر په خاطر چې مدام به د دوی له سترګو څخه پناه و. لیکن د مسکو داسونو د ځغلولو او د سرکس په میدان کې چې امان الله په یوه پخوانی مجلله غرفه کې چې په ګلانو او بیرغونو ښکلې کړې شوې وه، ناست و، د خوشبیني او لیوالتیا په برخه کې یې کوم شک نه لیدل کیده. په زرګونو کسانو انتظار ایستلی و چې د امان الله موټر د تیریدو په حال کې ووینی. هغوی امان الله ته د خوښي په څرګندولو سره د اسونو د ځغاستې لاره بنده کړه، او په هغه وخت کې یې لاره خوشې کړه چې سپرو پولیسو مداخله وکړه او د مسابقې له پاره یې لاره خلاصه کړه.

د زرو روبلو یوه مخصوصه جایزه چې د «خپلواک افغانستان» په نوم باندې یادیدله د امان الله په ویاړ او درناوي د چټک اس له پاره تجویز شوې وه. هغه سور اس چې د شابلوط په شان یې رنګ درلود او د بناپارټ (Bonaparte) په نوم یادیده، جایزه یې وګټله او د ایزویتستیا اخبار، چې د امان الله په درناوي یې خاصه خبرونه کوله، دایې په ګوته کړه چې ناپلیون بناپارټ لومړنی سیاست مدار و، چې د افغانستان په اهمیت پوه شوی و، چې افغانستان د هند د تجارت د لارو د کونجي حیثیت لري او په دې توګه د خپل دښمن، انګلستان توجه یې داسې یو هیواد ته واړوله، چې تر یوې روښانې ماضي وروسته په عملي توګه له تاریخ څخه غورځیدل شوی و.

امان الله او ثریا په یوې ماڼۍ کې اوسیدل، چې د یو سرمایه دار پاچا له خوا بوازې د مسکو د سیند پر اخوا کرملین ته نژدې ودانه شوې وه، او په لنینگراد کې هغوی داسې یوه ماڼۍ اشغال کړه، چې دوهم الکساندر (Alexandar II) په ژمي کې په هغې کې اوسیده.

شوروپانو د شپې مکملې جامې اغوستې وې او تر ځلیدونکو شمعداتونو لاندې د گډا په کوټه کې گډېدل او امان الله په یو خړ پرولتاریایي لباس کې و.

د نولسمې پېړۍ په وروستیو برخو کې، دوهم نیکولاس تزار، چې په هغه وخت کې بوازې ولیعهد و، د فرانسې سفیر موریس پالیولوگ (Maurice Paleolougue) له خوا ورته میلمستیا ورکړل شوې وه، چې وروسته یې په خپلو خاطراتو کې د هغې یادونه کړې وه. دا خاطره په مسکو کې د افغاني وکیل التجار، عبدالمجید زابلي له خوا لوستل شوې وه. مجید زابلي چې د حکیموف په شرکت کې د سوداگرۍ نماینده و، تصمیم ونیو، چې په مسکو کې د افغاني اتباعو له خوا د هغه میلمستیا تقلید وکړي. هغه تر نورو دمخه د گرینډ هوټل یوه برخه ونیوله، چې په دوهم پوړ کې وه او د ډوډۍ خوړلو خونې ته یې هم لاره درلودله. په دې کار سره دغه امکانات برابر شول چې په یوه الۍ کې د گل سنگ نقشه وایستل شي، کومه چې په دهلیز او پر زینې اوارېدله، او په کنټرول شوې برقي حرارت، لند بل اورنایي داسې ترتیب نیول شوی و، چې په هغه موقع کې، چې امان الله مراسمو ته تشریف راوړي، د گل سنگ غالۍ دې په ټوله ساحه کې باید غوړول شوې وي. هغه د گل سنگ پر غالۍ باندې بوازې هغسې وگرځېد، چې نیکولاس گرځېدلی و. گلان هم دننه په جوش کې وو، چې په دې ترتیب سره بوازې د صحنې د تزئیناتو لگښت څلور زره ډالرو ته رسیده. دوه نوي تنه میلمانه د ډوډۍ خوړلو په منظور خپلو ځایونو کې ناست وو، چې د هر سړي پر سر پنځه ډالره لگښت منظور شوی و، او په دې میلمستیا کې چې شپږ ساعته یې دوام وکړ، د شوروي اتحاد د مختلفو جمهوریتونو ارکستر د میلمنو د خوښۍ په خاطر خوږې نغمې غږولې. په تیره بیا د اوکراین او کاوکاسس (Caucasus) ارکستر، چې د سربېره پر حق الزحمې د هغوی د ورلو او راوړلو پیسې هم تادیه شوې وې. دا میلمستیا په شپږ زره ډالره تمام شوه. د دې ۱٤٦۰۰ ډالرې میلمستیا په هکله نیویارک ټایمز داسې ولیکل: «دا به د شوروي د خزانې په څانگه کې د شخص سوداگرو په چال چلند کې یوه نوې منظره رامنځ ته کړي.»

امان الله د مې د میاشتې په اوومه نېټه، د خلکو د بهرنیو چارو له کومیسار، گریگوري

وی. چچرین سره جدی مباحثه وکړه، چی داسی یی پیل کړه «زما شوروی روسیه خوښیږی. ما په کی له پخوا نه یو دوست لیدلی دی او زه په ورته وفادار یم، له دی نه ډاډه واوسه او تشویش مه کوه.»

چیچرین ورته وویل: «زه مجبور یم له انګلستان سره خپلی اړیکی ډیری سمی کړم. موږ پوهیږو چی په انګلستان کی خلکو هڅه کړی ده چی تا ته داسی مفکوره تجویز کړی، چی د شوروی حکومت د انګلستان او په عمومی توګ د هر یوه په مقابل کی یوه متجاوزه قوه ده. موږ له ټولو هغو خلکو سره همدردی ښکاره کوو، چی د خپلی بشپړی آزادی په خاطر مبارزه کوی. موږ هغوی په هره طریقه چی وی، د امکان په صورت کی حمایه کوو. لیکن دا داسی معنی نه لری، چی ګوندی موږ پر انګلستان برید کوو او یا لکه څنګه چی زموږ دښمنان وایی ځان ورسره په جنګ اخته کوو. زموږ زیات وګړی د انګلستان په هکله داسی یو ډول احساس لری، چی په مطلقه توګه ورته نرم احساس نه شو ویلی، په دی چی زموږ د منځ ته راتلو له پیل څخه، له هره نقطه نظره او په هر ځای کی، انګلستان زموږ له پاره ستونزی رامنځ ته کړی. زموږ په کارونو کی د مداخلی اساسی رول یی لوبولی دی، او اوس هڅه کوی موږ له ډیوال سره وجنګوی. مګر دا په هیڅ صورت داسی معنی نه لری چی موږ هڅه کوو د انګلستان په لور ځانونه وغورځوو، څکه د قوی کرکتر د فضیلت له مخی، موږ د تیری پالیسی نه خوښوو.

«دا انګلستان دی چی زموږ له خوا د حملی د ویری په فکر کی دی، بلکی دا موږ یو چی د انګلستان د حملی د ویری په فکر کی یو. دا چی آیا انګلستان زموږ په مقابل کی د جنګ تیاری نیسی دا به هم وروسته معلومه شی. انګلستان تل هڅه کړی ده چی په نظامی عملیاتو کی نور مخکی کړی. ممکن یو لند زموږ پر ضد وهڅوی، البته زه په خپله د افغانستان او یو لنډ ترمنځ معاهدی ته احترام لرم، اما زموږ د عوامو په فکرونو کی دی معاهدی اندیښنه پیدا کړی ده.»

امان الله له چیچرین څخه د پولنډ په ارتباط غوښتنه وکړه، چی عمومی افکار ارامه کړی. «دا د عادی اړیکو د منځ ته راتلو په باره کی بی له کوم قیده څخه یوه ساده ترینه معاهده ده.» چیچرین ورته وویل، چی ما اوریدلی دی چی پولنډ غواړی د افغانستان د ښبنی محصولات په خپل لاس کی واخلی. امان الله وویل: «زه به له داسی یوی پریکړی سره چی د بهرنیانو له خوا زما د هیواد پر کومی برخی باندی د تسلط معنی ولری، هیڅ موافقت نه لرم، نو داسی کوم شی نشته چی تاسو د پولنډ له پلانونو څخه وویروی.»

کله چی د امـان الله له نظره خبری اتری پر خپل اوج ته ورسیدلی، نو هغـه داسی وویل: «دا ضرور ده چی له دی سفر څخه گټه ترلاسه شی، ددی له پاره چی کوم صحیح شی بی نتیجه شی. په نورو هیـوادونو کی مـا تل د خپلو خلکو له پاره څه کړی دی، یا می مـاشین الات او وسلی پیرودلی دی او یا دی موافقی ته سره رسیدلی یو، یو دا چی افغانی شاگردان دی د زده کړی له پاره واستول شی او بل دا چی افغانستان ته دی انجنیران راوبلل شی. زه به ډیر خواشینی شم، چی په داسی یو دوست هیواد کی د افغانستـان له پاره کوم گټور اقدام ونه شی. ما له ځان سره غلام صدیق د بهرنیو چارو د وزارت مرستیال راوستلی دی او د تجارت وزیر عبدالهادی می راغوښتی دی، چی په مربوطه موضوعگانو همدا اوس بحث وکړی. ما په خاصه توگه په اوسنیـو شـرایطو پوری مـربـوطی دوی پوښتنی غـوره کـړی دی د یوی لویی لاری جـوړول او یو تجارتی تړون.»

امان الله څو ځلی د روسیی له لاری د تجارتی معاهدی او د هغه د ترانزیتی گټو په برخه کی خپله هیله څرگنده کړه چی «زه نه غـواړم چی افغـانستـان لکه ځنگه چی اوس دی له هری لوری محصور پاتی شی.»

روسانو هم بیخی ونه منله، هغوی توضیحات ورنه کړل، اما کـتونکو داسی حدس واهه چی هغوی د برتانیی د امپراتوری له کسـات اخیستلو څخه ډاریدل. هغـوی پر ځان باندی د برتانیی د نقشـو همغـسی تشـویـش درلوده چی برتانویانو د دوی له پاره لـه پلانونو څخـه درلود، پر تـه لـه هغـه شـی څـخـه چی برتانویانو ورڅـخـه ډاریدل او هغـه د روسیی پروپاگنډونه او د هغوی وسله.

د امـان الله د یوی بلی غـوښتنی په باره کی، د څلورگـونی اتحـاد له پاره چی روسیـه، ترکیه، پارس او افغانستـان په کی شامل وو، روسانو بالکل سپینه وینا کوله. لیو ام قره خان (Leo M. Karakhan) په ختیځ کی د بهرنیـو چارو کمکی او تکړه کـومیسـار، چی تر ټولو روسی مـهمـاندارانو امـاان الله ته ډیر نژدی و، او حتی دا چی د ټینس لوبی یی ورسره کـولی، هغـه داسی وویل: «مـوږ د نظامی اتحـاد ناممکنات یا د دغـو څلورو حکومتـونو گډ تـضمـین په گوته کړه او تشریح کـوی، چی د څلورو هیوادونو ترمنځ د اړیکو ټینگول به د دریـمی نړی پر ضد د یود تیری کوونکی اتحـاد فکر رامنځ ته کړی، دا به یو غلط فـهمی وی. غلام صدیق موافقه وکړه چی اوس ددی وخت نه دی، چی د نظامی اتحاد یا د گډ تضمین په باره کی دی خبری وشی.»

همدا راز امان الله د یو عصری سرک د جوړولو غوښتنه وکړه، چی له کابل څخه دی تر مزاره پوری ورسیږی، چی د کاروانونو د تبادلی عمل سرته ورسوی او شوروبانو په دی باندی په «کلی توگه» موافقه وکړه. د هغه سرک واقعیت له هغه حدس څخه ډیر لیری و، چی د برتانیی نظامیانو وهلی و.

چیچرین او امان الله د هغو تجارانو د نیولو په باب خبری وکړی چی د روسیی مروجو پیسو ته یی په ښه نظر نه کتل (امان الله هیله وکړه چی هغوی دی بی له کوم ښه دلیل څخه ونیول شی) او هم د هغو افغانانو د رانیولو په باره کی خبری وکړی، چی ځانونه یی امان الله ته د مسکو بازارونو ته رسولی وو او شکایت یی کړی و، چی چا ورڅخه شپږ سوه پسونه وړی دی.

دمخه تر دی چی دوی سره بیل شی، چیچرین د یو جرمنی اخبار د راپور یادونه وکړه، چی امان الله په لندن کی دی موافقی ته رسیدلی و چی افغانی عسکر دی د برتانوی افسرانو ترلاس لاندی و. امان الله په جگ آواز سره وخندل او وی ویل: «زه له تا څخه په ټینگه دا هیله کوم چی پر دغو بی اساسو خبرو باور مه کوه. ما په لندن کی هیڅ کومه داسی موافقه نه ده کړی او د انگلیس افسرانو د داسی خدمت کولو لست می بیخی جوړ کړی نه دی. د اخبارونو دا ډول راپورونه گټور تمامیږی، ځکه هغوی دا په گوته کوی چی د افغانستان دښمنان واقعاً څه غواړی او همدا راز څرگندوی، چی افغانستان دی د څه شی مخنیوی وکړی. زه له دی اخبارونو څخه خوښ یم، ځکه چی زه ورڅخه دا زده کوم چی څه باید وکړم.»

له روسیی څخه د امان الله د لیدنی کتنی سملاسی ثمره د کرنی څلور تراکتورونه، دوه ټانکونه، دوی الوتکی، او یو څو البمونه وو، چی په کی د شوروی پروژو عکسونه وو. د شخصی تحفی په توگه امان الله یوه توره او یو کریچ ترلاسه کړل او ثریا یوه تومانچه... له یو شمیر نانزکو سره چی روسی جامی وراغوستی وی او د پنځه اویا کسانو له پاره د ډوډی خوړلو مکمل سیټ، ترلاسه کړل چی د اریستوکرات یو سوپوف په کورنی پوری تړلی و.

قره خان راپور ورکړ: «زه فکر کوم له موږ سره د پاچا د تم کیدو ډیره مهمه نتیجه ممکن له دولتی ماهرو کسانو سره شخصی تماس نیول و، چی دا تماس نیول له موږ سره د هغه له پاره د نورو اروپایی ځایونو څخه ډیر نژدی و. کله چی هغه له موږ سره مخه ښه کوله، پاچا په شخصی توگه زیات له یو وار څخه کالنین، چیچرین، وروشیلوف اوریکوف یی په نوم سره یاد کړل... د

مسکو ماتوره پرپادشاه ډېره اغېزه وکړه او هغه چې په خبرو کې زيات محتاط و ، ملگرې بوروشيلوف ته وويل چې زه د هرشي په ليدو خوښ يم او هم يې وويل چې زموږ د دوستي تر دې حده ټينگه ده چې که کوم بل قدرت زموږ جانشين شي ، يا په موږ کې پيدا شي ، هغه به زما دښمن وي. د يو سياست مدار له پاره په تيره بيا چې د امان الله موقف ولرې دغسې څرگندونې بايد زياتې مهمې او له مسؤوليت څخه ډکې تعبير شي. »

« د خبرو اختياط کار » داسې يوه خبره نه وه چې د نورو هيوادونو مامورين د امان الله په باره کې کړې وه. روسانو د قره خان د خوشالي چې هغه يې په نوم سره خطاب کول د هغه د احساساتو او درک په برخه کې د معلوماتو زيات منابع درلودل. د روسيې د خفيه پوليسو يوه نماينده (O. G. P. U.) د دزداب يو مهم فارسي سړى ، په روسيه کې د هغه د زوى له پاره د تعليم فرمايش ورته ورکړى شوى و ، په حقيقت کې دا هلک يرغمل نيول شوى و چې د پلار وظيفه سرته ورسوي او د فارس د لښکر پټ راز لاس ته راوړي. امان الله په مسکو کې د يو پيشخدمت غوښتنه وکړه. د شوروي نماينده گۍ چې د تيلو نماينده گيو له پاره وطني نفر برابرول ، دغه ځوان نفريي ورته واستاوه او هدايت يې ورته ورکړ چې خبرو ته دې غوږ ونيسي او داسې دې ونه ښيي چې په فارسي باندې پوهيږي.

هغه چې يو غلې چاى ورکاوه ، ثريا امان الله ته په فارسي ژبه وويل: « ما ته چاى سوړ ښکارى » نوکر چې پام يې نه و وويل: « معافي غواړم چاى جوش خوري » کله چې هغه پوه شو چې امان الله ورته گوري نو د ستي غلي شو.

نو دا نوکر همدلته پاتې شو ، چې روسي مقاماتو ته د امان الله او ثريا د هغو شخصي خبرو اترو راپور ورسوي چې غوره نه بريښيدل. هغوى په روسي کلتور او مدنيت کې ډېر ډېر نقصونه ليدل.

امان الله ته بلنه ورکړى شوه چې سره فوځ ته د نهو ځلوينښتو جنگي الوتکو د تسليمولو په مراسمو کې گډون وکړي ، خو کله چې پوه شوى چې دا الوتکې د « چمبرلين د ځواب » له بودجې څخه وروسته تر هغه رانيولې شوي دي چې جوسيف ستالين په توندى سره پر سر انستين چمبرلين باندې دا تور ولگاوه چې په روسيې باندې يوه تيرى کوونکې طرحه لري ، په مراسمو کې گډون څخه انکار وکړ. کله چې د لنين په مؤسسه کې مدير په روسي ژبه امان الله ته وويل چې « ته هغه منور پاچا يې چې پر افغانستان باندې د برتانيې تسلط هيڅکله نه منې. » امان

الله ورته په مسکا سره غوږ نیولی و. کله چې امان الله ترجمه واریدله، په څېره کې یې تغییر ولیدل شو، تېندېه یې تروه شوه، نو یې په خپله رسمي څوابیه کې وویل: «زه په اریانوونکې توګه د هغو ډېرو شیانو تر اغیزې لاندې تللی وم چې په لندن کې مې لیدلي وو. زه د افغانستان په برخه کې د انګلستان له ښه نیت څخه راضي یم.»

ددې په نتیجه کې، د روسانو شکاکیت زیات شو او په فکر کې ولویدل چې ګوندې امان الله به له انګلستان سره کومه پټه معاهده کړې وي. د هغوی نماینده ګان د افغانستان د شاهي ډلې تېول بکسونه معاینه کړي چې که په پټه سره داسې اسناد ترلاسه کړي. هغوی هیڅ شی پیدا نکړ. لیکن دوه بکسونه وو چې هغوی یې په تالاشی باندې بریالي شوی نه وو، او زیات شک یې هم په همدغو بکسونو کاوه. د امان الله ډله اوکراین ته نژدې شوی وه چې د دوی د سفر پای و. په دې وخت کې دا دوه تنه نماینده ګان ددې دوو بکسونو په پټولو بریالي شول چې ډېره د هغو څارنه کېدله. په دې بکسونو کې تېول د ثریا زیرپوشي وي.

د توري بحیرې په نیمایي کې روسانو، امان الله ترکانو ته تسلیم کړ. یو ترکي هیأت د امان الله د هرکلي کولو له پاره په یوې بېړۍ کې راغله. څرنګه چې ناوخته راتګ د امان الله پخوانۍ عادت ګرځیدلی و، نو هغوی ته دا فرصت مناسب و چې پر بدرګه کوونکو بېړیو له روسانو سره خبرې وکړي او داسې یو فکر منځ ته راوړي چې نتیجه یې اتحاد او یووالي وي.

دا نفرې د اورګاډي په ستېیشن کې امان الله د ترکیې مشر، مصطفی پاچا یې چې: کمال اتاترک یا د ترکیې پلار په نامه سره یادیده، په دواړو مخونو ښکل کړ. کمال اتاترک هغه ډول اجراات د مخه کړي وو کوم چې امان الله غوښتل چې هغسې اجراات وکړي. د ۱۹۱۹ کال په همدې میاشت کې دواړو د خپل تقدیر او سرنوشت د معلوملو په خاطر اقدام وکړ. کمال د اناتولي او له تیرو وختونو څخه د آزادي له پاره جنګ کاوه، امان الله د خپلواکي او همداسې تېولنیزې آزادي لپاره. څکه ترکیې له افغانستان څخه زیات پرمختګ کړی و.

لیکن هغه خلکو چې کمال د هغوی ژوند ته تغییر ورکاوه، له افغانانو څخه ډېر پرمختللي وو، څکه چې له مسیحیانو او مورانو (Christians and Moors)[1] سره بلد وو، د بایزنتین د امپراتورۍ مرکز و. هغه بېړۍ یې لیدلي وي، چې د دوی د هیواد یوه برخه په

---

۱ - یو شمیر مسلمانان چې د عرب او بربر ګډ نسب لري او د افریقې په شمال لویدیز کې ژوند کوي او یو شمیر همدغه خلک چې مهاجرت یې وکړ او له میلاد څخه وروسته په اتمه پیړۍ کې یې فرانسه اشغال کړه. (ژباړونکی)

اروپا کـی وه. سره له دی، کمال د خپل هیواد ډیرو لیرو پرتو سیمو ته تللی و، چی هلتـه د دغو شیـانو اثـرات لیـدل کیـده او امر یی وکړ چـی ښـځی دی مـخ لوڅـی شی او ماشومان دی زده کړه وکړی.

د دغو شیانو په کولو کی کمال بی رحمه و. هغه د خلکو ژوند ته په داسی سړه سینه سره خاتمه ورکوله لکه چی کوم خلیفه امر وکړی چی سرونه په ټوکریو کی واچول شی. د هغه یو بیوگرافی لیکونکـی د کـمـال په باره کـی ولیکل چی د هغـه په باره کی هیڅ کـوم نرم زړی حکایت او روایـت نه شتـه. د امـان الله په بـاب په سـل گـونو په زړه پوری او خـوښـوونکی کیسی موجودی دی.

وروسته تر هغه چی امان الله د هغه هیواد نوی پایتخت (انقره) کی چی «دمخه د انگورا په نامه سره یادیده» د احترام مراتب په ځای کړل، زوړ پایتخت قسطنطنیی ته لاړ. په هغه ځای کی د خرقی مبارکی کوټه یی ولیدل، چی د مسلمانانو په نړی کی ډیر مقدس او سپیڅلی شی و. یوه خرقه چی حضرت محمد (ص) اغوستی وه، یو بیرغ چی هغه به یی له ځان سره گرځاوه، یوه امـسـا، توره او یوه لینده. د خلیفه گـانو په وختـونو او په پخوانی ترکیبی کی هیڅ یو غـیـر روحانی مسلمان دی مقدساتو ته نه متوجه کیدل. په کال کی یو ځلی ځینو خاصو میلمنو ته اجازه ورکوله کیدله چی دا شیان د پوش له پاسه ښکل کړی او هم هغه صندوقچه ښکل کړی چی دا متبرکه شیان په کی ایښودل شوی وو او بس.

امـان اللـه وغوښتل چی دا صندوقچه ووینی. کمال اتاترک ټول دغه شیان یی عیناً په هغـه ډول له منځـه وړی وو، لکه چی د خلیفه توب موقتی قدرت یی له منځـه وړی و او تر دی وختـه پـوری د خرقی مبارکی کوټی ته نه و ننوتلی. ددی سپیڅلی ځای مجاور چی د دروازی پـه خـولـه کی کښیناستل پر دغه کار خپه شو چی کمال پاچا د افغانستان نامتو شخصیت امـان اللـه د غـوښـتنی مخنیـوی وکـړ، کلـه چی هغـه داسی مـتـبـرکـه اماکنو ته اهمیت ورکاوه، وروسته هغه په یوه دیپلوماتیکه سویه پورته شو چی یو سفیر هم دا کار نه شو کولی، هغـه وویل چی زمـا کلی بـه دروازه خـلاصـه نه کـړی. امـان الله چی مـایوسـه و، ورته وویل چی افـغـانـتـان هم د حـضـرت مـحـمـد (ص) مـبـارکـه خـرقـه لری، وروستـه له هغـه په دی ځای کی د مجسمی د ځرگندولو له پاره لاړ. دا د یو سړی له اثارو څخه و چی د یو ټینگ مسلمان له پاره په مطلقه توگه منع و.

امان الله د کمال پرخلاف، په ساده توب سره د خپل هدف په لور گام نه اخیسته، شاید د هغه ملایان نه خوښیدل، مگر اسلام یې په زړه کې ځای درلود. احساساتي توب یې عادت و. ده نه شو کولای پر هغه لاره تر اخره پورې لاړ شي چې کمال تللی و.

د نیویارک تایمز خبریال داسې ولیکل: «راځي چې په دې هیله واوسو چې د کوټې ملازم یا مجاور، چې ځان ته حق ورکړ چې د کوټې دروازه بنده وساتي د ستاینې وړ به وگرځي او د ترکیې د ډیرو نویو مسلمانو شاگردانو په فکر کې په دا شي وگرځوو چې د پرمختگ گام جاز (Jazz) دی نه یو مذبذب والتیز (Waltz)».

ترکانو امان الله پر ته له هغې نورې څخه چې جواهر په کې کار شوي وو، داسې قالینې ورکړې چې د انگورا (انقره) د وزو له وړیو څخه اوبدلې شوي وې او هم یې ورته یو غټ لرونکی البوم ورکړ چې د ترکیې د انقرې د پرمختگ عکسونه په کې لگول شوي وو.

د ثریا له پاره زیات تکلیفونه وگالل چې د انگورا دوه بچیان ورته پیدا کړي چې د پت په شان نرمه وړۍ لري.

د جون پر ٦ نیټه د فارس سفر د کسپین په ساحل کې په رسمي توگه پیل شو، کله چې تیمورتاچي (Teymourtache) د دربار وزیر هیأت ته په انزلي (Enzeli) کې (چې اوس ورته پهلوي ویل کیږي) هرکلي ووایه. وروسته له هغه چې عسکري عالیرتبه حوالدارخان د فارس پاچا کړ، پر انزلي یې د پهلوي نوم کیښود.

ثریا بیرته د مسلمانانو گوښه توب ته تله چې څه موده ورڅخه لیرې شوې وه. هغې د لومړي ځل له پاره ښځه میاشتنۍ چادرۍ په سر کړه، لکه چې نورالسراج، خور یې حوربا او د هغو مور په سر کړې وه، چې د هغې د لیدو له پاره راغلې وې. که څه هم د فارس پاچا هڅه کوله د کمال په شان د خپل هیواد رواج بدل کړي، مگر نه کاله یې خپلې ښځې او لوڼو ته ونه ویل چې د باندې دې مخ لوڅې لاړې شي.

هغه حجاب چې ثریا په فارس کې استعمالاوه، چادرنماز نه و، چې د سرنه تر پښو پورې به ښځې په کې ځانونه تاوول، بوازې مخ او دوې سترگې لوڅې وې. په افغانستان کې ملکه شهزاده گانې به دې برخه کې پرمختگ کړي و او د اروپاییانو په شان یې څنډې لرونکې شپوگانې په سر کولې، چې په لاندې برخه کې یې یو نقاب درلود، چې د ستر لاندې برخه کې یې مخونه پرې پټیدل. هغوی پوهیدل چې دوی بیا بل د ول هیواد کې داخل شوي وي، چې له

لندن او روسیې ځخه توپیر لري، نو ددې پر ځای چې په مراسمو کې له نارینه و سره یوځای وي چې له دې کار سره عادت اخیستې و. دوی د پارس د ملکې ډلې خوا ته بدرگه کیدلې.

په تهران کې د برتانیې نماینده گې د فارس د لیدنې کتنې په باب داسې توضیحات ورکړل: «د تهران په بازارونو کې به نفر په هر مناسب موقع کې په خوزنده توگه د پاچا او ملکې هر کلې کاوه. پاچا او ملکې دواړو د همدردۍ په ښودلو، د تهران له خلکو سره ښې رویې په کولو او په بشپړه توگه د غرور او تکبر په نه ښودلو سره، ځانونه خلکو ته محبوب گرځولي وو. د دوی تم کیدنه په هغه ډول دوستانه چک چکو بدرگه کیدله، چې غږ یې په تدریج سره زیاتیده. دوی به د تهران بازارونو او له تهران ځخه د باندې سیمو ته یوازې تلل چې زیاتره به پاچا په خپله موټر چلاوه او په هر ځای کې به دوی له بې ساري تود هرکلي سره مخامخ کیدل چې د فارس په ټولنه کې دا یو فوق العاده کار و.

دا باید وویل شي چې امان الله او ثریا فوق العاده هلې ځلې کولې چې خپله مهرباني او زړه سوې د غو کمینه خلکو ته وښیي او عوامو به هم سستې ونه کړه او د افغاني پاچا د غه له مهربانۍ او محبت له ډک سلوک ځخه یې ستاینه او خوښي وکړه او د دوی دا نیکه رویه د خپل پرُوس او تر یوې ټنډې پاچا په پرتله وستایله...

«شاه ددې افغاني پاچاهانو د پاتې کیدو په موده کې ده داسې مراسمو ځخه زیات بدمزاجه کیږي، په تیره بیا په هغه میلستیا کې چې صدراعظم د فرماني (Farmanieh) په مانۍ کې ترتیب کړې وه، نو د اعلیحضرت کم بخت موټروان لاره غلطه کړه او د ښار په یوه تنگه کوڅه کې یې خپل موټر وچلاوه، نو شاه نه یوازې دا چې وربانديې ناوخته شوی و، بلکې پلې تگ ته هم مجبور شو، چې د لارې یوه برخه په پښو ووهي. هغه پر خپلو وزیرانو د خرابو ترتیباتو د نیولو په وجه خپل پرسیدلی زړه ښه تش کړ او له ډوډۍ خوړلو وروسته سمدستي بیرته ولاړ.

«همدا راز د هغه سلوک ته باید داسې نسبت ورکړ شي، چې شا تر یوې اندازې پورې په تهران کې د خپل میلمه د ځرگند بریالیتوب او ښه رویې په خاطر رخه کوله او حتی ویل کیږي چې پولیسو ته لارښوونه شوې وه، چې داسې فضا منځ ته راوړي چې له امان الله سره د خلکو لیوالتیا له منځه یوسي.

«ملکه هم د عوامو له خوا ښه په درنښت سره استقبال شوې ده او دا چې ملکه بې له دې

چی حجاب استعمال کړی، په‌وار وار سره سرکونو او بازارونو ته وتلی ده. ډېره وړه تبصره ورباندی نه ده شوی. د هغی ساده توب او طبیعی توب او له مهربانی ډک سلوک د تهران د ټولو زړونه وړی دی.

«د ټولو نماینده گیو مشران له خپلو ښځو سره په ټولو ماښامنی میلمستیاگانو کی گډون کړی دی چی د شاهی میلمنو په ویاړ ورکول کیدلی، لیکن ملکه به په یوه کی هم نه لیدل کیده، حتی په هغه وروستی میلمستیا کی هم ونه لیدله شوه چی په خپله د پاچا له خوا ورکړی شوی وه.

«شاهی میلمانه نن (د جون ١٦) له تهران څخه د مشهد په لور چی افغانی سرحد دی د موټر په ذریعه حرکت کوی. امان الله رضاشاه ته د المراعلی نښان ورکړ او په مقابل کی ده ته هم د فارس اعلی درجه مدال ورکړ شو. همدا راز امان الله ته د حکومت له خوا د چای څښلو د سرو زرو سیټ هم ورکړ شو.»

د فارس علماوو، امان الله ته یو پیغام استولی و، چی په هغه کی ورڅخه غوښتی وو چی په فارس کی به پر خپلی ښځی چادری ور په سر کړی. امان الله هغه شی نه و منلی، او په مشهد کی هم د هغه نه منلو ته یی ادامه ورکړه. چیری چی ثریا او نوری ښځی مخ لوڅی د لمانځه ادا کولو په خاطر یو لوی جومات ته لاړی، چی نوی خالص طلایی گومبز یی درلود. هیڅ یو بی عقیدی نفر ته ددی اجازه نه وه چی د دغه جومات شاو خوا کوڅو کی هم وگرځی، پر یو نامتو عالم باندی چی د مسجد د ننوتلو رسمی امر یی هم درلود، حمله شوی وه ځکه چی مسلمان نه و او نه کاله وروسته د شاه ښځه هم په دی مسجد کی له ننوتلو څخه منع شوی وه، ځکه چی مخ لوڅی تللی وه.

ثریا له جومات څخه منع نه کړی شوه، خو جومات ته د هغی مخ لوڅی ورتگ دین ته بی احترامی وگڼله شوه. د مشهد دا جومات د شیعه گانو جومات و او امان الله د سنی مذهبانو له ډلی څخه و، دغه کار د مشهد سپکاوی زیات کړ.

برتانویانو د مشهد د سفر په باب داسی ولیکل: «دا مشکله ده چی ومنله شی، چی پاچا دی طرزالعمل او کړو وړو ته د منطقی او سنجش شوی پالیسی په واسطه په کار اچول شوی دی. په یقین سره دا د هغه د هیواد له ټولو برخو څخه د هغه د هرکلی له پاره لاره نه اواروی چی باید د هغه د سفر عالی بیه وی ... له امان الله څخه د هغه تر بیرته راتلو وروسته ممکن هرڅه

توقع وشی، د سنی افکارو د له منځه وړلو څخه نیولی تر خپل د خلیفه توب تر لقب پوری ... او هر ضعیف او بی سنجشه گام چی دی پورته کوی ضرور به نه یوازی سرحد خلک متأثره کړی، بلکی د هند پر مسلمانانو به هم اغیزی وکړی. ځکه هغوی د هند د ورځپاڼو له مخی قضاوت کاوه چی په کی لیکل کیده، ثریا خپله عنعنوی لباس او رواج پری ایښی دی.

د جون په ۲۰ نیټه امان الله په خپل موټر کی چی ده په خپله چلاوه، له سرحد څخه واوښت او له شپږو میاشتو او لسو ورځو سفر وروسته، یو ځل بیا خپل هیواد ته راستون شو.

472

# دوه ویشتم فصل

## د ۱۹۲۸ کال د جون له ۲۰ څخه

## د ۱۹۲۸ کال د اگست تر لومړی نیټې پورې

امان الله په کندهار کې په خپلې لومړنۍ بیانیه کې وویل:

«ما له اروپا څخه د خوښۍ، ساعت تیرۍ او د ماشین الاتو په مقصد لیدنه کتنه نه ده کړې، بلکې ددې په خاطر مې کړې ده چې د پرمختگ حقیقي لاره پیدا کړم... حتی په میلستیاگانو کې د لویدیځو هیوادونو له مشرانو سره پر همدې موضوع باندې غږیدم او خپل وخت مې همدغو مسئلو ته وقف کړی و.

«هغه څه چې ما زده کړې دي، په لنډ وخت کې به یې اولس ته وړاندې کړم. وروسته له هغه به پر خلکو پورې مربوطوې پر هغه شي باندې قضاوت وکړي، چې زما هدف و - زما د هیواد او خلکو ښه والی او یا د امان الله او ملکې ثریا شخصي گټې. که زما مقصد خودغرضي وي، اولس حق لري زما پیشنهادونه رد کړي، اما که داسې نه وي، نو زه هیله کوم چې کندهار به ددې اهدافو په سرته رسولو کې تر ټولو لومړی مقام ونیسي. زما په قلمرو کې کندهار تر نورو ټولو ځایونو پر ما ډیر گران دی، هغه زوی پر پلار باندې ډیر گران وي چې با ادبه وي.»

وروسته امان الله خپل لټ او سست مامورین متهم وگرځول. هغه وویل: «د پستې او تلگراف کارونه په ښه شان سره پرمخ نه ځي او هم د لارو په جوړولو کې چا پر ځان باندې کوم

زحمت منلی دی. آیا دا شرم نه دی چی تر اوسه پوری د افغانستان پسته د سریو پر شا وړل کیږی؟ هغه د یو سړی په مورد کی وغږید چی پرخر باندی سپور و او وروسته دا ورته معلومه شوه چی دا سړی پسته رسان دی چی په خپله یی خر نه درلود مګر د بیرته راتګ له پاره یی له بل چا څخه خر غوښتی و.

«اوس تلګراف په فکر کی ونیسی. د فراه لین بشپړ نه دی او کار یی ځنډول شوی دی ولی؟ دا ځکه چی په فراه کی ډیره ګرمه ده او خلک کار نه شی کولی! دا بده ده چی د افغانستان پاچا په کندهار کی ناست وی او له دی څخه خبر نه شی چی په هرات کی څه پیښیږی، ولی؟ دا صرف په دی خاطر چی مامورین په خپلو کارونو کی سستی کړی ده.

«دا کارونه، د نوری نړی له کارونو سره مقایسه کړی. لندن په فکر کی ونیسی. په هغه ځای کی یو نفر هم د سهار او هم د مازیګر له خوا خبریږی چی د ځمکی پرمخ څه خبره ده.

«اوس د هیواد د سرکونو حالت ته متوجه شی. څومره په بد حالت کی دی! دا په څه؟ دا په دی چی خلک ډیر نازک طبیعته دی. هغوی د ګرمی او یخنی طاقت نه لری! هغوی ډیر عاجل کار سازی ددی په خاطر پریږدی چی (ډیره ګرمی ده) یا (ډیره یخنی ده) اوس باران وریږی او داسی نور معذرتونه!

«آیا تاسو د اروپا له ښځو څخه هم زیات نازک طبیعت یاست، چی په میړانه سره په فابریکو، ورکشاپونو او داشونو (بتیی) ته نژدی کار کوی او هیڅکله د ګرمی، یخنی او د کار له سختی څخه کوم شکایت نه کوی؟ آیا دا شرم نه دی، چی وویل شی د اروپا ښځی د افغانستان له نارینه و ځینی فعالی او کاریګری دی؟ ما په خپله په اروپا کی لیدلی دی چی ښځی له نارینه و سره د ژوندانه په ټولو اړخونو کی اوږه په اوږه کار کوی. او په هره موضوع کی لکه سیاسی، اجتماعی، تجارتی او نورو موضوعاتو کی فعاله ونډه لری. هلته به ته ښځی ووینی چی په دفترونو کی، په ورکشاپونو کی، په فابریکو کی چی ماشینونه فعالوی او هم د اورونو په څنګ کار کوی. همدا راز په سیاسی چوکاټ کی به هم ته د ښځو فعاله برخه اخیستل ووینی. لنډه دا چی که ته هری خواته لاړ شی، ښځی به ووینی چی له نارینه و سره په کار او فعالیت بوختی دی. له بلی خوا په افغانستان کی ښځی یوازی په دی باندی پوهیږی چی څنګه په خپلو کورونو کی وزګاری کښینی او هیڅ نور کار دی ته ونه کړی. داسی یو مملکت ولی یو بیرته پاته هیواد نه وی، او هغه مملکت چی ښځی یی په کی له نارینه و سره مساوی کار کوی،

ولې بريالى او نيک مرغه نه وى؟

«افغانستان د دوو لويو قدرتونو، روسيه او انګلستان په منځ کې پروت دى، يو يې هم د افغانستان نيکمرغي نه غواړي، او دا يوازې يوه طبيعي خبره ده په دې چې ته به هم دا شى خوښ نه کړې، چې له يو ګاونډي هيواد سره داسې مرسته وکړې چې ستا له خپل هيواد څخه زيات پرمختګ وکړي. نو انګلستان يا روسيه ولې له تاسو سره مرسته وکړي او ولې تاسو له هغوى څخه د مرستې غوښتنه وکړى؟ ممکن تاسو ووايى چې پيسې نه لرو. مګر نه په روسيه او نه په انګلستان ستاسو له پاره پيسې برابرى کړي.

«خير تاسو څه کولى شى؟ تاسو ډير زيار وباسې چې پيسې په خپله لاس ته راوړى. تاسو په دې هيواد کې د هر شى کانونه لرى. هغه کانونه وباسى او په کار يې واچوى. شرکتونه منځ ته راوړى، فابريکې او ورکشاپونه په کې تاسيس کړى. لږ زحمت وباسى او ميړانه وکړى. وروسته له هغې به ډير پيسې لاس ته راشى. تر هغو چې تاسو په خپله له ځان سره مرسته ونه کړى، تاسو ته به دا په مطلقه توګه ناممکن وى، چې له نړى سره حرکت وکړى او د خپلو ګټو ساتنه وکړى. نو ځکه بايد تکړه او زړه ور واوسى.

«تاسو تش په ناسته خپل هدف ته رسيدلى نه شى. امان اللّه ستاسو له پاره هر څه نه شى کولى. هغه تاسو ته مشوره درکوى، ستاسو څخه خواهش کوى، او پر تاسو باندى فشار راوړى، ليکن له هغه څخه زيات هيڅ شى نه شى کولى. تاسو باور وکړى چې که تاسو له خپلو درنو خوبونو څخه ويښ نه شى او د وطن د آبادى له پاره لاس په کار نه شى، نو امان اللّه به د افغانستان د ترقى او پرمختګ ارمان به له ځان سره ګور ته يوسى.»

امان اللّه خپل هيواد افغانستان ته په بدحالت کې راغى. هغه په هرات کې خپلې دوى لومړى ورځې د ننه په کور کې تيرى کړى. وروسته له هغه يې د هرات له مشرانو سره ليدنه کتنه وکړه، او د چاى څښلو په وخت کې يې يوه بيانيه ورکړه چې په کې ډير مهم ټکى داسې وو چې هغه پوره خبر و چې د هغه په غيابت کې مامورينو څه کول، هغه وويل ماته د خلکو ځينې عريضې رارسيدلى دى، خو د کابل ځينو عاجل کارونه دا يې راته ناممکن ګرځولى دى چې په هرات کې پاتـه شم، مګر زه به د همدى کال په پاى کې هرات ته راشم چې د خلکو د شکايتونو په باب تحقيق وکړم او د مامورينو پر کړو وړو باندى به کره کتنه وکړم.

په بل ښار، فراه کې هغه له والى سره يوازې دوه ځلى خبرى وکړى. په لومړى ځل کې خبرى

اتری د فراه د اقلیم په باره کی وی او په دوهم ځل باندی کله چی امان الله ته نه و ویل شوی، ښه سفر در ته غواړم، هغه ورته وویل، «مننه.»

پر مامورینو باندی انتقاد کول د امان الله له پاره کوم نوی کار نه و، مګر هغه اوس له دی کار څخه ځوریده، چی وروستی نسل به ورته کلتوری ټکان (Culture shock) ووایی. هغه خپلو خلکو ته په هغو سترګو کتل چی لندن او پاریس یی لیدلی و.

هغه تزئینات، دولتی دروازی او څراغونه چی رعیت یی دده په خاطر لګولی وو، هغه اداری پیتی یی نه شو سپک کولی چی دده د رارسیدو له شیبی څخه دده ته متوجه و. هغه د مامورینو د کړو وړو او اداری فساد په باره کی خبری وکړی، او دا زیاته خواشینی کوونکی وه چی په تیرو شپږو میاشتو کی دی ورڅخه بی غمه و. د هغه په غیابت کی د کابل یو اخبار یوه مسابقه یی په لاره اچولی و، چی په کی د فوق العاده اداری فساد د ښودلو په خاطر یی جایزه منظوره کړی وه. هیڅ به د هغه د پاره یا د نیکه په زمامداری کی د داسی یو شی جرأت نه کاوه، اما د دغه اعمالو مثالونه په هغه وخت کی وجود نه درلود. د امان الله تر زمامداری لاندی د نوی شیانو او نوی خلکو یو ځای کیدل زیات فساد یی منځ ته راوړ. امان الله شخصاً حریص سړی نه و، حتی دا چی خپله کلنی تنخوا یی نه اخیسته، نوی شیان د درواغو او رشوت له پاره زمینه برابره کړه، هغه کسان چی نوی په قدرت راغلی وو د تیولنی دود او دستور له مخی د هغوی مخنیوی نه کیده، چی د دغو فسادونو مخنیوی یی کړی وای. د یوه سړی په باب یوه زړه کیـــــه یاده شوه چی هغه په دی نه بریالی کیده چی مکتوب یی لاسلیک شی، ځکه چی مامورینو به ورته ویل چی په مشوانی کی رنګ نشته، وروسته دا سړی په مطلب باندی پوه شو، مشوانی یی واخیستله چی رنګ په کی واچوی، او بیرته له پیسو سره راوړله.

په هغه وخت کی چی امان الله په موټر کی له ثریا او نورالسراج سره کندهار ته ورسید، هغه دومره منحرف نه و. کندهار د هغه د مور د کورنی ځای و، او دی ورته زیات میلان درلود. سره له دی د هرکلی تر نمایشی خبرو وروسته دهغه ځواب هغه خبری وی، چی په کی کندهاریانو ته وویل، ستاسو پر دوباره لیدو خوشحاله نه یم بلکی ورته وی ویل پر تاسو باندی څه شوی دی؟

کله چی یو نوی واده شوی میړه او ښځه د عسل د میاشتی له تیرولو وروسته د خپل زوړ اشنایانو په ډله کی د ژوند ډګر ته راګرځی، دا شکایت تل اوریدل کیږی چی هرڅوک چی

ورسره مخامخ کېږي لومړی د ناوړې نس ته ګوري چې حامله داره شوې ده که نه. په همدې توګه کله چې امان الله او ثریا د اروپا له سفر څخه بېرته راغلل، خلکو لومړی ثریا ته نظر واچاوه چې چادري يې په سر ده که نه. کله چې ثريا کندهار ته داخله شوه، د هغې تر شپول لاندې يو ډبل حجاب پر مخ باندې اچولی و، چې د خلکو د قناعت سبب وګرځيد. اما وروسته د ملاقات په وخت کې به يې دومره نازک حجاب استعمالاوه چې د برتانيې د نماينده ګۍ غړي چې دا ډرامه يې تر هرڅه په جدي توګه منځ ته راوړې وه، لندن ته يې چې د خبرو په انتظار کې و، راپور ورکړ چې د ثريا مخ اوچت معلوميده.

ځينې ملايانو چې له امان الله سره د مخه تر دې چې د هغه ښځه يې ليدلې وې، په خوښۍ سره خبرې کولې، ووېل چې: «امان الله کافر دی او موږ به ټول کافران کړي.»

شاهي ډله د وردګو په ناوه کې چې د کابل جنوب لويديځ کې پروت دی، د جون د مياشتې په ديرشمه نېټه خپلې خيمې ودرولې چې امان الله د جولای د لومړۍ نېټې په سهار ممکن په موفقانه توګه او په دبدبې سره کابل ته داخل شي. کله چې الوتکې پاس په هوا کې ګرځيدې او ګلان يې شيندل، د خلکو ټولنې په سرکونو کې تقريباً يو بل سره ټيل وهل چې امان الله په سرسري نظر وويني.

ګوم شي چې مغوي د پاچا په علاوه، چې په خپل رالز رايس موټر کې سپور و، وليدل د افغانستان ملکه وه چې يو ډول نقاب يې پر مخ اچولی و، چې په ندرت سره هلته ليدل شوی و. دا داسې يو ډول نقاب و چې تر سترګو لاندې نيم مخ يې پټ کړی و.

د سوريې او د ځينو نورو منځنی ختيځ هيوادونو ښځو دا ډول نقاب استعمالاوه او هم د لويديځو هيوادونو د کوميډي موسيقي لوبغاړو چې د ختيځو هيوادونو افسانوي پارچې اجرا کولې، د غه ډول نقابونه به يې پرمخ باندې اچول. يوه شپه په لندن کې په داسې حال کې چې امان الله په يو ټولنيز مراسم کې ګډون کړی و، چې د نارينه و د تفوق يې څرګنداوه. ليکن يو انګليسي مجلې يعنې د نارينه و ميلمستيا وه، ملکه ثريا او ملکه مارۍ له خوا تياتر ته ورله شوې وه. دا ننداره د بيوفايي سندرو يوه سندره چې د نرم موزيک په وسيله د ډيالوګ په حيث په نظم سره اجرا کيدله، چې د اوپيرتا (Operetta) يا کوچنی اوپرا په نامه سره ياديږي. دا همغه خلک خوشاله کړل چې خوښ يې کړي وه، چې امان الله او ثريا به په لندن کې به همغه ډول ماڼۍ کې اوسي لکه چې په خپله ماڼۍ کې ژوند کوي او د غير منطقي سفر په باب يې فکر نه

کاوه چې د څمکې د ګرد چاپېر نيمايي لاره وه. د دې له پاره چې د خپل کور په شان يوه مانۍ کې اوسيدل، نو ثريا داسې يوې رومانتيکې او غير حقيقي کلتوري صحنې ته ورله شوې وه، چې د هغې د هيواد له کلتور سره ورته والی درلود او ثريا ورباندې ښه قضاوت کولی شو.

لوبغاړو د بيوفايي سندرو د ويلو په وخت کې خپل مخونه چې د همدې ښکلو مخونو په وجه استخدام شوي وو، په نقابونو پټ کړي وو. هغوی ترسترګو لاندې داسې نازک نقابونه اچولي وو چې يو رښتيني رياليست به په تعجب کې شو کله چې هيرويين خپل نقاب ايسته کاوه.

ثريا او ورسره ښځو داسې نقابونه اغوستي وو، چې د لوبغاړو د نقابونو په شان نازک نه وو، ليکن د غسې نقاب د لومړي ځل له پاره د کابل په بازارونو کې وليدل شو، څرنګه چې د علي احمد ښځه، د امان الله خور، چې سراج البنات نوميده، د خوست له شورش وروسته د برې په يو رسم ګذشت کې اغوستی و.

پاچا او ملکه د دلکشا مانۍ ته لاړل، چې هلته دواړو کور د ډيپلوماتيک غړو ته لاس ورکړ. (اوس ثريا ته دا يوه عادي موضوع ګرځيدلې وه چې يو بهرني سړي ته لاس ورکړي) او بيرته لاړل، وروسته امان الله راغی او خوښي يې څرګنده کړه چې بيا له خپلو ګرانو خلکو سره ويني. هغه وويل:

«زه فکر نه کوم چې افغانستان به په نړۍ کې کوم دښمن ولري. خو بيا هم زه له خدای څخه راضي يم چې زما د غيابت په موده کې زما زړور او فداکار ولس هغسې کوم عمل يې سرته نه دی رسولی چې د کومې ستونزې د منځ ته راتلو موجب ګرځيدلی وي.»

او ويل به چې زه او زما ملګري هغسې چې مو ور ژمنه کړې ده، اسلام ته صادق او وفادار يو. هغه خپل د تګ د وخت په شان له يو عسکر، يو مامور، يو شاګرد او نه يو هيوادوال سره روغبړ وکړ او هغوی يې په غيږ کې ونيول.

د امان الله بيرته راتګ په درو ورځو رخصتيو ونمانځل شو. هر دوکاندار ته امر شوی و چې خپل دوکان ته دې شين رنګ ورکړي او پر خپل دوکان باندې يو زيات شمير ګروپونه وځړوي، چې تنوير شي. په بازارونو کې خلک دومره زيات وو چې ګرځيدل په کې مشکل او موټر چلول د سر زيان و. پر مانيو او نمايندګيو باندې ګروپونه ځړول شوي وو، د عبدالرحمن د باغ بالا په زاره تعمير کې يو ننداړتون جوړ شوی و او مابنامنې ميلمستياوې او د ازادۍ فضا دعوتونه

ترتيبيدل. ثريا دوه واري ميلمستيا ورکړله، خو صرف د ښځو له پاره، ثريا د خپل پخوانی ژوند په لور بيرته روانه شوی وه.

د امـان الله د بيـرته راتگ نـه لږ دمـخـه د هند د شـمـال لويديځ سـرحد په اوږدو کې بيـا آوازه خپره شوه.

په دغو نوو اوازو کې ويل کيده چې افغانستان د هند پر ضد د جنگ تياری نيسي.

د پاړه چنار د کـرم سـيـاسي نمـاينده گي پـه خـپـل يـو سـري راپور کې وويل: «دا پاريدنـه بـه د (اوږی د نيـمـايی ليـونـتـوب) څـخـه پرتـه بل څـه نه وي. امـا دا آوازه شـايع ده چې په دی نژدی وختونو کې به يوه هيجاني پيښه په افغانستان کی سرته ورسيږی.

د جـون په نهـمـه نيتـيـه، سـيـاسي نمايندگي د يوه قبـا يلي منگل له خولی څخـه چې تازه يوه اووني په افـغـانسـتـان کـې تيـره کړی وه داسي واوريدله: «کله چې زه په افـغـانی عـلاقـه کی اوسيدم، ما دا خبری اوريدی چې افغـان حکومت غواړی د برتانيی له حکومت سره (بری) پيل کړی. برسيره پر دی يو څـه عـسکر له کابل څـخه گرديز تـه استـول کـيـده، او ويل کيـده چې دا عسکر ترکان، عربان او بالشويکان دی.

ما په هغـه ځای کی يو افـغـان مـامـور هم ونه ليد، ځکه چې زه هلتـه دښمن داره وم. په مـا پسـی د يو شمير افغاني ټوپک لرونکو په ارتباط تور لگول شوی دی. »

يو بل سري ډويل: «امير صاحب لـه خوا يوه اعلاميـه راغلی ده، چی هغـه پرته له يو مملکت څخه له ټولو نورو هيوادونو څخه ډير خوښ دی. د هغه مملکت نوم ذکر شوی نه و. »

دا وروستی معلومات له هغـه سري څخه لاس ته راغلی دی چی په کراچی کی په داسی يو ځای کی اوسيده چی له افغانستان سره هم سرحده و او د آريوب په نامه سره يی شهرت درلود چی يوازی د خوست په شمال کی پروت وو. بله ورځ، د جون ۱۱، د کراچی يو بل سري سياسی نماينـده گی ته وويل، په يوه اعلاميه کی د جنوبی ولايت د والی دفتر په دروازه کی ځړول شوی ده، داسـی ويـل شـوی دی: «زه لـه ټولو هيـوادونو څـخـه خـوښ يم ليکن يوازی د يوه څـخـه خواشينی يم. »

برتانويانو په دی باندی شکمن نه شول چی هغـه هيواد بـه د دوی وی. هغوی حتی تعجب وکړ چی که امان الله دا خبره کړی وی، د برتانيی استازی له هغو قبايليان سره خبری وکړی، چی د امان الله د بيرته راستنيدو په مناسبت کابل ته تللی و، د وزيرستان، خيبر او د تيـرا له خلکو

ځخه یو هم د امان الله دغسې خبرې نه وې راوړې. ټولې دغه آوازې د کوم یوه برخه کې او هم په یوه لیرې سیمه، باجوړ کې، خپرې وې. برتانویانو داسې نتیجه ګیرې وکړه چې کوم نفر په قصد سره داسې خبرې خپروي. هغوی ریښتیا ویل، امان الله له هغوی سره دوستانه اړیکو د درلودو پر ځای په شوق او ذوق سره داسې خبرې کولې، چې فارسي سکرتر یې داسې څرګندونه وکړه چې دا له مصنوعي خوب ځخه ځه کم شی نه دی چې پاچا او د هغه ټولو وزیرانو جهان بینې ته یې په انګلستان کې د یو میاشت تم کیدو په موده کې د برتانوي بدبینې له ژورې پالیسۍ ځخه نیولې تر موجوده دوستانه اړیکو او له اعتبار ځخه تر ډ ک سلو ک پورې تغییر ورکړی دی.

په دې توګه برتانویانو د دې اوازو په واسطه چې له نورو سیمو ځخه یې نه، بلکې له ځینو سیمو ځخه اوریدل په فکر کې ولویدل. دا آوازې یې په عمومي توګه په خپله له افغانستان ځخه نه اوریدلې کیدې.

د کورمې سیاسي نماینده ګې د جون په ۱۲ نیټه راپور ورکړ چې «د هغو معلوماتو له مخې چې زه یې لرم، د مکیــزي (Makhezai) پیر محمد قاسم چې د افغاني استخباراتي شبکې نماینده دی او په عمومي توګه د سرحدي سیمې پر اوضاع باندې ښه پوهیږي، نن یې پر ما باندې غږ وکړ او وې ویل چې زما له راپورچیانو ځخه یو تن چې تازه له خوست ځخه راغلی دی راپور ورکړې چې په خوست کې آرامي ده او هم دا چې ده په خپله د خلکو عمومي افکارو ته د کورمې د سرحد په امتداد کې متوجه شوی نه دی چې ګوندې افغان حکومت د جنګ له پاره اماده ګي نیسي.»

«خبرې ضعیفې دي او بیا هم هغه ډول ټینګار نه کوي چې د هغه په واسطه پیل کوونکی په ټینګه عقیده سره ویلي وو چې په هغه ځای کې مشکل وجود لري.»

سیاسي نماینده په داسې حال کې چې د دې بې اساسه آوازو په مورد کې تحقیق ک وه، وویل: «په اروپا کې د پاچا سفر او په تیره بیا د ملکې مخ لوڅې، دا شایعات زیات کړي دي چې پاچا د برتانیې له خوا بې لارې شوی دی او اوس د هغوی تر اغیزې لاندې دی. د دې خبرو د خنثي کولو په خاطر افغان حکومت د برتانیې ضد پروپاګندې کوي چې وښیي پاچا مستقل او معقول سړی دی.

«د دې اشاره هم راته شوې ده، چې دا د پاچا پر ضد د دسیسه کوونکو له خوا یو احتیاطي اقدام دی، چې د ناکامي په صورت کې یوه پناه ګاه ځان ته یقیني کړي.»

د اگست د میاشتې په شاوخوا کې دا اوازې له منځه لاړې. سیاسي نماینده ګۍ دې فیصلې ته ورسیدله چې دا آوازې شاید د روسانو له خوا خپرې شوې وې، چې اوسني ارامه وضعه ناارامه کړي، د لندن د سفیر اغیزې خنثي کړي او هم زموږ او د افغانستان په منځ کې په اړیکو کې، چې په نژدې وختونو کې شاید منځ ته راشي، خنډ پیدا کړي.

ثریا د مسلمانو ښځو پر موضوع باندې یو مطلب ولیکه چې د جولای په ۲۵ نیټه د امان افغان په اخبار کې خپور شو او په کې ویل شوي وو، چې تر اسلام دمخه ښځې د خپلو میړنو، مور او پلار او د خپلو زامنو تابعې وې، لیکن اسلام هغوی ته له نارینه و سره مساوي موقف ورکړی.

د چادرې په مورد کې ثریا وویل: «په عمومي توګه لیدل شوي دي چې عادي عملونه او رواجونه د وخت په تیریدو سره یو له مذهبي ایجاباتو څیني ګرځیدلي دي یا د ایمان او عقیدې له پرنسیپونو خنثي ګڼلي شوي دي. د چادرې په موضوع کې عین موضوع صدق کوي. په اوله کې دا یو ملي دود و، لیکن په تدریج سره یې ټینګ مذهبي شاکل ځان ته غوره کړ. زموږ په قرآن کې دې موضوع ته د تمدن او اخلاق نسبت ورکړ شوی دی. په دې برخه کې په قرآن کې بیخي داسې کوم امر نه دی شوی چې د هغه په نه کولو سره دې سړی مجازات شي.

کوم شی چې په رښتیا سره په قرآن کې د حجاب په باره کې ویل شوي دي، هغه په مساوي ډول د ښځو او نارینه و له پاره دي. د مذهب د احکامو په اساس د ښځو د مخونو، ورغوي او د پښو پر ته نور ورځخه غوښتل شوي دي، چې د وجود ټولې نورې برخې پټې کړي، چې خلک یې ونه ویني. البته دا پټونه د پنځه وخته لمانځه د ادا کولو او د حج د فریضې د ادا کولو په وخت کې ضرور دي، او په همدې توګه د نارینه و لپاره هم په اسلام کې مقررات وضع شوي دي. د غسې حجاب او ستر کول په اسلام کې نه دي راغلي، همدا راز د نورو عمومي مذهبونو په مقدسو کتابونو کې په دې ارتباط حوالې ورکړې شوې دي...

«که چیرې د حجاب د غه رواج شوې موضوع لا تغییره پاته شي، نو ختیځو خلکو په تیره بیا د مسلمانانو په ژوندانه کې د پرمختګ امکانات نه لیدل کیږي. ځکه په حقیقت کې ثابته شوې ده، چې ښځې د انسان د تمدن په لاره کې ستر عامل دي او زه په جرأت سره وایم چې ترڅو او تر هغه پورې چې د ښځو طبقه په ختیځ کې په عصري طریقه تربیه نه شي، د هغوی کټورتوب امکان نه لري.

« او هغوی چې تنګ نظره دي او وايي چې ښځې کولی شي په حجاب کې هم زده کړه وکړي، په حقيقت کې د ښوونې او روزنې مفهوم يې په غلطه ترګه درک کړی ده. ښوونه او روزنه تش ليکل او لوستل نه دي، پوره وسيع مفهوم لري، ښوونه او روزنه د انسان هغه دول تربيې ته وايي چې په عملي او نظري توګه په تعليمي عامو مرکزونو او پوهنتونونو کې ترلاسه شوې وي، چې دا کار د حجاب په استعمال سره ترسره کيدی نشي. په هر حال، د خپلو ختيځو خلکو د ګټو په خاطر زه هغوی ته مشوره ورکوم چې د حجاب په باره کې دي د عوامو خبرې ونه مني او د اسلام د احکامو په مطابق دي په دې لاره کې ګام واخلي، که نه نو د لويديځې نړۍ د لباس استعمالول، چې په پراخه ترګه په ختيځ کې دود کيږي، په يقين سره به ژر يا وروسته خلک په لومه ونښلوي، او د هغو خلکو د بې جرأتۍ په خاطر چې په کلکه سره د حجاب طرفدار دي، چادري يا حجاب به بيخي ايسته شي او هيڅکله به وجود ونه لري ولو چې مذهب په دې مورد کې شرطونه وضع کړي هم وي. »

ثريا، حتی د خپلې نظريې د چاپولو دمخه، له ښځو سره خبرې کولې. په اول کې هغې د کابل د نجونو ښوونځي يې مخاطب وګرځاوه او وې ويل چې اوس د چادرې د اغوستلو وخت تير شوی دی، او په ټينګه سره يې له هغوی څخه وغوښتل چې د چادرې په له منځه وړلو کې دې په خپله خوښه فعاليت وکړي. هيچا دې موضوع ته توجه ونه کړه.

بيا يې يو شمير ښځې د دلکشا په ماڼۍ کې د مجلس له پاره راوغوښتلې او ورته يې وويل چې تاسو بايد د مملکت په کارونو کې له نارينه و سره برابره ونډه واخلئ، چې البته کله چې هغوی په کورونو کې بندې ناستې وي، له نارينه و سره مساوي کار کول امکان نه لري. ثريا وويل چې انسان اشرف المخلوقات دی او ښځې داسې ښکلې موجود دي چې بايد پټې نه شي.

ثريا وويل: « د اروپا ښځې په صنعت کې برتري لري، اما د افغانستان ښځې چې جسماً قوي هم دي د هيواد په پرمختيايي فعاليتونو کې برخه نه اخلي. دا صرف د چادرې د اغوستلو په خاطر دی. »

وروسته ثريا يو بل مجلس داير کړ او ښځې يې سره متشکلې کړې، کابل په علاقو ويشل شوی و او له هرې سيمې څخه يې د نجونو د ښوونې او روزنې او د ښځو د هوسايې په خاطر نماينده ګانې ټاکلې شوې وې.

کابل په دی کار پیل وکړ چی د چادری د لری کولو راتلونکی زیات جدی ونیسی.

په خپله امان الله د کابل ښځی د دلکشا مانی وغوښتلی، یوازی یو شمیر ښځی راغلی، او هغوی هم په چادریو کی وی، ځکه چی امان الله د دوی له نژدی خپلوانو څخه نه و. هغوی داسی خبری واوریدی چی دوی د خپلو میړونو د غیر ضروری تابعیت دوره تیروی او په واقعیت کی په خپلو کورونو کی بند پاتی دی. امان الله هغوی ته وویل چی زه تاسو ته ثابتوم چی ښځی د همدی حجاب په استعمال سره له آزادی هوا ځینی بی برخی دی او د توبرکلوز د ناروغی په واسطه له منځه تللی دی.

ماله خپل سفر څخه ګټه ترلاسه کړی ده او دی نتیجی ته رسیدلی یم، چی پرته له افغانستان څخه په بل هیڅ یو اسلامی مملکت حتی په ترکیه او ایران کی ښځی (ژوندی نه ښخ کیږی). مخ پټول ستاسو د ښوونی او روزنی په لاره کی خنډ ګرځیدلی دی او د لویدیځو هیوادونو د ښځو په پرتله تاسو یی له کار او وظیفی څخه بی برخی کړی یاست. په حقیقت کی دا شی تاسو په زور د خپلو میړونو غلامان ګرځولی یاست. زه په دی امید یم چی تاسو د چادری په مورد کی د خپلو میړونو خبرو ته غوږ ونه نیسی او د خوښی په مجلسونو کی یی د چادری له استعمال څخه ګډون وکړی.

امان الله د میړونو د مداخلی په ارتباط خپل دفاع ته دوام ورکړ او وی ویل چی زه به خپله وسیله برابره کړم او وی ویل چی د ښځو پر ضد به هیڅ ډول پوښتنی ونه شی. کنایه خطرناکه ده، لیکن په هغه وخت کی خطرناکه ده چی هغه څوک چی کنایه ورته متوجه دا درک کړی چی دا څه شی دی. دغو ښځو چی په کورونو کی د هغوی زیات کنبیناستل د امان الله د شکایتونو علت ګرځیدلی و، موضوع یی جدی ونیوله. میړونه یی چی دا خبری واریدی هم یی موضوع جدی فکر کړه.

امان الله د افغانستان خلکو ته د ښو شرایطو په ور په برخه کولو باندی خوښ و. د هغوی خپل غرونه او فضا ښکلی وه، لیکن غریب خلک پرته د ختیو له دیوالونو څخه خپل ځان ته نژدی هیڅ کوم بل شی نه درلود، چی ورته ورګوری. څو کاله دمخه هغه خپلی کورنی او خپلو دوستانو ته په تاوان رسولو سره خلکو ته ښکلا ورپه برخه کړی وه، ځکه چی امر یی کړی و د نجیب زاده ګانو د کورنو جګ دیوالونه دی ټیټ شی، څو غریب خلک وکړی شی، غرونه او اسمان ووینی، چی په دی کی د هغه د مورد کورد یوالونه هم شامل وو او اوس خلکو کولی شول

چې د اشراف زاده ګانو د کورنو د ديوالونو په راتيتولو سره ونې، لارې او ګلان وويني. په دې کار سره د شخصي مجللو ځايونو په شاوخوا کې د چکر وهلو زمينه برابره شوه.

امان الله په پغمان کې چې شپاړس ميله لرې و، دمخه يو پارک يې جوړ کړی و، چې په کې ګلدانونه، د اوسپنې اوږدې چوکۍ اينسودل شوې وو او موسيقۍ غږوونکو له پاره يې هم مخصوص ځايونه جوړ کړي وو. اوس يې په خپل نوي ښار، دارالامان کې، هم پارکونه جوړ کړي وو، چې سړکونه په کې تير شوي وو او د سړکونو په څنګ کې د ګلانو پټې جوړ شوې وو. ددې پارک په منځ کې يوه ډيره ستره ماڼۍ جوړه شوې وه. چې په ... سبک و او د يوې لويې او پراخې جادې په پای کې قرار درلوده. دا ماڼۍ او يوه بله ماڼۍ چې ډيره ګوښه او ليرې جوړه شوې وه لا تکميله نه او کار يې له سره پيل شوی و.

امان الله خان امر کړی و چې په دې باغونو کې دې هيڅ يوه ښځه له چادرۍ سره د چکر له پاره رانه شي. هغه به ويل چې که څوک خپل مخ پټوي نو د سوريي د ښځو په شان دې خپل مخونه پټ کړي، چې بوازې د خپلو مخونو تيټه برخه به يې پټوله. دا ډول مخ پټونه هم د امان الله نه خوښېدله، خو بيا هم له چادرۍ ښه بدله نه و، چې د ښځو ټول وجود به په کې پټيده.

يوه ورځ په خپله امان الله يوه ښځه يې په باغ کې وليدله چې چادرۍ يې په سر کړې وه. امان الله ورته نژدې شو، له سر نه يې چادرۍ لرې کړه او ورته وې ويل: «له دې ټګې څخه کار اخلې؟» ښځه سخته وبريدله او دا چې لوڅه ولاړه وه، ځان ورته سپک ښکاريده. امان الله اورلګيت راواخيست او د لارې په سر يې د هغې ښځې چادرۍ ته اور ورنه کړ. ښځه مجبوره وه چې په شرم او حيا خپل کور ته لاړه شي.

امان الله يو سړی وليد چې ويښتان يې اوږده پر اوږو پراته وو. نو پټکی لاندې که ويښتان هر قسم و او يا که بيخي نه وو، باک يې نه و. د هند سکان په ژوند کې ويښتان نه کموي، بلکې په خپلو سرونو باندې يې غوټه کوي. اما امان الله خيال درلود چې پټکی لرې کړي او امر يې ورکړی و، چې د هيڅ يوه سړي ويښتان دې بايد اوږده نه وي چې پر اوږو باندې يې پراته وي. هغه دا نفر ګرفتار کړ. کله چې دا سړي بنديخانې ته ورل کيده، د سلماني د دوکان له مخې نه تير شو، امان الله دې سړي ته وويل چې ودريږه او دوکان ته لاړ شه او خپل اوږده ويښتان دې لنډ کړه، وروسته له هغه به وبخښل شي.

هيچا ته اجازه نه وه چې د پغمان يا د دارالامان په عمومي باغونو کې يا پټکی په سر کړي

او یا پخوانی پیک لرونکی قره قلی. یوازې لویدیز څنډې لرونکې شپو اجازه وه. حتی موټر چلوونکې چې مالونه به یې راوړل، هم مجبور وو، دمخه تر دې چې دې ممنوعه ساحو کې داخل شي کوم شي چې به په سر کې وو، هغه به یې لرې کاوه. د اوږدو پرتوګونو اغوستل هم منع وو، چې افغانانو به یې د ډیرو کلونو راهیسې اغوستل، امیر عبدالرحمن غټ غټ پرتوګونه پر خلکو باندې په زور سره لنډ کړي وو، مګر بیا هم غټ غټ پرتوګونه رواج درلود. د هغوی مزیت په دې کې و چې دغو کسانو دمخه دغه شیان یې درلودل. امان الله امر ورکړ چې خلک دې د غربیانو په شان پتلونونه او جاکټونه واغوندي. ډیرو کسانو دمخه یو قسم جاکټونه درلودل، خو فرق یې نه کاوه، چې څومره زاړه، بې مودې، او په غربي معیار برابر نه وو. امان الله نه شو کولی د لباس ښه والي او خرابوالي درجه بندي کړي. لیکن نه غربي پتلونونه او نه بوټان، نکټایي او د یوې مکملې دریشۍ نور ملحقات د دوی خپل لباس وو. د دغه ډول لباس بیه نژدې سلو افغانیو او یا پنځوس هندي روپیو ته رسیدله، چې دا یو غټ مصرف و او ډیر کسان له دې ــ ـه نه شو وتلی.

په اوله کې یوازې د دارالامان او پغمان له پاره دا شرطونه منځ ته راوړل شوي وو چې خلک ورڅخه لیرې ساتل کیدل. وروسته په ټول کابل کې دا شي تطبیق شو او که چا سرغړونه کوله، نو دوهپوله یا د یوې افغانۍ پر پنځمه برخه جریمه کیده، اما بده خبره دا وه چې په بل نوروز کې، چې د ۱۹۱۹ کال د مارچ ۲۱ نیټه کیده، پرته له لویدیځ ډول لباس څخه بل هیڅ قسم لباس به قانوني نه وي.

په امان افغان کې تشریح شوي وو، هغوی چې دغسې لباس اغوندي «د یو ډول بدلون او عصري توب احساس ورسره پیدا کیږي.» دا مطلب هم په کې وبل شوي وو چې که څه هم ځینې فکر کوي چې د شپو قواره ښه نه ده لیکن هغوی به غور او فکر وروسته دا تشخیص کړي چې شپو له پټکیو څخه زیات ګټور دي.

دا یوازې د امان الله بوالهوسي نه وه. هغه ترکیې ته تللی و، چې په هغه ځای کې دده د تود هرکلي یو علّت دا و، چې دې د مصطفی کمال پر مشکلاتو باندې خبر و. کمال پخوا په سیاسي شغل کې د یو ځوان صاحب منصب په توګه فرانسې ته استول شوی و، او وروسته له هغه چې ځینې عاقلانه مشوري ورته ورکړې شوې، ورته وبل شوي وو چې هیڅوک به ورسره جدي نه شي. «ترڅو چې هغه شي پر سر وي.» له هغې شیبې وروسته کمال د ترکیې له خولې څخه چې یوه سره خولۍ وه او په سر کې یې زومبک درلود، متنفره شو

امریکاییان او اروپاییان چې باسفورس (Bosporus) ته د ترکي خولیو د غورځولو په باره کې لوستلي وو، وضع عجیبه ښکاره شوه. ځینې د خندا وړ شیان د هغو په باره کې موجودي وي چې د خولیو پر کوم ډول باندي دا ډول مسخرې کولې.

امان الله ترکیبي ته لاړ او فکر یې ونه کړ چې د دغو شیانو نه جملې څخه کوم یو د خندا وړ وي. هغه په نتیجه باندي پوه شو. کمال داسي استدلال کړی و چې په هغه شان چې خلک ښکاريدل هغسي وشول، او په داسي حال کې چې هغه سمدستي د خلکو د تصور شکل ته تغییر نه شو ورکولی، نو دا نسبتاً آسان و چې په ظاهري بڼه کې یې تغییر راولی. امان الله پوهیده چې ولې عین طریقه په افغانستان کې کاریگر نه واقع کیږي.

اروپايي نماینده ګانو ته ځیني شیان د خندا وړ وو، لکه څنګه چې په ترکیه کې وو. یو افغاني سړي د یوې ښځي له سر څخه له درزو جوړه شوي خولۍ واخیستله او په سر یې کړه، پولیس چې د داسي تیري کوونکو د ګرفتارولو له پاره مقرر شوي و، هک پک پاته شو. دا ټکې نه وه، شاید یوه لویدیځه شپو وه، لیکن د هغې په باره کې ځیني شیان عجیب او غریب وو. ځیني چالاک افغانان ختیکي نیم کړل، سغز به یې وخوړ، وروسته به یې پوټکي په سر کیښود او امان الله ته به تلل او سیلي به یې ویستل چې موږ پیسي نه لرو. یوازي دغه شي په سر کولي شو او نور شي نه شو اخیستلی. امان الله چې یو نرم او مهربان سړی و، دوی ته به یې پیسي ورکولي.

د کابل نظامي آتشي په خپل یادداشت کې داسي لیکلي وو: «د ښکلا پیژندنې له نظره، د کابل کوڅې خپله زیاته ښکلا له لاسه ورکوي. » دا هغه د نظر ټکی و چې څلویښت کاله وروسته به لا هم غربیانو د هغې څرګندوني کولې او د کابل اخبار به پوښتنه کوله چې ولې غربیانو د پخوانیو پیړیو لباس اغوستلو ته دوام ورنه کړ.

هغه له کوره راغلی تحفې چې امان الله خپلې ناسکه خوېندو ته راوړي وي، راډیوګانې وي. دده په غیابت کې، په افغانستان کې زیات پرمختګ منځ ته راغلی و. د راډیويي خپرونو یوه دستګاه د جون په میاشت کې په هغه کور کې پرانیستله شوې وه چې نصرالله د لندنې مودل څخه وروسته جوړه کړې وه. هر ماښام له اوو نیمو بجو څخه د شپې تر نه نیمو بجو پورې ورځخه پروګرام خپریده، چې زیاتره به یې موسیقي وه. یوازي امان الله او د هغه ځینو خپلوانو راډیوګانې درلودې او پروګرامونه به یې اوریدل، اما شاهي ورکشاپ ته نژدې چې د خپروني

له ستیشن څخه زیات لیرې نه و، یوه غټه رادیو پر یوې پایې باندې نصب شوې وه، چې خلک ورته لاړ شي او پروګرام واوري. کله چې امان الله بیرته هیواد ته راستون شو، یو سړی د مخه کندهار ته تللی و چې په هغه ځای کې د رادیویي خپروني د دغې ستیشن د جوړولو امکانات وڅیړي او څو پایې رادیوګانې هلته نصب کړي.

نوې ښوونځې پرانیستل شوې وو، چې یو دارالتأدیب هم په کې شامل و او د هغو هلکانو له پاره پرانیستل شوی و چې په متداومه توګه له نورو ښوونځیو لیرې وو. د شپې ښوونځې په بهرنیو ژبو پیل شول او نامتو یې په کابل کې بین المللي علاقي منځ ته راوړلې. اتیا تنه شاګردان د انګلیسي له پاره، شل د روسي ژبې له پاره، دیرش د فرانسوي او لس د جرمني ژبې له پاره آماده شوي وو. د مهمندو د عثمانخیلو د قبیلې ځینې هلکان چې کابل ته په دغو ښوونځیو کې د شاملیدو په خاطر په بې علاقه ګۍ سره راغلي وو، بیرته خپلو کورونه ته لاړل. د امان الله خور، بنات، د هغوی هر یوه ته څه پیسې او د سرو زرو بنګړي ورکړي او ورته وې ویل چې پیسې دې په خپله د رخصتیو په ورځو کې مصرف کړي او بنګړي دې خپلو میندو ته ورکړي. د دې کار په نتیجه کې په کابل کې دا خبرې واوریدلې شوې چې د مهمندو د عثمانخیلو د قبیلې ډیر نور هلکان به ښوونځې ته د داخلیدو په خاطر راشي، حتی ځینې غلي کوچیان هم دا ومنله چې ښوونکي دې ورته مقرر شي او هرې خواته چې دوی کوچ کوي ښوونکي دې هم ورسره لاړ شي.

یو نوی هوټل په کابل کې د سرک په څنګ کې سینما ته نژدې پرانیستل شو، چې شپاړس کوټې یې درلودې. برق یې درلود، برقي زنګونه په کې وو او د پرمختګ د خاص علامې په حیث تشنابونه یې هم په برق باندې فعالیدل، برتانویانو تر هغه وخته پورې د دې هوټل توصیف کاوه، څو چې د تشنابونو برقي چالانیدل ختم شو.

یو فرانسوي شرکت د اورګاډي د پټلیو سروې کوله او یوې جرمني کمپنۍ هم همدا کار کاوه. برتانویانو د فرانسوي ټیم د کار دقیقه څارنه کوله، چې د یو شل کلن ځوان په مشرۍ، چې میشل کلیمنسیو (Michal Clamanceau) نومیده، دا کار روان و. دی د فرانسې د پخواني صدر اعظم لمسی و. ځوان کلیمنسیو په افغانستان کې خپله مشاهدات د یو لیک په ذریعه خپل پلار ته ولیکل چې په چرپاپا (Char Papa) پیل شوی و. پلار یې د هغه لیکونه د تجهیزاتو نامتو سړي، سرباسیل زهاروف (Sir Basil Zaharoff) ته واستول، چې له دې

موضوع سره یې علاقه درلوده، او سرپاسیل زهاروف هغه لیکونه د برتانیې بهرنۍ دفتر ته واستول چې په دې وسیلې سره دا دفتري پروژې په باب له هغه معلوماتو څخه سربېره معلومات ترلاسه کول چې په خپله کلیمنسیو هغوی ته ورکول. برتانویانو ورته د افغانستان نقشه ورکړه، وروسته د دې عمل په باب بهتر فکر وکړ او هغه یې بیرته وغوښتله.

اروپا ته د امان الله د تګ په وخت کې، کله چې اروپایي او امریکایي اخبارونو د هغه د سفر د اغیزو په باب فکر کاوه، داسې خیالونه موجود وو چې په راتلونکې کې ممکن یو سړی به په پاریس کې په اورګاډي کې کښیني او راساً دې شانګهایي ته لاړ شي. هر د غسې یوه لاره به باید له افغانستان څخه تیر شي. برتانویانو د اورګاډي پروژه د خپلو شرایطو له مخې خوښوله او د ټولو پرمختګونو دقیقه څارنه به یې کوله چې ورته معلوم شي، چې پټلی د روسیې خواته ونه ګرځول شي، د چمن په تحویلخانه کې، افغانستان ته د اورګاډي د هغه پټلی د غزونو سامان د مخه تیارشوی وو، چې د خیبر تر درې پورې غزول شوی و او هلته ختم شوی و، دا د جنګ عاجل سامان وو، ځکه چې برتانویانو اټکل کړی وو چې د مخه تر دې چې روسانو اورګاډي د پټلی د غزولو اقدام وکړي، دوی به په بېړې سره د خیبر له درې څخه چې د هغوی اورګاډي د پټلی پای و، دې پروژې ته ادامه ورکړې او په دې وسیلې سره د جنګ د وخت مزیت او برتري چې څو اوونۍ کیدې، ترلاسه کړي.

د هوایي تارتي سرویس په حلقه کې شاملیدل هم د امان الله په پلان کې و. هغه د دې موضوع بحث په جرمنۍ کې کړی و، او له تهران سره د جنکرانو الوتکو (Junkars Aircrafts) په ذریعه د وصل کیدو فکر یې کړی و. جنکران (Junkars) چې د الماني له اشراف زاده ګانو څخه وو، پخوا یې هغو الوتکو ته د کابل په لور پرواز ورکړی و، چې امان الله پیرودلې وې او ورته تسلیمې شوې وې. برتانویانو په داسې حال کې چې د جرمنۍ د انحصار په ویره کې وو، په دې فکر کې و چې خپل هوایي سرویس د کابل او راولپنډۍ ترمنځ پیل کړي لیکن دلته دوی له یوې بلې ویرې سره مخامخ شول، چې د جرمنانو له ویرې څخه سخت و. سوال دا و چې آیا د سرحد د پاسه د هوایي کرښې منځ ته راوړل به «د ټولو هغو هیوادونو د شخصي الوتکو د پرواز کولو له پاره زمینه برابره نه کړي چې د هوانوردۍ د اصولو د کنوانسیون غړي دي؟ ځواب واضحاً د ډیر اهمیت وړ دی په دې چې روسیه «که د بهترین مثال په توګه فرض شي» نو په ښکاره توګه به په دې کنوانسیون کې د شاملیدو مشکل ونه لري او په یقین سره به په شخصي

الوتکه کی د بحرانی سرحد د پاسه د خپلو خلکو په وړلو راوړلو کی کوم تردد ونه لری، که چیری موقع ورته ورکړله شی. که چیری د دی حرکت، لکه څنګه چی حقیقت لری، کومه د حل بریالی لاره نه شی پیدا کیدلی، نو له کنوانسیون څخه به د هند د خارجیدو د امکان سوال ضرورت مطرح شی.»

د سرحد رازونه لا دمخه افشا شوی وو، د برتانیی نمایندہ ګی په کابل کی د ځینو عکسونو له مخی چی په یو دوکان کی وو، د خیبر د دری سنګرونه او استحکامات یی په مفصله توګه کشف کړی وو، چی د هوایی بمبارد له پاره به ګټور تمامیدل. د برتانیی نمایندہ ګی خپل نمایندہ واستاوه، چی دا عکسونه وپیری، دوکاندار په خوښی سره ورته وویل چی اوس عکسونه د روسیی له نمایندہ ګی سره دی، خو څنګه چی بیرته یی راوړی، نو که دی غوښتله ټول به درکړم.

امان الله له هغی ناکراری څخه رنځ ګاله چی د غه رنځ هغه وخت لا زیات شو کله چی د یوه داسی هدف ترسره کاوه، بالاخره په نظر راشی چی اوږده موده ورپسی هڅه شوی وی. هغه تر اوسه پوری هم له خپلو ماموریتو سره په تکلیف کی و او ویل به یی چی زما د نیابت په موده کی نه یوازی په رشوت خوړلو پیل کړی و، بلکی د الکولو په څښلو یی هم پیل کړی و. هغه خیال درلود چی ډاکترانو ته امر وکړی چی: هغوی نمونه د یوځیری، وینی دی معاینه کړی چی معلوم کړی چی شراب یی څښلی دی که نه. د دی چی د هغوی د بډو اخیستلو په باره کی معلومات ترلاسه کړی وی، هغه یو ماهر سړی ته وظیفه ورکړه چی د هغوی لګښت معلوم کړی او دا لګښتونه د هغوی له درآمد او دارایی سره مقایسه کړی.

دا هیله زیاته وه چی پر مشکلاتو باندی په آسانی سره غلبه حاصله شوی وه. لیکن یوه د تشویش موضوع موجوده وه، جرم. ډیر ژر د هغه له بیرته راتګ څخه وروسته پر یوی قافلی باندی چی له شمال څخه یی پیسی راوړل، د چاریکارو په سیمه کی د سباوون په وخت کی حمله وشوه او نژدی شپیته زره افغانی یووړل شوی. چاریکار چی د کابل په شمال کی موقعیت درلود د کوهستان یا کوهدامن په نوم یادیږی. د دی ځای خلک په داسی حال کی چی د ختیځو سیمو د پښتنو په شان ځیږه نه دی، خو بیا هم تر یوه حده زړور دی چی ستونزی منځ ته راوړی او په ۱۹۲٦ کال کی امان الله، علی احمد یی هلته استولی و چی دا بلوا کراره کړی، چی ترور او وحشت یی منځ ته راوړی و. دا سیمه د هغو ناوړو کسانو ټاټوبی و چی یو کال دمخه هند ته تښتیدلی وو، او د سقاو بدنام زوی هم په کی شامل و، چی د ټولو په ګومان ممکن هغه دا پیسی غلا کړی وی.

د پیسو بیخایه کول مهم و. په دی چی په انگلستان کی بانک وجود نه درلود. د برتانیی نظامی آتشی په جون کی داسی لیکلی و: «په اوس وخت کی د تشویش یو مهم علت دا دی چی په کابل کی محلی خزانه بالکل تشه ده او خپله ذخیره یی خلاصه کړی ده. بانکی تسهیلات نشته، نو محلی مامورین او سوداگر له خزانی ځخه په آزاد ډول استفاده کوی، ځکه چی کابل د امنیت یوازینی ځای دی. د ولایتونو د ځانگو امانتی حسابونه د پانو د تبادلی له مخی صورت نیولی شی چی په سلوکی یو مفاد په کی په نظر کی نیول شوی ده. د سرکونو د بی امنیتی په وجه، د پیسو د تبادلی دغه وسیله آزاده ده. اوس تجارت تقریباً د سکون په حال کی دی، او محلی مارکیټونه هم قانع کوونکی نه دی. داسی حالت پر افغانستان باندی دمخه بیخی نه دی راغلی.

د جولای په میاشت کی، د امان الله له بیرته راتگ وروسته به هغه داسی لیکلی و: «د معمولی خلکو له خولی ځخه ویل کیږی چی ټول چکونه چی راوړل کیږی، په سلو کی لس ورځخه گرځول کیږی او ډیر مهم چکونه په قسطونو اجرا کیږی، په دی چی پیسی کمی دی. د خزانی مامورینو به ویل چی یو زیات مقدار پیسی په پاچا پوری اړه لری، چی نه غواړی ولگولی شی.» دا کیسه چی خلکو ته د امان الله د امانتو پیسو په باب احساس ورکړی، یو پروپاگند دی.

د امان الله د شخصی خزانی زیاتی پیسی پروپاگند نه و، پیسی په هغه ځای کی وی، او امان الله هڅه کوله چی نوټونه چاپ کړی، چی په افغانستان کی یو نوی شی و او په خپله دده په خزانه کی به وساتل شی. مشکل د پیسو اخوا دی خوا انتقالول و، نو کله چی د سقاو زوی لوټه کړه، هغه موازنه یی خرابه کړه.

د ۱۹۱۹ کال نه را په دی خوا په افغانستان کی هر کال د اگست په میاشت کی د استقلال کالیزه د جشن په جوړولو سره لمانځل کیده. په دی کال کی یی د جشن لسمه کالیزه وه، دا د امان الله د زیاتو هلو ځلو کال و، ځکه چی نړی ته یی خپل استقلال ثابت کړ.

امان الله اعلامیه صادره کړه، چی دا جشن به له نورو جشنونو ځخه ډیر ښه جشن وی، او لویه جرگه دی هم په کی گډون وکړی، چی د خلکو ټاکل شوی استازی دی چی د هغی ورځی پر موضوعاتو او نتایجو باندی بحث وکړی. د برتانیی نماینده گی ته خبرداری ورکړ شو چی افغانی مامورین دی په هیڅ ډول ټولنیزو مراسمو کی ونه غواړی، ځکه چی هغوی به ټول د جشن د پلانونو په جوړولو کی مصروف وی.

ښځې هم مجبوري وې په لويه جرگه کې نماينده گي وکړي، او کبراجان، د امان الله خور به د هيواد د ښځو په نماينده گي هغوي ته خبري وکړي. ثريا غوښتل چې د «کندهار يو شمير پوهې او زړې ښځې» راوغواړي، چې د بيرته تگ په وخت کې به دا ښځې د نوي ژوند په باره کې د هيواد ښځو ته معلومات ورکړي. دا د کندهار ښځو ته د کنفرانس لومړي پيشنهاد نه و. د امان الله د پلار په دوره کې داسې يو پيشنهاد، د وخت والي پر ضد چې محمد عثمان نوميده، د پروتست باعث گرځيدلې و. محمد عثمان، پر يو بل پروتست باندې چې د جهان بينې پر وسعت نظر باندې ولاړ و خپل موقف له لاسه ورکړی و، اوس د کلکې عقيدې خاوند و او د يوې ديني مدرسې آمر و. ځينو کندهاريانو د لويې جرگې نماينده گانو ته اخطار ورکړ او ويل به يې چې که مو د ښځو د مخ لوڅي او د هغوي د ښووني او روزنې په باب موافقه وکړه او بيرته راغلي، نو ويه وژل شي.

افغانستان له دغې لويې جرگې سره په عقل او پوهه خبري وکړي. د مباحثې يو موضوع دمخه اعلان شوې وه: امان الله خپلو مامورينو ته امر کړی و، چې بوازې يوه ښځه دې ولري، ځکه هغوی چې زياتې ښځې درلودې، دا يوه معضله يې ايجاد کړې وه، چې له لويې جرگې څخه غوښتنه کيدله دا معضله حل کړي. امان الله دا اعلان هم کړی و، چې بوازې نه ويشت نيمې کابلي روپۍ دې د يوې ښځې د نکاح کولو پيسې وې او که چا له دې څخه سرغړونه وکړه، سخته سزا به ورته ورکړې شي. د يو سړي په عادي ژوند کې به هم د دغسې بدلونونو پيشنهادونه وشي. هرڅوک چې د نماينده په توگه لاړ شي، هغه به د انقلاب په لور لاړ شي.

د يوې استخبارېي د راپور له مخې، يوه ښځه په کابل کې د ښځو د مخ لوڅې د ښيگنو په باره کې خبرې کړې وې، ميړه يې هغه ښځه ووژله او ټوټې ټوټې يې کړه.

# درویشتم فصل

## د ۱۹۲۸ کال اگست

د ۱۹۲۸ کال د اگست د میاشتې جشن به د ډیرو شیانو په خاطر په زړونو کې پاته شي. یو له دغو شیانو څخه په کابل کې د یوې نوې معاملې پیل کول و، یعنې غربي لباس کرایه کول. هیڅ حتی جوالیانو ته چې پنډ به یې په شا و، هم اجازه نه وه، چې د پغمان د جشن صحنې ته په بل کوم ډول لباس داخل شي.

نماینده ګان چې د جشن له پاره راغلي وو او لویه جرګه چې ورسره به راتله، د لباس د کرایه کولو مصرف یې نه درلود، ځکه چې امان الله هر یوه ته تور پتلونونه، تقریباً اوږدې کرتۍ او توري شپوګانې ورکړې چې د مخه تیارې شوې وې. که چیرې کوم نماینده غوښتل ږیره پاکه کله کړي، چې په عکس کې ښه معلوم شي، چې امان الله دوی ته پیشکش کاوه، نو سلماني ورته په انتظار کې و.

هغسې چې هغوی په ویره کې وو، امان الله په خپله افتتاحیه وینا کې د ښځو له موضوع سره تماس ونیو. هغه ورسره د حیرانتیا یوه نوې موضوع زیاته کړه: هغه وویل چې یوه ډله افغاني ځوانې به ترکیې ته د قابلګۍ د زده کړې په خاطر واستوي.

امان الله وویل، حکومت تر دې پورې د سولې د برقرارولو او له بهرنیو قدرتونو سره د دوستانه اړیکو ټینګولو په باب راضي دی، بلکې هغه به مدام په دې فکر کې وو چې د افغانستان د راتلونکې له پاره کوم شی ښه په درد وخوري. اوس هغه اماده وه چې خپلې نظریې تطبیقي کړي.

د ښځو په مورد کې هغه خپلو خبرو ته دوام ورکړ. هغه د قرآن شریف په حواله وویل چې د ښځو تعدد یوازې په هغه صورت کې مجاز دی چې ورسره په مطلق ډول مساوي چلندد وشي. دا تقریباً یو ناممکن تصور دی او پـه دې توګه هغـه وویل هیڅ یو سړی دی باید له یوې ښځې څخه زیاتـې ونه لـري. امـان اللّـه وویـل د هیـواد راتلونـکې او د راتلـونکـې نـسـل روزل په ښځو پورې اړه لري.

نماینده ګـان چې خـپل پاچا ته غـوږ نیـولي وو، په یو آزاد تیـاتر کې، چې ګـرد چاپیـر یې دنداني (غاښي) درلودل، ناست وو. هغه پرده چې غرونه په کې ایستل شوي وو، په دې تیاتر کې ځړول شوې وه، خورا ښکلې او دوی ته ډېره نژدې وه. په یوه خوا کې د معمول په مطابق په یوه مخصوصـه محوطه کې، ښځې ناستې وې، چې زیاتره یې نیم نقابونه پر مخونو اچولي وو. امـان اللّه ورته نصیـحت وکړ چې پـاک دې و اوسي، امـا آزادې دې وي، او د خـپلو مـیړنو تر اسالت لاندې دې نه اوسي.

وروسـته امـان اللّه له نماینده ګـانو سره چې هغوی په خپلو چوکیو کې ناست وو، ملاقات وکړ، چې ثریا او نورالسراج هم ورسره وې. دوی مخ لوڅې وې، لیکن فیشني تنګې شپوګانې یې په سر وې. هغوی له داسې نماینده ګـانو سره دوستانه احوال پرسي کوله چې هیڅ وارخطا نه معلومیدل، چې له یوې مخ لوڅې ښځې سره خبرې کوي.

هره شپـه به د پغمـان په باغونو کې د سازونو مکمله دستـه ساز ګـاوه او نارینه به ورتـه اتن کاوه. په افغانسـتـان کې د ګـډا محفلـتـه د رنګارنګو او ځلیدونکو لباسونو بنیه ورکړله شوې وه، چې په کې افغانانو ته د شپاړسم لویي او د نورو شخصیـتونو په شان لبـاسـونه ورکړل شوي وو او دا لباسونه هغوی ته د ورمره ناآشنا معلومیدل چې یو عـادي افغان به په خپلو جامو کې شپاړسم لویي ته څرګندید. ډېرو ښځو چې حضور درلود، د بهرنیو ډیپلوماتو ښځې وې، لیکن وروسته له هغـه چې د ګـډا مـجلس پای ته ورسـیـد، ډېرو افـغـانانو وویـل چې بل ځلي بـه دوی هم خـپلې ښځې راولي.

د پغمان په هغه تیاتر کې چې اووه سوه چوکې یې درلودلې، هر ماښام به د هندي استخدام شوو هنرمندانو له خوا ډول ډول نمایشونه اجرا کیدل. هنرمندان له هر دولت څخه راغلي وو او قسم قسم هنرنمایي ګانې بـه یې کولې. یوه هنري هنرمنده چې ایډن بای (Iden Bai) نومیدله، چپه او راسته ګډیدله. همفریز ټکان وخوړه، دا ټکان د ننداري په خاطر نه و، بلکې دلیل یې دا

و چی پروګرام په انګلیسی تنظیم شوی و او هغه وو بریدله چی ټکان خوړلی معتقد سړی به د هغه هیواد تومتی کړی.

په هغه وخت کې چی جشن پای ته ورسید، افغانی صاحب منصب چی اخطار یی ورکړی و، چی که ضرورت شی د سوکالو جنګ به پیل کړی چی افغانی ښځی له یو اروپایی سره خبرو کولو وساتی، که چیری په بندیخانه کی اچول شوی نه وای، نو د هغه د رسم او رواج نظریی به بیخی بدلیدی.

هغه ټولنه چی جشن نومیده ختمه شوه، او لویه جرګه په کار پیل وکړ. له زرو تنو څخه زیات نماینده ګان موجود و. امان الله چی غوښتل عمومی احساس ځان ته معلوم کړی، له ځینو نماینده ګانو سره چی په خاص ډول ټاکل شوی وو، شخصی لیدنه کتنه وکړه. هغه خپل ځینی ریفورمونه ورته پیشنهاد کړل چی په فکر کی یی درلود.

د چادری لیری کول او په عمومی توګه د ښځو آزادی، د ځو ښځو د نیولو موضوع غیر قانونی ګرځول، د نر او ښځی اجباری زده کړه، د مدنی قوانینو د هدایت له مخی له هیواد څخه د کلیسا ایسته کول چی د اسلامی قوانینو د مجموعی په قالب کی د هغه طرح ریزی نه وه شوی. په ټول افغانستان کی د ناسریه وسلی اجازه نامه درلودل، یو محکمه والو باندی د مالیی زیاتول، د یو ملی بانک مقدمه نیول، د نوټونو چاپول او رواجول.

هیڅ، له د غو شیانو څخه یو هم تصدیق نه کړ. عکس العمل بی بیخی کر که او تنفر شو، په تیره بیا د خوست او د نورو سرحدی سیمو په نماینده ګانو کی. هغه حسن نیت چی د زیات هر کلی په وجه ایجاد شوی و، سمدستی ټول له منځه لاړل او په خصومت بدل شول.

امان الله په قار و هغه به مقاومت کړی وای، خو ولی او غلام صدیق او ځینو نورو کسانو ور څخه هیله وکړه چی په خپلو پیشنهادونو کی دی بدلون راولی. هغه په دی خاطر موافقه وکړه چی په لویه جرګه کی ناپوه کسان موجود دی او په دی باندی قادر دی چی معقولی نظریی ورکړی او دا کار خاصه پوهه غواړی.

امان الله خپلو حاضرینو ته ډاډ ګیرنه ورکړه او وی ویل چی هیڅ ډول پیشنهاد چی د اسلام له اصولو څخه مخالف وی، لویی جرګی ته به وړاندی نه شی او د هغو اصولو په باره کی

وغړيد. هغــه ددې په کــولو ســره قــرآن شــريف يې د يو لارښــود او تاريخي کتــاب او حضــرت محمد (ص) يې د يو عــسکر او د ټولنې خدمتګار په توګه معرفي کړ. خلک ناست وو، او يې له دې چې کومه څرګنده ونه وکړي، امان الله ته به يې کتل، اما تر دې حده هيجاني شوي وو چې د خپلو کالو په شان تور اوښتي وو. امــان الله يوه غلطي کړې وه، چې د مخــه لا په نورو هيوادونو کې د ډيرو نورو مذهبونو د ستونزو باعث ګرځيدل و. هغه پر يوه موضوع باندې په داسې يو طرز تفکر ســره بحث کړی و، چې دا مــوضــوع د هغــه اوريدونکو ويده احــســاســات هم وپارول. هغه حضرت محمد (ص) يې ...

هغــه وروســتــه د اســاسي قــانون له پاره يو پيــشنهــاد بيــرون نويس کړ، چې د ترکيې له اساسي قانون سره يې شباهت درلود او د هغه قانون له مخې به د هيواد موجوده مجلس به چې پنځوس تنه غړي يې درلودل او د حکومت له خوا انتخابيدل، په يو ملي مجلس باندې بدليده چې غــړي به يې ۱۵۰ تنه وای او په (فــرضـي توګــه) بـه د خلکو له خــوا د دريو کلونو له پاره انتخابيدل. دوی بايد باسواده وای او عمر يې د پنځه ويشتو او اويا کلو ترمنځ وای، ليکن په لږو مدنې ساحو کې به شپږ کاله مهلت ورکول کيده، چې ددې کلونو په موده کې به د هغوی سواد په نظر کې نه نيول کيده، اما وروسته له شپږو کلونو څخه دې له دې سيمو څخه هم بايد بــاسواده نماينده ګان ټاکل شوي وای. دغه نماينده ګان بايد په کابل کې وای، ليکن هر کال به د حــاصــلاتو په وخت کې ورته اجازه ورکړې شي، چې د څلورو ميــاشــتــو له پاره کــورونو ته لاړ شي. دغــه مــجلس به د لويې جرګې جــانشــين نه وي، چې وروســتــه له هر پنځه کــاله به ســره ملاقات وکړي.

اســامبله په پنځو اجلاسو کې پر ډيرو هغو شيــانو باندې موافــقــه وکړه، چې امــان الله د هغــوی غــوښــتــنه کړې وه. هغــوی يوازې يو پيــشنهــاد رد کړ، چې امــان الله په هغــه باندې زياد ټينګار کاوه او وروسته يې ورباندې له سره فکر وکړ، هغه د ښځو موضوع وه.

امــان الله به د ښـځـو له پاره تر اتلس کلنۍ او د نــارينه و له پاره له دوه ويشت کلنۍ د مخــه واده کول غير قــانوني ګرځاوه. احساسات راوپاريدل او کله چې دا شي پيشنهاد شو نو نارينه و به د قــار چغې وهلې. هغوی بــه ويل چې نه. ليکن هغــوی د امان الله ددې پيشنهــاد مــلاتړ وکړ چې هيڅ يو مــامور له يوې ښځې څخه زياتې نه شي کولی. د تعــريف او څرګندونو له مــخې په لويه جرګه کې هيڅ کوم رسمي مامور وجود نه درلود.

بله گرمه مباحثه د مامورینو د فساد او رشوت په باره کې وه. امان اللّه وویل: دا کار مملکت د تباهي په لور بیایي او هم دومره چې رشوت اخیستونکی مجرم دی، په همغه اندازه رشوت ورکوونکی هم مجرم گڼل کیږي. ځکه نو ئماینده گانو یو ځلي ورسره موافقه وکړه. یو تن راپور ته شو او د یو مامور په باره کې یې خبرې وکړې چې هغه د نوکر د ژوند سویه لس واري د هغه د کارفرما له ژوند څخه لوړه وه. ډېرو داسې خبرې وکړې چې ځینې وظیفې دومره معاش لري چې د هغه پست وظیفه لرونکي بې له دې چې په نامشروعو لارو پیسې ځان ته پیدا کړي بله چاره نه لري. یوه کومیټه مؤظفه شوه چې د مامورینو د ژوند سطحه معلومه کړي، او تصمیم ونیول شو چې د هر یوه له پاره د خدمت د دورې یو کتاب وساتل شي، چې په هغه د معاش اندازه او د هغه میاشتنی لگښت، د نوکرانو شمیر او نور شیان ښودل شوي وو. په تیرو وختونو کې دا اجازه نه وه چې د مامور د رشوت د شکایت په باب د یوې اوونۍ له تیریدو څخه وروسته پوښتنه وشي، اسامبلي هغه موده دوو میاشتو ته ورسوله.

د زوړ بیرغ پر ځای چې امان اللّه ویل د بیرې د بیرغ په شان ښکاري، د نوی بیرغ پیشنهاد وشو. رنگونه یې تور، سور او زرغون وو، چې تور یې د استقلال د مخه د کشمکش دوره وه، سور یې د استقلال په لاره کې د وینو د تویېدو او زرغون یې د استقلال د ترلاسه کولو وروسته د پرمختگ مفاهیم په بر کې لرل. د اللّه(ج) او محمد (ص) نومونه په بیرغ کې په داسې ځای کې لیکل شوي وو چې لمر د غره د پاسه د راختلو په حال کې لیدل کیده او گرد چاپېره ور څخه د غنمو وږي انځور شوي وو، چې غرنی اما د پرمختگ په حال کې زراعي هیواد یې ترسیماوه. دا بیرغ پر ته له دوو نومونو څخه بل کومه مذهبي علامه نه درلوده، هغسې چې زاړه بیرغ درلوده، لیکن ئماینده گانو په تروه تنده دا شی تصویب کړ.

هغوی د امان اللّه دا غوښتنه ومنله چې هغه ملایان چې د مدرسې او تبلیغ وظیفه په غاړه لري، باید ازموینې ته دې ځانونه آماده کړي او د مربوطو وظیفو په باب دې د کافي پوهې د لرلو سندونه ترلاسه کړي. امان اللّه وویل چې زه به له هیواد څخه ټول هغه هندیان او بهرنیان وباسم چې د هند د دیوبند (Deoband) په دیني مرکز کې یې تدریس کړی وي او هغوی یې د «مصر، خاین او بهرنی پروپاگندچیانو» په نوم یاد کړل. دیوبند د کانگرس د گوند د

فعالیتونو مرکز و چې هدف یې د هند ازادي وه او د هغې سیمې ملایان هم د امان الله په مقابل کې له تعصب څخه کار اخیسته.

امان الله اعلان وکړ چې د تیر کال په پرتله اته چنده توپکې او شپاړس چنده توپونه لري، په جشن کې د پیلانو مسابقه ونه لیدله شوه، په دې چې پیلان یې د وسلې د راوړلو په خاطر روسیې ته استولي وو. د دې وسلې او مهماتو د رانیولو نتیجه دا شوه چې امان الله پر هر سړي باندې پنځه روپۍ مالیه کېښودله او له هر دولتي کارکوونکي څخه یې هیله وکړه چې خپل د یوې میاشتې معاش ورکړي. هیچا کومه مناقشه ونه کړه. لکه څنګه چې ادعا کېدله، امان الله داسې یو پاچا و چې قاطع برخورد یې کاوه، او هغوی په دې باندې خبر وو.

وروسته یو اعلان صادر شو چې لویه جرګه د هغه تصویب په اخلاص سره کړې وه. ثریا چې حجاب یې پرمخ اچولی و، اته کلن شهزاده، رحمت الله یې رهبري کړ چې عسکري یونیفورم یې اغوستی و او تر زنګنو پورې اوږدې موزې په پښو کې وې. امان الله نماینده ګانو ته وویل، چې څرنګه زما مشر زوی، هدایت، زما تر پاچا کېدو دمخه زېږېدلی دی، هغه زما د غیر رسمي زوی په توګه ګڼل کېږي. د پښتني عنعنې له مخې هغه زوی د پلار وارث کېدی شي چې د پاچا «د پاچاهي په موده کې» زېږېدلی وي. هغه د ملکې مشر زوی، رحمت الله یې د ولیعهد په توګه اعلام کړ. خلکو خوښي وکړه، د دې اعلان په ویاړ او یا تنه نارینه او څلور تنه ښځینه بندیان له بند څخه خوشې کړی شول.

کله چې امان له لویې جرګې سره مخه ښه کوله، وې ویل: «باید وویل شي چې د حجاب موضوع اوس پرېږدم، که چیرې چا د حجاب په نه استعمالولو سره کومه ګټه ولیدله، هغه کولی شي خپل حجاب لرې کړي، که څوک د چادرې په استعمالولو سره کومه ګټه ویني، هغوی کولی شي استعمال یې کړي. که چیرې زه امر وکړم چې ټولې ښځې دې چادرې استعمال کړي، نو زما د رعیت زیات شمیر کوچیانو او د کلي خلکو ته به ګران تمام شي، چې دا امر ومني. له بلې خوا که زه امر وکړم چې پرده دې له منځه لاړه شي، زه به د کابل او کندهار د پخوانۍ دود له منځه وړلو په مقابل کې له زیاتو مخالفتونو سره مخامخ شم. نو زه به د اسلام له اوامرو څخه پیروي وکړم او هغو خلکو ته به جزا ورکړم چې د خپل وجود هغه برخه لوڅوي چې د اسلام د احکامو له مخې باید پټ وساتل شي.»

په دی توگه هغه د یو کلک پیورتان (Puritan)[۱] غوندی په هغه وخت کی ښکاره شو، چی د هر وخت په شان ازاد پاته شوی و.

د افغانستان شمال ختیځ د بدخشان د ولایت یو لاروی د لویی جرگی له نماینده گانو سره ملاقات وکړ چی بیرته تلل. هغوی دی لاروی ته وویل چی پاچا خپل دین پرایښی دی او دا چی افغانستان د یو مسلمان سړی د ژوندانه له پاره مناسب ځای نه دی ځینو بدخشانیانو اخطارونه ورکول چی روسیی ته به لاړ شی چی په هغه ځای کی به دوی بوازی وی.

۱ - د انگلستان د پروتستانو د ډلی غړی چی د ملکه الیزابت او تر هغی وروسته دوره کی د مذهبی مرسامو پر ضد، اباځدل چی په مذهبی مراسمو او عبادت کی ساده گی منځ ته راوړی. (فرهنگ کامل انگلیسی - فارسی)

# د امان الله پر ضد دسیسې پیل شوې

په کابل کې د شیرآغا ډله د هغه وروړ گل آغا او وراره یې معصوم لاس په کار شول چې د شیرآغا هغه پلان عملي کړي چې د هند په پنیاله کې د جنوري په میاشت کې له ملایانو سره په یو مجلس کې ترتیب کړی و.

د سپتمبر په پنځمه د لويې جرگې اجلاسیې پای ته ورسیدې او نماینده گان د افغانستان د حکومت په مصلحت بیرته خپلو کورونو ته د غرونو او درو په مختلفو لارو ستانه شول. لیکن گل آغا د دغو مجلسونو وروستي نتیجې ته انتظار ونه ویست. هغه پیشگویي کوله شو چې په هغه وخت کې چې نماینده گان د کابل پر پیښو باندې خپلو گاونډیانو ته په راپور ورکولو پیل وکړ، هغوی به له نارضایتي سره خبرې کولې، چې ممکن د قهر او غوصې سبب شي، او دا د یو ستر پلان یوه برخه وه، چې باید آماده شوې وي، چې د خلکو د نارضایتي اور ته لمن ووهي.

گل آغا او معصوم د اگست په آخري ورځ پر اس سپور روان شول، چې نه تنه قوي کسان هم ورسره وو او ټولو د پیغمبر په شان ږیرې درلودې، د ټولو په سر داسې پټکي وو، چې د ځمکې د مخ یو پاچا به هم ورځنې صرف نظر نه شو کولی.

خوست د هغوی منزل مقصود و، چې د کابل په جنوب ختیځ کې موقعیت درلود، او څلور کاله دمخه نژدې و چې امان الله له منځه یوسي. او تر اوسه پورې د هغه د رټلو په باره کې ترخې خاطرې احساس کیدلې، خوست به په افغانستان کې ډیر مناسب ځای وي، چې یو بل شورش ته لمن ووهل شي.

گل آغا له ځان سره یوه اعلامیه وړله چې څلور سوه ملایانو په کې لاسلیک کړي وو، او په

کی ویل شوی وو چی پاچا کافر شوی دی او افغانستان له اسلامی اصولو څخه لری ساتی، خلک دی باید د هغه پر ضد ودریږی.

د سپتمبر په دویمه نیټه، کله چی هغه د سره خیل (Sarakhel) په کوچنی بانډه کی د یو خواخوږی منګل کور ته ورسید او خپل ورسره کسان یی په یو بل کلی کی چی مچلغو نومیده، سره راټول کړل، څلوېښت تنه منګلی قبایل ورسره یو ځای شول. په دغو پټو کلیو کی د دغو ټولو خلکو موجودیت د دغه له رمزه ډک رسالت پر سر، سیمه ییز مامورین مجبور کړ چی تحقیق وکړی. د سیمی حاکم خپل مرستیال ته ولیکل «موضوع د واقعی کیفیت په باره کی د یقین د ترلاسه کولو وروسته، باید ما خبر کړی او د مشکوکو کسانو په باره کی باید ګټور اقدام وکړی او بندیان یی کړی.»

کله چی رسمی مامور د «موضوع پر واقعی کیفیت» باندی پوه شو، هغه په یو برغلکی د ګل آغا ډله ونیوله چی یو نوکر یی په کی ووژل شو. ګل اغا، معصوم اود هغوی ورسره کسان امانت کابل ته راړل شول.

کله چی هغوی مرکز ته ورسیدل تر اوسه یی هم مقاومت کاوه. هغوی د امان الله د قدرت د له منځه وړلو هلی ځلی ردی کړی، مګر داسی اظهار یی وکړ چی هند ته روان وو چی د خپل ژوند چاره ولټوی، په دی چی امان الله افغانستان خطرناک ګرزولی و.

مګر هغه اعلامیه چی له دوی سره وه د دا واقعیت څرګندوی وه. امان الله د هغو څلور سوه لاسلیکونو څخه پوه شو چی خلک تر کومی اندازی ورڅخه متنفره دی، او د څومره واټن د وهلو له پاره یی آماده ګی نیولی وه. هغه په دی باندی هم پوه شو چی د لوبی جرګی د کړارولو له پاره د هغه د غوښتنو د محدودولو کوښښونو هم کومه ګټه ونه کړه او هم دا چی هغوی د ده روغی جوړی ته انتظار نه و ایستلی.

په کابل یا ممکن په افغانستان کی، د شوربازار حضرت له بانفوذو ملایانو څخه و. په اسلام کی د روحانیونو د قدرت سلسله مراتب نشته صرف د خلکو سست وروږګلوی شته چی پر ځان باندی منلی دی چی قران زده کړی او نورو ته هم ورزده کړی. مرکزی کنترول او کوم معیار وجود نه لری. کله چی امان الله پیشنهاد کړی و چی هیڅ یو ملا د امتحان د تیرولو نه په غیر، چی د هغه د لیاقت د ښوولو معیار وی، نه شی کولی مذهبی وعظ او تبلیغ وکړی، د ډیرو هغو ملایانو ژوند یی خونده کړی وو چی ویل به یی مونږ ملایان یو.

حضرتانو ددی نالوستو خلکو په شمیر کی نه راتلل چی په مقدسو ورځو به وعظ کاوه چی څه لاس ته راوړی. حضرتانو په ټولو اسلامی زده کړو پوه وو او خلک هم ورڅخه استفاده کولی شوه. کله چیری د کابل په مسلمانانو کی کوم مقام والا وجود درلود چی د کنتربوری (Canterbury)، له ستر اسقف (Arch bishop) سره د مقایسی وړ و، نو هغه به ضرور د شوربازار حضرتانو ته مراجعه کړی وی.

د کابل ارستوکراتان او شته من خلک په دی باندی خبر وو او غوښتل یی چی اولادونه یی ښه معتبر دینی درس زده کړی، نو د شوربازار حضرت ته به یی استول. هغوی چی له شیرآغا یا له گل اغا څخه دینی تعلیم ترلاسه کاوه، د مرید په نوم سره یادیدل، نو په دی توگه تقریباً د کابل هر محور سړی د شوربازار د حضرت مرید و.

او کله چی د هغوی مذهبی مشر د سپاهیانو ترڅارنی لاندی کابل ته راوړل شو، چی لاسونه یی تړلی وو او په بندیخانه کی واچول شول، د کابل له پاره بله کومه موضوع نه وه چی خبری وریاندی شوی وای.

امان الله خپله دولتی شورا دایره کړه او ټولو موافقه وکړه چی گل آغا باغی دی او باید سزا ورته ورکړی شی. یو استثنا موجود و، مشهور قاضی عبدالرحمن بیکتوتی چی یو ځلی د رشوت اخیستلو په تور نیول شوی و او له گل آغا سره هم یو ځای شوی و، خپل هیڅ کوم موقف یی له لاسه نه و ورکړی. امان الله دی قاضی څخه وغوښتل چی د گل اغا پر ضد فتوا، چی یوه مذهبی اعلامیه ده، صادره کړی. قاضی دا خبره رده کړه. امان الله چی حتی په دولتی شورا کی هم له شورش سره مخامخ شو، د سرکښی د گرفتاری امر یی صادر کړ او هیجان زیات شو.

د کابل اخبارونو هڅه وکړه چی ناکراری کراره کړی. د امان افغان په رسمی اخبار کی لیکل شوی وو چی د حضرتانو او د قاضی مخالفتونه د لویی جرگی د یوی پریکړی پر ضد دی، چی د یو شمیر جرمونو له پاره د مخه د تر هغه جزا تعینه کړی وه، چی پر هغه جرم باندی یو نفر مرتکب کیده.

په لویدیځ قانون کی دا یوه عادی خبره وه او په اخبار کی ویل شوی و، په پخوانی اسلامی قانون کی ورته تعاملات موجود وو، مگر په افغانستان کی قاضی په پیړیو پیړیو د جرم جزا په خپله خوښه ټاکله. د امان الله په نظامنامو کی د جرمونو د جزا په باره کی یوه فقره موجوده وه، لیکن د ۱۹۲٤ کال عمومی جرگی هغه له منځه وړی وه، خو اوس هغه شی بیا رواج شوی و،

او هغه قاضي چې امان الله گرفتار کړی و، په هغه ارتباط به يې خپل ټول قدرت له لاسه ورکاوه، چې د ټولو خلکو د ژوند او مرگ قدرت و.

په يوه عريضه کې چې تعليم يافته پوليس دي بايد د اوسنی لنډی مودې د عسکری خدمت ځای ونيسي د انيس په اخبار کې د گل آغا د نيول کيدو په ارتباط يوه موضوع ذکر شوی وه. دا داسې يو راپور و چې د پوليس پر ځان باندې د داسې يوې وظيفې د اجرا کولو په خاطر نفرين ويلی و. په اخبار کې چې رسمی نه و، ليکن کنترول شوی و، ويل شوی و چې که دا پوليس يو تعليم يافته سړی وای، نو په دې به پوهيده چې گل آغا واقعاً يوه دسيسه کوونکی او د خپل تبليغ او پروپاگندې له پاره، هغه د هيواد د داسې يوه برخه غوره کړې ده چې نژدې ټول خلک ناپوه دي او په دې به هم پوهيده چې که گل آغا دليل مناسب وای نو هغه به د هيواد د داسې يوې برخې ته تللی وای چې پوه او آگاه خلک په کې وای.

فکر کيده چې موضوع به له امان الله سره مرسته وکړي. کوم شی چې هغه وکړ د افغانستان د متواضعو او کمينه خلکو د مخالفت ځر گندول و، او که چا په هغه سخت وخت کی په خونسردی سره د هغی تبصری د اهميت په باب فکر کړی وای نو هغه به د اخلاقی مشکلو انتخابونو د مجموعی يوه نوی لاره پرانستلی وای. او هغه به د اوامرو د اطاعت په باره کی د يو فرد مسؤوليت و، چې د نورمبرگ (nuremberg) په محاکمه کی چې تر دويمی نړيوالی جگړې وروسته و، سړی به يې وارخطا کاوه. امان الله هيواد ته د راتلو په خبرو کی د کابل خلکو ته ويلی و چې د قوانينو احترام دی وکړي، ليکن يوازې د مشروعو قوانينو. مشکل انتخاب او معضله دمخه موجود وو، ملايانو د حکومت قوانينو ته احترام نه کاوه، مگر په خپلو فکرونو کی به يې کټ مټ هغه څه کول څنگه چې امان الله ورته ويلی وو، د نورو قوانينو انتخابول او د هغوی احترام کول.»

سمدستی، د سپتمبر اتمه نيټه، د گل آغا او د هغه د ملگرو د خيانت د محاکمی نيټه وټاکله شوه، ليکن نور کسان هم وو، چې بايد نيول شوی وای. په اعلاميه کی يې نومونه وو.

سپاهيانو وتل چې د کابل بنديخانو ته نور مشهور مذهبی مشران راولی. يو په کی محمدعثمان چې يو اويا کاله يې عمر و او د کابل د دينی مدرسی آمر و، او غلام فاروق د هغه زوی چې نوی له هند څخه راغلی و. بل د خوست يو ملا و، چې د هغه ځای له شورش وروسته په مرگ محکوم شوی و، ليکن د امان الله له خوا معاف شوی و. بل ملا دادمحمد لوگری و چې

د کابل په شاو خوا کې په پروپاگندونو يې لاس پورې کړې و. نژدې لس تنه ملايان په کابل کې، لس په خوست کې او د پنځلسو تنو په شاوخوا کې په کوهستان کې ونيول شول.

د پينبور په يوه جريده کې چې سرحد نوميده داسې ليکل شوي وو: «د تعجب ځاى دى چې د داسې يو پرنفوذ سړي د نيول کيدو په مقابل کې، چې د شاهي کورنى پير هم و، هيچا گوته جگه نه کړه. د پاچا له ډاره هيڅوک د خبرى کولو جرأت نه لري. اوريدل شوي دي چې زيات د احترام وړ کسان افغانستان ته راتنوتي دي، او هم ويل شوي دي چې محمد عثمان او قاضي عبدالرحمن نيول شوي دي ځکه چې د جشن په وخت کې يې منگل د حکومت پر ضد راپاڅول.»

غلزي کوچيان چې د فصلونو په بدلولو سره هغو ځايونو ته اوښتي وو، چې هلته به يې ضرور له شير آغا سره خبرې کولې، ناآرامه شوي وو. هغه موسم رارسيدلى و چې دوى هم تودو سيمو ته د ښو څرځايونو په خاطر تلونکي وو.

همفريز په خپلو يادداشتونو کې ليکلي دي: «اصلاً دا آوازه حقيقت نه لري، چې د پاچا له خوا امر شوى وى چې سږ کال په مني کې دى غلزي کوچيان هند ته لاړ نه شي. او که چيرى دا رښتياهم وى، نو د داسې آمرونو د اطاعت کولو امکانات ډير لږ برېښي. د غلزي کوچيانو کالني مهاجرت، د مرغاوي د کالني مهاجرت په شان، پر طبيعي علتونو باندې ولاړ دى، چې په دې کار کې د پاچانو مداخله کوم ځاى نه نيسي.»

د هغه کال په اوړي کې د افغانستان څرځايونه ښه نه وو، نو ممکن کوچيان د معمولي حد نه زيات هند ته تللي واى، ځينو قبيلو خپله هغه لاره بدله کړه چې هميشه وربانـدې تگ راتگ کاوه، او د خپل سليمانخيل غلزي دوستانو له لويديځو سيمو څخه تيريدل. دوى به په زور او قوت سره کاروانونه لوټول. حتى تير سر کښي کاروانونه چې دا کارونه دوى رسوا کړي وو... همدا راز دوى د هغوى د په زور سره د ړيرو د شکولو او د نورو تهديدونو په باره کې څه اوريدلي وو. په يوه آوازه کې ويل کيده چې امان الله په جرمنى کې داسې يو ماشين رانيولى دى چې د انسان جسد سوزوى. دا آوازه د صابون جوړولو د ماشين د مخکنى آوازى بله بڼه وه، ليکن اوس د قيمتونو د لست موضوعات په کې ور زيات شوي وو: دبرش روپې د غني سړي د سوزولو له پاره؟ د غريبانو سيزل په وړيا توگه، او د مکروبونو د خپريدو د مخنيوي په خاطر د ټولو ملايانو سيزل.

د مچلغو پر کلي باندي، چې شیرآغا په کې اوسیده او په هغه ځای کې یې مرسته ترلاسه کوله، د عسکرو له خوا برید وشو او د احمدزي د وړوکي قبیلې پر غلزیان ونیول شول. د خوست سرحدي پوستې امر ترلاسه کړ، چې هیڅ یو احمدزی غلزی نه، په تیره بیا د بزوخیل وړوکي قام ته اجازه ورنه کړی شي، چې بې له تلاشي څخه له سرحد څخه واوړي، څو ولیدل شي چې د خیانت کومه نقشه ورسره شته که نه او داسې بې ضرور له شیرآغا سره خبرې کولې، ناارامه شوي وو. هغه موسم رارسیدلی و چې دوی هم تودو سیمو ته د ښو څرځایونو په خاطر تلونکي وو.

همفریز په خپلو یادداشتونو کې لیکلي دي: «اصلاً دا آوازه حقیقت نه لري، چې د پاچا له خوا امر شوی وي، چې سږ کال په مني کې د ی غلزي کوچیان هند ته لاړ نه شي. او که چیرې دا رښتیا هم وي، نو د داسې امرونو د اطاعت کولو امکانات ډیر لږ برېښي. د غلزي کوچیانو کالني مهاجرت د مرغاوي د کالني مهاجرت په شان، پر طبیعي علتونو باندي ولاړ دي، چې په دې کار کې د پاچاهانو مداخله کوم ځای نه نیسي.»

د هغه کال په اوړي کې د افغانستان څرځایونه ښه نه وو، نو ممکن کوچیان د معمولي حد نه زیات هند ته تللي واي، ځینو قبیلو خپله هغه لاره بدله کړه چې همیشه ورباندي تګ راتګ کاوه، او د خپل سلیمانخیل غلزي دوستانو له لویدیځو سیمو څخه تیریدل. دوی به په زور او قوت سره کاروانونه لوټول. حتی تیر سرکښ کاروانونه چې دا کارونه توی رسوا کړي وو... همدا راز دوی د هغوی په زور سره د ډیرو د شکولو او د نورو تهدیدونو په باره کې څه اوریدلي وو. په یوه اوازه کې ویل کیده چې امان الله په جرمني کې داسې یو ماشین رانیولی دی چې د انسان جسد سوزوي. دا اوازه د صابون جوړولو د ماشین د مخکني اوازي یله بنیه وه، لیکن اوس د قیمتونو د لست موضوعات په کې ور زیات شوي وو: دیرش روپې د غني سړي د سوزولو له پاره؟ د غریبانو سیزل په وړیا توګه، او د مکروبونو د خپریدو د مخنیوي په خاطر د ټولو ملایانو سیزل.

د مچلغو پر کلي باندي چې شیراغا په کې اوسیده او په هغه ځای کې یې مرسته ترلاسه کوله، د عسکرو له خوا برید وشو او د احمدزي د وړوکي قبیلې پر غلزیان ونیول شول. د خوست سرحدي پوستې امر ترلاسه کړ، چې هیڅ یو احمدزي غلزي ته، په تیره بیا د بزوخیل وړوکي قام ته اجازه ورنه کړي شي، چې بې له تلاشي څخه له سرحد څخه واوړي، څو ولیدل شي

چی د خیانت کومه نقشه ورسره شته که نه او داسی امر هم ورته شوی و، چی که چا له دوی سره مرسته کړی وی، هغوی ته دی سزا ورکړی شی. د یو شمیر احمدزی غلزی او د رمو او گلو احصائیه پیل شوی وه.

د کندهار عسکرو، د کابل د راغلی تلگرامی فرمان د عملی کولو په منظور، د سپتمبر په لسمه نیټه د حاجی عزیزالله ساعت جوړونکی دوکان ته لاړل او هغه یی له دوو تنو ملگرو، سره ونیو او تر کلکی څارنی لاندی یی کابل ته واستول. د بلوچستان استخباراتی بیرو راپور ورکړ چی د «عزیزالله» دوکان د کندهار د سرشناسو کسانو د ملاقات ځای و. د هغه د گرفتاری مقصد ممکن دا و چی په زور او فشار سره د کندهار د نورو کسانو نومونه هم افشا کړی... داسی نښی نښانی شته چی شتمن سوداگران د کندهار د بی امنیتی په وجه ځانونه او خپله دارایی هند ته تیروی. بی عدالتی مخ په زیاتیدو ده ... په کندهار کی داسی کیسه روانه وه چی په کابل کی یو شمیر مشران نیول شوی دی او ځایونه یی معلوم نه دی چی چیری دی.»

په پیر سرای کی د یوی عسکری پوسته قوماندان داشی کشف کړ چی پنځه ویشت تنه سپاهیان غواړی له خپلو وسلو سره وتښتی، هغوی په ویل چی موږ د شوربازار د حضرت د گرفتاری د نه منلو په خاطر په دی عمل لاس پوری کوو.

د کابل په شمال، کوهستان کی د نارامی روحیه له نورو ځایونو څخه زیاته وه. یو ملا چی نیول شوی و، عبدالاحد کوهستانی و، چی له حضرتانو څخه او د گل آغا اوښی و. دی ملا په کوهستان کی ډیر پیروان درلودل چی ورته ډیر وفادار وو او سمدستی یی امان الله ته د ۱۹۱۹ کال له بری وروسته ستونزی پیښی کړی وی ځکه چی د هغی سیمی مستوفی الممالک یی اعدام کړی و او د هغه دارایی یی ورته ورکړی وه. مستوفی پر کوهستانیانو باندی شدیده رویه کوله او د هغوی پیسی یی اخیستی وی، لیکن هغوی ورسره په یوه لاره تړلی وو، چی یو امریکایی سیاست پوه به وروسته ورته داسی عبارت استعمالاوه: «اما هغه زموږ یو تارتق دی.»

د سقاو زوی، له بندیخانی او په پیښور کی د سماوار چی گری له وظیفی څخه وروسته بیرته خپل ټاټوبی ته راستون شو چی د کوهستان - کلکان و. د یوی کیسی له مخی چی په پیښور کی د هغه د لیږ تم کیدو په باره کی ویل کیده، په هغه ځای کی یو لوی سیف غلا شوی‌و او مقامات پوهیدل چی د سقاو زوی مجرم دی، ځکه چی هیچا هغه سیف نشورولی نه شو. دا

یو داسې مثال و چې د سقاو زوی په کې د لوټ ماری د نوم په درلودلو سره نیول شوی و، او څرنګه چې د انګلستان له محکمې سره شواهد نه و، خوشې کړی شو. هغه د جسمي قوت په لرلو مشهور و، حتی په هغه وخت کې په کلکانو کې د غریب سقاو زوی و، که چا دده پنډ پلن وجود ته نظر اچولی وای نو د غوایي د وجود په شان به ورته معلوم شوی وای. اوس د سقاو زوی اقتصادي توان هم درلود، او ضرور نتیجه به یې د سیاسي قدرت لرل هم و. دی په هغه مسلک کې براعلي بریالی وو چې واقعاً یې په کې برتري درلوده. هغه داړه ماری وه.

کله چې د سقاو زوی د حکومت د پیسو کاروان لوټ کړ، یوازې مامورین ورته په ریښتیا سره خپه وو. کوهستانیانو به د حکومت مال او شتمني ته هغسې نسبت ورکاوه لکه چې د عامو خلکو دارایي وی. د سقاو زوی به ځینې پیسې هغوی ته ورکولې، او که چیرې هغه یو څه زیاته اندازه یې د خپل ځان او د خپلې ډلې له پاره ساتلې، هیچا کوم شکایت نه کاوه، ځکه چې هغوی په خپله د پخوانه ډیر غني وو.

د سقاو زوی داړه ماران، هغو کاروانونه شکول چې تجارتي مالونه به یې وړل راوړل، او د ګمرک مقاماتو ته به یې د لوټ شوو مالونو رسیدونه ورکول. دا کار په کوهستان کې یوه ښه ساعت تیري ګرځیدلې وه. هغوی به نورو مامورینو ته ځینې نور توهین آمیز لیکونه استول، په خپله د سقاو زوی لیک او لوست نه شو کولی، مګر دا کار به مدام بل چا ورته کاوه، او د هغه له ظرافت څخه ډکې خبرې د غرونو سخت ژوند ته ژوند وربخښل، چې د کابل له ښار څخه زیات لیرې نه و چې هلته ډیر زیات خلکو په ساده توګه ژوند کاوه. تړکې به د ساده ژوند لرونکو کابلیانو له خوا تل استقبالیدلې.

وروسته د سقاو زوی دوه تنه هندي تجاران یې وتښتول او د هغوی کورنې یې مجبورې کړې چې د هغو د خوشې کیدو په خاطر دې شپږ زره روپۍ ورته ورکړي.

وروسته نژدې و چې د افغان - جرمني د شرکت یو جرمني منتظم چې هرفری (Herr Freye) نومیده وتښتوی. هغه چاریکارو ته نژدې فری یې په لاره کې ودراوه، خو وروسته به له دې چې کومه مطالبه ورڅخه وکړي، هغه یې خوشې کړ.

هرڅومره پیسې چې د سقاو زوی له غني سوداګرو او یا له کوم بهرني نفر څخه اخیستلې نو که یې مصلحت ګاڼه، هغه پیسې به یې پر کلیوالو باندې ویشلې. څرنګه چې قربانیان په خپله د هغوی نه فرق درلود او په دې توګه د تشویش وړ نه وو نو کوهستانیانو یو نوی قهرمان

درلود. حتی د کلکان ملک محسن، چی په یو وخت کی یی د سقاو زوی د محلی نوکر په توگه استخدام کړی و، دا یی هیر کړی وه چی هغه یی د یو جزئی شی په غلا، له نوکری څخه شړلی و، په دی باندی غره و چی له هغه سره یو ځای دی.

ډیره موده نه وه تیره شوی چی د کابل - چارېکار په لاره هیڅوک نه شو تیریدی، تر هغو چی ورته ډیر مجبوریت نه پیښیده. په سپتمبر کی دری ځلی له کابل څخه قوا لاړه چی باندیتان ونیسی او دری ځلی له هغوی سره ارتباط ونیو، لیکن دری واری له ماتی سره مخامخ شول. اته تنه سپاهیان ووژل شول او ډیر ټپیان شول.

د کوهستان بانفوذه ملا خوشی شو، د سقاو د زوی چور او چپاول آرام شو او داسی راپور ورکړی شو چی داړه ماران ورک شوی دی او په خپله د سقاو زوی جلال آباد ته نژدی د مهمندو سیمی ته تللی دی. د اکتوبر په لومړی نیټه امان الله وکړی شو بی له دی چی کومه پیښه صورت ونیسی، له کوهستان څخه لیدنه کتنه وکړی. هغه لا د مخه دوه ځلی خوست ته هم تللی و چی هلته د عسکری قوی مرسته استول شوی وه، نو داسی معلومیده چی خطر له منځه تللی دی.

که څه هم نور ډیر ملایان خوشی شول، خو گل آغا او معصوم په بندی خانی کی وساتل شول، او قاضی عبدالرحمن یکتوتی له یو شمیر نورو سره په مرگ محکوم شو.

په هر حال، هیڅوک شکمن نه وه چی په رښتیا سره ملا د دی سیمی ترشا ولاړ و، هغه ملا چی په هند کی و.

د هند سرحدی مامورینو ته امر شوی، ولی خان له همفریز څخه غوښتی وو چی داسی پیغام واستوی «شیر آغا د شوربازار د حضرت ورور دی باید تر دقیقی څارنی لاندی ونیول شی. هغه ممکن د کورمی یا د توچی له لاری ځان خوست ته ورسوی.»

د شیرآغا څوک هم د هند د حکومت په سترگو کی نه لگیده، چی د مارچ په میاشت کی یی هغه له شمال لویدیځ ایالت څخه شړلی و. هغوی شیر آغا د کتیوار (Kathaiwar) د کنډال (Candal) په ښار کی چی د بمبیی ترمنځ په سال کی موقعیت لری، پیدا کړ. د هغه ځای سیاسی نماینده داسی تلگرام ورکړ: «ویل کیږی چی هغه خپل وختونه په عبادت او له خپلو پیروانو سره په لیدنه کتنه تیروی. زه به د هغه د تحریکاتو راپور ورکړم.»

دلته دی چی شیر آغا د امریکایی بن جیمز (Ben James) په نظر چی دوه کاله

وروسته یې له هغه سره ملاقات وکړ او د هغه د توطئې په باب هیڅ پوه نشو، څنګه شي ځرګند شو.

«هغه د دې سره سره چې جګه ونه یې درلوده، سور او چاغ سړی ؤ. سر یې د یو متر مکعب په شان و، توره مربع شکله ږیره یې درلوده او په سر یې سپینه خولۍ وه ... سربیره پر دې، سترګی یې غټې، او په داسې حال کې چې تر وریځو لاندې په ارامی غړیدی، د هغه ټوله ځیره یې تر اغیزې لاندې راوستې وه او ظالمانه تاثیر په کې لیدل کیده.

پخوانو پیغمبرانو چې مجرمینو ته یې سخته سزا ورکوله او د صداقت او رښتینولی له پاره یې مبارزه او هلې ځلې کولې، له دغسې خوی څخه یې بدل وړل. پاچا او کابینه به د دې اسلامي عقیدې خاوند رزمي دوله قهرمان په وړاندې عاجز پاته کیدل. زه هغه ته متوجه وم چې سکوت یې اختیار کړی و او په دې چورت کی وم چې د هغه له غټو کلکو شونډو څخه به بخت او سرنوشت کومه خبره ووزي. »

هغه د کتیوار خلکو ته د خدای (ج) د نماینده په څیر و. هغه د دوی د ټولو مراسمو حامي و او د ټولو قوتونو د مهربانانه عمل ضمانت به یې کاوه او ویل به یې چې ټول کرامات دده په عظیمه ځیره کې چې مسکا په کې نه لیدل کیږي، سره راټول شوي دي او یا لږ تر لږه د شومو او خبیثه ارواحو ضمانت به یې کاوه. هغه د مړو او ودونو په مراسمو کې ګډون کاوه او د دغه فروتنې عمل په بدل کې به اسلام ته وقف کسانو ورته پیسې او کالي په زوره ورکول، ځکه چې حفاظتي قسمت تل تثبیت دي، یعنې نه سوه روپۍ. نماینده چې ګومارل شوی و د هغه ځارنه وکړې داسې ولیکل: « په کتیوار کی د پیسو د کڅوړ و پیشکش کول کوم غیر معمولي دود نه دی. په واقعیت کی دا به داسې یو عمل ته پاته شي چې د یو واقعي یا ساخته ګي مذهبي سړي لوړه مرتبه په نظر کی نیول کیږي.

د شیرآغا پیروان تر دې حده د هغه تر تاثیر لاندې تللي وو چې هغه ته د یو کور د اخیستلو په خاطر یې د اعانې په ټولولو پیل وکړ، مګر شیرآغا هغوی ته اجازه ورنه کړه چې دا کار وکړي. په هر صورت هغه لا د مخکې نه د یو مرید په کور کې اوسیده.

که څیرې هغه ځان په کافي تو ګه مستحق نه ګاڼه چې په کتیوار کی یو دایمی کور ولري، ئو واقعیت به په استخباراتي راپور کی نه ځرګندیده.

# څلورویشتم فصل

## د ۱۹۲۸ کال د سپتمبر له لومړی نیټې

## څخه د ۱۹۲۸ کال د اکتوبر تر ۱۰ نیټې پورې

هغوی چې امان الله یې ډیر زیات خوښیده، د هغه په باره کې په ناامیدۍ سره علاقه مندې ښودله.

بدبختي په مخ کې وه. ظاهراً داسې معلومیده چې چټک گرفتاري د هغه ژر پېښیدونکې بدبختي مخنیوی وکړ، چې د گل آغا د توطئې په واسطه منځ ته راغلې وه. هغوی چې امان الله ته ډیر نژدې وو، لکه ولي خان، محمود طرزي، سلطان محمد، عبدالهادي، میرهاشم، د مالیې وزیر، په بمبیي کې د هغه نماینده محمد اکبر، غلام صدیق او د هغه ورونه، ټول ښه پوهیدل.

محمود طرزي، امان الله ته مشوره ورکړې وه چې د مخه تر دې چې هڅه وکړې په افغانانو کې دومره زیات اصلاحات په زور سره منځ ته راوړي، باید ښه قوي لښکر دې په خپل شاوخوا کې ولري، لکه څنگه چې مصطفی کمال درلود. امان الله نورو خلکو سره ددې پیشنهاد د بې ارزښتې په باره کې خبرې وکړې او وې ویل چې محمود طرزي زما د ځوانۍ استاد او مشاور چې دری شپیته کاله عمر لري، له کاره لویدلی سړی دی. ثریا هم نه غوښتل چې د طرزي خبرې واوري ولو چې پلار یې هم و. د کویټې افغاني وکیل التجار، کله چې اروپا یې هغه نشریې یې کابل ته استولې چې په کې ثریا بې حجابه ښکاره ځرگندیده، د هغې پر بې پروایو باندې توند شو.

بیا هم دا اسانه کار و چی ثریا د حجاب د استعمال زړی طریقی ته یا د نه حاضریدلو په خاطر معاف شوی وای. د ثریا او امان الله په نظر د دوی انتقادونه د یوه نه انکار کیدونکی حقیقت په سبب مانع گرزیدلی وو. یعنی دوی ښه مفهوم ورکاوه.

د امان الله ملگرو د هغه ډیر بی پروایی وبخښلی، او دی کار ته یی ادامه ورکړه. امان الله چی له اروپا څخه بیرته راغی هغسی جالب او د خوښیدلو وړ نه معلومیده، لکه چی اروپا ته د تگ په وخت کی و. په نتیجه کی دا به په افغانی فولکلور کی یوه منځ ته راغلی افسانه شی چی برتانویانو په شعوری توگه د امان الله هیلی او خواهشات ددی په خاطر چټک کړل چی د هغه د زوال پروسه تسریع شی او دی شی ته یو برتانوی «بی ځایه هلی ځلی او پاریدنه» وویل.

د امان الله له ښیگنو څخه یو هم له نورو خلکو څخه د هغه باخبری وه. داسی یو کیفیت چی حتی په بی قوتو کسانو کی هم وی، په داسی یو نفر کی د نه په شا کیدونکی په توگه موجود و، چی په مطلقه توگه قوه یی درلودله او د هغه له استعمال څخه یی ډډه کوله. اوس هغه له خپل قدرت څخه کار واخیست. د ۱۹۲۸ کال په منځ کی امان الله یو مطلق زمامدار و او هغه به ویل چی نه یم. هغه د لویی جرگی په پرانیستلو کی وویل چی زما نیکونه مستبد واکمنان وو، اما زه د خپلو خلکو په خوښه زمامدار یم. دا اشتباه کړی وه. امان الله چی ډیر زیات ظالم و، د خلکو دود دستور یی آزاد پری ایښی وو. د مرکزی حکومت جلبونه ډیر سست وو، اوس مرکزی حکومت د یو سړی کور ته راغلی و.

څینو کسانو وجود درلود چی د جمهوری حکومت شکل یی خوښاوه. هر افغان چی ښه مترقی و او د جمهوری حکومت غوښتونکی و، غوښتل یی چی امان الله جمهور رئیس شی. لویی جرگی د یوی ملی اسامبلی له پاره رایه ورکړی وه، لیکن انتخابات یی وځنډول.

په عوض کی یو صدراعظم او یوه کابینه، تجربه کاره کسان، چی کولی بی شول پریکړی وکړی او تصمیم ونیسی، د یو فوری حل په خاطر وغوښتل شول. امان الله وعده وکړه چی ددی سړی نوم اظهار کړی. هغه د شیراحمد نوم د صدراعظم په توگه یاد کړ.

د هغو کسانو له جملی څخه چی د امان الله د کابینی له پاره انتخاب کړی وو، زیات کسانو نه غوښتل چی د شیراحمد تر قیادت لاندی کار وکړی.

او په خپله امان الله به په پټه توګه د کابینې هر غړي ته ته او ورته به یې ویل چې وظیفه دې اجرا نه کړي.

دې غولوونکې موضوع هغه خیرخواه خلک یې خپه کړل چې دا موضوع د هغوی پر ضد هدف و. دا داسې ښودل چې امان الله به هغوی ته ورته چې راضي یې کړي، لیکن په واقعیت کې هغه غوښتل پاچاهي وکړي. ټول دغه شیان د سپتمبر په میاشت کې د حضرت د نیول کیدو د موضوع او د هغه د ټولو بدمرغو ضمني اشارو پر ضد صورت ونیو، چې څرګنده یې کړه د ځان ساتنه څومره ضرور و.

د شیراحمد په باره کې ډیري خبري وي، چې هم امان الله او هم د هغه مشاورینو ته معلومي نه وي. هغوی خبر نه وو چې هغه په ۱۹۱۹ کال کې د برتانیي له نماینده ګۍ سره تماس نیولی و او له پاچایي څخه د امان الله د لیري کولو په باب ورسره مشوره کړي و، او حتی د امان الله د وژلو په باب یې هم خبري کړي وي. هغوی د هغه د موقف د غرور له څرنګوالي څخه خبر نه وو چې ورته لاربښوونه کوله چې برتانویانو ته ووایي چې هغوی پوهیږي له یو سردار سره څنګه چلند وکړي. د برتانیي په اسنادو کې هغه د «یو قدرت مند او بطي او ملوث» سړي په توګه معرفي شوی و. له بلي خوا برتانویان نه پوهیدل چې د هغه د ټاکل کیدو په باره کې د سیسي رواني دي، هغوی به یو بل ته ویلي چې وزیران د وظیفي له اجرا کولو څخه ډډه کړي ده، ځکه چې شیراحمد د لاس یوه «ریشخنده اله» ده.

په پای کې امان الله د سپتمبر په ۲۲ نیټه وویل چې امکان نه لري د صدراعظم کابینه جوړه شي، نو زه به په خپله د حکومت او د هیواد مشر شم.

لیکن هغه به د حکومت په ورځینو چارو کې سمدستي ځان نه اخته کاوه. هغه پلان درلود چې د افغانستان د ژوند د بیا تنظیم په باره کې فکر وکړي، دې کار دا شي ایجاباوه چې یو څه موده د هغه په مورد کې له فکر کولو څخه لاس واخلي. ولي خان چې د پښتورګي د تیږي د علاج په خاطر یې سفر د اروپا په لور ځنډول شوی و، د پاچا دایمي نایب وټاکل شو، او امان الله اعلان وکړ چې د یوې مودې له پاره به ولي په قصر کې د پاچا د دفترو واک او اختیار په لاس کې ولري. امان الله د بهرنیو چارو په وزارت کې یو وړوکی دفتر ته انتقال وکړ.

امان الله د خپل دفتر د پریښودلو په شان نور حرکتونه هم کولی شول، دا یو له هغو علتونو څخه و چې هغوی له ده څخه لاس نه شو اخیستلای، لیکن د هغه په څنګ کې به یې خپل تخریب ته ادامه ورکوله.

د سپتمبر په ۲۹ نیټه مجلس بو برې ته ورسید. امان الله راضي شو چې بو نماینده هند ته د شیر آغا سره د لیدلو په خاطر واستوي او له هغه څخه وغواړي چې افغانستان ته دې راشي او له حکومت سره دې یوې موافقې ته ورسیږي. هغه خپل ځان د هر بل سلوک له پاره ډیر قوي ښودلی و.

نماینده چې د کابل د قضایي قوې آمر و، د کتیوار په لور روان شو چې تګ حضرت پیدا کړي. غلام صدیق له برتانویانو څخه غوښتنه وکړه چې شیر آغا ته دې اجازه ورکړي چې له سرحد څخه تیر شي او افغانستان ته دې لاړ شي او دا کار دې پرېږدي په هغه وخت کې وشي چې که نماینده دغسې بوه غوښتنه وکړي او که نه نو خپل دې کار ته دې ادامه ورکړي چې هغه لیرې وساتي.

برتانویانو به د یوې مودې له پاره داسې ویل: «ملایان د خپل ژوند په خاطر جنګیږي.» بو هندي سیلاني په کابل کې لیدلي و چې بو عسکر په زور سره بو مغرور له یوې عامي تولنې څخه شړلو. دا ته د خپل هیواد د هغه سلوک په یاد راغي چې هلته هم ځینې کسان شته دي، خو د چا ورسره غرض نشته.

همفریز د سپتمبر په ۲۱ نیټه باندې داسې راپور ورکړ: «اوس ملایان پوهیږي چې که دوی وغواړي خپل کوم پخواني پرستیج وساتي، نو د خپل ځان د څرګندولو زیات ځنډ نه شي کولی. همدا راز لیدل شوي دي چې پاچا تر یوې زیاتې اندازې خپل مذهبي کړه وړه له لاسه ورکړي دي او لږ لیدل کیږي چې جومات ته حاضر شي...

دا یو عیني حقیقت دی چې امان الله پاچا له خپلو عسکرو سره هیڅکله کومه پوره علاقه نه وه څرګنده کړې، او هیڅ یې نه وکړي چې خپل د شخصي وفادارۍ احساس یې منځ ته راوړي وي چې دده د موقف د خاص ارزښت څرګندوي ګرځیدلی وای.

«تن د عسکرو معاش، چې په میاشت کې شوارلس روپۍ دي، کافي نه دی. د امیرانو په وخت کې که بو عسکر دومره پیسې اخیستې، نو په څنګ کې یې ورسره نور فعالیتونه هم کول، چې د هغه په بدل کې ورته پیسې ورکول کیدې. هغوی د خپلو وظیفو د اجرا کولو په څنګ کې به موچیګري، سنګتراشي، شخصي مزدوري او ځینې نور غیر حرفوي کارونه کول چې له دې لارې هم پیسې ترلاسه کولې. په موجوده رژیم کې د داسې شیانو اجازه نه وه. رسم ګذشت او نورې دندې، په داسې حال کې چې په عمومي استعداد کې نه راځي، ډېر سخت شوي

و او د عسکرو د هوسلینی له پاره کوم اقدام نه و شوی. بارکونه تول رنګ شوی و، او نوی جوړ شوی نه وو او لږ تر لږه ډیر سپاهیان په مرکزی فرقه کی په داسی ځایونو کی اوسیدل چی د تاپ له توکرانو څخه ورته جوړ شوی وو، چی د ژمی په سختو میاشتو کی یو غیر انسانی عمل ګڼل کیږی، په تیره بیا چی هغوی په خپلو کمو پیسو باندی د سونګ لرګی هم ځان ته نه شو اخیستلای.

«د پیسو د کمښت په وجه سپاهیانو نه شو کولی ځان ته ښی جامی واخلی، او که لاپی وهلی چی د برېښنا شبکه کابل ته اتلس زره واحده برق برابره وی، بیا هم په بارکونو کی برېښنا درک نه درلود.

«دا درسته ده چی توپخانه، د سپاره او پلیس مکتبونه تاسیس شوی دی، د صاحب منصبانو د روزلو په برخه کی ښی هلی ځلی شوی دی او عصری جنګی سامان را وارد شوی دی، مګر له دغو شیانو څخه یو هم په دی وخت کی د عسکرو په درد نه خوری، چی د ظالمو صاحب منصبانو په لاس لویدلی دی، صاحب منصبانو د خپلو افرادو په مقابل کی خپل تول عواطف له لاسه ورکړی دی.

**«په یو وخت کی د عسکرو د ژوند زیاته ګټه هغه قوه وه چی پر ملکی وګړو باندی عملی کیدله،** مګر اوس حکومت داسی خبری کوی خلک دی باید پرته له هغو اوامرو څخه چی له رسمی واکمنو مقاماتو څخه صادریږی، د بل چا اطاعت ونه کړی.

«د پورته شرایطو له مخی، په یقین سره د دی امکان شته که چیری احتمالی نه وی، چی عسکر به د هر هغه عمومی جنبش څخه هرکلی وکړی او هغه به ښه حمایه کړی چی شخصی ګټی یی په کی متصوری وی او د معاش د زیاتیدو خوش خبری هم په کی وی.»

د کابل څخه د باندی، په ولایاتو کی، خلکو به په آزاده توګه څرګندونی کولی، چی پاچا به لیونی شوی وی. کوم کسان چی د هغه حامیان دی، یوازی د کابل مامورین دی. دا هغه کسان وو چی د امان الله د مترقی کرنلارو د عملی کولو په خاطر یی لاسونه سره یو کړی وو، ویل شوی وو چی دوی هغه غوړه مالان وو چی امان الله ته به یی هغه شیان ویل چی غوښتل یی دا شیان واوری، لیکن معمولاً هغه داسی شیانو ته غوښتل غوږ کیږدی چی هغوی په رښتیا سره فکر کړی و.

هغوی حتی د امان الله له علاقمندی څخه هم خپه وو. امان الله پلان درلود چی د رشوت د

له منځه وړلو په خاطر چې له دې لارې خلک د اروپايي جامو او د موټرونو خاوندان شوي وو، د خلکو د عايداتو سنجش وکړي.

د امان الله يو دوست، امان الله ته داسې خطاب وکړ: «ښه پاچا اما خراب سياستمدار.» هغه خپل متحدين له ځان څخه نه وو تاو کړي يا خپل موقف يې نه و خوندي کړی. هغه تقريباً بيخي يوازې و. په دې باره کې همفريز ليکلي دي: «د جولای د اولې نيټې راهيسې چې امان الله کابل ته بېرته راغلی دی، د افغانستان په وضعه کې د پام وړ بدلونونه منځ ته راغلي دي. امان الله له رارسيدو وروسته د ښمنانو د لاس اله گرځېدلی دی او اوس داسې وضعه حاصله کړې ده چې په هغه کې به ټولې پرې د يو انقلابي مشر په خوا کې وي که چيرې تصادف دا سرې حاصل کړي.»

د سپتمبر په وروستي ورځ باندې، امان الله د يو سلسله بيانيو په ورکولو پيل وکړ چې پنځه ورځې دوام يې وکړ او هره ورځ به يې درې ساعته په بر کې نيول. د بهرنيو چارو د وزارت په ساحه کې يوه لويه خيمه درول شوې وه او نژدې شپږ سوه تنه سره راټول شوي وو چې د هغه بيانيه واوري. ملکه ثريا او يو شمير نورې ښځې هم راغلې وې چې ټولو نازک نقابونه پر مخونو باندې اچولي وو.

لومړنۍ ماښامنۍ بيانيه د خدای په امانۍ د هغو مراسمو څخه د مخه وه چې د يو سل او پنځوسو تنو نارينه او پنځلسو ځوانو ښځو په وياړ ترتيب شوې وه، چې د زده کړې له پاره ترکيې ته تلل. نجونې تر نارينه وو د خلکو پام زيات جلب کړ. په دې چې دوی لومړنۍ افغانۍ نجونې وې چې د زده کړې له پاره هيواد څخه د باندې استول کيدې. کله چې امان الله او ثريا د هغوی د نرس قابلگۍ د تحصيل د مودې د برې غوښتنه کوله، دوی خپل مخونه په تورو نازکو ټکو پټ کړي وو، او بيا د حاضرينو له مخې څخه تيرې شوې او په موټر کې کښيناستې، چې سمدستې يې حرکت وکړ چې د خيبر له لارې پيښور ته ورل کيدلې، چې بهر ته د زده کړې په خاطر د دوی لومړی گام وو. په هغه وخت کې چې دوی پيښور ته ورسيدلې، نقابونه يې له مخ څخه ليرې کړل. دوی په خپلو سترگو رانجه پوريکړي وو چې دا په افغانستان کې کوم غير معمولي شی نه و، حتی هغې ښځې چې په پټيې کې کار کاوه، خپلې سترگې يې تورولې. دا انجونې خپلې شونډې هم سرې کړې وې.

امان الله وويل چې زما په سفر کې او يازره سترلنگ پونډه لگيدلي دي چې په نتيجه کې

مې ښې گټورې وسلې او ماشين الات ترلاسه کړي دي، چې ارزښت يې څلور سوه او شپېتو زرو سترلنگ پونډو ته رسيږي، چې دا د ملت له پاره نوي زره سترلنگ پونډه گټه ده. هرڅوک ددې محاسبې په انتظار کې وو. ډېرې خبرې کېدې چې د امان الله سفر يو وېجاړونکې لگښت و. حتى ځينو خلکو به تعجب کاوه چې دغه پورته ارقام به د نوموړي سامانونو ترانسپورتي لگښت هم په بر ک ولري که نه، چې د سرحد له لارې هره ورځ گمرک ته راوړل کېدل.

هغه په عسکرۍ کې بدلون راوست. د هغه بدلونونه دغه شيان په بر کې لرل: د ليسو د ټولو فارغ التحصيلانو له پاره د عسکرۍ يو کلنه دوره تاکل چې احتياطي صاحب منصبان ورڅخه وتل، خپل شاهي گارد ته پاخه استحقاق ورکول، د څلور کسيزو دستو جوړول چې د جنرال د خصوصي مسرتيال په توگه وظيفه اجرا کړي، «ددې له پاره چې له پاچا سره د گډون کولو چانس ولري» د صاحب منصبانو له پاره د کلوپ جوړول چې پيسې يې په هره مياشت کې د هغوى له معاش څخه وضع کېدې او د يوې نقشې جوړول.

امـان الله وويل چې هېڅ يو عسکر د کوم مذهبي لارښود پيرو کېدی نه شي او هم په سياست کې برخه اخيستی نه شي. «ستاسو ټوپک بايد ستاسو معنوي لارښود وي.»

په پوليسو کې دوه بدلونونه منځ ته راغلل. هغوى د عدليې د وزارت له کنټرول څخه وايستل شول او د هغوى د يونيفورم رنگ ته تغيير ورکړ شو.

امان الله وويل تنبل کسان معمولاً د بيکارۍ له امله چاغ وي او څرنگه چې چاغ کسان د عسکرۍ له پاره مناسب نه دي، هر څوک چې د خپلې ونې له تناسب څخه په وزن کې زيات وي نو له عسکرۍ څخه به وايستل شي. هغه وويل هېڅ يو افغان ته به دبهرنيو چارو په وزارت کې وظيفه ورنه کړي شي که چېرې خارجي ښځه ولري او په هغه صورت کې به په هغه ځاى کې ورته وظيفه ورکړي شي، چې خپله ښځه طلاقه کړي.

د نر او ښځو گډ، زده کړه د امان الله د پيشنهادونو جزو: هغه وويل چې نجونې له شپږ تر لس کلنۍ پورې په همعو ښوونځيو کې زده کړه وکړي چې هلکان يې کوي چې په دې ترتيب سره به د نجونو د لومړنی ښوونځی له لگښت څخه سپما شوې وي. ده له هغو خلکو څخه چې د ده خبرو ته يې غوږنيولی وو، وغوښتل چې داشيان دې ورسره ومني، هغوى ورسره ومنلې.

امان الله د حکومت کارگرانو او عسکرو له پاره د تقاعدي پيسو پيشنهاد وکړ، چې په زوړوالي کې هغه ترلاسه کړي. دا يو ابتکارانه عمل وچې نه کاله نور هم د امريکې متحده

ایالاتوته نه ورسیدلی. دتقاعد دا پیسی به داحکومتی کارگرانو له معاش څخه وضع کیدي چی دکارد کلونو په موده کی یی اخیستی.

امان الله ژمنه وکړه چی که تجاران کوم تشبث ونه کړي اوله پیښور او لاهور څخه لیري لاړ نه شی، نو د افغانستان د تجارت اداره به زه په خپل لاس کی ونیسم.

ټولو دغو او نورو شیانو پنځه ورځی وخت ونیو، چی د امان الله له خوا وړاندي شول. به دریمه ورځ اوج ته ورسید.

«مذهب داسی نه وایی چی ښځی دی خپل لاسونه، پښیی او مخونه پټ کړی او یادی کوم بل مخصوص ډول حجاب استعمال کړی.»

ثریا د حاضرینو له منځ څخه جګه شوه او خپل هغه نازک نقاب یی وشکاوه چی پر خپل مخ یی اچولی و. حاضرینو چک چکی وکړی. نوری ښځی چی هلته حاضری وی هم جګی شوی او خپل نقابونه یی وشکول. نارینه وو د هغوی مخونه ولیدل. دا د ۱۹۲۸ کال، د اکتوبر دوهم، د افغانستان په تاریخ کی یوه مهمه پیښه وه چی مخ لوڅی ښځی د لومړی ځل لپاره په ټولنه کی ومنلی شوی.

امان الله وویل: «اوس دی باید ښځی زړی چادری ګانی لیری کړی، یا دی مخ لوڅی لاړی شی او یا دی عصری لباس او سپک نازک نقابونه دی استعمال کړی. له کابل څخه دباندی به ددی موضوعاتو په باره کی تصمیم نیول د خلکو په لاس کی وی، لیکن پر قبایلی آزادو سیمو کی دی باید دا شی تحمیل نه شی.»

امان الله د ښځو د شمیر په ارتباط وویل چی زه، زما ورور عنایت الله، او نایب السلطنت ولی یوازی یوه ښځه لرو چی ټول اوس اته ویشت ماشومان لرو. «دا ددی څرګندوی دی چی وه ښځه کولی شی افغان ملت له معدومیت څخه وژغوری.»

د امان الله دا پرتمینه او ویره وونکی کارنامه نه یوازی د پنځو ورځو په اوږدو کی د هغه د جسمانی قوت څرګندوی و، بلکی د هغه فکری استعداد هم د بحث وړ و، چی ټول افغانی ژوند یی له ورو کی څخه نیولی تر غټ پوری تر بحث لاندی نیولی و، او خپل نښان یی ورباندی وهلی و. ټول دغه شیان په هغو ورځو کی سره منظم کړی وو چی د هغو د فکر کولو له پاره یی ځان ګوښه کړی و. هغوی چی ورباندی د نابغه فکر کړی و، اوس له هر وخت نه زیات یی دلیلونه درلودل.

هغوی چې د نتیجو په باب په تشویش کې وو، هم زیات دلیلونه درلودل.

هر د غه هیجانی ورځ د امان الله د سفر د سینمایی فلم ننداره یې کړې وه. خلکو په فلم کې د ثریا د لوڅ مخ پر لیدو باندې په زړه پورې پیشگویی کړې وه، لیکن وروسته له هغه چې ثریا شخصاً حجاب لرې وغورزاوه، دا یو مخ په ځوړ حرکت و.

کوم شی چې ولیدل شو، هغه داسې یو الهام و چې افغانانو هغه شیان تقلید کوی چې د سینما له لارې د امان الله د سفر په باره کې لیدلی وو. د څو ورځو په موده کې اوه الوتکې په هوا کې ولیدل شوې، چې پروازی حرکتونه یې اجرا کول. لکه چې د نورو هیوادونو الوتکو اجرا کول، او د سپاره عسکر ښوونځي پر خپلو نیزو باندې افغانی نوی رنګه جنډې وړلې، چې کټ مټ د برتانیې د سپاره عسکرو په شان وو.

د کابل ښوونځیو ته د کرکټ (Cricket) د لوبې سامان را ورسید، او د افغان د سپورتونو کلوپ، چې د امان الله تر بیرته راتلو د مخه بود تړکه وه، اوس چې هغه افغانانو ته ویلی و، چې مشق دې وکړی نو د کلوپ د غړیتوب د حاصلولو په خاطر ډیر زیات غوښتنلیکونه ورکړی شول. د برتانیې د نظامی آتشی په یادداشت کې ویل شوی دی چې: «د کابل د لوبو په میدانونو کې، ددې نماینده گی غړی له ځوانو افغانانو سره په تماس کې شوی دی او په داسې حال کې چې دوی خپل ځانونه پیژندلی وو چې په پوره توګه نور هم خواخوږی وښیی. د مثال په توګه د بدګومانی اوړدې خاطری یې هم پرې اینبی وای. پاچا د سکواش (Squash) د لوبې میدان د اندازه ګیری هیله کړې ده او هغه ورځ لیرې نه ده چې هر ډول سپورتی لوبې به په پوره توګه اجرا شی. دا باید پر هغو خلکو باندې متمدنی اغیزې ولری چې په تیرو وختونو کې یې فزیکی فعالیتونه په سختو کارونو سر ته رسیدل. پاچا خپله یوه عمومی بیانیه کې د دغه شی د څرګندولو په واسطه خپل صمیمیت څرګند کړ چې برتانویان د جسامت له مخې ډیر ښه نژاد دی چې ما د خپل سفر په لړ کې ولیدل. اما که په دغو مجادلو کې د امپراتوری شهرت د برتانیې د نماینده ګیو لاس ته ولوېږی، نو د افغانستان د پرمختلونکی علایمو په څنګ کې به ددې ضرورت احساس شی چې د هغه د دیوالونو شاته داسې یو اعلان وځړول شی، «انترناسیونالستان یوازې عملی اقدام ته ضرورت لری.»».

بیا هم کابل ټول افغانستان نه و. هلته د کتابخانې، د هوټلونو او د کرکټ د لوبې د مقدمی خیال مفهوم درلود. د غرونو په څنګ کې له ختیو څخه په جوړو شو کورونو کې، او د

سیندونو په اوږدو کې چې هلته غنم او شولې په یوه هیله کرل کیدل، او هلته چې د رمې روزل، وږو او ماړو خلکو ترمنځ د توپیر معنی درلوده، مختلفو شیانو به خلک خوشحالول او مختلفو شیانو به غمجن کول.

د عثمان خیلو مومند خوشحال کړی شوی وو، کله چې د هغوی ځینی هلکان چې امان الله هغوی ته کابل ته ښوونځي له پاره راوستي وو، په رخصتیو کې خپلو کورونو ته لاړل او د امان الله د خور له خوا ورته د سرو زرو غاړکۍ او نورې تحفې د هغوی د میندو له پاره ورکړی شوې وې. هغوی حتی تصمیم ونیو چې خپل نور هلکان هم په ښوونځیو کې شامل کړي، اما ناراضي توب د هغوی طبیعي کار وو. هغوی په ۱۹۲۵ کال کې د مرکزي حکومت پر ضد اغتشاش کړی و او نتیجه دا شوې وه چې د امان الله د هغوی ځمکې واخیستې چې جلال آباد ته نژدې د کونړ د سیند پورې غاړه خوا کې وې او بو خوګیانی وال سړي ته چې عبدالودود نومیده، ورکړې وې. امان الله هغوی ته په هغه شا وخوا کې ځمکه ورکړه لیکن هغوی د خپلو ځمکو په خاطر خواشیني وو.

وروسته عبدالودود د ډیوید (David) پاچا په شان رویه کوله، چې که څه هم هر شی یې په نظر کې د احساس وړ معلومیده، لایې هم د بل سړي ښځه غوښتله. هغه د بحث وړ ښځه یوه کونډه وه، اما د عثمانخیلو مومنده وه او واک یې هم د هغو خپلوانو په لاس کې و، چې عبدالودود ورسره دښمني لرله. عبدالودود پر هغه کلي باندې یرغل وکړ چې دې ښځې په کې ژوند کاوه او هغه یې ونیوله او ضمناً یو مومند یې هم وواژه.

مومندو تصمیم ونیو چې نه یوازې ښځه بیرته راولي، بلکې هغه ځمکې چې له دوی څخه اخیستلې شوې وې هم بیرته تر لاسه کړي. هغوی خپل خلک راوغوښتل چې یو لښکر تشکیل کړي او اخطار یې ورکړ چې که څوک له راتګ څخه سترګې پټې کړي نو دوه غوایان او یو بوری غنم به ورڅخه جریمه واخیستل شي. ډیر ژر دوه زره وسله والو مومندو د جلال آباد په مخامخ د سیند په خوا کې سنګر ونیولو. هغوی شاه محمود ته چې د دې سیمې عسکري قوماندان و، یو لیک واستاوه، چې په کې لیکلي وو، مونږ غواړو له افغاني لښکر سره چې په کامه کې دی جنګ وکوو. په کامه کې یوه عسکري قشله وه چې څلور سوه تنه عسکر یې درلودل.

له کابل څخه حکومتي مامورین لاړل، چې له مومندو سره خبرې وکړي او جلال آباد ته یې ورته بلنه ورکړه. هغوی ونه منله چې د کونړ له سیند څخه پورې وځي. حکومتي مامورین

مجبور شول چی هغوی ته لاړ شی او د هغوی دا تهدیدونه یی اوریدل چی که حکومت د دوی غوښتنی ونه منی نو دوی به له افغان حکومت سره اړیکی وشکوی.

په آخره کی د هغوی مشرانو د جوارو فصلونو ته نظر واچول چی اوس رارسیدلی وو او ژیړ معلومیدل نو فیصله یی وکړه چی د دغو فصلونو ریبل له کسات اخیستلو څخه ډیر مهم دی او دی موافقی ته سره ورسیدل چی خبره دی یوه میاشت وځنډوی.

د مومند وغوښتنه دا وه چی عبدالودود او هغه ښځه دی دوی ته ورکړل شی چی سنگسار شی. که څه هم د هغوی اصلی شکایت دا و چی پاچا په کابل کی د چادری استعمال له منځه وړی دی او هیله لری چی د مومندو د کونډی تبنتول او د یو مومند وژل کیدل د امان الله پاچا په لمسون سرته رسیدلی دی.

د اکتوبر په ۱۰ نیته افغانی میرمنو د لومړی ځل له پاره د برتانیی په نماینده گی کی په یوه میلمستیا کی گډون وکړ. یو شمیر افغانانو تجویز ونیو چی په راتلونکی کی به دوی هم خپلی میرمنی میلمستیاگانو ته بوزی.

# پنځه ویشتم فصل

# د ۱۹۲۸ کال د اکتوبر له دویمې څخه

# د ۱۹۲۸ د نوامبر تر ۲۹ نیټې پورې

د هند حکومت د برتانیې حکومت ته ولیکل: «هغه جنبش د پاچا د ریفورمونو په واسطه منځ ته راغلی دی، موږ ته زموږ د طریقې په باره کې محتاطانه توصیه کوي او په عام نظر سره لدا ټکل شوو ریفورمونو سره تر هغه پورې زموږ د متحد کېدو مخنیوی کوي څو پوښو چې باد پر کومه خوا چلېږي.» لا دمخه د هند حکومت هغه انګلیسي نارینه و ته د اجازې د ورکولو ممانعت کاوه چې غوښتل یې افغانستان ته داخل شي. او هغه نفر چې د جشن په وخت کې داخل شوي و، د همفریز له خوا ورته توصیه شوې وه چې که چیرې ستونزې په هغه ځای کې موجودې وي، نو ژر دې هغه ځای ترک کړي.

دا تلګرام د اکتوبر په دویمه نیټه، دمخه تر دې چې امان الله حتی د خپلو هغو ریفورمونو سپړنه سرته رسولې وای، استول شوی و. د ۱۹۲۸ کال اکتوبر د امان الله لپاره د اوښتون میاشت وه. هغه غوښتل چې دغه نیټه د یو نوي افغانستان لپاره د هغه د ابي چاپ (Blue Print) [1] او تر یوې لنډې وقفې وروسته د هغه د اجرا په لور د پیل کولو ترمنځ یو معبر وي.

---

۱- د عکاسۍ هغه ډول چاپ چې د کاغذ مخ یې آبي رنګ ولري او عکس په کې سپین وي چې دا په ۱۸۲٤ کال کې اختراع شو. (فرهنګ کامل انګلیسي - فارسي. مترجم)

له افغانستان څخه د اورګاډي د پټلیو تیرول هغسې یوه پروژه وه چې د اجرا کیدو په لور روانه وه، او اوس امان الله په دې باندې غږیده چې چمن له هند سره او کشک له روسیې سره ونښلوي، او هم په دې باندې غږیده چې له لویدیزې اروپا څخه کابل ته مال او مسافرین دې په ځوارلسو ورځو کې ورسیږي. د ترکیې سفیر همفریز ته وویل چې که د اورګاډي دا ارتباطات ترسره شي، نو نړیوال اهمیت به ولري او د منځنۍ ختیځ پر ستراتیژۍ او اقتصاد باندې به ضرور اغیزه ولري.

برتانویانو د ټولو ستراتیژیکي پرابلمونو په باره پوهیدل. د اورګاډي دغسې ارتباط به له هند څخه د افغانستان موقف، چې د یو بې طرف هیواد په توګه چې د دوو هیوادونو په منځ کې موقعیت درلود، له منځه یوسي. هند به له خطر سره مخامخ شي.

امان الله له یوې فرانسوي او یوې جرمنۍ ډلې سره معامله کوله، چې یوه هم له خپل حکومت سره تړلې نه وو. هغه د میشل کلمنیسو (Michel Clemenceau) فرانسوي ډلې ته ویلي وو، چې د کابل او کندهار په لین کې دې کار باید همزمان پیل شي، چې دا به د برتانویانو په ګټه وي او هم دې د نوي چمن او کشک تر منځ کار پیل شي چې برتانویانو به د هغه زیات مخنیوی کاوه. هغه لنز او د هغه کمپنۍ ته چې جرمنان وو، وویل چې زه غواړم د اورګاډي پټلي په ټول کې برتانوي اورګاډي له پټلیو سره ونښلول شي، چې هلته پټلي یوازې دوه نیم فوټه سور لري.

د دوو دولتونو له جملې څخه چې د افغانستان د اورګاډي له لارو سره په رښتیا سره علاقه درلوده، روسانو له جرمنانو سره خبرې کړې وې او برتانویانو به په هر ګام کې له فرانسویانو سره مشوره کوله. د برتانویانو علاقه دومره خیر رسوونکې علاقه نه وه، هغسې چې ځوان کلمنیسو چې د ماشوم په شان یې مخ درلود، فکر کاوه، لیکن پخوانۍ معلوماتو ته یوه لاره وه چې غوښتل یې له هغه څخه کار واخلي او د هغه هدف شنډ کړي. په دغه ټول وخت کې همفریز داسې لیکلي دي: «موږ باید په دې مرحله کې نه یو بهرنۍ کان لټونکي وهڅوو او نه د هغه د لارې خنډ وګرځو. لیکن که ضرور وي نو د امکان تر حده پورې باید له سیاسي لارې فشار راوړو څو د اورګاډي د هغه پټلي د غزولو کار وځنډوو، چې د هند امنیت ته خطر پیښوي.» هغه پوهیدل څنګه چې په افغانستان کې ولیدل شو، هند به دې ته مجبور شي چې نور پوځونه هم سرحد ته وخوځوي.

وروسته، د اکتوبر د میاشتی د دوهمی اوونی په موده کی، ځوان کلمنیسو پر برتانیی باندی خپل ځینی فشارونه واچول. هغه په داسی حال کی چی خپلی پلټنی بشپړی کړی وی، یوه مرکه یی کړی وه، چی همفریز د هغه راپور ورکړ. «هغه په دی ټرګندونو باندی اصرار کوی چی امان الله تصمیم لری چی اورګاډی ولری او دا چی د افغانستان اقتصاد او د موادو پرمختګ او وده په داسی وضعه کی قرار لری چی د اورګاډی تعمیری کار دی حتماً باید مخکی له وخته سرته ورسیږی. تر دی شرایطو لاندی، (هغه فکر کوی) چی د برتانیی حکومت دی باید اوس د هغه پروژه د امکان تر حده حمایه کړی چی په دی کی د برتانیی ګټه هم مضمنه ده.»

د کلمنیسو په پلان کی، د اورګاډی د پټلی د سور اندازه څلور فوټه او اته نیم انچه وه، چی په اروپا کی مروجه وه. دا کرښه به په خیبر کی له برتانوی کرښی سره نښتله، چی د هند د پټلی له اندازی څخه چی پنځه فوټه او شپږ انچه او هم د روسیی د پټلی له اندازی څخه چی پنځه فوټه سور یی درلود، تنګه وه. ملت پالنه دا یی هرچاته غیر ممکن ګرځولی و چی بی له دی چی اورګاډی بدل نه کړی، له اروپا څخه ختیځ ته د یوی لاری په واسطه هم تلی نه شول. امان الله ټینګار وکړ چی پټلی دی تر هرات او کشکه پوری ورسیږی، چی کلمنیسو فکر کاوه برتانویان باید داشی ومنی. د کوم شی خوب چی د برتانیی نظامیانو لیدلی وو، د هغه پټلی خوب و چی کابل یی له خیبر او کندهار یی له چمن سره نښلاوه، چی په دی توګه به یی افغانستان بوازی له هند سره نښلول او داخلی ارتباطات به ورته نه ورکاوه، چی په هغه باندی بحث وشی.

هغه ملاتړ چی کلمنیسو یی غوښتنه کوله مالی ملاتړ و. او همفریز موضوع د انګلستان له حکومت سره منطقی مطرح کړه، چی د کلمنیسو او د هغه د اورګاډی په هکله داسی فیصله وکړه: «په هیواد کی نه د ساختمانی چارو له پاره پیسی شته او نه په دی مورد کی کوم تضمین شته له هند سره د بهرنیانو له خوا جوړ شوی د اورګاډی د پټلی نښلول به زیات ګران ولویږی او که د هند د اورګاډی د پټلیو د موسسی له خوا جوړیږی هغه به دومره ګران تمام نه شی، د اورګاډی هیڅ کومه پروژه، چی د بهرنیانو له خوا جوړه شوی وی، پر سرمایی باندی به کومه ګټه ونه لری او زیات وضعه شوی محصول به اورګاډی غیر مشهور وګرځوی. د دغو دوو وروستیو دلیلونو په خاطر، او د لیکه کولو په سبب، له اوسنی پروژی څخه دی د برتانیی له مرستو څخه باید صرف نظر وشی. زموږ د سیاسی او مالی ملاتړ نه په غیر دا ناشونی ده چی

هر بهرنی به په هیواد کې زیاته سرمایه گذاري وکړي. د بهرنی سرمایې د نه ترلاسه کولو په وجه به پاچا موږ ته واړوي. »

او د خوښي په هغه ورځ د کلمنیسو د جاه طلبي پلان ناکامه شي او کله چې امان الله د جرمنانو ډېر زیات عصري اما لږ گټور پلان ونه مني، همفریز توقع وکړه چې امان الله برتانویانو ته غوښتنلیک وړاندې کړي، او له هند څخه د اورگاډي د تیرولو په مناسبت به د روسی له اورگاډي څخه تیر شي.

ساده کلمنیسو برتانیې ته په داسې ویلو ادامه ورکړه: « پاچا په مؤثق ډول غواړي چې اورگاډي په افغانستان کې رواج ومومي. » همدا راز هغه د امان الله د وزیرانو د بدې اخیستلو په باره کې خبرې وکړې. د برتانیې استخبارات داسې لیکلي دي: « امان الله پاچا پر هغه باندې تاثیر اچولی دی. داسې ښکاري چې پاچا به په محرمانه توگه ویلي وي چې بوازي دی او پر خپلو وزیرانو باندې اعتماد نه شي کولی چې په صداقت سره کوم شی اجرا کړي. »

د هوایي چارو په مورد کې برتانیې له همداسې حالت سره مخامخ شو. د جرمنی د جنکرز (Jnukers) له شرکت سره چې د تهران - کابل هوایي چارې یې پلان کړې وې، او روسانو په داسې حال کې چې له ترمز څخه په میاشت کې دوه ځلې د هوایي پوستې په مورد کې کوم قرارداد‌ونه درلودل (که څه هم الوتکې د تقسیم اوقات له مخې رفتار ونه کړي)، هغه بواځیني لاره چې لږ تر لږه د ژمنې له مخې یې الوتکې په خدمت کې نه وې، د کابل - هند لاره وه. ددې له پاره برتانویانو هم پلانونه درلودل. « افغانانو دې د ټول ربښتیني کنټرول څخه وایستل شي، حال دا چې د الوتکو د وظیفې د سرته رسولو په مورد کې ورته د پوره کریډت د درلودلو اجازه شوې وه ... په پیل کې، الوتکې چې کابل ته ځي، باید په همغه ورځ دې بیرته راشي. که نه خو زموږ پرسونل به مجبور د کابل څخه د باندې په کوم ځای کې ژوند وکړي، او دا به مشکل وي چې افغان حکومت منع کړې شي چې له هغو سره چلند ونه کړي په دې چې دوی د افغانانو د حکومت استخدام شوی خلک وو. که تش الوتکې کابل ته غوښتل شوې وای نو افغان حکومت به ضرور دا شی منلی وای ... ددې له پاره چې هوایي سیستم تشویق شوی وي ... په پیل کې دې کرایه باید کمه شوې وي. »

دلته، هم باید هغه پلان په «تدبیر سره ترسره شی» چی د امان الله د هوایی سرویس د غوښتلو په مناسبت طرحه شوی و.

په افغانستان کی شل الوتکی وی، لیکن نیمایی یی یا په موقت توگه یا په قطعی توگه له کاره وتلی وی. یو یی هغه الوتکه وه چی افغانانو د برتانیی د مشوری په مقابل کی د خوست د شورش په وخت کی رانیولی وه، کله چی هره الوتکه په بی حده اندازه د غوښتنی وړ وه. د ار. ای. اف. (R.A.F.) پخوانی منصبدار چی مرفای (Murphy) نومیده، هغه یی خرڅه کړی وه، او دری نوری چی برتانویانو تر هغه وروسته ورته د «ښاغلی مرفای الوتکی» نسبت ورکړ.

همفریز په ۱۹۲۵ کال کی داسی لیکلی و: «د هغو الوتکو تاریخچه چی ښاغلی مرفای پر افغان حکومت باندی خرڅی کړی وی په لاندی ډول ده: «دا د هغو استول شوو مالونو جزء دی چی د اعلیحضرت د حکومت له خوا په ۱۹۲۰ کال کی هند ته د تحفی په توگه ورکړی شوی وی، او وروسته د ام. سی. (M.C.) د هوانوردی اتحادیی ته په وړیا توگه تسلیم کړی شوی وی. کله چی دا الوتکی هند ته راغلی ماشینونه یی نوی نه وو او که هرڅو معلومات درست وی، له هغه وخت راهیسی په کراچی کی په یو خلاص ځای کی څلور کاله وساتلی شوی چی بی له کوم شکه د دی مودی په اوږدو کی ډیری زیاتی خرابی شوی وی ... داسی ویل کیږی چی دا الوتکی زړی دی او امکان نه لری چی د افغانستان له پاره به بقا ولری ... په دی توگه زما په نظر، چی یقین لرم د هغو کسانو له خوا به تایید شی، چی د افغانستان د هوانوردی په وضعه پوه دی، الوتکی خو په اول له پیښور څخه کابل ته راونه رسیږی او که چیری ورسیږی، نو بیخی به له کاره وتلی وی. »

الوتکی واخیستلی شوی او یوه یی کابل ته راغله. نوری یی په پیښور کی پرېښودلی شوی، چی په هغه ځای کی د یو توفان په واسطه نوری هم خرابی شوی. د امان الله د پلار یو شکایت تر اوسه پوری هم کیده چی غربیانو هڅه وکړه چی له افغانانو څخه گټه واخلی. همدا راز د پولیند د رانیول شوو توپکونو موضوع هم مطرح وه چی یو متخصص ورته داسی خطاب وکړ، «یوازی د جنوبی امریکی د داړه مارانو له پاره مناسب دی.» هغه هم نه وو را رسیدلی.

بیا هم، برتانویانو احساس وکړ چی د گټی اخیستنی هڅه په بل جهت شوی وه او وروسته تر هغه غلام صدیق، چی تر اوسه پوری د بهرنیانو چارو د وزارت کفیل و، پیشنهاد وکړ چی برتانیی او افغانستان نوی معاهده لاسلیک کړی، په دی باب همفریز داسی لیکلی دی:

«غلام صدیق او د هغه ملګری دغه (په جنس سره سخاوتمندانه مرستی ته) خوښ نه دی ځکه هغوی ته دا زمینه برابریږی چی ځانونه د دولت له بودجی څخه ماړه کړی، او پاچا په خپله په دی کار ترجیح ورکړی چی نقدی مرسته اداره کړی او په خپلی پوهی سره به خپل استخدام شوی کسان جلب کړی، لیکن له هغه اختلاف څخه هم سترګی نه شی پټیدلی، چی محمود طرزی یو وخت ماته په یو حساس وخت کی د خپلو همکارانو په باب کړی وی، چی که د برتانیی حکومت د کابل ناوی له سرو زرو څخه هم ډک کړی، د هیواد فورماسیونونه به وربانَدی اصلاح نه شی.

«افغانان د طبیعت او عادت له مخی د ډیرو زیاتو سرو زرو د درلودلو علاقه لری بی له دی چی ور څخه کومه ګټه واخلی. کوم شی چی په هغوی کی د هغه کمښت لیدل کیږی، هغه دا دی چی نه پوهیږی خپله دارایی څنګه په کار واچوی او په ښه لاره یی ولګوی. زه به د دغو کمبود یو د توضیح په خاطر دوه مثالونه رانقل کړم. دری کاله د مخه نژدی د یو میل په اندازه سرک ډکی ته نژدی کربړ واچول شو او جوړ شو چی افغان حکومت ته ۵۰۰۰۰ سترلینګ پونډ تمام شو، او پروسږ کال پاچا له خپل جیب څخه ددی پیسو دوه چنده تادیه کړی چی په کابل کی د سمنتو فابریکه جوړه شی چی هیڅکله ور څخه ساده یو اونی سمنت هم لاس ته رانه غی.»

بیا هم د ۱۹۲۸ کال اکتوبر، د امید میاشت وه. امان الله وغوښتل چی د ۷۵۰۰۰ سترلنګ پونډو په ارزښت له انګلستان څخه زراعتی سامان الات را وارد کړی، چی دا پیسی د یو میلیون سترلنګ پونډو له قرض څخه وی چی امان الله به دری پر څلورمه برخه د سامان الاتو په رانیولو ولګوی چی په انګلیسی بانکوالاو د یو ټکی په غوښتلو دلچسپی لرله چی امان الله د هغه غوښتنی په وړاندی کولو ډیر زیات تکلیف درلود، هغه امنیت و. امان الله په نظر کی درلودل چی له مزار شریف څخه کابل ته د قره قل پسونو په راوړلو سره په کابل کی د قره قل محصولاتو ته انکشاف ورکوي. د قره قل پوستکی د هیواد له ډیرومهمو صادراتی اقلامو څخه شمیرل کیدل. د اورلګیت جوړولو فابریکه د ښځو په استخدام کولو باندی پیل وکړ.

غلام صدیق همفریز ته ویلی وو چی افغانستان د خپل پیاوړی کیدو او حفاظت په خاطر تر هر څه زیات جنګی سامان الاتو ته اړتیا لری.

امان الله په دې موضوع باندې خبرې کولې چې د برتانيې له يو شرکت څخه پنځوس زره ټوپک او پنځوس مليونه کارتوس واخلي او هم د پنځو ټانکونو، دوې صحرايي بطريې، يوه غرنۍ بطريه او د مهماتو د دوو واګونونو په باب خبرې کولې چې د انګليسي وسلې په علاوه، فرانس ته يې فرمايش ورکړی و. د هغه په عسکري چارو کې لويه ستونزه دا وه چې د يو ځه مودې له پاره د دغو ټولو شيانو د راچلولو له پاره ترانسپورتي وسيلې موجودې نه وې، ځکه چې امان الله په خپلې خوش باورۍ سره ځينې وسيلې لرې کړې وې او عوض يې لا نه وې رسيدلې.

د کابل په سرکونو او بازارونو کې ليدل کيده چې د ملي لباس بنديز په بريالیتوب سره تر اجرا لاندې و او دلته د امان الله اوامر دومره په کلکه سره اجرا کيدل چې حتى د بخارا پاچا، چې په يو وخت کې د ټرې له پرقدرتو کسانو څخه و، د پوليس له خوا ودرول شو او چون پټکی يې په سر کړی و، جريمه شو. ډېرې ښځې مخ لوڅې ګرځيدې. ثريا د دربار مجلس داير کړ چې د ښځو د نوي حق د تامينولو په باب څه واوري. د هغو ميړونو په باب چې خپلو ښځو ته يې کافي خوراک نه ورکاوه، هغوی يې وهلي او ټکولي او طلاقولي يې. اناثو خفه پوليسو ته هم لارښوونه شوې وه چې د کابل د ناريته و په منځ کې حتى په خپله د ښځو په منځ کې هم د ارتجاعي حرکتونو څارنه وکړي. زرو ښځو ته داسې اجازه ورکړې شوې وه چې د خلکو کورونو ته ننوزي او وګوري چې له ښځو سره ښه سلوک کيږي او که نه. يو حقوقي منصبدار هيڅکله دا حق نه درلود چې د يو افغان کور ته بې له اجازې ننوزي.

ټول دغه شيان امان الله د هغه ماسترپلان جز وو چې امان الله لا هم د هغه د انکشاف ورکولو په منظور په خپل وروکي دفتر کې چې د بهرنيو چارو پ وزارت کې و، کار کاوه. امان الله ورځنيو اداري چارو ته لا ګرځيدلی نه و. هغه له ايندې څخه بيل کړی شوی و.

شينواري، د پښتنو له قبيلو څخه يوه قبيله ده، چې په کيسو کې د اسرائيلو د ورکې قبيلې په څير معرفي شوې ده. په هغه ساحه کې ژوند کوي، چې د ننګرهار په نامه سره يادېږي او د جلال آباد په جنوب ختيځ کې پرته ده. د هغوی د خاورې جنوبي برخه د افغانستان او هند ترمنځ سرحد تشکيلوي، چې دا د غرونو هغه لړۍ ده چې د کابل د شاوخوا غرونو څخه د دوو زرو ميلو په مسافه د ختيځ په لور امتداد لري، چې د اندوس (Indus) تر سيند پورې ادامه لري. دې لړۍ ته سپين غر ويل کيږي، ډېره لوړه څوکه يې ۱۵۶۲۰ فوټه د بحر له سطحې څخه جګوالی لري او د سمندر له سطحې څخه ډېر ته ټيټه ارتفاع يې له ۱۲۰۰۰ فوټو څخه تر

۱۴۰۰۰ فوټو پورې رسیږي، یوازې د اوړي په څو میاشتو کې له لیرې واټن څخه د دغه غره په لوړو څوکو واوره نه لیدله کیږي. د سپین غر له ارتفاعاتو څخه نورې څانگې او ښاخونه د افغانستان او هند په لور تللې دي. دا ښاخ او پنجې اوږدې جگې غوندې دي، چې د غره له لمن څخه پیل کیږي او په تدریج سره یې ارتفاع کیږي. د دغو جگو غونډیو په شمالي برخو کې شینواري اوسیږي چې د اوسیدو د سیمې ختیځه برخه یې هند ته ډیره نژدې ده.

هغوی د دوو نریو ترمنځ ژوند کوي. د افغاني سپین غر لوړې څوکې چې مخ یې د شمال په لور دی او د اوړي تر نیمایي پورې به یې واوري نه ویلې کیږي، او د هند د خوا لیرې لوړې څوک یې، خړ رنگه په نظر راځي او هم د جلال آباد د شاوخوا په حاصل خیزه دره کې چې د مندتو او چارمغزو میوه لرونکي ونې په کې موجودې دي او د شولو د کښت له امله تکه شنه معلومیږي. هغوی د دغو جگو غونډیو له درو څخه لیدل چې کاروانونه د هند خواته ځي او راځي او له هغې لوري څخه به د بیرته راتلو په وخت کې ښه ښه شیان له ځان سره راوړي. دوی به په خپل ژوند کې کله ماړه او کله ناداره وو، چې دا یو ناثابت حالتو.

د دغو غرونو په لمن کې چې لوړې څوکې یې تقریباً تل له واورو څخه ډکې وي، څرځایونه موجود دي چې په مناسب موسم کې به په کې رمې پیول کیږي، او د صحرایي زیتون او د اکاسي د ونو په علاوه د جلغوزې ونې هم په کې شته، چې له جنغوزو څخه یې استفاده کیږي. په دې تو گه شینواري خپله توښه درلودله. لیکن دا خلک مشکوک، مضر او د ستونزو په منځ ته راوړلو کې یې دومره شهرت درلود، چې د سپین غر د جنوبي برخې برتانویانو پر هغوی باندې یو لنډ شعر جوړ کړی و او اوریدو کې یې خبرول چې پر هغوی باندې اعتبار ونه کړي:

«... دغه درې: مار، بدعمل او شینواری. »

هره شینواري کورنۍ به د دغو جگو غونډیو په منځ کې یوه ساحه وټاکله او ځان ته به یې په کې کلا جوړه کړه، چې په هر گوټ کې یې برجونه درلودل. پښتانه معمولاً داسې کلاوې ځان ته جوړوې چې له دغو ځایونو څخه به هغوی تل پر هغو کاروانونو باندې حملې کولې چې له هوارو سیمو څخه تیریدل، وروسته تر هغه به پورته ختل او په جگو ځایونو کې به ځانونه پټول او په دې باندې پوهیدل چې هغسې چې دا سیمه د انسان د ژوند له پاره له ستونزو یوه ډکه سیمه ده، د هغو کسانو له پاره هم له ستونزو ډکه منطقه ده چې په دې پسې دي.

اوس په اکتوبر کې د شینوارو په باب اوازې خپرې شوې، یوه اوازه په کې دا وه چې

شینواري غواړي پر هغو افغاني نجونو باندې حمله وکړي چې له دې لارې څخه تیریږي او ترکیبې ته ځي. دا پیښه ونه شوه خو له شینوارو څخه د دغسې یو عمل د ترسره کیدلو توقع کیدله. د سنګوخیلو شینواري چې د هر افغان په شان خاطري درلودې، تر اوسه پورې د اردلې او داود شاه د چال چلند کرکه کوله او فکر یې کاوه چې دا عمل د مسلمانانو د پناه ورکولو پرنسیپونو ته خیانت دی (هغوی نه پوهېدل چې د غیرو مسلمانو هیوادونو له پرنسیپونو سره هم خیانت دی.)

اوس هغوی د حکومت په دې کار باندې ډیر خپه وو چې د یو شمیر نجونو مخونه یې ولیدل، چې د ترکیبې په لور روانې وې. د هغوی خپلې ښځې هم مخونه نه پټول، خو له نامحرمو کسانو سره به په دقت او احتیاط سره خبرې کولې، لیکن حقیقت خبره دا وه چې هغوی له خپلو کورونو څخه بل چیرې نه تلې، او په کورو کې به وې. لیکن په دې لاره کې د هغو نجونو لوڅ مخونه د یوې معضلې په توګه پاته شو. هغو د سنګرخیل له یو ملک سره مرسته وکړه چې افضل نومیده او د خوست په شورش کې د امان الله له پاره جنګیده، مګر اوس یې د نورو شینانو په جمله کې وویل چې دا انجونې دې له هیواد څخه د باندې لاړې نه شي، بلکې هغه قابلې دي ورته راوغوښتلې شي چې دوی همدلته په هیواد کې ورو زي. هغوی له یو بل ملک سره مرسته وکړه چې علم خان نومیده او جنګ ته د شینوارو په راپورته کولو کې اوږده سابقه درلوده. دی د امان الله د پلار په دوره کې لاس په کار شوی وو چې هدف یې په هغه وخت کې برتانویان وو، او په نتیجه کې د عسکرې له رتبې څخه محروم شوی و، د هغه مقدس جنګ د امان الله د ورور، نصرالله له خوا راپارول شوی و چې د افغانستان د امیر په توګه دی د هغه کلکه طرفداري کوله، علم خان له هغې کورنۍ سره دوستي لرله چې نادر یې مشر و.

هغه ملا چې شینواري ورڅخه ډیر زیات مذهبي قدرت تر لاسه کاوه، اعلان یې وکړ چې غواړي هند ته لاړ شي او هلته ژوند وکړي، د محل مامورینو هغه وځنډاوه، هغوی ته امر شوی و چې ملایان دې له تګ څخه منع کړي، په دې چې یو تن چې تللې، د ډیرو ستونزو باعث ګرځیدلی و.

امان الله په کابل کې ملایانو او ټول افغانستان ته څرګنده کړه چې د هیواد د اداري په برخه کې د هغوی اعتراضونه یې منلي دي، هغه د قاضي عبدالرحمن بیکتوتي، د هغه د کورنۍ دوو تنو او د یو بل ملا د اعدام جزا عملي کړه چې د ده پر ضد توطئه کې یې لاس درلود.

کابلیان په دی مورد کی په آزاده توګه ډیر لږ غږیدل، لیکن په شخصي مجلسونو کی په پس پس سره غږیدل، او دی ته به حیران پاته کیدل چی څنګه د شوربازار د حضرت صاحب ګل آقا، د خوشی کیدو ضمانت کولی شی. ګل آقا حضرت صاحب تر ټولو نورو روحانیونو یو ستر مذهبی قدرت و.

په دغه مهمه مسئله کی چی د کابل د مخورو خلکو له خوا مطرح شوی و، کوچیانو هم برخه واخیستله، چی په خپلو بار شویو اوښانو پسی به د غرونو او درو په منځ کی د هند په لور روانیدل او د شپی له خوا به یی خپلی توری تیتی کیږدی درولی او سپو به یی تر سهاره پوری د دوی پیره داری کوله او پر نابلدو کسانو باندی به یی حملی کولی. دغه کوچیان به په متداومه توګه د حضرت صاحب ګل اقا، د بندی کیدو پوښتنی کولی.

امان الله له هر وخت نه زیات په نا امیدی سره هڅه کوله چی شیراغا بیرته د افغانستان ته د روغی جوړی او پخلا کولو له پاره راولی، د بمبیی افغانی قونسل نماینده ګان یی واستول، یوه افغانی خصوصی نماینده لاهور ته لاړه. لیکن په عین وخت کی به د افغانستان ملایان شیراغا ته پیغامونه استول او خبر به یی ورته کاوه، چی ځان دی لیری وساتی. هغوی ویریدل چی امان الله به هغه د تباهی په لور ولمسوی.

نور ملایان هم ونیول شول. د هیواد د موجوده پیچلی حساسیتونو د تحریفولو له پاره افواهات روان وو. د اکتوبر په ۱۵ نیټه دا اوازه ولویدله چی د کندهار په فضا کی یوه اجنبی سره الوتکه ولیدله شوه، لیکن په هغه ساحه کی نه د برتانوی الوتکی هیڅ کوم شی ولیدل شو نه کومه بله سره الوتکه او نه د نړی کوم بل دول الوتکه.

د هند د کورمی په وادی کی، د اکتوبر د میاشتی په دریو اوونیوو کی نه قتله وشو. د شمال لویدیځ ایالت په استخباراتی یادداشت کی داسی ویل شوی وو، «د دغو زیاتو قتلونو کوم خاص دلیل برملاکیدی نه شی، لیکن دا د غور وړ خبره ده چی په دغه پیښه کی لږ تر لږه شپږ تنه وژل شوی کسان یا افغانی مهاجرین او یا د قبایلی سیمی خلک وو.»

ځینی کوچیان چی د هند خواته د روانیدو په حال کی و، د سلیمانخیل غلزی په قلمرو کی به لالهانده ګرځیدل او کاروانونه به یی تالا کیدل. هغوی به د ګردیز مقاماتو ته احتجاج وکړ او ورته به ویل کیده چی تاسو هم کولی شی خپل انتقام واخلی. د سلیمانخیلو ملایان به هم هند ته تلل، او هیڅ یو مامور د هغوی مخه نه شوه نیولی، دوی به د بندر د سیمی قبایلیانو ته ویل

چی امان الله د شریعت له مقدس اصولو څخه مخالفت کړی دی او هغوی چی په ۱۹۱۹ کال کی د هغه له پاره جنګیدل، که څه هم د هغه رعیت نه دی، باید خپل مخالفت دی په سرحدی سیمه کی له همدا اوس څخه د هغه پر ضد بیا پیل کړی. د سرحد د جنوبی برخی په یوه لیری سیمه کی د چمن او کندهار ترمنځ په لاره کی دری لاری لوټ او موټروانان یی ووژل شول. او والی چی نوی مقرر شوی و او په یو جومات کی یی خلکو ته د امان الله ښیګنی بیانول دری تنه یی ګرفتار کړل چی تر اشتباه لاندی و او هغوی یی په توپ کی والوزول.

د نارامو شینوارو په لویدیځ کی د عبدالودود کلا محاصره شوه. عبدالودود چی یو خوګیانی و، د مومندو کونډه یی تښتولی وه. د عبدالودود په کلا کی تقریباً سل کورنی داسی بندی پاتی شوی لکه چی مورک په سوری کی پاته کیږی او د پیشو له خوا یی څارنه کیږی. د شینوارو د دری په اخوا، مومندو، د عبدالودود د کلا څارنه کوله، چی دمخه تر دی چی دوی آماده شی له هغه سره معامله وکړی، ونه تښتی. هغوی غوړ وکړ چی د جوارو د فصل د اخیستو وروسته به څه وکړی.

په جون کی، پوازی د امان الله تر بیرته راتلو وروسته، برتانویانو د سرحد پر غیر متوقعو ناکراریو باندی تبصره کړی وه، د ستونزو کومه اوازه چی لویدلی وه، له هغی اندازی څخه لږه وه چی دوی یی توقع کوله. اوس هغوی شاته نظر واچاوه او وی ویل چی د جون خاموشی غیر طبیعی وه، د هغه په شان چی ناڅاپی ستره پیښه په منځ کی ولری. هغوی په اکتوبر کی زیات څیرک وو.

کله چی نوامبر شو، د سرحد په اوږدو کی دا پروپاګنده تیت شوه چی ملکه ثریا وژل شوی ده او افغانانو د امان الله پر ضد ددی په خاطر راپورته شوی دی چی هغه د ملایانو پر ضد رویه کوله.

د نوامبر په پیل کی، امان الله د تګاب ملا ته یو خبر واستاوه، چی کابل ته راشی. دا ملا دومره زوړ و چی ان د امان الله د پلار او نیکه په وخت کی یو بانفوذه سړی و. هغه په ۱۹۱۹ کال کی د امان الله له پاره فعالیت کاوه او خلک یی د برتانویانو پر ضد جهاد ته رابلل. دی د هغو دریو ملایانو له جملی څخه و چی امان الله ورته د فخر المشایخ لقب ورکړی و (دوه نور ملایان د شوربازار حضرتان وو). اوس د تګاب ملا خپله ټوله انرژی د امان الله پر ضد مقدس جنګ ته را اړولی وه.

تګاب، چې په کې نورالمشايخ د خدای د کلام وعظ کاوه، د پنجشير د سیند د ښاخ يوه ښکلې دره ده. دا سيند د جنوب په لور بهيږي او په سروبي کې، چې د کابل او جلال آباد ترمنځ موقعيت لري، د کابل له سيند سره يوځای کيږي. ډير پخوا دا دره د کاروانونو مهمه لاره وه، اوس دا مهمه لاره بلې خوا ته تللې وه، ليکن دا لاره د جلال آباد او کوهدامن ترمنځ يوه ارتباطي وسيله وه. جلال آباد ددې لارې په يو سر او کوهدامن چې په شمال لويديځ کې پروت و د لارې په بل سر کې واقعيت درلود. ددې ځای ملا په ننګرهار کې هم شهرت درلود چې د شينوارو تاټوبی و.

تګاب، د عنايت الله د مور وطن و. د تګاب خلکو چې توقع يې کوله چې عنايت الله چې د دوی اولاد و، پاچا شي، د امان الله برې د نااميدې سبب شوی وو چې دا نااميدي د عنايت الله له نااميدې څخه زياته وه. عنايت الله په دې باندې راضي و چې په کابل کې د لالا يا مشر ورور په توګه معرفي وي او خوښ و چې يې له کوم مسؤوليت څخه ژوند وکړي. په ۱۹۲۰ کال کې يو کندک له عسکر چې عنايت الله په خپله دوره کې د وارث مطلق په توګه تشکيل کړی و، د هغه په غياب کې يوه ناکامه کودتا وکړه.

د تګاب د ملا نوم د هغو ملايانو په لست کې وی چې د امان الله پر ضد يې دسيسه کوله او دا لست د يو راپور چې له اخوا د تيرا د خانګي بازار په چوک کې چې د ملا محمود اخونزاده په شاوخوا کې و، د برتانويانو لاس ته ورغی. افغان حکومت چې په خانګي بازار کې د برتانويانو د فعاليتونو په بدګومانيو کې شريک و، خپل نماينده ګان يې په هغه ځای کې درلودل چې بيداره دې واوسي. په خپله ملا محمود اخونزاده له خپلو دوو شخصي موضوعاتو سره او هم د خپلو شيعه ګاونډيانو سره د مخه په معضله کې و، لومړی د هغه د خپلې په زړه پورې ميرمنې وير کاوه او دوه مياشتې وروسته د هغې د جانشينۍ ګرځولو په خاطر د سياست له پوله ګټيور واده وکړ. ليکن دواړو حکومتونو ته هغه د دسيسو د محراق يو مناسب ټکی څرګند شوی و.

کله چې د تګاب ملا د پاچا له خوا کابل ته غوښتل شوی و، هغه له راتګ څخه انکار وکړ. امان الله د پنجشير د درې په لور يو ټولې عسکر وليږل چې په زور يې راولي. څنګه چې سپاهيان هلته ورسيدل، له مورچلونو څخه ورباندې ډزې وشوې، او د مخه تر دې چې دغه وسله

وال کسان چی ملابی حمایه کاوه، په دی باندی بریالی شی چی هغوی بیرته د کابل خواته وشړی، څو تنه تېپیان شول.

دغه مورچل د سقاو د زوی له خوا اداره کیده.

یوازنی قدرت چی د سقاو زوی د خپل توپک په علاوه د ورته احترام قایل و، هغه د مذهبی سیمو له اسراره ډک قدرت و. د هغو په غاړه کی یو تعویذ و، چی د څرمنو پوښ یی درلود او یو ملا ورته ورکړی و، چی په کی د قرآن شریف یو آیت لیکل شوی و. هغه ته دا تعویذ یوه ډاډ گیرنه وه او په کی لیکل شوی وو خیر دی چی له قانونی کسانو سره دی بیرحمانه رویه کړی ده، د خدای نظریه پر تا باندی وی. ډیرو افغانانو به دا ډول تعویذونه غاړی ته اچول. په خلکو کی داسی ویل کیده چی د سقاو زوی دا تعویذ په هغه وخت کی د خیبر د دری له یو ملا څخه د سلیمان په سرای کی اخیستی وه چی په پیښور کی یی سماوارچی گری کوله او هم دا چی دی توقع کوی چی د دی ملا له مړینی وروسته یوازی دوی میاشتی ژوند وکړی. هرچا چی ورته د نظربندی تعویذ ورکړی و، او د کوهدامن د باندیتی له وروستی حیلی څخه وروسته په هر ځای کی چی دی و، تر اوسه پوری زخمی شوی نه و او په تگاب کی بریالی و، کله چی دی د ملا د حمایی په خاطر له هغه ځای څخه د حکومت په مقابل کی دفاع کوله.

یو څو اوونی وروسته به د هند د شمال لویدیځ د سرحدی ایالت په استخباریه کی داسی ویل کیده: «په تگاب کی د سختی غلا راپور ورکړی شوی دی... ویل کیږی چی د تگاب ملا په دغو چارو کی لاس لری، او د دی لپاره چی له بدگومانی څخه ځان خلاص کړی وی، کوهدامن ته تللی دی.»

او د برتانیی نظامی آتشی په خپل یادداشت کی لیکلی دی، «اوریدل کیږی چی د سقاو زوی څلوره سوه تنه کسان را زول کړی او د تگاب د ملا له لوی قوی سره یوځای کړی دی.»

د نوامبر د میاشتی په ۱۳ پر ۱٤ شپه کی د سقاو زوی په کوهدامن کی د افغانی عسکرو له یوی بلی تولی سره مخامخ شو. هغه په چاریکار کی په دومره خطرناک چور او چپاول لاس پوری کړی و چی امان الله نا امیده شوی و، چی د هغه مخنیوی وکړی. عسکرو هغه کور پیدا کړ چی هغه په کی اوسیده، هغوی دا کور محاصره کړ.

ناڅاپه د کور په مینځ کی اور ولگید او بیا له کړکیو څخه دباندی یی شغلی ووهلی، د لوگی څپی پورته شوی او کور یی احاطه کړ. کله چی سپاهیان د لوگی په منځ کی تیوخیدل او

خپلې سترګې يې موښل، د سقاو زوی او د هغه ملګرو له يو سوري ځخه چې: کور په باندنی دیوال کې و، ځانونه وایستل او غره ته یې پناه يوړله. دا د سقاو زوی و چې دی کور ته یی اور ورته کړی و.

په هغه شپه د سنګوخیل شینواری هم مصروف و. دد بلی ورځی په ماسپښین باندی هغوی وکولی شول چې په سرحد کی د بتبی کوټ او ډکی ترمنځ ترافیک ګډ وډ کړی. وروسته له خپلو ټوپکو سره دا چین پر ملکی دفترونو باندی حمله وکړه. ددی ځای مسؤول نفر هڅه کوله چې وتښتی، مګر خلکو هغه ونیو او بندی یی کړ. دا خبر جلال آباد ته راورسید، او د جلال آباد حاکم د تیلفون په ذریعه امان الله ته اطلاع ورکړه.

امـان الله وويل چې زه الوتکی، عسکر او وسله لرم، او چون زما پاچاهی په نړیوالو اساساتو باندی ولاړه ده، نو زه د دغو شورشونو پروا نه لرم.

مامورینو رسمی مقاماتو ته پیشنهاد وکړ: «ځرنګه چې شورشیان افغانان دی، او افغانان جرګی ته زيات احترام لری، نو جرګه دی ورته ولیږله شی.»

امان الله په ځواب کی وويل چې په جرګه کی دی باید هیڅ يو ملا، حضرت یا سید شامل نه وی. ځرنګه چې جرګی له دغسی اشخاصو ځینی متشکلی وی، نو مامورین یا رسمی مقامات هک پک پاته شو، چی ځو ک واستوی. په آخره کی هغه دری تنه واستول، د اخبار اديټور، د جلال آباد يو تن چې د امان الله د پلار په دوره کی په شینوارو کی ماموریت کړی و، او يو سړی چې د ۱۹۲۰ کال په مذهبی جنبش کی له هند ځخه راغلی و. هغوی د اس پر سپرلی د غنی خیلو په اور روان شول، په بګیو کی د هغوی یکسونه کینبودل شول او له دوی سره یو ځای روان شول. غنی خیل د بتبی کوټ په لاندی برخه کی پروت و او یو محاصره شوی ځای و. له دی ځای ځخه دوی شینوارو ته احوال ولیږه، چې ورسره ملاقات وکړی. شینواری راغلل چی اویا یا اتیا کسه وو. هغوی وسله وال وو او ددی پر ځای چې خبری وکړی پر بګیو باندی یی ډزی وکړی اسان او یکسونه یی یوړل. دا دری تنو ابله وکړی شول ځانونه جلال آباد ته ورسوی.

اوس له سنګوخیلو سره د شینوارو نوری طایفی هم يو ځای شوی او د خپل شورش په دوهمه ورځ باندی د پیشلاق عسکری پوستی لاړی چی د هغه ځای عسکرو، په داسی حال کی چی د خپل مذهبی ژوندانه پر اساساتو باندی ځه اوریدلی وو، سرسری مقاومت به یی کاوه. شینوارو

خپل دی عمل ته له خزانې څخه د زیاتو پیسو پ. ترلاسه کولو سره خاتمه ورکړه او د هغې وسلې نه برسیره چې دوی وریاندې اقدام کړی و، نوری وسلې هم ترلاسه کړی. د نوامبر په ۱۶ هغوی د ډکې پر سرحدي کليو باندې ډزې وکړې چې لاری ګانې او کاروانونه په کې سره راټول شوي وو او که د شينوارو د ډزو په واسطه تهديد شوی نه وای نو ځانونه به يې جلال آباد ته رسول. داسې فکر موجود و چې د ډکې پر سرحد داری باندې به د سنګرخيلو شينوارو له خوا يوه ناڅاپي حمله وشي او هغه د خپلې پوستې د دفاع په خاطر يوازې شپيته تنه درلودل. هغه نه شو کولی چې د نور قوا د راغوښتلو په خاطر له جلال آباد سره تماس ونيسي، ځکه چې شينوارو د ټيلفون او تلګراف هغه سيمونه شکولي وو چې جلال آباد ته رسيدلي وو.

په دې ورځ باندې د کوچيانو يوه ډله، چې د هند په لور تر زياتو کسانو وروسته پاتې وو، له سنګوخيلو سره چې د جنګ په حال کې وو، مخامخ شول او جنګ حتمي و. کوچيانو ځينی ځاروي له لاسه ورکړل، ليکن د سنګوخيلو څخه دری تنه ووژل شول او هغوی تر يوی اوږدې مودې پوری له قانون څخه سرغړونه بس کړه چې د قانون په واسطه د انتقام اخيستلو غوښتنه وکړي. بيا هم کوچيانو ته دا اجازه وشوه چې په آرامۍ سره لاړ شي. دا د پاچا د مامورينو د بدې اخيستلو او فساد ثبوت و.

د نوامبر په شپاړسمه نيټه له شمالي څخه نه جسدونه راوړل شول. دا هغه کسان وو چې په کوهدامن کې د سقاو د زوی په يوه وحشيانه حمله کې ووژل شوی وو. يو په کې د چاريکارو د والي جسد و.

د ختيځ سرحد په امتداد کې داسې خبرې کيدې چې د هيواد په لويديځ کې هم نارامي منځ ته راغلې ده، ليکن د هغه شورش له پاره د کوم ځای نوم چې واخيستل شو، هغه ځای تګاب و.

مومندو په جنګ کې برخه نه وه اخيستې. د دوی فکر پر يوی شخصي موضوع باندې متمرکز و، چې هغه د عبدالودود او تبنتول شوی کونډې موضوع وه. هغوی حکومت ته يو التيماتوم صادر کړی و که چيری عبدالودود او کونډه يې مور ته د سنګسار کولو له پاره تسليم نه کړای شي، نو مونږ به پر نظامي پوستو باندې حمله وکړو. د جوارو پاته حاصلات هم لو شول. دوی ډير ژر خپل تهديدونه تر اجرا لاندې ونيول، او د امان الله له پاره چې يې د مخه جلال آباد ته امر صادر کړی و، چې کوم پوځ دی له کابل څخه احتياطي کولی شي، د اضرارو چې د هغوی ظاهره قبيله دی بايد د ده ستونزی زياتی نه کړي.

د مومندو مذهبي مشر يو زوړ سړی و او د چکنور ملا په نامه باندې مشهور و. دغه ملا د کلونو په اوږدو کې پر امان الله باندې سړی تودې راوستي وي. هغه د سرحد د ډېرو ملايانو په شان به وښ شوی وای چې نصرالله امير شي. په ۱۹۱۹ کال کې امان الله د هغه د گرفتاری امر ورکړی و او هغه ځان تير کړی و. څو کاله وروسته هغه له امان الله سره پوره پخلا کړ چې د هغه په خاطر د قبايلو تبليغاتي سفر وکړی او وکړی شوی چې يوه سيمه بېزه لانجه حل کړي او افغان حکومت ورته يو زيات مقدار پيسې ليږلې وي. وروسته يې د يو خپلواک پاچا په حيث عمل وکړ چې په دې کار سره د امان الله خپگان يې راوپاراوه. هغه له ځان نه وسله وال کسان راتاو کړي وو چې پر دښمنانو باندې بريد وکړي چې په دې عمل باندې د حکومت له خوا بې ابه شو. هغه ته خبر تيا ورکړی شوې وه چې د پاچا په غيابت کې دې د ستونزو د منځ ته راوړلو باعث ونه گرځي. هغه د خپلې سولې له پاره د امان الله په بېرته راتگ سره د غټ مکافات توقع کوله او داسې آوازه وه چې په هغه څه باندې چې ده ترلاسه کړي وو، قانع نه و.

چکنور ملا په خانگي بازار کې د يو راپورچي له خوا د يو دسيسه گر په نوم ياد شوی و. ليکن اوس يې موافقه کړې وه چې د امان الله له پاره فعاليت وکړي. مومندو ورڅخه پوښتنه وکړه چې امان الله کافر شوی دی که نه، که چيرې شوی وي نو دوی به د قرآن دا امر ونه مني چې ملکي قدرت ته دې احترام وشي. چکنور ملا د امان الله دفاع وکړه. هغه نه يوازې مومند له جنگ کولو څخه منع کړل، بلکې د لارې د امنيت مسؤوليت يې هم د هغوی په غاړه واچاوه.

ليکن بيا هم يو ارزښت درلود. هغه غوښتنه وکړه چې امان الله دې د ښځو په تعليم پورې تړل قوانين منسوخ کړي او د تړلو هغو کسانو عمومي بښنه اعلام کړي چې شورش يې کړی و. همدا راز دې عبدالودود او هغه کونډه وغوښتله.

وروسته مومندو د خپلو هلو ځلو په واسطه عبدالودود ترلاسه کړ. هغه په يوه ... باندې راضي کړی شو چې خپله کلا پرېږدي. په دې توگه هغه د گوليو په ذريعه ووژل شو، نه د سنگسار په واسطه چې دوی به ورته ترجيح ورکوله دا انتقام مومندو د يو څه وخت له پاره راضي او قانع کړل.

بيا هم د کابل په شمال کې د سقاو زوی له هر وخت نه زيات يو خطر و. اوس هغه يوازې يو باغي نه و، هغه د کوهدامن خلکو ته چې خپله لوټماری ورسره ويشله، يو غمخور او قهرمان سړی و. هغه په دې کې کوم شک نه درلود، چې امان الله کافر شوی دی او دوی به تړول تباد

کړي. ملايانو به هم ورته همداسې ويل. د هغه په حراست کې د خان رښتينې او صادق ګيونکې احساس هم علاوه شوی و. کله چې امان الله يو مامور کوهدامن ته واستاوه چې خلک راجلب کړي چې له شينوارو سره وجنګيږي، هغه نه يوازې دا چې څوک يې جلب نه کړل، بلکې د مامور بدرګه کسان تر حملې لاندې ونيول او ايله يې وکړې شول ژوندي وتښتي.

په ۱۹۱۹ کال کې برتانويانو، چې په خاوره کې د جنګ په خاطر وارخطا وو، د الوتکې د حل لاره پيدا کړه. اوس افغانانو الوتکې درلودې، او د غو الوتکو څخه شپږ يې چې افغانان او روسان په کې ناست وو، د نوامبر ۲۰ او ۲۱ نيټه د شينوارو پر مرکزونو باندې بيرته وغورځول.

همدا راز امان الله د لفظي جنګ مقدمه سازي وکړه. دا هغه الفاظ وو چې د خوست له شورش وروسته يې استعمال کړي وو: «د علم او جهل ترمنځ مخالفت.» هغه تر اوسه پورې مخالفت ته د يو مجرد کيفيت په توګه ليدل، نه په دې توګه چې انسانان د خپل هويت په خاطر جنګ کوي. د هغه په جذابه څرګندونه کې داسې ويل شوي وو: «د نړۍ له پيدايښت راهيسې د علم او جهل ترمنځ مبارزه د ډيرو پيښو علت ګرځيدلې دی. ... افغانستان د اعليحضرت امان الله تر مترقي رهبرۍ لاندې ورځ په ورځ سختې هلې ځلې کوي چې اعتماد او اعتبار يې پياوړی شي، د هيواد او مذهب دښمنان خطرناک شينواري ... شورش کړی دی او له هغو ډلو سره يوځای شوي دي چې هم په دې او هم په بله نړۍ کې تباه دي. د حربيې وزارت غواړي دغه شرير کسان وځپي او سبق ورته ورکوي. نو په دې توګه د افغانستان وقف شوي او اصيلو بچيانو ته اطلاع ورکول کيږي چې د دې څرګندونې په لوستلو سره دې سمدستي د حربيې وزارت ته ځان حاضر کړي.»

هغوی چې په زيات مينه او علاقه مندۍ حاضر شول زده کوونکي و چې په رښتيا سره يې خپل ځانونه د ناپوهۍ پرخلاف د زده کړې خواته راکښلي وو. په خوست کې چې د ناپوهۍ له پاره په کې مبارزه شوې وه، هغه احتياطي کسان چې د اردو له خوا راغوښتل شوي وو، نه غوښتل د پوهۍ له پاره وجنګيږي. هغوی اعلان وکړ چې شينوارو ته به لاړ نه شي، بلکه په خپل ولايت کې به خدمت وکړي، او څو طايفو رايه ورکړه چې د برتانيې له حکومت څخه وغواړي چې د دوی د هيواد اداره په خپل لاس کې ونيسي. دوی هڅه وکړه چې خپل کسان د خپل ښه نيت د ښودلو په خاطر، د يرغمل په توګه ورته ورکړي.

د نوامبر په ٢٤، سر فرانسس همفریز له جشن څخه وروسته د خپلو لومړیو خبرو اترو په خاطر له امان الله سره ملاقات وکړ، امان الله چې په موقتي توګه یې د حکومت اداري چارې پرې اېښې وې، وزیرانو او سفیرانو ته نه شو حاضریدی.

د امان الله د رعیت د ټولو طبقو د همدردی له منځه تلل هغه موضوع وه چې همفریز غوښتل ورباندې بحث وکړي. هغه ورته وویل چې روحانیون، بزګران، سوداګران او سپاهیان د نوی ریفورم له لاسه په تنګ شوي دي، مالیه ورباندې زیاته شوې ده او اعانه ورڅخه اخیستله کیږي.

امان الله وویل: «شینواری زما د دښمنانو، ملایانو له خوا تحریک شوي دي او زما د ریفورمونو په مورد کې د ملایانو له خوا ورته غلط تبلیغات شوي دي.»

همفریز وویل: «ملایان د خپل بقا په خاطر جنګ کوي.»

وروسته همفریز امان الله ته وویل چې پر رعیت باندې له الوتکو څخه بمباري کول ستا شهرت ته تاوان ورساوه. په تیره بیا چې بم غورځوونکي کسان روسان وو. ته د قبایلو له خوا د اسلام په مقابل کې داسې تورن شوي یې چې اسلام دې تحقیر کړی دی، او دا چې ملحدانو ته اجازه ورکوې چې ستا پر ولس باندې بمونه وغورځوي، په ریښتیا سره به هغو تورونو ته نور هم رنګ ورکړي.

څو ورځې وروسته دوه روسي پیلوټان په ناپوهۍ سره د افغان حکومت پر عسکرو باندې بمونه وغورځول، چې دیرش تنه عسکر په کې ووژل شول او ډیر په کې ټپیان شول. پیلوټان رخصت کړی شول، لیکن په خپله د امان الله عسکرو به کټ مټ هغه خبرې کولې چې همفریز د هغه پیشګویي کړې وه.

په جلال آباد کې مامورینو نژدې و همغسې اشتباه وکړه، کله چې د وسله والو کسانو باندې راورسید. نژدې و چې هغوی پر خوګیانیو دوستانو باندې ډزې وکړي، چې د خپلو خدمتونو عرض وړاندې کول. مګر پر دوی باندې عسکري منصبداره محمدګل خان (مومند) اعتبار ونه کړ چې د امان الله له خوا جلال آباد ته استول شوی و. محمدګل دوی تورن کړ چې د چور او لوټماري په فکر کې وو او بیرته یې خپلو کورونو ته واستول او پر نورو څو قبیلو باندې هم د وسلې ویشل بند کړ چې په رضاکارانه توګه راغلي وو. هغه په یاد راوړل چې څو ورځې د مخه،

سل تنه عسکر استول شوي وو چې شورشيان له شورش څخه منع کړي، ليکن هغوی په بدل کې له هغوی سره يو ځای شول.

په کابل کې غلام صديق له همفريز څخه غوښتنه وکړه چې شيراغا دی د هند د کنډال (Condal) له ښار څخه وباسي او له افغاني سرحد څخه دې ليری يوړل شي، په دی چې ويل کيده د امان الله پر ضد د پروپاګند کولو په خاطر پيسې ټولو. نور نو له شيراغا سره د پخلا کيدو اميدونه قطع شوي وو. همفريز په بې علاقه ګی سره غلام صديق ته ورپه ياد کړ چې هغه په افغانستان کې ځينو کسانو ته اجازه ورکړې وه چې د هند پر برتانويانو پسې پروپاګند وکړي.

غلام صديق د دی سره سره چې سفرونه کړي وو او د اوچت ذوق خاوند و، يو قبايلي سړی و. دی د هغوی په کلکه وفاداری تر تربګنی کې شريک و. ده هغوی پوره پيژندل، پلار يې د هغوی قهرمان و. نو په دی توګه امان الله هغو شينوارو ته د خپل شخصي منځګړی په توګه واستاوه.

غلام صديق له هغو دريو تنو څخه چې له جلال اباد څخه وتلی وو، ښه ګوزاره کوله. هغه ته اجازه ورکړي شو، چې کلاته لاړشي او خبري وکړي، اما هغه هيڅوک محکوم نه کړ. برتانويانو په خيبر کې له يوراپور چې څخه واوريدل چې شينواري غلام صديق نه ويلي وچې ته يوازې د خصيانو او ښځو له پاره مساعد بې چې ورسره معامله ولري. دا راپورلندن ته ورسيد، چې هلته د ميزونو تر شاناست مهذب کسان، چې د برتانوي ښځو په باب د غلام صديق له حراصت څخه په ۱۹۲۰ کال په ميسوري کې اوريدلی وو، د خپلو يادداشتونو په حاشيو کې دا موضوع يادداشت کړه.

په جلال باد کې د ګل محمد له خوا عسکري قانون (Matial law) اعلان شو، چې په کې امر شوی وچې خلک دی دخپل ځان د ساتنې په خاطر دخپلو اوسيدونکو ځايونو څخه ګرد چاپيرو يالې وباسي. هر غږ به چې له ليری څخه اوريدل کيده، جلال اباد يانو ته به دخطر د زنګ په شان و، ځکه چې هغوی اوريدلی وو، چې شينواری غواړی يوه ناڅاپي حمله وکړی، او يوه کيسه داسي وه چې د چکنور ملا، په داسی حال کې چې هغسې وعده يې کړی وه، مومندبې په خپل کنترول ساتلی وو، شينواری بې تشويقوي چې پر جلال اباد باندې بريد وکړي. د دی له

باره چې پر افغان حکومت باندې فشار راوړل شي چې د هغه شرطونه ومني، هوا ډېره سړه وه او باران هم په شدت سره اوریده.

ګل محمد امان الله ته تیلفون وکړ او سمدستي يې د نور پوځ غوښتنه وکړه. هغه وويل، ترڅو چې دا پوځ رانه شي ، جلال اباد به په درو ورځوکې له منځه لاړشي.

مګر په خپله کابل هم د له منځه تلو په خطر کې و. دسقاو زوی خپل خطر دباندېتې له حالت څخه زيات کړی و. اوس هغه يو قدرت و. په هغه توندې سره چې دسقاو زوی پرهرېهرتې باندې چې کوهدامن ته داخليده، حمله کوله او له حکومتي پوځ سره جنګيده چې غوښتل دی مغلوب کړي. هغه د يو بل فکر په شان شوی و. هغه نور، دياغيل نود بانډ مشري نه کوله. هغو کسانو چې ځانونه د احترام وړګڼل، د پاچا پر ضد، چې د دوی مذهب يې له خطر سره مخامخ کړی و، دبیاراتپولیدو او، پیاوړی کیدو چغې اوريدلې وې، او دسقاو زوی پر خپل بریالیتوب باندې دومره باوري و، چې دسقاو زوی ته د مرګ تهديد نه کاوه، بلکې اعلان يې کاوه چې ویه دې وژنم.

امان الله پنځلس لاري جنګي مهمات او اته غرني هاوان يې جلال آباد ته وليږل، ليکن هغه مجبور و، چې د کابل د دفاع موضوع هم په پام کې ولري. امان الله په دې هيله چې سوله به منځ ته راشي، ګل محمد ته وويل چې د دسمبر تر لومړي نيټې پورې دې له جنګ څخه ډډه وکړي. که چیري بیا هم جلال آباد په هغه ورځ کې په خطر کې وي، ټولې قواوې به په هغه لوري سوق شي.

هغه په عين حال کې د قبيلې يو مشر، مير زمان کونړی، چې امان الله ته تل وفادار و، له خپلو قبايلي کسانو سره جلال آباد ته واستاوه، چې ګوندې د دوی اغيزې به د هغوی ټوپک په شان وي. ځنګه چې ميرزمان جلال آباد ته ورسيد، دری کنډک عسکر او د پاچا د ګارډ سل تنه يې له ځان سره ونيول او داسې يو ځای ته لاړل چې د عدې له دروازې څخه دری ميله واټن درلود چې شورشيان په شا وتمبوي. باران د ديرشو ساعتونو له پاره په پرله پسې توګه وريده.

د نوامبر په ۲۹ نيټه شينوارو د جلال آباد په لور مخه وکړه او د کابل د دروازې له لارې ښار ته ننوتل. تر هغه چې هغوی د ښار دروازې ته ورسيدل، له ښار څخه د باندې حکومتي ښوونځي د اور په لمبو کې ليدل کيده. باران چې لرګي يې ټول لانده کړي وو، شنه لوخړه او بوی ور څخه جګيده.

پنځوس تنه شینواري د برتانیې قونسلګرۍ ته لاړل او دروازې یې وتړلې. قونسل چې د هند له مسلمانانو څخه و، له خپلو شپږو تنو نوکرانو سره په هغه ځای کې و. هغه د محافظ په توګه شپږ تنه افغاني سپاهیان هم درلودل. کله چې دغو عسکرو ولیدل چې شورشیان په زور سره ماڼۍ ته راننوزي نو خپل ټوپکونه یې پټ کړل او وتښتېدل.

قونسل غوښتل چې په شفر کې راپور تیر کړي. شفر یې په لاس کې و چې شورشیانو ورته وویل موږ غواړو قونسل تالا کړو.

قونسل چې ځینې قبایلي کسان یې په کې پېژندل، په شخصي توګه یې ورڅخه داسې غوښتنه وکړه، «موږ ددې قونسل کارکوونکي او د امان الله پاچا او د افغان حکومت میلمانه یو.» هغه د قونسل سپېڅلتوب او کیفیت هغوی ته بیان کړ، چې په دې برخه کې هغوی هیڅ معلومات نه درلودل.

قبایلیانو وویل: «امان الله کافر شوی دی، او د هغه میلمنو ته هم کومه توجه په کار نه ده.» هغوی سیف خلاص کړ او درې سوه روپۍ یې په کې پیدا کړې خو نوټونه هیڅ په کې نه وو. هغوی میزونه، چوکۍ او هرڅه چې له ځانه سره وړی شول، یوړل، او د ماڼۍ څخه د باندې کوټو ته لاړل چې نور قیمتي شیان پیدا کړي او له ځان سره یې یوسي. قونسل او د هغه نوکران دې ته اړ کړی شول چې خپل اضافي کالي له ځان څخه وباسي او شینوارو ته یې ورکړي. هغوی هر نفر ته یوازې یو کمیس، یو پتلون او یوه خولۍ پرېښودل. د موټرو پټرول کم یافت و او ارزښت یې زیات و، لیکن دغو قبایلیانو یو ګیلن پټرول په ګاراج کې پیدا کړی و. هغوی دا پټرول پر غوک باندې وشیندل. قونسل او د هغه ملګرو چې ولیدل هغوی غواړي قونسلګرۍ ته اور واچوي، نو د قونسلګرۍ باغ ته وتښتېدل. د شفر کتاب تر دې وخته پورې د قونسل په لاس کې و. کله چې د قونسل کور په اور کې سوځېده او دی ورڅخه څو فوټه لیرې و، نو په داسې حال کې چې د چا پام نه و، قونسل ځمکه وکیندله او د برتانیې پټ شفر یې ښخ کړ.

قونسل هغه شپه د قونسلګرۍ په باغ کې په داسې حال کې تېره کړه چې د لوټ کولو او د اور لګېدلو اواز به یې اورېده. د امان الله ښکلې ماڼۍ چې د ډولۍ پایو انعکاس یې په حوض کې معلومېده، د اور په لمبو کې سوزېدله. هوټل هم همداسې وسو. هره دقیقه ځینې نوې قبایلیان به ښار ته راتلل چې خپل د ضرورت وړ شیان له ځان سره یوسي او پاته شیانو ته اور ولګوي. یو ګاراج چې شل عرادې لارۍ په کې ولاړې وې سوځول شو، همدا راز د الوتکو هنګر

(Hangar) ته اور واچول شو او څو الوتکې یې خساره مندې شوې. که چیرې باران هرڅه نه وای لانده کړي، نو په هغه شدت سره به سوځیدل چې باید سوځیدلي وای.

د خیبر په غاښ کې به وسله په ډیره ارزانه بیه خرڅیدله. هغو قبایلیانو دا وسلې بازار ته ایستلې وې چې د جلال آباد مدافعینو د مرستې په هیله پر هغو باندې ویشلې وې.

په لومړي برید کې میر زمان خپلې ټولې د قشلې په لور سوق کړې وو او دروازه یې بنده کړې وه. شورشیانو له خپلو ولجو سره له جلال آباد څخه لاړل لیکن لاهم د ښار په اطراف کې وو چې خطر لا هم موجود و. هغوی یوازې په هغه لور کې نه وو چې د شینوارو د کلو په لور وو بلکې ښار یې محاصره کړی وو. هغوی هغه سرک ته ځانونه رسولي وو چې د کابل په لور تللی وه او د تیلفون او تلگراف مزي یې شکولي وو.

امان الله به د افغانستان تاج او تخت عنایت الله ته پیشنهاد کړ چې هغه د دغه شي غوښتونکی نه و.

# شپږ ویشتم فصل

## د ۱۹۲۸ کال د نوامبر له ۳۰ څخه

## د ۱۹۲۸ کال د دسمبر تر ۱۶ نیټې پورې

امان الله یوازې یو شی ته متوجه شو چی د وخت په استفادی سره د شینوارو په مقابل کی خپلی قواوی سره راټولی کړی، د سقاو زوی تطمیع کول، چی یو بل خطر و.

په ختیځ کی غلام صدیق خان په ازاده توګه پیسی لګولی او پر جلال آباد باندی د حملی سره سره د حکومت لپاره پوره کنټرول او اداره په خپل لاس کی درلودله. د سقاو زوی په پوره توګه داسی د پیسو اخیستونکی ولکه چی د ختیځ ولایت ملایان او نور لیډران وو. د هغه د ژوند ټولی هلی ځلی د پیسو د لاس ته راوړلو په خاطر وی، فرق یی نه کاوه چی د چا پیسی دی.

د سقاو زوي موافقه وکړه چی له برغلګرۍ څخه د شپږو میاشتو له پاره لاس واخلی، او هم یی موافقه وکړه چی په کوهدامن کی دهغه د استخدامولو په لاره کی خنډ نه شی، چی ده فلج کړي و. دهغه انعام ۴۰۰۰۰ روپی وي او دده ترڅنګ په افغانی ارد وکی ورته د جنرالی منصب رتبه ورکړي شوي وه او همدا راز یو شمیر ټوپک هم ورته ورکول کیده چی خپل نفرو سله وال کړي.

دا یه یوه ماهرانه ګوزاروای چی دوه دښمنان، یوله شمال او بل د ختیځ څخه په خپلو منځو کی سره وراچول شوي واي، دسقاو زوي دیو لوړ رتبه عسکري منصبدار په توګه پوره د باور

وړو. هغه دمخه تردي چې له وظيفې څخه لاس واخلي، دخوست د شورش په موده کې زړور او اغيزناک و، ځينې کسان ووچې په قطعه - نمونه کې د هغه معقول اعمال بې يا دول او هم ځينې کسان وو چې دهغه وروستي غير قانوني حرکتونه به بې يادول. هيچا دهغه په مشرتا به باندې کومه مناقشه نه کوله، ده د کيفيتونو هغه ګډ خصوصيتونه بې درلودل چې وروسته به دمشرتوب (Charis man) په نوم سره يادېده.

ولي خان چې دافغانستان د «ترون» په باب له بانديت سره خبرې کولې، حتی د سقاو زوي ته بې د نزاکت او تهذيب له معياري علايمو څخه يوه علامه واستاوه، لکه څنګه چې په افغانستان کې داسې رواج دي چې ديو سړي کورته يو لومړي ځل ورتګ سره يو يادوه پاکټه شيريني له ځانه سره وړي او امريکاييان په داسې يو مشا به عمل کې له يوبل تل ويسکي سره دلومړي ځل له پاره د چا کره ځي، نوولي د سقاو زوي ته يو مخصوص ښکلي ټوپک ورکړ، چې يو منلي شوي دودو.

داسې بريښېدل چې دسقاوزوي ستونزې ديوې مودې له پاره له منځه تللي وې. يوسړي د امان الله په کورنۍ کې دسقاو زوي د ادعا مخالفت دمخه کړي و. په تيرکال کې، په کوهدامن کې دهغه دلو تياريو وروسته، کله چې هغه پيښورته تښتيدلی و، عليا حضرت له کوهدامن څخه يوه عمومي ليدنه کتنه کړې وه چې وښيي هيڅ شی وجود نه لري چې ورڅخه ويره وشي.

دعليا حضرت قوت او زور، چې دهغوي زوي امان ورته دداسې اوږدي مودې له پاره ضرورت نه ولرلی، تر اوسه پوري تر لاسه کيدونکي و، او دهغې زوي ورته ضرورت درلود.

امان الله ګيچ شوي و. هغه دداسې يو سړي په شان و، چې سترګې يې يوليري هدف ته نيولي وې، او په دې موفق شوي نه وي چې تر خپلو پښو لاندې کړي ته نظر کړي وي، په کې ښوييدلی وي اوپښه يې ماته شوي وي او لورهدف يې ناڅاپي نا اجرا پاته شوي وي. بوازې ځوماشتي د مخه هغه له نورو پاچاهانو سره کيناسته او له هغو څخه به يې زده کول، هغه خپل هيواد ته راستون شوي و او هغه مجبور و، سمدستي له هغه شي سره مخامخ شي چې د لويديځې نړۍ پاچا هانو په هغه مورد کې ورته هيڅکله څه نه وښودلي، مګر هغه شي يې ورته ښودلی و، چې يولويديځ فيلسوف د هغه تعريف داسې کړي و: «ناپوهي له خنډ ونوسره.»

دتيرولسو کلونو ټول پرځان تکيه شيان چې په سختي سره سره راټول کړي شوي وو، له

منځه لاړل. اوس هغه شی چیرې وچې داشی سم وښیي؟ امان الله له خپل مستقبل حالت څخه خپل د کوچنیوالی د حامی په لورمخه وکړه. دي يوځل بياد علياحضرت هوښيار زوي شو. او علياحضرت، چې د ثريا د عصري توب اونوښتونو تر سپوري لاندي ژوند كاوه او دهغوي له طريقی څخه يې نفرت كاوه، اوس له خپلو ټولو قدرتونو څخه كاراخيستی شو.

هغې خپل زيات قوت له عادي منابعو څخه ترلاسه كړي و. امان الله به دغو شيانو ته « مزخرفات » ويل، اوس عليا حضرت په دي فكر كې شوه چې وگوري كه دغه عادي شيان دهغه له زوي سره مرسته وكړي شي.

فقيران، ياد مذهب د لاري ليونيان به مدام په كابل كې ترسترگو كيدل. ځينې به كند او كچكول له ځان سره گرځاوه چې پرهيزگاران به پكې پيسې يا خوراكي شيان اچول. ځينې به له ځان سره تبرزين گرځاوه چې داهم د بزرگواري نښه وه. ځينو به چې تبرزين نه درلود، پكې به له ځان سره گرزولې چې له مزرو څخه جوړيده او د تبرزين په شان معلوميدي، او په هغه باندي به اور تازه كيده. ځينو ښځو به د ډول ډول رنگونو تكې په احتياط سره سره گنډل او دغو فقيرانو چې دغه له مختلفو تكو څخه جوړشوي شيان اغوستل او په كو څوكې تيريدل، داشی به دهغوي د ناداري او غريبي ځرگندونه كوله.

ځينو دغو فقيرانو ته د فوق العاده قدرت د درلودو اعتبار وركړ شوی وو، او څرنكه چې عليا حضرت پر دغو قدرتونو باندی د يو معتقد په توگه پيژندل شوی وه، د فقيرانو ټول خبرونه ورته راوړل كيدل.

اوس، په داسې حال كې چې د هغې ټولنه پاريدلې وه، هغې ته د يو فوق العاده فقير په باره كې وويل شو چې د كابل په يو جومات كې پيدا شوی دی او په خاموشي سره منځگړي توب كوي. ددي فقير عادت دا و چې د يو ويشتو ورځو له پاره به منظم ډول خاموش و. بيا به د يوې ورځې لپاره د خبرو كولو په خاطر راولاړيده. له دی يوې ورځې وروسته به يو ويشت ورځې خاموشي اختيار كړه. داسې كيده چې په هغه يوه ورځ باندی به د هغه خبرې ټولې پيشگويي وی.

علياحضرت دی فقير ته احوال ولیږه. هغه نوی د خاموشی له حالت څخه راپورته شوی و، او ژر د يوی بلې يوويشت ورځنی پروگرام لاامله نه ترلاسه كيده، نو ځكه د علياحضرت نوكران له بيري څخه كار واخيستل چې هغه قصر ته يوسی. فقير مقاومت وكړ. هغه نه پوهيده

چې دا ښځه څوک ده چې غواړي له فقیر سره ووینی. په پای کې کله چې علیاحضرت ته راوستل شو، هغه د ټولو سیاسي شیانو په مورد کې خپل د یادونې وړ معصومیت څرگند کړ. هغه حتی په دې هم نه پوهیده چې د هیواد پاچا امان الله نومیده. فقیر په ادب سره خپل سر ټیټ کړ او په خاموشۍ سره په هغو قوتونو سره یو له بل سره مرکه وکړه چې علیا حضرت دومره د هغو احترام کاوه. وروسته یې خپل سر راپورته کړ او علیا حضرتي ته یې ووبل چې ستا زوی امان الله به د حبیب الله په واسطه تاج او تخت له لاسه ورکړي.

په افغانستان کې حبیب الله یو پیژندل شوی نوم و. علیا حضرتي پوښتنه وکړه، کوم حبیب الله؟ فقیر یوازې هغه خبره تکرار کړه چې «حبیب الله» او وروسته علیا حضرتي ورته اجازه ورکړه چې لاړ شي.

په هغه شپه چې امان الله د علیا حضرتي لیدو ته راغی، د تشویش او بې خوبي له لاسه ډنگر شوی و، علیا حضرت ورڅخه پوښتنه وکړه چې فکر وکړه د کوم حبیب الله نومي سړی له خوا تا ته خطر متوجه کیدی شي. هغوی یوازې د یو حبیب الله په باره کې فکر کولی شو چې په کافي اندازه پرستیج یې درلود. د ښه شخصیت، ذکاوت او نور ضروري شرطونو واجد و، چې عبدالرحمن په تل ورته متوجه و، د مرکز له کنټرول څخه لیرې مسافه. هغه د مزار شریف والي و.

کوم پیشنهاد چې اوس علیا حضرتي وکړ، هغې یو پیشنهاد و چې په ملایانو کې امان الله د هغه مخالفت کړی و. مگر اوس هغه ډیر ستومانه او روحاً ضعیف شوی و چې پر هغو شیانو ټینگار وکړي چې دده د مور په شان قوي و. هغه حبیب الله مزار شریف څخه راوغوښت، عبدالعزیز چرخي یې د هغه پر ځای مقرر کړ چې د غلام صدیق ورور و. دغه نوی سړی دومره چاغ و چې د امان الله د نوو قوانینو له مخې د عسکرۍ له پاره مساعد نه و، اما استعداد او اغیزمن توب هغه شي نه و چې دې د هغه په لټه کې و.

په کابل کې تقریباً هره ورځ واوره وریده، او د دسمبر په لومړیو وختو کې هوا په غیر معمولي توگه یخه شوه.

یوه ورځ چې هوا صافه وه او د دسمبر څلورم تاریخ و، یوه الوتکه د ښېنوارو پر فضا باندې پرواز وکړ او ددې پر ځای چې د تورو الوتکو په شان بمونه وغورځوي، دا پیغام یې وغورځاوه:

«پاچا زما لور یی هم اروپا ته استولی ده چی ښه کار یاد کړی. دا الوتکه به تاسو ته کوم زیان ونه رسوی.»

په دهلی کی اوسیدونکی برتانویان چی له دی پیغام څخه خبر شول، تلگرام یی وکړ چی «لطفاً موږ پوه کړی چی دا کار د کوم ستر خواخوږی سړی له خوا صورت نیولی دی یا کوم شخصی پیغام دی.»

د شمال لویدیځ سرحد په یو بل تلگرام کی داسی ویل شوی وو: «لطفاً د قبایلو د شورش او پر هغو باندی د شورش د اغیزو تخمینی راپور موږ ته راکړی. موږ باید پوه شو چی آیا دا ښه کار دی چی زموږ په ساحه کی شدیده ناآرامی منځ ته راشی او هم باید پوه شو چی په دی غیرعادلانه ریفورمونو سره موږ د قبایلو نظر ته څومره محبوبیت لرو؟ د امان الله پر نویو جیبو اتیکو شیانو باندی برسیره پر څوریدنی، لطفاً موږ پوه کړی چی تاسو تر کومی اندازی فکر کوی له موجوده رژیم څخه د قبایلو همدردی له منځه تللی ده او د هغوی د چال چلند له امله د افغانی سرحد پرمختگونه متأثره شوی دی.»

محمود طرزی یو ځلی همفریز ته داسی یادونه کړی وه: «د برتانویانو طریقی نه درک کیدونکی دی، مگر هغوی بی له دی چی خپل افتخارات او غرور له خطر سره مخامخ کړی مدام داسی برینبی چی خپل انجام ترلاسه کوی.»

د نه درک کیدونکی غرب ددی بریالیتوب یو دلیل د برتانیی د حکومت هغه رویه وه چی نریواله نظریه یی په تدریج سره مخ کی له مخ کی تر لاسه کوله. برتانویانو د نورو شیانو له پاره منتظر پاته نه شو چی د هغو تصویبونو او موافقو ښیگنی ووینی، بلکی فکر یی وکړ چی د دوی کوم اعمال به د منلو وړ وگرځی او کله چی نور هدفونه مانع واقع نه شی، د هغه جریان په هغه خوا و هغوی او د دغو قبایلو په وضعه کی، چی په شمال لویدیځ سرحد کی اوسیږی، په یو اوښتون سره به د برتانیی عسکر یا د کوم خلاف عمل مرتکب وگرځی او یا به هغوی آزاد کړی چی نوری وظیفی ترسره کړی.

په جواب کی داسی مطالبو ته ادامه ورکړی شوی وه: «دا مشکله ده چی پیشگویی وشی، مگر تر اوسه پوری زموږ د قبایلو عکس العملونه زموږ په مقابل کی بد نه دی. د ناآرامی کومه نښه نه لیدل کیږی. او قبایلیان موږ د اعلیحضرت په ریفورمونو کی شریک نه گڼی، هغوی مایل دی امان الله ته د کافر نسبت ورکړی، لیکن دوی د ملایانو د یوی صریحی

اعلامیې په انتظار کې وو. دا د دوراني له کورنۍ څخه د دوی د قطعي بیګانګۍ معنی نه لري. امان الله لاهم د توبې چانس درلود، لیکن خلک دې ترجیح ورکوله چې د یو مرتجع په ګټه دی برطرف شي... د کابل یا د هند په مقابل کې د افریدو او شینوارو له خوا نیول شوی دی په تروا کې ذخیره شوی دی... د دسمبر په پنځمه نیټه مومندو د اجازې د اخیستلو درخواستې وکړه چې د برتانیې له پاره به ډکه ونیسي. دا کار ددې په خاطر نه و چې له کابل سره دښمني شوی وی، په دې چې فکر کیده ډکه د کابل له لاسه وتلې ده او شینواری، چې د هغوی عنعنوی دښمن و ډکه به اول ترلاسه کړی. په موجوده حال کې د هغو قبایلو له خوا لېږ دلچسپي ښودله کیده چې د جنوب او شمال په لیرې سیمو کې پراته وو. دا د پام وړ خبره ده چې په هغه ما ښامنی میلمستیا کې چې تیره شپه زما د هندی شخصي همکار له خوا ورکړی شوه چې په کې د سوات والي (Wali) او نواب افریدی ګډون کړی و، د کابل موضوع په قطعي توګه یاده نه شوه. د کناره ګیرۍ او طبیعي میلان موجوده روش چې شورش ته د پاچا او شینوارو ترمنځ د یوې شخصي جګړې نسبت ورکړي، باید هڅه وکړي چې شورش محلي کړي او د افغانستان حکومت ته ګټور تمام شي.

په هغه ورځ چې دا تلګرام ولیږل شو، د دسمبر پنځم، لیونید ستارک، په کابل کې د روس سفیر، د ایټالیې وزیر مختار ته وویل چې زه عیني شواهد لرم چې د هند حکومت شورشیان تحریک کړي دي. څو ورځې وروسته امان افغان پر همدې موضوع باندې اشاره وکړه چې ژر په هغو ژبو کې هم انعکاس وکړي چې په توله نړۍ کې لېږ استعمالیږي. امان الله په داسې حال کې چې د قبایلو له یوې ډلې سره چې په خپلو مسایلو باندې بحث کاوه وویل چې د برتانیې د حکومت غړي زما ملګري دي او هیڅوک باید داسې مبتذلې کیسې وانه وري چې برتانویان د شورشیانو ملاتړ کوي.

د غه آوازې د هغوی پر ضد برتانویانو ته نسبتاً ډاډګیرنه به وه کله چې خصوصي منابع به ورته ویل چې د دسمبر په ۹ نیټه د روسیې سیاسي بیرو فیصله وکړه چې د روسیې حکومت ته هدایت ورکړي چې د منځنۍ آسیا په سیمه کې دې د جنګ له پاره عسکر ځای پر ځای کړي او هم دې افغاني سرحد تقویه کړي. جنرال دیبنکو (Deibenko) ته ویل شوي وو چې په افغاني سرحد کې دې د دښمن د فوجي طاقت لومړنۍ سروې وکړي. لکه چې روسانو ګومان کاوه چې د هغه هیواد د ممکنه پرمختګ څخه د مخه ګواکې مور شورشیان تحریک کړي دي، پورته

اقدامات ددې پرځای چې تعرض تعبیر شي داسې ښکاریده چې دفاعي جنبه یې درلودله.»

د «ممکنه پرمختګ» بدګوماني په سیاسي بیرو پورې محدوده وه. نورو خلکو به ویل چې برتانیه غواړي افغانستان یو بیرته پاته بیطرف هیواد وساتي او په دې توګه یې د امان الله د ریفورمونو د شنډولو په منظور ګامونه اوچت کړل.

د فرانسې په جنوب، د نیس (Nice) په ښار کې، هاشم د نادر ورور، برتانوي قونسل جه. ډبلیو کیوګ (J. W. Keogh) ته د دسمبر په ۷ نیټه مخ وراړاوه او د خپل کارت په ورکولو سره یې ورته وویل چې زه او زما ورور د برتانیې د بهرنیو چارو په دفتر کې ښه پیژندل شوي یو.

هاشم له قونسل څخه وغوښتل چې دغه پیغام لندن ته واستوي، چې دی او نادر د افغانستان د اوسني وضعې په ارتباط مهم معلومات لري چې غواړي وربائدې خبري وکړي او هم غواړي چې ژر هغه هیواد ته ستانه شي.

هغه غوښتنه وکړه چې خارجه دفتر دې کوم نفر نیس ته ولیږي چې له نادر سره خبرې وکړي او د مخه تر دې چې هغوی د افغانستان په لور وخوځیږي له هغه څخه معلومات ترلاسه کړي. هغه وویل ددې راز پټ ساتل ډیر ضروري دي، او د هغه دلیل په خاطر زه او نادر پاریس یا لندن ته سفر نه شو کولی.

هاشم زیاته کړه د بهرني دفتر کتونکی دې باید هغه څوک وي چې په فارسي یا اردو باندې خبرې وکړي، ځکه چې دی په فرانسوي باندې نه پوهیده او په صحیح توګه یې خپل ځان په انګلیسي نه شو معرفي کولی.

کله چې همفریز دا شي واوریده، د شورشیانو له خوا وځورول شو او په دې هڅه کې وه چې په کومه نقطه دې باید نماینده ګي تخلیه کړي. هغه لندن ته بیرته یو لنډ تلګرام تیر کړ: «نادر خان که هغه څه ویل غواړي، نو کولی شي چې هغه دې په انګلیسي ولیکي. زه کوم رسمي نفر نه پیشنهادوم یا په بل عبارت باید واستول شي چې ورسره (د کابل) د موافقې په غیر مرکه وشي، چې شاید زما له خوا به ولیږل شي. نه باید هغه ته او نه د هغه ورور ته د هند د لارې ویزه ورکړې شي.»

نادر ته په نزاکت سره وویل شو چې هیڅوک پیدا نه شو چې له تا سره ملاقات وکړي. خارجه دفتر په یو داخلي سري یادداشت کې داسې لیکلي وو: «ډیر دلیلونه وجود لري چې دا

ورونــه غــواړي افــغــانــســتــان ته ددي له پاره لاړ شي چي لـه سرکـښـو عـنـاصـرو سـره مـرسـتـه او همکاري وکړي. »

د شینوارو له لومړي حملي څخه وروسته یوه عراده موټر هم د جلال آباد او خیبر ترمنځ تګ او راتګ نه وکړی. د اوښانو یو کاروان چي په جلال آباد کی نیول شوی و، د شورشیانو له پاره د خوراک نعمتونه برابر کړی وو چي په دی توګه لنډیکوتل یوه امان نامه یا اجازه نامه ترلاسه کړه. ځیني کوچیان به د یو زیات مقدار میزو په عاقلانه ویشلو سره اوښتل.

د کندهار او چمن ترمنځ لاره خلاصه وه، مګر د لاریو چلوونکي چي چمن ته تللي وو، په هغه ځای کی پاته شول. د کندهار نایب الحکومه په دی فکر کی و چي له هند څخه افغانستان ته لاری راوارد‌ی کړي او غوښتنه یي وکړه چي کـه څوک د غـه تشي لاري تر کندهاره پوري راولي، پیسي به ورته ورکړلي شي او دو سوه افغاني به ورکړلي شي کـه چا د غـه لاري له کندهار څخه کابل ته یوسي. یو کنډک ته په مقدماتي توګه ګرمي توي جامي ورکړي شوي چي کابل ته لاړ شي، مګر د هغوی له پاره ترانسپورتي وسیله نه وه.

امان الله غوښتنه وکړه چي ورته اجازه ورکړله شي چي له هند څخه لاري په پیسو ترلاسه کړي. هندی دفتر، داسي وویل چي: « دا غوښتنه مضحکه جنبه لري. » چي په یاد یي راغی چي برتانویانو پلان درلود چي امان الله ته د لاریو تحفي ورکـړي ترڅـو چي جرمنانو ورسره خبري وکړي، چي د هغوی لاري دي وپیروي امـان الله د وخت نه د مخـه خپلي زړي لاري له منځه یووړي.

شینواري د فن له مخي په جلال آباد کی اوربند ټینګ کړ، امـا په واقـعـیت کی یي غوښتلي کـه د خوا له لاري وی او کـه د ځمکي لاندی د تونلونو له لاري، جلال آباد کی داخل شي. میر زمان ورسره مقابله وکړه، لیکن د هغه د زوی په شمول، ډیر کسان یي ووژل شول.

یاور محمود خان، چي د سرحدي چارو منصبدار و، جلال آباد ته له عسکرو سره ولیږل شو. هغه په نامه کی چي د شاه جهان د مشهور باغ منظره وه، د شینوارو له خوا ماتي وخوړله او ونیول شو. د تلف شوو شیانو په جمله کی د سبز ښکلي وني وی چي د سپین غر په مقابل کی د درو سوو کالو راهیسی ولاړ وی.

وروسته د شینوارو دوو تنو مشرانو الم او افضل خلکو ته یوه اعلامیه خپره کړه، چي د افضل له خوا لیکل شوی وه او علم په کی لاسلیک کړی و. افضل په لیکلو باندی پوهیده او اعلامیه یي په لاندی ډول وه:

«د لوی مهربان او بښونکی خدای (ج) په نامه
دغه اعلامیه ټولو هغو مسلمانو ورونو له پاره چې په افغانستان کی وی او یا که د ټری په نورو برخو کی، ترتیب شوی دی.

تاسو به ممکن اوریدلی وی چې د افغانستان په ختیځه خوا کی یوه قبیله ده چې د شینواری په نوم شهرت لری، راپور ته شوی ده، نفاق او بی نظمی ته یی لمن وهلی ده او دا چې د کابل حکومت په اقداماتو لاس پوری کړی دی چې دا پاڅون شنډ کړی او عسکر یی استولی دی چې په زور سره نظم او امنیت برقرار کړی.

خپلو مسلمانو ورونو ته د معلومات ورکولو په خاطر او هم د هر ډول سوء تفاهم د له منځه وړلو په منظور د دوی د دی ضرب المثل په عملی کولو سره چې وایی «شنیده کی بود مانند دیده» ما ته د دی چانس پیدا شو چې د هغوی حضور ته دغه لاندنی حقایق وړاندی کړم:

۱ - هغه قبیله چې له خپل ځان او مال څخه تیره شوی ده او د ربښتینولی او عدالت په خاطر جنګیږی او قربانی ورکوی... هغه د شینوارو قبیله ده چې له شلو زرو تنو څخه د دی جنګ قوت تشکیلوی ... هغوی د خپلو هغو ورونو په لاربښوونه چې په سپین غر او ختیځ افغانستان کی ژوند کوی، د دی قضیی په خاطر ځانونه سره متحد کړی دی.

۲ - لومړی ګام چې هغوی واخیست دا و چې هغوی په خپلو هغو واکمنانو بدلوتونه راوستل، چون ټول په فساد او بدی اخیستلو کی اخته وو او هم د هغو شیانو په مقابل کی اقدامات وکړل چې د «شریعت» په خلاف وو لکه لمونځ نه کول، د ږیری او بریتونو خریل، د ښځو چادری ګانی ایسته کول او شریعت ته په درنه سترګه نه کتل. وروسته له هغه د شینوارو لښکر په یوه کلا باندی هجوم یوړ چې عسکر او وسله په کی وه، تر لږ مقاومت وروسته کلا له ټولو شیانو سره د دوی په لاس ورغله.

۳ - څرنګه چې د هډی د حضرت اخونزاده صاحب زیارت یو سپیڅلی ځای دی چې ټول علما او روحانیون په دی مقدس ځای کی یو له بل سره ملاقات کوی ... ټول په هغه محل کی سره راټول شو ... د ختیځی سیمی له قبایلو سره مشوره وکړه او یوی داسی موافقی ته سره ورسیدل چې کوم ریفورمونه چې د شریعت په خلاف دی ... هغه له منځه یوسی او امان الله چې اوس ورڅخه لاره ورکه شوی ده، ووژنی. له دی امله

ددې معاهدې د تطبیق په خاطر، د خوګیانو خلکو، چې شل زره تنه جنګي کسان يې درلودل، پر کابلي عسکرو باندې چې شمیر يې نهو زرو تنو ته رسیده، برید وکړ. دا برید د نولس په حدودو کې صورت ونیو او هغوی ته يې ماتې ورکړه او د هغوی صاحب منصبان تر اوسه پورې بندیان دي. د هغوی مشر محمود نومیږي چې د امیر امان الله يو اعتمادي جنرال دی.

٤- ... د کابل د حکومت ټول ارتباطات له منځه وړل شوي دي، اوس ختیځه سیمه د شریعت د قانون په اساس اداره کیږي ...

٥- د جلال آباد ښار تر اوسه پورې محاصره دی. د افغان حکومت ځیني پلویان چې د اسلام دښمنان دي، په کې اوسیږي. څرنګه چې د ښار اوسیدونکي د باندې نه شي وتلی نو قبایلي عسکر پر ښار باندې په دې ویره یرغل نه شي کولی چې بې ګناه کسان به ووژل شي ...

٦- د زمامدارانو د ظلمونو په مقابل کې زموږ اقدامات کوم شخصي جنبش نه دی، بلکې یوازې د ریفورمونو د له منځه وړلو په خاطر دی چې دا يو کافر ریفورم دی... زه به په دې مناسبت د امان د بې نظمیو دغه لاندې مثالونه ذکر کړم.

الف: خپلو قوانینو ته شکل ورکول او شریعت ته احترام نه کول.

ب: او دا چې هیڅ يوه دعوا يې له مستندو دلیلونو نه فیصله کوي.

ج: قرآن شریف د څلورو ښځو واده کول روا ګڼلي او امان الله دا شی د يوې ښځې واده کولو ته محدود کړی دی.

د: په خپلو مامورینو باندې يې په زور سره د هغوی زیاتې ښځې طلاقې کړې.

هـ: د ښځو ویښتان کمول، د هغوی چادرې شکول، د هغوی متیان او سینې بربنډول.

و: د ښځو حجاب لیرې کول.

ز: پیغلې نجونې اروپا ته استول.

ح: د جمعې او د حج ورځې بدلول.

ط: د رشوت او فساد تشویقول.

ی: د تیاترونو، سینماګانو او نورو ننداړو منځ ته راوړل.

ک: امان الله د لویې جرګې په ورځ داسې خبرې وکړې چې په کې د افغانستان د ټولو

سپین ږیرو په وړاندی حضرت محمد (ص) د خدای (ج) پیغمبر ته احترام نه و شوی، نو په دی توگه هغه کافر شوی دی او د وژلو وړ دی.

۷- له اروپا څخه د هغه له راتگ څخه د مخه ... هغه به دا ریفورمونه، چی د شریعت په خلاف وو، په پټه او په سیاست کی خلکو ته معرفی کړ... لیکن هغه د اروپا له سفر څخه وروسته، به خپل خراب ریفورمونه په ډاگه سره معرفی کړل او چون د افغان زیات وگړی په حنفی فرقی پوری منسوب دی نو یی تصمیم ونیو چی له تاج او تخت څخه یی وغورځوی او ویی وژنی.

۸- ... په اسلام کی ټول هغه شیان وجود لری چی د تمدن او مذهب له پاره ضرورت دی... په دی لحاظ نن ټول افغانستان غواړی سره یو شی او ځان آزاده کړی.

۹- ... زه خپلو مسلمانو ورونو ته ډاډ ورکوم چی په هغه ورځ چی امان الله له پاچاهی لیری شی او د افغانستان د ټولو خلکو له خوا د شریعت په مطابق کوم نیک سړی وټاکل شی، نو زه به لومړنی نفر وم چی د هغه متابعت وکړم. په حاضر وخت کی، زه محمد علم شینواری، چی نامتو عالمان هم له موږ سره دی، ذمه وهم چی د مذهب په خاطر به د غه ټولی هلی ځلی وکړو.

۱۰- ... زموږ تلفات سلو تنو ته نه رسیږی، ځکه زموږ جنگیالی خلک پوهیږی چی د خلکو دا مبارزه د مذهب د «تینگولو» له پاره ده.

۱۱- شمالی او جنوبی قبایل په دی پوهیږی چی د ختیځی سیمی د قبایلو سره راټولیدل د عدالت په خاطر دی نو په دی توگه هیڅوک د حکومت پلوی نه کوی او ټول له موږ سره ولاړ دی.

۱۲- د دی له پاره چی هیڅ شی پټ پاته نه شی او واقعیت دوستانو او دښمنانو ته یو شان څرگند شی، زه پیشنهاد کوم چی د الامان په نوم یو اخبار وایستل شی او د هغو خپرونو پر ضد ویناوی وکړی چی په امان کی خپریږی څو چی اسلامی ورونه د افغانستان د اولسونو په آیندی باندی خبر شی.» (*)

امان الله همفریز ته وویل چی اوس زد له تا سره د هغی طریقی په باب چی افغانستان ته

---

* - ډیر افغانان فکر کوی چی دا اعلامیه د افضل له سوبی څخه لوړه وه چی هغه یی د لیکلو ادعا کړی وه.

نجات ورکوی، موافقه لرم.

هغه وویل: «ددی له پاره چی زما په مورد کی دوباره غلط فهمی صورت ونه نیسی، ما تصمیم نیولی دی چی د شلو کالو له پاره د ښځو زده کړی ته اجازه ورنه کړم، حتی که خلک هم وغواړی. زه به ملایانو ته اجازه ورکړم چی د لومړنیو ښوونځیو اداره په خپل لاس کی ونیسی. ددی له پاره چی زما په هیواد کی دا بی معنی خانه جنګی ختمه شی، زه به د هر هغه شی وعده ورکړم چی زما د لاسه پوره وی. دا کومه ګټه نه لری چی له قوی ځخه پرته له دفاعی حالاتو، کار واخیستل شی.

هغه پوره پوهیده چی د ختیځی سیمی خلک د خپل جنګ د ختمولو د قیمت په توګه څه غواړی. غلام صدیق له التی ماتوم سره کابل ته راستون شوی و، او قبایلو موافقه کړی وه تر هغه چی ځواب ترلاسه کړی، ډزی بندی کړی، ولو چی هیچا په موافقه پاندی اعتبار نه کاوه.

قبایلو اصرار کاوه چی امان اللّه دی:

۱ - ملکه ثریا دی طلاقه شی.

۲ - پرته له محمود طرزی ځخه (چی هغوی غوښتل بندی یی کړی) نوره د طرزی کورنی دی تبعید شی.

۳ - د نجونو ټول ښوونځي دی وتړلی شی.

٤ - هغه نجونی چی د زده کړی له پاره ترکیی ته استول شوی دی، بیرته دی راوغوښتلی شی.

۵ - پرته له برتانیی ځخه نور ټول بهرنی نماینده ګی دی وتړل شی.

٦ - نظامنامی دی، چی د نوو قوانینو مجموعه ده، له منځه یوړل شی.

۷ - مالیه دی ټیټه کړی شی.

۸ - هغه قانون دی له منځه یوړل شی چی اروپا یی لباس ته ترجیح ورکوی.

۹ - حجاب دی بیرته په خپل پخوانی شکل دود شی.

۱۰ - اسلامی قانون، چی ددی خاوری قانون دی، جاری شی.

۱۱ - ملایانو ته دی په حکومتی دستګاه و کی ځای ورکړ شی.

د پنځمی غوښتنی په باره کی، برتانویانو واوریدل چی د هغوی په ګټه د برتانیی د استثنا ګرځولو «حقیقت دا و چی په تیرو اوو کلونو کی برتانیی افغانستان د خپلو ګټو په منظور نه

دی استشمار کړی هغسی چی جرمنانو کړی دی، او د برتانیی نماینده گی د واین (Wine) څښلو او د نڅا د مجلسونو په مراسمو کی ونډه نه ده اخیستی او نه یی افغان حکومت داسی یو اجتماعی بدلون ته تحریک او تشویق کړی دی. » هغه افغانان چی تر قبایلیانو ډیر آزاد وو د هغه غرور تر اغیزی لاندی تللی وو چی برتانویانو په تولنه کی هغه غرور درلود. حتی په هغه وخت کی چی دا غرور د ضعیفی په لور روان وو، یوه بله موضوع د برتانویانو په گټه هغوی په هغه ځای کی وو. د ختیځی علاقی قبایلیان د هغوی مرستو ته سترگی نیولی وی او بیا به هم ونیسی.

د ثریا د خوشی کولو عمل د امان الله لپاره تکان ورکوونکی و. په وروسته کلونو کی دا کیسه خپره شوه چی په غرنیو سیمو کی د ثریا داسی یو عکس د خلکو په لاس کی لویدلی و چی سر یی د ثریا او تن یی د یوی نیم بربنډی رقاصی و، په دی کار کی د برتانیی د لاس درلودلو ثبوت لیدل کیده، ځکه چی د داسی عکس چاپول ځینو مخصوصو سامانونو ته ضرورت لری. سربیره پر دی د ثریا مخ قبایلیانو ته پوره آشنا نه وو نو کیدای شو چی د یوی بلی غنم رنگی رقاصی عکس، بی له دی چی تغییر په کی راوړل شوی وای، په خلکو کی ویشل شوی وای. د دی اوازی په باب یو بل تفسیر هم په شینوارو کی موجود و او هغه دا و چی امان الله خپله ښځه په اروپا کی څه ډول لوڅه گرځوله. دا د اروپایی د شپی د لباس او قبایلی جامو په منځ کی ډیر زیات توپیر و. په اروپا کی د اوږدو جامو اغوستل مود و، او کله چی د داسی جامو اغوستونکی د میز یا گلدانو تر څنگ کښیناستی، نو وجود یی نه ښکاریده. ثریا داسی د شپی لباس اغوستی و چی لستونی یی نه درلود، او د ډیر زیاته برخه یی معلومیده چی د افغانستان په هغسی غرنیو سیمو کی دا ډول عکس کټ مټ د لوڅ عکس معنی درلودله.

له هغو کسانو سره چی امان الله یی پیژانده، هیڅ داسی یو ذهنیت موجود نه و، چی هغه به ثریا ته طلاق ورکړی، لیکن ځینو برتانوی مامورینو چی د دهلی درایور په باب فکر کاوه، یوازی له خپل فکر څخه یو نظریه وړاندی کړه. هغوی خبر و چی ثریا د علیاحضرتی نه خوښیدل (میرمن همفریز چی علیا حضرت ورته کوکو ویله، په کرکه ورته خطاب کړ)، او هغوی وارخطا وو چی د امان الله مور د امان الله د ښځی په وژنه به هغه معضله حل کړی.

که چیری محمود طرزی کوم نفوذ درلودای، نو په هغه جهت کی به یی په کار اچولی وای، چی د امان الله د ریفورمونو په لاره کی به بدلون راوست، چی قبایلو به هم وربانددی موافقه

کوله. دا د هغې لارې پای و چې محمود طرزي وربـاندې په هغه وخت کې روان و چې تر ډېرو ستونزو او سپکاویو وروسته، له ترکیې څخه افغانستان ته راغلی و.

حتی په هغه وخت کې چې امان الله دغه لست مطالعه کړ، د چکنور ملا د کابل ملایانو ته احوال استولی و چې پرته د امان الله وتلو څخه به کوم بل شی قبایلیان راضي نه کړي.

د سقاو زوی په مؤثره توگه جگ و، سترگې روښانې او اغیزناکې وې، بېرده یې ځلانده او په احتیاط سره به یې تل بیاتې کوله. په ځینو وختونو کې د شتمنو او بډایانو په شان جامې اغوستې نو په هغه لباس کې به د ده عکس د نادر له عکس څخه توپیر نه کېده. هغه د پوره ځیرکې خاوند و، چې دا ځیرکې او هوښیاري یې د ژوندانه له سرو او تودو څخه ترلاسه کړې وه او ټولو ستونزو سره به په ورین تندي عمل کاوه، او په ټوکو ټکالو سره به یې حل کاوه.

هغه د کوهستان د یو غریب سقاو زوی په توگه له ژوند څخه ډېر شیان زده کړي و.

په ۱۹۲۸ کال کې د سقاو زوی نژدې څلوېښت کلن، یا تقریباً د امان الله په عمر و، په افغانستان کې د زېږېدنې د نېټې ریکارډ نه ساتل کېږي، او په یقین سره په بیسواده کورنۍ د خپل ماشوم د زېږېدنې نېټه نه ثبتوي. کله چې امان الله قدرت ته ورسید، د سقاو زوی نژدې دېرش کلن و، او که څه هم امان الله د نړیوالې ښوونې او روزنې په لور او ټولو ته د موقع ورکولو په خاطر په سمدستي اقدام لاس پورې کړی و، نو دا نوې حرکتونه د سقاو د زوی له پاره سست حرکت و، او هغه ته څه په برخه نه شوه.

هغه سړي ته چې دده په موقف کې و، او په خپل ځان کې یې د قدرت د موجونو د څپو احساس کاوه، مگر موجوده ژوند یې د هغه ځواب گوی نه شو کېدی، نو یوه لاره موجوده وه، چې سړی به یې اغیزمن کړ، او هغه داسې یوه لاره وه چې د سقاو زوی ځان ته غوره کړې وه.

په هر حال، د ده په مسلک کې هر شی هغسې چې دی د خپلې مؤسسې د احترام وړ سړی دی. هغه د خوست د شورش په موده کې په ویجاړ کندک کې ښه اجراآت کړي و، او یوازې په هغه وخت کې خپله وظیفه پرېښوده له چې قانع شو امان الله کافر شوی دی. وروسته هغه یو باندیت یې گرفتار کړ چې له ده څخه زیات اغیزناک نه و، او هغه یې مقاماتو ته راوست، هغه طبعاً غوښتل ځان قهرمان وښیې او پوه شي چې دا سړی مقاماتو ته یو تښتېدونکی نفر و چې ټوپک یې هم له ځان سره وړی و.

هغه حتی د خپلې لوټماری په وخت کې، د غلا شوو شیانو په وېشلو سره، خپل ځان د یو

غل نه اوچت نه گاڼه. د انگلستان د منځنی پیړی رابن هوډ له خپل ټاکلی موقف څخه خوښ کړی وه. همداسی د سقاو زوی په کوهستان کی وکړه. بیا هم هغه به له دی موقف څخه لاس واخیست، د دی له پاره چی دوباره په هغه ټولنه کی داخل شی چی د محترمو کسانو ټولنه وه او دی د خپل عمر په یوه برخه کی هغه ټولنه یی پیژندلی وه. وروسته هغه په ترتیب سره له تګاب د ملا سره، چی د مذهبی قدرت یوه محترمه نښانه وه، یوځای شو، هغه خپله ټولنه جوړه کړی وه او د سقاو زوی ته یی ووی، چی که د امان الله پر ضد له ما سره په دفاعیه قدرت کی ودریږی نو ستا نوم به هم د ټاکلو شوو کسانو په نومونو کی ولیکل شی.

کوم شی چی د سقاو زوی مدام د هغه غوښتونکی و، اوس یی په اختیار کی و. د هغو پیسو څخه چی به امان الله ده ته ورکولی د جنرالی درجه ممکن ورنه ډیره زیات معنی لرله. په دی چی هغه د پیسو په لاس ته راوړلو کی هیڅ کوم مشکلات نه درلود. د پاچا له خوا پر هغه باندی اعتماد کیده او د مخورو او مهمو خلکو په لړ کی ورته ځای ورکول، هغه ته یو مهم شی و. په اخره کی د سقاو زوی په رښتیا سره یو مهم شی شو.

د کابل او کوهستان ترمنځ تیلفونی شبکه چی یوازی د رسمی پیغامونو د رسولو په خاطر مجهز شوی وه، هغه ډول تیلفونو چی نور تیلفونونه هم ورسره نښلول شوی وو. څو ارتباطی تیلفونونه په کی موجود و، لیکن ټول یو له بل سره تړلی وو او په یو وخت کی یوازی د یوی مخابری د کولو امکان په کی و. په دی لین کی که چا د تیلفون گوشی پورته کوله نو کومه خبره چی د کابل او کوهستان ترمنځ کیدله هغه به اوریدل کیده. داهغه لین و چی په کی امان الله له هغه سړی سره خبری کولی چی د سقاو زوی د جنرال کیدو موضوع تر بحث لاندی وه.

د دسمبر دولسمی نیتی په شاوخوا کی امان الله او دغه سړی خبری سره وکړی او یو بل ته په تیلفون کی د یو خطر په توگه د سقاو د زوی د ایسته کیدو په باب مبارکی ورکوله او امان الله په خندا سره وویل چی ما له دی سره یوازی په موقتی توگه د شینوارو د لانجی تر فیصله کیدو پوری موافقه کړی ده. دا د افغانستان پاچا له پاره یو غیر طبیعی عمل دی چی په رښتیا له یو داړه مار سره متحد شی، ممکن هغه داسی فکر کاوه چی د سقاو زوی دا موافقه بی په داسی بدبینانه توگه کړی ده لکه چی ده په خپله کړی وه. هرچا چی هغو خبرو اترو ته غوږ نیولی وای په دی باندی به پوه شوی وای چی امان الله د سقاو زوی ته کوم احترام قایل نه و،

چی د خپل اوربند او موقتی سولی په خاطر کوم موقف یی نه و گټلی، او دا چی د سقاو زوی د قانون له مخی کوم آینده نه درلودله.

د سقاو زوی دغی خبری د ارتباطی تیلفونو په یوه کی اوریدی.

د ډیرو ټولنو په ټیټو طبقو کی، او حتی په هغو طبقو کی چی دومره ټیټه نه وی، د حیثیت او قدرت د لوړو څوکو د پاسه رومانتیکی تیر ایستونکی خیال دایم په پرواز کی وی. د دغو لوړو څوکو له خلکو څخه دومره لیری شوی، یو غریب سړی هڅه کوی چی احساس وکړی چی د قدرت او مرتبی درلودل دی باید د احساس او شخصیت سره هغه شان ملگری وی. د یو غریب سقاو سړی زوی چی هغو لوړو څوکو ته رسیدلی و، د پوهی په نه درلودلو سره به له دبدبی ولویږی. د سقاو زوی د ارتباطی تیلفون په ذریعه په عملی توگه معلومات ترلاسه کړی وو، لیکن په مساوی توگه ټکان ورکوونکی شی دا و چی دی به د پاچا له غولوونکو وعدو څخه خلاص شی، او دده خپل خوب او خیال له منځه لاړ شی.

د دسمبر په ۱٤ نیټه باندی د سقاو زوی پر کابل باندی حمله وکړه. هغه له خپل پخوانی دوست او نایب، سید حسین او له یو تګابی سړی سره کابل ته راغی چی دوه دری سپین ږیری ولسی خلک هم ورسره وو، چی ټول وسله وال وو او خپلی ټوپکی یی پورته پورته غورځولی. ځینی دغه ټوپکی، چی دوی غونبتل دزی ورباندی وکړی د حکومت له خوا ورته ورکړی شوی وی.

که څوک له کوهدامن څخه د کابل خوا ته سفر وکړی، څرگندی منظری یی مخی ته راځی. لومړی سفر کوونکی د غرونو په منظرو کی قرار نیسی، وروسته څنگه چی په پیچومو کی تاویږی، ځان د مختلفو غرونو په منځ کی وینی او راز راز منظری په نظر کی راځی. د سقاو زوی او د هغه ملگرو چی د الله اکبر ناری یی وهلی، د جنوب په لور وخوځیدل او ملایانو چی پر اسونو باندی سپاره وو، د ښو شعارونو په ورکولو سره به هغوی د خدای په لور هڅول، او هغه بیرغونه به یی هم رپول، چی دوی له ځانه سره وړل. هغوی له یوی منظری څخه وتل او بله منظره کی داخلیدل او په پای کی د باغ بالا غربی تر ستر گو لاندی شو. عبدالرحمن په باغ بالا کی یوه وړوکی قصر جوړ کړی و چی پایی گنبدی درلودی او عسکری روغتون و او اوس یوه کلا ته نژدی و. هغه کسان چی په دی کلا کی اوسیدل، شمیر یی د شورشیانو په راتلو سره زیات شو او باغ بالا یی په آسانی سره ونیو.

د برتانیی په نماینده گی کی چی د باغ بالا په ختیځ کی واقع و، یو ښکلی کور چی لویی دروازی یی هغه نظریی ایساری کړی وی چی بـود یی په افغانستان کی وه او بله به یی په انگلستان کی خلق کوله، خبری دمخه تر دی چی کابل ته راورسیږی، برملا شوی وی.

همفریز له فرانسوی وزیر مختار فیټ (Feit) سره خدای په امانی کوله، چی په خپله د کابل د انقلاب او په ښار کی د اوسیدونکو اروپاییانو د مستقبل په باب ورسره وغږیږی. هر بهرنی نفر په ویره کی وو چی شورشیان به پر بهرنیانو باندی تکلیفونه زیات کړی. ممکن هر نفر چی د هغوی مخی ته راشی او افغان نه وی، مړ یی کړی.

بی. جه. گولډ (B.J.Gould) د همفریز د افسر مرستیال، د لرگو له تختو څخه په جوکاټ شوی کتابخانی ته ننوت، چی میرمن همفریز په کی مطالعه کوله. هغه پوښتنه وکړه چی وزیر چیری دی. دا خبره یی په برتانوی نیمگړی جمله کی وکړله او وی ویل چی په باغ بالا کی یوه په زړه پوری پیښه شوی ده چی ممکن هغه یی په لیدو خوښ شی.

همفریز کله چی دا خبره واوریدله، وی ویل: «شروع شوی دی.» فیټ ژر خپل موټر ته وخوت او په چټکی سره د خپلی نماینده گی خواته لاړ.

میرمن همفریز د دسمبر په ۱٤ نیټه په خپل یادداشت کی داسی درج کړ: «موږ ټول د باندی ودریدو او د کلا د نیولو ننداره مو وکړه چی کرار کرار په مخ تله. د سقاو د زوی نفر په عمومی سړک کی د کابل په لور روان شول، لیکن یوه لویه ډله په تدریج سره دوکانونو سره راټول شو چی په یو کنج کی وو او ما ولیدل چی زموږ د دروازی خوا ته راشیوه شول. ما منډه وکړه چی وزیر پیدا کړم او د هغه اواز می له برنډی څخه واورید چی «دروازه بنده کړه» منظره تهاجمی بڼه خان ته غوره کوی او په دی وخت کی د دروازی ساتونکی لویو دروازو ته قلف وراچوی.

«زموږ افغانی محافظین خپلی ټوپکی په زوره د اردلیانو په لاس ورکول چی د هغوی لاسونه ورسره نااشنا وو. وزیر اردلیان مجبور اوه چی ټوپکی بیرته محافظینو ته ورکړل شی، او محافظین ټوپکونه یی په یو نږدی ځای کی پټ کړل او بیا ونه لیدل شول. د هغوی بله خبره دا ده چی هغوی د اخری دیوال بیخ ته ناست وو او خپلی ټوپکی یی ښخی کړی وی.

«اوس دا پاریدلی دله زموږ دروازی ته نژدی شوی وه او مختار وزیر د باندی ووت چی ورسره مخامخ شی.»

د سقاو زوی په خپله د برتانیی د نمایندہ گی دروازی ته نژدی شوی و. هغه له همفریز سره په قار سره خبری وکړی، او ورته وویل چی امان الله پاچا کافر دی او زه غواړم هغه ووژنم او اداره په خپل لاس کی ونیسم.

همفریز د سقاو زوی ته عیناً هغسی خبری وکړی چی شینوارو د برتانیی قونسل ته په جلال آباد کی کړی وی چی: «دا د برتانیی نمایندہ گی ده، موږ ستاسو میلمانه یو.» لیکن د سقاو د زوی ځواب د شینوارو له ځواب څخه توپیر درلود.

هغه وویل: «زه له تاسو سره جنگ نه کوم.»

همفریز د سقاو زوی ته خبرداری ورکړه چی ته باید د ټولو نمایندہ گیو احترام وکړی او د سقاو زوی دا امر یی خپلو نفرو ته ابلاغ کړ. هغه خپل نفر د لوټ کولو څخه منع کړل.

د سقاو زوی، په داسی حال کی چی یو محافظ گارد یی د نمایندہ گی دروازی سره پرینسودل، له خپلو نفرو سره په شور او زوږ سره د کابل په لور روان شو. محافظ گارډ هم ژر له دوی سره حرکت وکړ. وروسته په هغه ورځ د برتانیی د نمایندہ گی یو غری غوښتل ددی موج په مقابل کی ودریږی چی د پرمختگ په حال کی و او د خپلی نمایندہ گی لاره صافه کړی، د سقاو زوی چی هغه یی ولید نفر یی ورسره بدرگه کړ چی کورته یی یوسی.

کله چی امان الله د [illegible] په لومړیو وختو کی د حملی په باب څه واوریدل او د څلورو بجو په شاو خوا کی د [illegible] له لاری دزی واوریدی، هک پک پاته شو. هغه په دی فکر چی د سقاو د زوی له خوا [illegible] د کوم خطر احساس نه کیږی، د امنیت احساس یی کاوه او نور عسکر یی د جلال آباد په لور استولی وو. الوتکی په کوهدامن کی گرځیدلی وی او خطونه یی اچولی وو، چی حکومت او باندیتان سره سوله کړی ده. په امان افغان کی یو احساساتی مطلب خپور شوی و او په کی خواشینی څرگنده شوی وه چی حتی د یو باندیت زړه هم د هغه هیواد په حالت باندی دردیدلی شی.

اوس د دسمبر د ۱٤ تاریخ په ماسپښین باندی، د سقاو زوی خپل نفر او ملایان له باغ بالا څخه یوی مغازی ته سوق کړل چی ښار ته نژدی واقع وه او عسکری تجهیزات په کی ذخیره وو.

امان الله په کابل کی له پنځلسو سوو عادی عسکرو څخه عسکر نه درلودل او نه یی شو

کولی چې هغه عسکر بیرته راوغواړي چې جلال آباد ته استول شوي وو ، ځکه چې د تیلفون او تلگراف مزي پریکړي شوي وو . یو کنډک له مزار شریف څخه راغلی و چې اته ماشینداره او ۲۱۰۰۰۰۰ روپی یې له ځانه سره راوړي وي. له هزاره جاتو څخه پنځه سوه تنه او له جنوبي ولایت څخه د دوو یا دریو سوو تنو په شاوخوا کی ایله جاري عسکر د کمک له پاره راوغوښتل شول، او هیله کیدله چې یو شمیر له کندهار څخه به هم وغوښتل شي.

په هغه ورځ باندې اتلس تنه شاگردان، چې د عسکري ښوونځیو شاگردان وو ، کابل یې له تیول کیدو څخه وژغورد ، کله چې ولسي شورشي خلک له لاري څخه تیریدل، د عسکري ښوونځي شاگردانو وربانديڼ ډزي وکړي ، او په هغه تنگ سرک کی هغسي فعالیت یې وښود له لکه چې په پخواني روم کی هورتیو (Horatio) خپل مشهور پله سره تړدې کړي و . دغه ځوانان چې د جهل پر ضد د مبارزي په خاطر زده کړه کوله نیم ساعت خپل وخت یې د امان الله له پاره وقف کړ او په هغه وخت کی له فعالیت څخه لاس واخیست چې د شاهي گارډ اتیا تنه راغلل او د دوي پر ځای یې د مقاومت کولو په خاطر ودریدل. د شاهي گارد عسکرو دوه ساعته وجنگیدل او وروسته تر هغه د سقاو زوی او د هغه نفر زیات تلفات ورکړل چې د کلوله پشتی او د حبیبیې د مکتب په لور په شا وتمبول شول. په دې وخت کی د امان الله عسکرو داسې یو ډول وسله یې راوړي وه چې شورشیانو هغه ډول وسله نه درلودله، د هغسي وسلي په ډزو سره، چې ښه په هدف لگیدل، د سقاو زوی یې بیرته د باغ بالا په لور په شا وتمباوه. په هر حال، په دې وخت کی ورځ تیره وه او هوا تیاره کیدله.

د نوبک په لومړي غږ سره، د بازار ټولو هټیوالاوو خپل دوکانونه قلف کړل او کورونو ته لاړل. مکتبونه وتړل شول. د امان الله د ارگ د قصر دروازي وتړلي شوي. خلکو د ځمکي په کیندلو پیل وکړ چې خپل قیمتي شیان ښخ کړي، لیکن ځمکه یخوهلي وه ، په دې چې دا مصیبت په کابل باندې په هغه وخت کی راغی چې هوا بې موجبه د وخت څخه د مخه ډیره یخه شوي وه.

بله ورځ شورشیانو لاپې کولی چې دوي نوري کلاوي یې په خپل تصرف کی راوستي دي او هم دا چې له تگاب څخه به زر نوره قوا راورسیږي چې په دې توگه به موږ ښار په کلي توگه تصرف کړو . دا کار ونه شو. په بدل کی د دوي د یو بل ډول وسلي تر اغیزې لاندې راغلل چې له حکومت سره دا ډول وسله وه. دریو الوتکو پر دوي باندې بمونه وغورځول، چې دوه تنه په کی

ووژل شول. دا اولسي خلک عيناً هغه ډول عکس العمل وښوده لکه چې په ۱۹۱۹ کال کې د کابل خلکو د برتانوي الوتکو په مقابل کې ښودلی و، هغوی په خپلو ټوپکو هوايي ډزې وکړې.

د کابل د بې سيم دستگاه هغه مخابره يې د جملې په نيمايي کې قطع کړه چې د برتانيې له نماينده گۍ څخه پيښور ته کيدله. دا قطع کول د هند د حکومت له پاره بدمرغي وه. هغوی دمخه تر دې چې له دې مشکل څخه خبر شي، پوهيدل پيغام د همفريز په خبرو پيل شوی و.

که څه هم بې سيم بيرته فعال شو، مگر د برتانيې د نماينده مخابرې صورت نه و نيولی، ځکه چې د تلگراف د دفتر د کابل په زړه کې و، چې د يو شمير جنگيدونکو کسانو په واسطه بيل شوی و. هيڅ پيغامونه نه شو تيرولی.

د سقاوزوي د برتانيې نماينده گۍ يې بيا له مشکلاتو څخه وژغورله. هغه خپل يو نفر يې د نماينده گۍ له يو اردلي سره چې پيغامونه هم ورسره وو، د تلگراف دفتر ته واستاوه او دا و د قضيې پيچلې حالت چې د شورشيان د ليډر له خوا يو تن له اردلي سره ملگری شو او هغه يې داسې يوې اداري ته بوت چې د هغه اداره د امان للّه د حکومت په لاس کې وه. هغه خپل پيغامونه تسليم کړل، مگر پيغامونه يوې خوا ته کيښودل شو او د يوې مودې له پاره ونه استول شول. وروسته نماينده گۍ شکايت وکړ چې روسي تلگرامونه چالان دي او زموږ د پيغامونو په استولو کې اغماض کيږي.

کله چې تلگرامونه چالان شول، همفريز داسې ترتيب ونيو چې په ټاکلي وخت کې د خپلې اخذې په دستگاه کې له پيښور څخه خبرونه ترلاسه کړي. هغه پيښور ته خبرداری ورکړ چې احتياط دې وکړي چې ممکن نورو کسانو به هم مخابره واوري، چې داسې يو پيغام چې «جلال آباد تراوسه پورې سقوط نه دی کړی» ممکن داسې تعبير شي چې گوندې موږ توقع درلوده چې جلال آباد سقوط وکړي او دا مفکوره به خلق کړي چې د شورش او پاڅون مسؤول برتانويان دي.

دا ذهنيت د برتانيې نماينده گۍ يې غير مصئونه گرځوله، په هغه ځای کې د امان اللّه نفر له شورشيانو څخه ډير زيات د وران کاريو باعث گرځيدل.

همفريز وروسته وويل: «زه فکر نه کوم پر نماينده گۍ باندې دې د (ټوپک) دغه ډزې قصدي وې. او ډيرې ډزې د ونو د موجوديت له امله نه معلوميدې چې عسکرو په کې له ټوپکو

سره پټ ناست وو. له بلې خوا پر نماینده ګی باندې د ټوپکو ډيرې ډزې قصدي وې. دا ډزې زیاتره له هغو کورونو څخه کیدې چې سرغړوونکي منګل په کې اوسیدل. دا ولیدل شو چې دغو کسانو د شاهي عسکرو ډير سپاره سپاهیان يې ووژل، چې د دوی خپله خوا کې وو. زه د بدګومانۍ له پاره کوم دلیل نه لرم چې د افغاني افسرانو په امر سره به د نماینده ګی په لور کوم فیر صورت نیولی وي ... پر نماینده ګی باندې د پاچا د عسکرو له خوا د ډزو کولو ګومان کاوه، په دې تصور چې شورشیان دننه زموږ د نماینده ګی صحنې ته رانتوتي دي د شورشیانو د موجودیت بدګومانۍ لا پسې زیاتوي. د پاچا يو عسکر ووژل شو او لې تر لږه درې تنه دمخه تر دې چې د نماینده ګی له دننې څخه وایستل شي، سخت ټپیان شول.»

دا خبره ژر په ډاګه شوه چې یوازنی سپاهیان چې د پاچا د حمایه کولو خوشبیني یې درلوده د هغه خپل باډیګاردان وو. څینې سپاهیان په واقعي توګه د سقاو زوی خوا ته تللي وو. خلکو چې له شاو خوا سیمو څخه کابل ته راتلل ورته به ویل کیده چې د ښار په ساتلو کې برخه واخلي. هغوی ته له هر ټوپک سره دوه سوه داني کارتوسونه ورکړل شول.

امان الله څو کاله دمخه د زیات شمیر ټوپکونو ذخیره جوړه کړې وه. دا د هغو وسلو جز و چې له روسیې څخه راوړل شوي وه او ټول د شپې له خوا د کچرو د کاروانونو په ذریعه کابل ته رسول شوي وه او د برتانیې نماینده ګی نفر يې په خصوصي توګه مقرر کړي و چې د کچرو شمیر معلوم کړي څو تخمین شوي وي څو داني ټوپکي راوړل کیږي. اوس دا شیان واضح شوي وو. دا وسله په څه شي کې تاو شوي نه وه، او خلکو ولیدل چې هغه کاغذونه چې دا ټوپکي په کې تاو شوي وې، روسي لیکنې يې درلودې. له دې نه دا څرګندیده چې روسان د امان الله سره د وسلې مرسته کوي.

د جګړې په دریمه ورځ باندې میرمن همفریز په خپل یادداشت کې داسې لیکلي و: «زموږ د دروازو شاو خوا ساحه ډیره ګرمه ده. سکرتر منډې وهي چې ووایې دوه تنه چې جرمني بیرغ ړپوي هڅه کوي چې داخل شي. بیتز (Beitz) او کوتز (Kotz) له جرمني نماینده ګی څخه له پیغامونو سره راورسیدل چې هلته جرمني اتباع سره راټول شوي وو. راپور ورکوي چې هلته کراره کراري ده. خطر یوازې له هغه سرک څخه تیریدل چې بې تاکونه درلودل. جنګ په شدت سره دوام لري، چې د دوی راتګ يې ناممکن کړی و. د بریښنا د برج نفر راغی او د هغې دروازې د ستونزو راپور ورکوي چې هلته شورشیان چې اوس غواړي پر نه برجي باندې حمله

وکړي چې له هغه ځایه څخه وباندې فیرونه کیدل، د ننوتو غوښتنه کوي، هغوی وایي تیل غواړو چې نه برجي ته اور واچوو. د بریښنا د برج نفر په یوه نعلبکۍ کې ورته تیل ورکوي مګر هغوی د څراغ تیل نه غواړي. وزیر او د هغه سکرتر دباندې دروازې ته ځي. وزیر چې له معمول سره سم پایپ یې په لاس کې و، وایي چې نه ورته تیل ورکوو او نه د ننوتلو اجازه. هغوی پوښتنه کوي چې خپل کورونه څنګه رڼا کړو او کله چې موږ وایو د بریښنا په ذریعه، هغوی مشوش کیږي. وروسته هغوی تیت او پرک کیږي او جنګ له سره شدت مومي او ټوله شپه جاري وي. وزیر ټوله شپه په شاوخوا کې ګرځي او ختیځ جناح خلک خوب نه شي کولی.

د مخه تر دې چې د شپې بند و بست وشي، وزیر چې د وضعې د بدلولو په خاطر پلان یې له سره ترتیب کړی دی او درې تنه قبایلي خلک چې ماتې یې خوړل اوس د برتانیې د نماینده ګۍ په شاوخوا کې دي، تشریح ورکوي چې که څوک په زور سره راننوزي، نو زه به جنګ وکړم. شیان د لوټ په لاره په لاندې منزل کې ایښې دي او جبه خانه زموږ له تشناب څخه لیرې کړی شوې ده. موږ ځانونه نه لوځوو. »

په عین حال کې هغه ارزښت ناکه وسلې چې امان الله پر تازه واردو خلکو باندې ویشلې وې، ضایع شوې وې. هغو کسانو چې ښې ټوپکې یې په لاس کې وې او کارتوسونه ورته هیڅ ارزښت نه درلود، نو د دښمن د تر ستر ګو کېدو پورې انتظار نه ایستلو، هوایي ډزې به یې کولې. د ښار عادي خلک د ننه په خپلو کورو کې وو، او په هر فیر سره به وارخطا کیدل چې د سقاو زوی رانژدې شوی دی. کله کله به یو نفر د باندې وته چې له نورو څخه غوښتنه وکړي چې فیرونه دې بس کړي، مبادا کوم ماشوم د دې تیت او پرک ډزو په واسطه ولګیږي. جارچیانو به له ډولو سره په کوڅو کې ګرځیدل او همداسې غوښتنه به یې کوله. هیچا پاملرنه ونه کړه. ډیرو د غو قبایلیانو ته جنګ چې د دوی احساسات په کې دخیل نه و، یوه ساعت تیرې وه.

یوه آوازه ولویدله چې کابل یې نور هم پسې ناارامه کړ. هغه داسې وه چې د شاهي کورنۍ یو غړی د سقاو د زوی خواته تښتیدلی دی. دا تښتیدونکی نفرشاهي نفر نه و. هغه رډ یو ویونکی عسکر، غلام محمد و چې په ۱۹۱۹ کال کې په راولپنډۍ کې د هیأت غړی و. هغه له تګاب څخه راغی، د هغه خور د عنایت الله مور وه، او اوس هغه له امان الله څخه بیل شوی و او تګاب ته لاړ چې کوښښ وکړي خپل خور یې عنایت الله د سقاو د زوی په مرسته پاچاهي ته ورسوي.

غوث الدین د احمدزیو غلزي چې سوداګري او تجارت یې کاوه، له خپلې ږیرې او تورو سترګو سره د زړو کوډ یو پنډ په شان معلومیده، کابل ته راغی. هغه له امان الله سره د خوست د شورش په موده کې په نامناسبو طریقو مرسته کړې وه، او اوس امان الله د هغو دوو سوو نفرو هر یوه ته یو یو ټوپک ورکړی چې غوث الدین له ځان سره راوستی وو. هغوی لاړل، مګر لکه د پخوانی شورش په شان، هیڅوک ته پوهیده چې هغه په کومه خوا و. یو نفر چې هغه یې لیدلی و، وروسته داسې وویل:

« غوث الدین چې په امیر صاحب پسې بدې خبرې کولې خپل وطن ته لاړ او هیڅ د سقاو د زوی پر ضد یې کومه برخه وانه خیستله. د هغه په مورد کې خلکو بیلې نظریې درلودې. ځینو به ویل چې د منګلو د شورش په شان هغه امیر ته بې وظیفې سرته ورسولې، خو مکافات ورته لې ورکړل شول چې دی ورباندې خوښ نه و او د امیر پر ضد ودرید، نو همدا وجه وه چې د وسلې له اخیستلو وروسته و تښتید او داسې فکر یې درلود چې په خپل وطن کې د امیر پر ضد یو شورش ته لمن ووهي. نورو به فکر کاوه چې هغه یو ځیرک سړی و او ددې په خاطر خپل وطن ته لاړ چې د وروستي لاربنوونو لـه مخې د امیر صاحب له پاره پوځ راټول کړي. په لاره کې مور دا واوریدل چې ددې له پاره چې هغه شک له منځه یوسي چې د هغه ولس ورباندې درلود د هغه د حضرت عمر بینس (Benais) په زیارت کې په قرآن باندې قسم خوړلی و، چې دی به له خپل قوم سره وي. »

همدغه سړي داسې راپور هم ورکړی و:

« د جنګ په جریان کې کله چې د سقاو زوی لښکر د شهرارا له نه برجې څخه عقب نشینې وکړه، تقریباً اتیا جسدونه یې ولیدل چې هرې خواته پراته وو او ویل کیدل چې د کوهستانیانو جسدونه وو. د امیر عسکرو زما په مخ کې د دریو یا څلورو تنو سرونه پرې کړل او د یو سړي تنه یې چې سر یې نه درلود په موټر سایکل پورې وتړه او په ښار کې یې وګرځاوه. ما واوریدل چې د سقاو د زوی د ډلې یو تن چې د (پاچا د ګارډ) د عسکرو یونیفورم یې په تن کې و، ارګ ته ننوت چې سمدستي ګرفتار او ووژل شو. ویل کیدل چې هغه ارګ ته په دې منظور تللی و چې امیر صاحب ووژني او د هغه سړي ورور و چې جسد یې په موټرسایکل پوري تړل شوی و او په ښار کې ګرځول شوی و. »

امان الله ګل اغا او معصوم یې له بندیخانې څخه راوستي وو او ورته یې وویل چې تاسو

آزاد یاست، په دی شرط چی له تګاب څخه ملا سره خبری وکړی او د سقاو د زوی له موضوع څخه یی بیل کړی. همدا راز هغه یو نماینده هند ته واستاوه چی شیر آغا ته ووایی چی ورور یی خوشی کړی شوی دی.

او په همدی توګه په دی وخت کی د برتانیی سرحدی استخبارېه وپتیله چی د شینوارو شورش کومه بیله پیښه نه ده، بلکی د یوی لویی توطئی جز دی.

# اوه ویشتم فصل

## د ۱۹۲۸ کال د دسمبر له ۱۸ څخه

## د ۱۹۲۹ کال د جنوري تر ۱٤ نیټې پورې

هغه سړی چې قدرت د خپل مقصد په خاطر غواړي، له هغه نفر څخه ډېره برتري لري چې له قدرت څخه د یو بل شي د ترلاسه کولو یوازنۍ وسیله بولي. ډېرې طریقې شته دي چې په کې د قدرت مشق کیږي. کله چې ژوند په خپله یو ناګهانی خیز سره د قدرت مشق او تمرین په یوه لاره کې ناممکن وګرځوي نو بله طریقه شته چې د قدرت او د یو بل شي مشق په کې وشي، که چیرې قدرت هغه شی وي چې یو نفر یې غواړي.

امان الله دغه ډاډ ګیرنه نه درلودله.

هغه حتی اوس هم دا امکان په لاس درلود چې په افغانانو کې لومړی افغان پاته شي، هغه کولی شو د ملایانو له وضعه شوو محدودیتونو سره سره خپل قدرت خوندي وساتي او تر اوسه پورې د ډېرو نورو کسانو څخه قدرتمند و. اما د هغه یوازنۍ ارزو هیڅکله داسې نه وه چې په افغانستان کې پاچاهي وکړي. څه چې هغه غوښتل دا وو چې افغانستان داسې یوې لارې ته برابر کړي چې د هغه په فکر د افغانستان له پاره بهتره وه.

پخوانۍ دود داسې و چې یو پاچا به په خپل موقف کې خپلو هغو مخالفینو ته اخطار ورکاوه چې غوښتل د بری د ترلاسه کولو په خاطر مقاومت او ټینګار وکړي، لکن امان الله پوهیده چې د بری موندلو هغه فضا به منځ ته رانشي چې دده غوښتنې په کې ترسره کیدې شوی. هغه فضا د تل له پاره له منځه تللې وه.

دوی میاشتی وروسته امان الله په جګ آواز سره ویلی وو: «افغانستان پر مخ بوزی» هغه هیڅ چیری نه ته.

د سقاو د زوی له خوا د کابل د محاصری په څلورمه ورځ باندی، امان الله بالاخره هغه څه وکړل چی هرچا ورڅخه په اوله ورځ توقع کړی وه چی ویی کړی، هغه له خپلو اتباعو سره خبری وکړی چی دی کار ته د خپلی مور له خوا هڅول شوی و. پاچا چی له خپلو اتباعو سره خبرو کولو څخه، که په شخصی توګه وی او که یی د مراسمو په ترڅ کی کولی، خوند اخیسته، اوس بی جرأته معلومیده او له هغوی سره د مخامخ کیدو په وخت کی یی تر تاثیر لاندی تللی و. هغه د ویلو له پاره کوم شی نه درلود.

په هر حال، علیاحضرته هغه څوک وه چی قدرت یی خوښیده او د هغه په خاطر به یی هلی ځلی کولی. څرنګه چی د هغی خبرو ته ضرورت احساسیده، هغه خبری یی کړی وی، ولو چی د وخت ایجابات دا و چی باید خپل مخ پټ کړی. دا د هغی له پاره غیر قابل تصور و چی زوی به یی د پاچاهی له منل شوی کړو وړو څخه منحرف شی. د هغی ټول ژوند د قهرمانی په زوړ قالب کی مشکل و.

علیا حضرتی امان الله ته وویل چی ته نه شی کولی په قصر کی د ښځو په شان پاته شی، او ورته وی ویل چی ته نارینه یی او هم پاچا یی نور نه شو کولی له خپلو خلکو څخه ځان پټ وساتی، ته باید د هغوی د مشر په توګه عمل وکړی.

امان الله له قصر څخه دباندی په پښو لاړ. یوازی یو کوچنی کارډ ورسره وه. هغه عمومی باغ ته لاړ چی په هغه شاو خوا کی وو او ډیر خلک په هغه باغ کی په انتظار کی وو چی له خپل پاچا څخه څه واوری. که چیری داسی خبری په کرار کرار سره نه کیدی چی پاچا د خلکو په منځ کی دی، نو دا به اسان کار و چی خلک د پاچا د لیدو په خاطر یو جګ ځای ته دریدلی وای. د امیدونو په ورځو کی، امان الله دا ډرامه یی په ښه توګه د استفادی وړ ګرځولی وه. اوس چی د خلکو د اذهانو د تحریک او ودی ورکولو له پاره زیات ضرورت و، داسی معلومیده چی امان الله له ډرامی څخه لاس اخیستی و. هغه ډیر لباسونه درلودل چی په هغو باندی اروپا یی مبهوت ګرځولی و. مګر په دی ورځ باندی له هغو ټولو لباسونو څخه یو سپک نصواری رنګ لباس یی په تن کړی و، چی یو ساده عسکری یونیفورم و. ورځ هم ګډ وډه او بی خونده وه.

امان الله شاوخوا ته نظر واچاوه چی یو ځای پیدا کړی او هلته ودریږی. هغه یوه پښته پیدا

کړه چې گلدانونه په کې اینبودل شوي وو. گلدانونه یې لیرې کړل، پر هغې پښتې باندې ودرید او خبرې یې وکړې.

هغه خلکو ته وویل چې دا پر تاسو پورې مربوطه ده چې غواړئ ونیول شي که نه. هغه وویل چې دا باندیتان ستاسو کورونه لوټوي او ښځې مو تښتوي، او وي ویل چې ژغورنه ستاسو په لاس کې ده. هغه امر کړی و چې وسلې او مهمات دې بر خلکو باندې وویشل شي. یوازې هغوی ده خبرې اوریدې شوي چې ورته نژدې ولاړ وو. آواز یې انګازه نه درلوده، خبرې یې د هغه د مخ د ګونځو په شان اوږدې دي. هیڅ به هغه سړی نه پیژاند چې د اکتوبر په هغو پنځو ورځو کې یې خبرې وکړې.

یو پوخ سړي خبرې وکړې. هغه وویل چې ډیر د مخه ما هڅه کړې وه چې امان الله ته خبرتیا ورکړم چې څه به وشي که هغه د خپلو ریفورمونو په تګ لاره کې سستي رانه ولي، مګر یو مامور یې په ګوته کړ چې یې په څنګ کې ولاړ و، له پاچا سره زما د لیدو مانع ګرځیدلی و. دوهم سړي پورته شو او همداسې خبره یې وکړه.

دغو خبرو امان الله په قار کړ. هغه نورو ته غوږ ونه نیو، بلکې له پښتې څخه ښکته شو او بیرته د خپل قصر په لور روان شو. په کابل کې ده د ژوندانه د بحراني حالاتو په وخت کې دا د خلکو په وړاندې د هغه اخرنی څرګندیدل و.

د دسمبر په ۱۲ هغه د خپلې کورنی ښځې او اووه تنه ماشومان د الوتکې په ذریعه کندهار ته واستول. ثریا او نورالسراج دواړه حامله داري وې او د امنیت او سلامت له پاره هلته لاړې. علیاحضرتې د یوې مبارزې او جنګیالی ښځې په توګه لاړه. د امان الله له خوا د کندهار پر دیوالونو باندې لا د مخه پیغامونه بند کړي شوي وو چې په هغې کې له خپلو ماماخیلو څخه د مرستې غوښتنه شوې وه. دا د علیاحضرتې د کورنی ځای وه او د دې په خاطر هلته لاړه چې له خپل اصلي او له خپل اصلیت څخه په دې مورد کې یې شمیره استفاده وکړي.

کله چې الوتکه پورته شوه، یوه رڼا یې وغورځوله، چې امان الله ته ویښیې چې ملکه ثریا د الوتکې پر ویره باندې غلبه حاصله کړې ده او له زینې څخه بیرته نه ده راکوزه شوې.

غلام صدیق هم په الوتکه کې، چې ډیرې پیسې یې له ځانه سره اخیستې وې. هغه د حرکت د لومړي موج په څیر روان و چې خطرناک معلومیده او د پیښیدو امکان یې هره ورځ لیدل کیده، له کابل څخه کندهار ته د حکومت انتقالول. له دې سره جوخت د کابل مختلفې

نماینده گی په دی مناقشه کی وی چی له امان الله سره کندهار ته لاړ شی که نه، او په دی فکر کی وو چی په نورو ولایاتو کی به همداسی مشابهی پیښی صورت ونیسی.

دوی نماینده گی هغوی چی د امان الله له تقدیر سره ډیر زیات تړلی وو، حتی راتلونکی ته زیاتی متوجه وی. د دسمبر په اتلسمه نیټه په مسکو کی سیاسی بیرو فیصله وکړه چی که ضرورت ورته ولری، نو د امن ځای به امان الله ته ورکړی. پنځه ورځی وروسته له بلوچستان څخه د برتانویانو یو پیغام دهلی ته ورسید چی د عین موضوع ذکر په کی په تفصیل سره شوی و، چی په دی ډول و: «په برتانوی قلمرو کی په یوه گوښه ځای کی امان الله د وینا ورکولو د امکاناتو له نظره ... فکر کیږی د هغه په راتگ کی کوم ممانعت نه وی. که داسی وی نو دا به ښه وی، چی هغه دی دمخه ځان تیار کړی او زما مشوره دا ده چی هغه دی سمدلاسه له سرحد څخه تیر کړی شی او د مخصوص اورگاډی په ذریعه دی یا کراچی ته یا کوم بل ځای ته ولیږدول شی چی د هند حکومت یی مناسب بولی.»

که څه هم امان الله تر شخړی دمخه، ډیر زیات روحیاتی سلاح یی ایسته کړی وه، چی ورته میسر و، بیا هم یوه باارزښته منبع یی درلودله، د هغه د بری په وخت ډیر زیات نو کران هزاره گان وو، کله چی هغه په ۱۹۲۰ کال کی د مریتوب له منځه وړل اعلان کړل، همدوی وو چی د ژوند نوی صحنی ته داخل شول. په مخکینی دوره کی هغوی د امیر عبدالرحمن پر ضد راپاڅیدلی وو، چی داسی کلک گوزار یی ورته ورکړ چی په خپله ده ته هم یی ساری معلوم شو. هزاره گان یی له کوم دلیل نه د امیر عبدالرحمن نه خوښیدل. هغوی د خپلو سترگو او د مغلو په شان مخونو په واسطه ښه پیژندل کیدل.

هزاره جات، هغه سیمه چی په مرکزی افغانستان کی موقعیت لری او دوی په کی اوسیږی، په دردونکی توگه ناهواری ځمکی لری، خو بیا هم په ځینو برخو کی گڼل لری چی په اوړی کی پسونه په کی پیرول کیږی. دا شنه لرونکی ځایونه په غلزیو کی داسی تمایل منځ ته راوړی دی چی غوښتل یی دا ځایونه په خپل تصرف کی راولی. غلزیانو له هزاره گانو څخه بل شکایت هم درلود او ویل به یی چی هغوی د خدای(ج) عبادت لږ غوندی په بله طریقه کوی. هغوی د ډیرو افغانانو په پرتله چی سنی مذهب وو، د اهل تشیع له فرقی څخه وو، نو مذهبی او اقتصادی تربگنی په متداومه توگه د هزاره گانو او د غلزیو د مختلفو ډلو ترمنځ، چی زیاتره سلیمانخیل په کی موجود دی او څرنگه چی د دی سیمی زیات شمیر خلک هزاره گان دی، نو

هغوی ځان مستحق ګڼي او افغان حکومت دغې مناقشې له منځه یووړي او هغوی د ترحم وړ ګرځیدل. ددې په خاطر، د هغوی د شیعه توب عقیده په پراخه سینه د استقبال کیدلو په خاطر او د خپلې آزادۍ په خاطر، هزارګان امان الله ته ډیر وفاداره وو.

هزاره ګان امان الله ته د هغه د ضرورت په موقع کې نفر ورکړل، او هغه یو جنرال واستاوه چې په هزاره جاتو کې دې له هغوی سره کار وکړي. هغوی دا جنرال نه خوښاوه او امان الله ته یې یو لیک واستاوه چې مور پر ته له ستا یو له ورونو څخه بل لیډر نه غواړو. هغه خپل ناسکه ورور چې امین جان نومیده، هلته واستاوه، چې تازه د جرمنۍ له تحصیل څخه هیواد ته راغلی و. امین جان چې هیڅ عسکري تجربه یې نه درلوده د څو زرو هزاره وو لیډر شو. هزاره ګان د امین جان خوښیدل او د هغوی درناوي به یې کاوه او هغوی هم په مقابل کې له امین جان سره علاقه مندي ښودله ولو چې هغه یوازي اولس کلن و. امین جان یو ماهر او اعتمادي نفر و او امان الله ته د خپلې فداکارۍ، چې نوي خلک یې دده کړل، هیڅ د سوال ځای پاتې نه و.

له بلې خوا، د علي احمد وفاداري مدام شکسته وه او د امان الله د ریفورمونو په برخه کې د هغه نظریه د ملایانو له نظریو څخه زیاته جګه نه وه. مګر هغه د پټان د قبیلي نفر یې پیژندل، همدا وجه وه چې امان الله هغه د جلال آباد په لور واستاوه، چې هلته د شورشي قبایلو د قضیې په واسطه یوه خوشبینی ته لمن وهل کیده او هغوی په خپلو منځو کې سره لویدلي وو. د کابل په شاوخوا کې واوره وریدله اودوو قوتو ته ورسیدله، نو علي احمد د پیچومو له لارې خپل سفر وځنډاوه. د غزنۍ په لاره کې خلکو ته پر رباط باندې شپږ سوه روپۍ ورکول کیدې چې لاره پاکه کړي.

د دسمبر په اتلسم، په هغه ورځ چې امان الله پارک ته وتلی و، د سقاو زوی په ګولۍ لګیدلی و. هغه د خپلو وسله والو ملګرو او د خپلو ډیرو دښمنانو په وړاندې له خپل اس څخه ولوید. د هغه د لویدو خبره به ټول کابل کې چا نه کوله. په مجموع کې، د هغه له مړینې څخه د هغه صحت ته زیات دوعا کیدله، ځکه افغانان ... میړانه او زړورتوب خوښوي او څلوېښت کاله وروسته به دې د هغو کسانو له خوا چې دې یې زخمي کړی و د «زړور جنګیالي» په توګه معرفي شي.»

د سقاو زوی په مړدکې باندې د ملا په تیر لګیدلی و، چې سخت ټپي شوی و. هغه د خپلو خلکو له خوا پغمان ته د امان د اوړي د موسم شخصي کور ته یووړل شو.

داسی یوه ورغ به راشي چې د سقاو زوی به د برتانيي د نماينده د جراح په باره کی يوه کيسه گی ووايي چې د هغه د تپ د علاج له پاره تللي و. دا کيسه به د افغانستان په افسانو کی ځای ونيسي او داسی يو مثال به وگرځي چې برتانويانو په قصد سره د سقاو زوی د امان الله په لاره کی اچاوه.

که چيری برتانويانو د شورشيانو ددی ليډر د هغه د ښو اعمالو په بدل کی ستاينه او تقدير کړی وای، نو هغوی به نه يوازی د خپل شخصي ژوند په مورد کی د برتانيي له نماينده گی سره مرسته او ملاتړ کاوه بلکی د برتانيي د امپراتوری د لويي بدبختي او مصيبت په مقابل کی به هم دريده او د هغه ملاتړ به يی کاوه. هغوی فکر کاوه چې حتی د يوی بلی نړيوالی جگړی مخنيوی يی کړی دی.

راتلونکی امکاناتو ته په کتلو سره، همفريز د هغو پيښو لړی وليدله چې که د لومړنی پيښي د واقع کيدو اجازه شوی وای، نو په بيرحمی سره به د تباهي په لور دوام موندلی وای.

همفريز د پيښو دا سلسله داسی بيان کړه: «که چيری د نماينده گی کوم غړی وژل شوی وای، نو موږ به خامخا د هغه تلافي غوښتله، او تر موجوده شرايطو لاندی به امان الله د هغه په ورکړه کی قادر نه وی او دا ما ته داسی معلوميږی چې جنگ به حتمي صورت ونيوه، نو په دی توگه په کابل کی زموږ د نماينده گی د خپلی طالع نوکر دی.»

په هغو تلگرامونو کی چې بالاخره هند ته ورسيدل، د يوی الوتکی په مورد کی تجويز نيول شوی و چې د دسمبر په ۱۸ تاريخ په يوه ټاکلي وخت کی د له پيښور څخه پرواز وکړی او د نماينده گی د پاسه دی وگرځي. د هغی د رارسيدو د تياری په خاطر، د سپيني تکی يو سمبول په ميدان کی درول شوی و چې داسی معنی يی ورکوله: «هر شی سم دی. مه ښکته کيږه. ډير جگ پرواز وکړه.»

د ميرمن همفريز په يو ورځنی يادداشت کی داسی ويل شوی وو؟ «د مردکيو سخت باران او د نهو بجو او لس نيمو بجو په منځ کی دری مردکی په کور کی ولگيدی. د وزير خان منځلو ته ډير مزاحمت خلق شو او وروسته وليدل شو چې د تشناب ... نه انچه ننوتلی وه. د دهليز کړکی غير سالمی او ناخوش آينده وی ... منگلو هڅه کوی چې د مشاورينو او ډاکترانو په کورنو کی پناه يوسی، چې هلته يو وژونکی تپی سړی پاته دی. د مشاور په اشپزخانه کی يو زخمی سړی ليدل کيږی. زموږ ارد ليان گزمه گرځي چې شورشيان د نماينده گی له ساحی څخه ليری وساتی.»

د منګلو یوه ډله، چې د امان الله له پاره جنګیدله، د نماینده ګی د یو نژدی دیوال له شا څخه چې دروازی ته نژدی و، خپلو ډزو ته دوام ورکاوه. میرمن همریز داشی یی یادداشت کړ: «منګلو پر هر چا باندی ډزی کوی او د وزیر له خوا د یو پیغام په ځواب کی وایی چې هغوی به هرچا باندی ډزی وکړی چې بی تر سترګو شی. بیا هم د سقاو د زوی نفر چې زموږ د الوتکی رااتګ وینی او هغوی ته اعلان کوی چې دا زموږ نفر دی ورباندی ډزی مه کړی، خپلی ډزی بندوی.»

بله ورځ هغه داسی ولیکل: «د ستاینی وړ هوا او د ښه تصادف له مخی ګرمی، که څه هم ممکن د واورو سخته وریدل وضعه خړه پړه کړی. زموږ باغیان د باغ په شاوخوا کی هره ورځ خپل دوه خره په پوره بی احتیاطی سره ګځلوی، مګر هغه ورځ راغلی ده چې بوازی یو خر پاته شوی دی. اوس دری ورځی کیږی چې د کابل د بی سیم له لاری پیغام تیریږی په دی توګه زموږ نفر په دی نه دی قادر شوی چې زموږ عسکری محافظین رخ کړی.»

د دسمبر په ۲۱ تاریخ د سقاو زوی د برتانیی نماینده ګی ته یو پیغام واستاوه او داسی ښکاریده چې چاری د خپلی حمایی لاندی نیولی، په دی معنی چې هیڅوک دی په هغه ورځ باندی له ساحی څخه ونه وځی. د هغه صحت په پوره اندازه بهبودی حاصله کړی وه او کولی شو چې په جنګ کی برخه واخلی. د امان الله له خوا نماینده ګان له قرآن شریفونو سره باغ بالا ته لاړل، چې دا کار د اوربند سمبول و، لکه چې سپین بیرغ په غرب کی دی. لیکن د سقاو زوی سوله نه غوښتله. هغه وویل زه نن په خپل ټول قوت سره د کابل په لور خوځیږم.

هغه دا کار ونه کړ، هغه د باغ بالا په لور په شاتګ وکړ او د برتانیی د شاوخوا پوځ حکومتی نفر وو.

میرمن همفریز داسی لیکلی دی: «زه د پاچا نفر وینم چې غواړی دروازی ماتی کړی، او بیره کوی چې د (نماینده ګی اداری کارکوونکو) ته اخطار ورکړی. په بله شپه کی هغوی د ننه ننوځی، او په داسی حال کی چې د یو منصبدار له خوا ورته لارښوونه کیږی، پر یو لوی کور باندی برید کوی. وزیر دباندی وځی. یو عسکر خپل ټوپک ورته سیخوی، مګر صاحب منصب یی د هغه د ټوپک خوله ښکته خواته سیخوی. وزیر امر کوی چې د برتانویانو له ساحی څخه دی ووزی او صاحب منصب خپل نفر راغواړی. مګر یو ساعت په بر کی نیسی چې ټول دباندی وشړی لیکن وزیر ژر دباندی وځی، ځکه له پایپ څخه د تنباکو د تویولو ضرورت

احساسوی. هیڅ شی زموږ نوکریوال دومره نه آراموی لکه چی دومره وزیر پایپ یی آراموی او یا چی یرغلګر خلع سلاح کوی ...

موږ ښځی او ماشومان خپلو کوټو ته واستول شو، کله چی دروازی ماتیږی او په دی خطرناکه شیبه کی زموږ یوازنی نسل زموږ د الوتکو رارسیدل دی چی لویه اخلاقی حمایه ده. یوه روسی الوتکه (افغانی الوتکه چی پیلوټ یی روسی و) راغی او وضعه کړکیچنه کوی. موږ ډاریدو چی ممونه به وغورځوی او د سقاو زوی به شکمن کړی چی ګوندی موږ هم په میخ وهو هم په نعل. له دی وروسته یوه روسی الوتکه مدام پرواز کوی چی زموږ د الوتکه وڅاری کله چی پرواز کوی.»

د برتانیی دغی الوتکی د کابل پر خلکو باندی ځینی شیان وشیندل، دا هغه ورقی وی چی په کی د نماینده ګیو قدسیت ذکر شوی و او داسی اخطاریه هم په کی موجوده وه: «په هر حال، که چیری د نماینده ګی اداری هیأت، د هغه ملکیت او یا قونسلانو ته ستاسو د حملی په واسطه کوم تاوان ورسیږی نو د برتانیی حکومت به د هر تاوان انتقام له تاسو څخه واخلی.»

که څه هم امان الله په آزاده توګه برتانویان یی د خپلی تباهی د وسیلی په توګه مجرم نه ګڼل، خو بیا هم له هغو سره یی دوستانه روابط نه درلودل. روسان چی سفارت یی په ښار کی و او په دی توګه مقاطعه په صورت کی نه و نیولی، ډیره زیاته خواخوږی ښودله او یوه بله نظامی اتشه هم راورسیدله، کله چی الوتکی لاتر اوسه د کابل او ترمز ترمنځ پوستی وړلی. برسیره پر دی روسانو به ورته ممونه او د الوتکو تیل استول، او د دسمبر په ۲٤ نیټه یوه معاهده یی لاسلیک کړه چی شپاړس الوتکی به له پرزه جاتو سره د راتلونکی اپریل تر پایه پوری ورته ولیږی او همدا راز یو زیات شمیر توپخانی به هم ورته واستوی. برتانویانو تر اوسه پوری په دی فکر کی وو چی تصمیم ونیسی ورته اجازه ورکړی چی له هند څخه لاری موټران وپیری.

هغو خلکو چی دغه پاڼی وریاندی شیندل شوی وی، دومره خاموشی اختیار کړه څومره چی امان الله کړی وه دی او هغوی فکر کاوه چی دا د افغانستان ټولو اکی ته په سپک نظر کتل دی، چی یرغل کسان په ازاده توګه ډاروی. برسیره پر دی د روسی سفیر یو ځلمی د امان الله یو ټپی شوی عسکر چی خپل موټر ته خیژولی و او روغتون ته د علاج له پاره رسولی و. خلکو دغه عمل د برتانیی د تړل شوو دروازو سره مقایسه کړ چی په هغه ځای کی ټپیانو او مړو ته بی علاقه ګی ښودل شوی وه.

همفریز د هند حکومت ته وویل: «که چیری امان الله له پاچاهی څخه غورځول کیږي، لکه چې امکانات یې لیدل کیږي، او د هوا د خرابی په وجه د الوتکو د پرواز امکان هم نشته، نو دا په ضرور وی، چې د قبایلو په بدرګه د هغه ښځه او ماشومان پیښور ته واستول شي، او که معمولي لاره امنیت ونه لري نو ممکن د دې قبایلي سړي په ملګرتیا چې زه ورباندې اعتماد لرم د پنجشیر، تګاب، لغمان او د مومندو د غرونو له لارې دا سفر صورت ونیسي.»

د هغو په دې ناامیدی کې چې خپله نماینده ګی له «یوی پیښې څخه محفوظ وساتي، چې د برتانیې د امپراتوري په تاریخ کې، په خپل پرمختګ کې په آسانی سره ثابت کیدې شو، چې لوی مصیبت و» ځینې برتانویانو فکر کاوه چې باید شینوارو سره دې مرسته وشي، چې همفریز بې له کومې طعنې څخه ورته «د نړۍ نامتو سړی» ویلې وو.

د (۱۸۸۰م) کال په یو وخت کې یو استرالیایي اکټور له منځني ختیځ څخه لیدنه کتنه وکړه او د خپل هیواد د پراخو ښارو ډاګونو چې د استرالیا خلک ورته «لیری پراته ښار ډاګونه» ویل، او د دې منطقې د پراخو ډاګونو د ورته والي تراغیزې لاندې راغلی و. هغه ډاګونه دې استرالیایي ته هغه څه وریه یاد کړل چې هلته هم اوښان ترانسپورتي چاري ترسره کولې نتیجه دا شوه چې ډیر اوښان او اوښ والا هغه هیواد ته واستول شول چې ډیر یې افغانان وو.

په دوی کې ډیر یو بریالي نفر د شینوارو له سنګوخیلو څخه و چې عبدالواحد نومیده، او د «استرالیا د اوس د پاچا» په نامه سره یادیده. عبدالواحد روانه انګلیسي خبرې کولې، که څه هم چې د هغه انګلیسي لهجه بیخي استرالیایي وه. هغه پر ځان باندې د ښاغلي وید (Mr. Wade) نوم ایښی و، چې یو انګلیسي نوم دی. هغه خپل اصلي هیواد ته له خپل یو زوی سره چې مور یې استرالیایي وه. له یو مقدار زیاتو پیسو سره راغی. هغه د سقاو د زوی په ښار څخه وکړه چې په داسې یو ځای کې استوګنه غوره کړي چې دی به هغه ځای کې یو ګمنامه سړی وي. هغه د یو باندیت په عکس، په هغه ځای کې د داخلیدو حق ترلاسه کړی و او پلان یې دا و چې د افغانستان منرالونو ته وده ورکړي چې د هغه په باره کې ډیرې افسانې موجودې وې، سره د دې چې یاقوت یې یوازنی هغه منرال و چې په زیاته اندازه پیدا کیدل چې حتی په شاهي قصر کې یو تشناب په دې ښکلي معدني ډیره ښکلی کړی شوی و.

په ۱۹۲۵ کال کې د برتانیې د نظامي اتشې په یادداشت کې داسې ویل شوي وو: «د دې

له پاره چې عبدالواحد د هند ويزه ترلاسه کړي، د اووني په اثنا کې له نماينده ګۍ څخه ليدنه کتنه وکړه ... هغه تر اوسه پوري په کندهار کې د (کان) ايستلو د نتيجې په مورد کې يقيني نه دی، د دی موضوع په باره کې تصميم د انګلستان د هغو له خوا نيول کيږي، چې د دی کار په مالي مرسته کې علاقه مندي ښيي. هغه هڅه کوي چې د کونړ د خان موقف قبول کړي او د هغه ځای ځنګل او نوره دارايي تصاحب کړي چې دی فکر کاوه، هلته پريمانه دی. »

وروسته عبدالواحد يوه موضوع تکرار کړه چې برتانويانو ته مانوسه وه: « دا د هغه يو منل شوی تصميم دی چې د برتانيي د ملاتړ په ارتباط خپل ټول قدرت په کار واچوي او په دی کې هغه راضي دی چې د نادر له خوا به ورسره مرسته وشي، چې دی ورسره تير کال يو څو ورځې په پاريس کې تيرې کړې دی. »

مګر د عبدالواحد له هيلو څخه يوه هم ترسره نه شوه. د کان ايستلو پروژه ناکامه شوه. او دی هغه لس زره سترلنګ پونډه له لاسه ورکړل چې افغان حکومت ته يې ورکړي وو. هغه دا چانس ترلاسه نه کړ چې د کونړ د خان موقف قبول کړي، په دی چې امان الله هغه موقف يې ميرزمان ته ورکړی و. ميرزمان هغه سړی و چې اوس يې د هغه په خاطر جلال آباد څخه دفاع کوله. عبدالواحد د سقاو د زوی په شان نااميده شو او د کسات اخيستلو له پاره تيار شو.

کله چې د سقاو زوی پر کابل باندی حمله وکړه، هغه په پيښور کې و، او هلته يې د شمال لويديځ د سرحدی ايالت کومشنر ته چې د دسمبر په ۱۸ نيټه د هند حکومت ته تلګرام کړی و، داسې پيشنهاد وکړ: « د عبدالواحد شينواری له خوا، چې بل نوم يې استراليايي ښاغلی ويد (Mr. Wade) وي د نماينده د ساتلو ضمانت کړی دی. هغه په خپل پيشنهاد کې ويلي دي چې زه به (د برتانوي الوتکې چې جلال آباد ته نژدی تيکر کړی و) د هوا بازانو ژغورلو ته په دی شرط ځم چې کابل ته د تلو اجازه ماته راکړی شي. له چکنور ملا او د شورشيانو له سرکردګانو سره د ده زيات نفوذ دومره پوره څرګند دی، لکه چې له موجوده امير سره يې دښمني څرګنده ده. هغه د هغې ډاډ ګيرنې په خاطر ټينګار وکړ چې د برتانيي حکومت د امان الله خان په خاطر له مداخلې څخه ډډه وکړي، په دی شرط سره چې نماينده ګيو ته ضرر نه وي. زما له خوا هغه ته د تلو اجازه به له اوضاعو څخه څرګنده شي. هغه دی بايد نن ماښام شروع وکړي. »

ليکن د هند حکومت تصميم نه درلود چې استراليايي عبدالواحد ته چې بل نوم يې ښاغلی ويد و، داسې غوږي او نرمي وعدی وکړي. « موږ دا کار ستا اختيار ته پريږدو چې هم

عبدالواحد استخدام کوی او که کوم بل قبایلی نماینده ... تاسو بی له شکه د هر داسی عمل د مخنیوی په ستر اهمیت پوهیږی چی د سیاسی دخالت یا تشویق په توگه د تعبیر وړ وی. ټول تشویقونه باید په نقدی اساساتو منحصر وی. دا ددی معنی لری چی عبدالواحد ته هغه ډاډ گیرنی نه شی کیدی چی دی د هغه غوښتنه وکړه.»

په هر حال، د هند حکومت فکر نه کاوه چی دغه سری ته به ضرورت ولری. له پیښور څخه په یو وروستی تلگرام کی ویل شوی وو چی «دا چی دا ناشونی دی چی یاغیان به د برتانیی نماینده گی ته تاوان ونه رسوی په پیښور او په سرحدی قبایلو کی عمومی ذهنیت دی. په هغه صورت کی چی هیڅ بهرنی قدرت مداخله ونه کړی نو دوی مطمین دی چی امان الله له پاچاهی څخه وغورځوی او ډیر ژر به وباسی چی د برتانیی حکومت ته د مداخلی د کولو د علت مخنیوی وکړی.» په پیښور کی هم د برتانیی د نماینده گی ارزښت په دی کی و چی له شورشیانو سره همکاری ولری.

امان الله خان هغه خطر بی هم درک کړی و چی د نماینده گی له خوړمن کیدو سره نغښتی و. هغه نه پوهیده چی تازه مصیبت ته څومره نژدی شوی دی، کله چی هغه عسکر خپل ټوپک بی همفریز ته سیخ کړی و او په دی توگه یی رضامندی ښکاره کړه، چی برتانوی الوتکی دی له هند څخه پرواز وکړی او بهرنی ښځی او ماشومان دی وباسی. د دسمبر د ۲۳ تاریخ د یخ سهار په پنځه نیمو بجو میرمن همفریز او د برتانیی د نماینده گی نوری ښځی په پښو د ایتالیی سفارت خوا ته روانی شوی. د ایتالیی سفارت هغه میدان ته نژدی و، چی الوتکی هلته ښکته کیدی. دوی د هغو عسکرو له خوا بدرگه شوی چی د امان له خوا استول شوی وو. د جرمنی او فرانسی له نماینده گیو څخه نوری ښځی روانی شوی، او په خپله د امان الله له قصر څخه د هغه د ښځی گنډونکی چی له رومانیی څخه وه او د هغه د ماشومانو جرمنی پرستاره د تلو په حال کی شوی. هغوی په ځینو نورو کږو وږو لارو ووتلی، ځکه چی عمومی لاری امنیت نه درلود. په دی وخت کی جنگ نسبتاً دریدلی و، لیکن بیا هم ځینی ډزی اوریدل کیدلی.

پیلوټ د بی سیم یوه دستگاه یی پرینښود له چی د برتانیی د نماینده گی له پاره درول شوی وه. امان الله خان د هغه په باره کی پوهیده، دا له لوبی برتانیی سره د هغه له شرایطو څخه سرغړونه وه، لیکن هغه ډیر خوابدی و چی اعتراض یی کړی وای.

بله ورځ یوه بله برتانوی الوتکه راورسیدله. دا الوتکه ددی له پاره راغلی وه چی د نماینده

گانو کالي يوسي، مگر همفريز وويل چي د کاليو نه دی خواخوږي توب بايد پر انسانانو باندی زيات وي او دا الوتکه يې دی مقرره کړه چي نوري ښځي دی په کی ځانونه وباسی. په هر حال، ښځي د کالو په هکله د هغه په بی علاقه گی ... نه شوی. يوه جرمنی ښځه طاقت ونه کړی شو نو د الوتکی د بکسونو ځای ته لاړله چي وگوری بکسونه يی په ښه توگه ځای په ځای شوی دی که نه. هغه ته خبرتيا ورکړی شوه چي دا کار ونه کړی، د الوتکی څرخ بيخی ونه دريد، د هغی په سر ولگيد. دا ددی سبب شو چي بيرته ووځی، ځکه سر بی ټپی شوی و، خو دومره خطرناکه نه و. دا کار د ټولو ډلو په بدمرغی باندی تمام شو، ځکه چي د الوتکی څرخ مات شوی و.

د دسمبر په ۲۵ تاريخ، چي د اروپاييانو له پاره کرسمس و، ليکن د افغانی مسلمانانو له پاره پوازی يوه بله ورځ وه، د امان الله بخت لږ غوندی بيداره شوی و. د سقاو د زوی قواوی ټولی له باغ بالا څخه لاړی او د پغمان او جبل السراج په لور يی عقب نشينی وکړه. په دی باب برتانويانو داسی ليکلی دی: «د دسمبر د ۱٤ تاريخ څخه راپه دی خوا نماينده گی د لومړی ځل له پاره د ډزو له زون څخه خلاص شو، د پاچا زيات شمير لښکر او هغه کسان چي نوی عسکری ته نيول شوی وو، په دی ورځ د پغمان له لوری څخه د کابل خواته په جگه روحيه روان شول. هغوی لاپی کولی چي د سقاو د زوی ډله يی د برچو په څوکو تار و مار کړی، مگر د هغو د تاکتيکونو د اتو ورځو له دقيقی څارنی وروسته، مشکله وه چي د هغوی خبری ومنلی شی.»

په جلال آباد کی، علی احمد په آزاد ډول مومندو و خوگيانو ته پيسی ورکولی چي د سولی وعدی ترسره کړی. شينواری تر اوسه پوری مخالف وو او اوس له هر وخت نه زيات خطرناک وو، په دی چي زيات شمير توپونه يی ترلاسه کړی وو، چي د جلال آباد پر ضد ورڅخه کار واخلی. همدا راز هغوی د کاروانونو د لوټولو په پخوانی عادت هم اخته وو، هغوی د چکنور ملا خپه کړ ځکه پر هغه کاروان باندی يی بريد وکړ چي د هغه د حمايی په واسطه د هند په لور روان و، کله چي دا خبره هند ته ورسيدله، ټول کاروانونه له لويديځی لاری څخه منع کړی شول. په پيښور کی دا اوازه ولويدله، چي امان الله روسيی ته تللی دی، افغانی مامورين او تجاران دومره پريشانه شول، چي د دوو سوو زرو روپيو په ارزښت قره قلی پوستکی يی له افغانی گدام څخه وايستل. د سرحد سکان خپل د گرانت صاحب مقدس کتاب په شاندارو مراسمو لنډيکوتل ته يوړ.

په کندهار کې هم د علیا حضرتې له خوا پیسې لګیدې. د دسمبر په ۲۴ نیټه هغې د خپلې زوی د بیانیې په پرتله ډیره اتشینه وینا وکړه. هغې په خپله وینا کې د شینوارو ستونزې لږ وښولې، چې واقعاً په دې وخت کې د هغوی خطر د سقاو د زوی له خطرونو څخه لږ وو. هغې هیله وکړه چې ټول ترخیص شوی عسکر دې بیا ثبت نام وکړي، او د هغې پالیسې د بیانوی کولو په باب یې اصرار وکړ، چې څو کاله دمخه په کندهار کې اله ګوله منځ ته راوړې وه، چې د هشت نفرې په باب وه. دا شې د هغې ورځې وتیولې. د شپې له خوا به د هغو خلکو کورو ته تله چې د دې له کورنې سره یې خپلوې درلوده.

اوس د کندهار د هغو پوستیرونو عواطف او احساسات له منځه تللې وو چې د هغو له مخې امان الله د خپلې مور له خپلوانو یا ماماګانو څخه د مرستې غوښتنه کړې وه او د هغو کسانو د مرګ اعلانونه کیدل چې که له عسکرې څخه غاړه غړوله. کندهاریانو د کابلیانو په شان، خپلې پیسې او جواهرات ښخول. بوه اوازه خپره شوه چې د هلمند د رود د پاسه د بیړیو برج چې د امان الله د بیرته راتګ په خاطر جوړ شوی و، په قصد سره وران کړی شوی و.

په کابل کې د ترکیې سفیر له همفریز سره د چای د څښلو په وخت کې وویل چې نه امان الله او نه د هغه وزیران پوهیږي چې له موجوده بحران سره څنګه چلند وکړي. هغه په خپله د کاظم پاچا د ژر رارسیدو په واسطه ځوریده. کاظم پاچا د ترکیې هغه مشهور جنرال و چې د افغان پوځ د زیاتې پیژندنې په خاطر د اتاترک له خوا استول شوی و. پرته له یوې ډلې ترکانو څخه چې د استقلال په حاصلولو کې له افغانانو څخه تفوق حاصل کړی و، نور ترکان دمخه بیخې بې شهرته وو.

د هغې ورځې په وروستیو وختونو کې همفریز بیا چای د ایتالیې له وزیر مختار سره د چای څښلو په وخت واوریدله چې لیونید ستیارک، د روسیې سفیر، چې دمخه د امان الله د بخت په باره کې خوشبین و، اوس بدبین شوی دی. ستیارک چې له برتانیې څخه وروسته بدبینه شوی و، د خپلو مربوطو کسانو په ایستلو کې هم وروسته شو، مګر د دسمبر په ۳۰ نیټه له ترمز څخه الوتکې راغلې چې دوی هم یوسي.

د چای څښلو په هغه ورځ باندې همفریز یو بل خبریې هم واورید چې په هغه باندې ډیر په قار شو او په جګ آواز سره یې وویل، هرچا که دا خبره ومنله زما په فکر به د یو خراب سړي په څیر معرفي شي. دې د هغه په اوریدو کې بې علاقې معلومیده، ځکه چې ټوله نړۍ ورباندې

پوهیدله او ډیرو وربانډی باوره کاوه. دا آوازه چی برتانویان شینواری باغیان اداره کوی، دمخه زړه شوی وه، لیکن اوس د یو بل سړی نوم په کی علاوه شوی و چی فکر کیده ټول کارونه دده له خوا تنظیم کیدل. دا سړی عربی لارنس و.

د می د میاشتی له ۲٦ راهیسی لارنس د میرانشاه د ار. ای. اف (R.A.F.) په پوسته کی ژوند کاوه چی د افغانی او هند له سرحد څخه لس میله واټن یی درلود.

توماس ای. لارنس یو له هغو غیر کو، لیوالو افسرانو څخه و چی په شمال لویدیځ سرحدی ایالت کی اوسیده چی ژورنالیستانو فکر کاوهو دی د دوی له پاره یو شی دی چی «د هغوی د امرینو د ویښتانو د جګیدو باعث به ګرځیده» لارنس څلوېښت کلن او ستړی و. په میرانشاه کی هغه د تی. ای. شاو (T. E. Shaw) په نوم په هوایی قوا کی مصروفیت درلود، که څه هم د هغه نور څلویښت تنه برتانویان دده په حقیقی شهرت او هویت باندی خبر وو. شاو د هغه اصلی نوم و، خو د ۱۹۲۲ کال په اګست کی هغه په شاهی هوایی قوا کی په دریم استعاری نوم باندی داخل شوی و، او د ار. ای. اب. د لاریښوونکو له خوا د هغه شاملیدل تحمیلی و. دمخه تر دی چی دوی دا سړی پیدا کړی، ډیرو ډاکترانو ته ویلی وو چی یو ښه تکړه او صحت مند سړی ورته پیدا کړی. ددی کار تجویز ددی په خاطر نه ونیول شوی چی ګوندی هغه خپله دنده په ښه توګه سرته رسوی. بلکی د هغه د خپلی ګټی په خاطر و چی ورته په «ار. ای. اب. کی یوه پناه ګاه ورکړل شوی وی.»(۱)

لارنس خپلو ملګروته ویلی وو چې زه، «دماغی استراحت» ته ضرورت لرم. د هغه ماغزه او وجود د عمومی جنګ په موده کی فعالانه فعالیت کړي و، کله چې دي په ظاهره توګه یو ډګروال و، لیکن په حقیقت کی د برتانیی د بهرنیو چارو یو غړي او یو نماینده، چې د عرب بلواته له جنګ څخه وروسته لمن ووهله، چې د خپلواک وعدي ورته تر سره کړي. هغه دا کار به اخلاص سره ونه کړه لکه چی د ډیرو کلونو له پاره به فکر کیده. دد خپلی د هغی مودی د کیسی په لومړی نسخه کی چی د The seven pillasof wisdom یا د عقل د اووه ستنی په نامه سره یادیده، داسی ولیکل: «یو هدف ته د رسیدو په لاره کی وعده خلافی له بایلنی ښه ده.» لیکن دا شی یی د خپل یو ښه دوست په مشوره چی برناردشا نومیده حذف کړ، چی وروسته دی هغه نوم پر ځان کیښود. کوم شی چی لانس یی پریشانه کړی و، له جنګ څخه وروسته د نړی د تنظیم طریقه وه، هغه د فرانسی له حالت څخه متنفر و دا په کابل کی د

فرانسی د نماینده گی د دلچسپی موجب وگرځید او د هغه په اخبارونو کی د لارنس افغانستان او لرگیو پلیرز سنټ جورج (Lescavaliersde St. Georges) مطالب نشریدل چی د برتانیی د تیولو اکانو د سکی طلایی سمبول و او د تقریباً د هر څه د رانیولو ارزښت درلود.

د لارنس شا له پاره ار. ای. اف. نامساعد و او دی په کی زیات نامناسب وه لیکن هغه د هوایی قـواو د نفر په توگه پاتـه شـو او د ۱۹۲۶ کـال په دسمبر کی، چی د هغـه د «دماغی استراحت» د پیل څخه څلور کاله وروسته و، هغه د هند کراچی ته تبدیل شو.

مگر د هغـه دماغ پوره استراحت ونه کړ، د ۱۹۲۷ کال په جون کی هغه له کراچی څخه خپل یو ملگری ته داسی لیکلی و: «آیا پوهیږی چی کـه زه په ۱۹۱۷ کـال کی د برتانیی د حکومت په باب دومره پوهیدی لکه چی اوس پوهیږم ما به په هغوی کی د ځان زیات طرفداران پیدا کړی وای، چی د آسیا بنی ته به په اساسی توگه تغییر ورکړی وای؟ او په همدی لیک کی داسی راغلی وو:

«موږ اوس یوازی د ترکیی، فارس، چین یا د افغانستان له لاری ځانونه روسیی ته رسولی شو او زه فکر کوم روسیی سره دومره قوه او قدرت شته چی هر دغه هیواد د خپلی خاوری جز وگرځوی، لکه څنگه چی جرمنانو د رومانیا خاوره وگرځوله...

«ډیره خطرناکه نقطه افغانستان دی. آیا پوهیږی چی نژدی و تیره اوونی زه هلته لاړ شم؟ په کابل کی د برتانیی اتشه د یو هواباز کاتب په عنوان لیکلی دی او که چیری زه په تایپ کولو کی چالاک وای نو عسکری اداری به زما نوم د مخه لیکلی وای. زه به مجبور شم چی پر ځان فشار راوړم او تایپ پوره زده کړم، ځکه ما لـه څوارلس کلنی نه تر اتلس کلنی پوری په نیمه مخفی دستگاه کی ښه پاکه شاگردی کړی ده او روسیی زما توجه بی ځان ته اړولی ده. زه فکر کوم تصادم حتمی کیدونکی دی. د روسیی په لاس کی قوی پری دی او زموږ په وخت کی به لوبه د هغی په گټه تمامه شی.»

هند ته د لارنس د تبدیلی په وخت کی د برتانیی د امپراتوری په فکر، روسیه د افغانستان په باره کی یو ستر خطر و. امان الله روسیی ته د تلو په حال کی و، د روسیی او د افغانستان ترمنځ د نژدی اړیکو امکانات قوی وو، او ډیرو کسانو د برتانیی د ناکراری او ددی بی استفادی سړی د تبدیلی په منځ کی چی نوم بی په لست کی دی، یو ارتباط وچی.

د ۱۹۲۸ کال د می د میاشتی په دویمه نیټه، چی له پولنډ څخه مسکو ته د امان الله د تګ له نیټی څخه یوه ورځ دمخه وه، لارنس خپل ورور ته داسی لیکلی و: «زه د ننه په هیواد کی د ځینو نظامی تاسیساتو په خاطر له کراچی څخه ځم.» هغه خپل ورور ته د خپلو موکلینو په باب وویل او هم یی ورته وویل چی دارایی یی ځنګه وویشله شی. د خپل یو ناچاپ شوی اثر په باره کی هم ورته ولیکل چی منټ (Mint) نومیده. «زه له مرګ نه خبر نه یم، مګر کله چی زه تا د «منټ» له موجودیت څخه خبر وم، بهتره ده چی له نورو ترتیباتو څخه باخبر وساتم. که مختصر وغږیږو په ډیر آسانی سره ترلاسه کیږی.» هغه سرهاګ ترنچرد (Sir Hugh Trenechord) ته چی د شاهی هوایی قوی په راس کی یی قرار درلود، وویل چی زه غواړم تبدیل شم او له هغه افسر څخه ځان خلاص کړم چی د وهلو اخطار یی راته راکړی دی.»

هغه د جون په ۳۰ نیټه له میرانشا څخه یو دوست ته داسی لیکلی و: «دوی اساساً دلته ما یوی شعبی ته استخداموی. زه یوازنی هواباز یم چی په ټایپ کولو باندی پوهیږم.»

په ټایپ کولو کی د اکسفورد ددی فارغ التحصیل مهارت چی نړی ته یی ټکان ورکړی و، او یو مشهور کتاب یی لیکلی و، او په استخباراتی شبکه کی روزل شوی نفر و، دده د لیکنو موضوع وه. هغه جورج برناردشا ته ځان د «ټایپست او د دوسیو او وظیفو د مسؤول» په توګه معرفی کړ، اما زیاته یی کړه: «زه په ټایپ کولو دومره ښه نه پوهیږم، خو بیا هم د ورځی له مخی له دی څخه ټایپ کولی شم ... دا ډیره سخته ده چی د ټایپ په ماشین کی یو له معنی ډک مکتوب ترتیب کړی شی.» هغو ناول لیکونکی ای. ام. فارستر (E. M. Forester) ته د هوایی قواو د ټایپستانو د روزلو په هکله یو بل تهمت لیکلی و: «ددی ټایپ شوی مطلب د فاصلو په باب بی حاله نه شی. ما دا په تیاره کی ټایپ کړی دی.» او د ټایپ ماشین زنګ نه لری چی د هری کرښی په پای کی یی ووهی ... او زه ددی احساس نه شم کولی چی زما ګوتی کوم توری وهی.» د هغه په پروګرام کی د هیڅ سیستم ټایپ کول نه و.

یوه موضوع چی دی د هغه په باره کی سکوت اختیار کړی و، هغه طبیعی منظره وه چی دده په شاوخوا کی وه. هغه لیکلی و: «موږ د اغزی لرونکی مزی په منځ کی ژوند کوو، لیکن دی چی د عرب صحرایی په روښانه توګه تشریح کړی وه، د وزیرستان د لوړو څوکو په باب یی هیڅ نه وو ویلی.

ستا رښتیانی لوبه او مسابقه څه شی دی؟ دا د جورج برناردشا پوښتنه وه چی یو ځلی په

میرانشاه کې ورته لیکلې و، او د هغه ځواب داسې و: «آیا ته د دې په خاطر ځینې کارونه بیخي نه کوې چې پوهیږې څه باید وکړې؟»

د سقاو د زوی تر حملې د مخه له کابل څخه د همفریز له وروستیو پیغامونو څخه یو پیغام داسې و: «زه باید د تلګرام په واسطه پوه شم چې لارنس چیرې اوسیږي او دا واک دې راته راکړې شي چې: د هغو خبرو قطعي ځواب ورکړم چې وایي هغه د سرحد په نژدې سیمو کې اوسیږي او یا دا چې هغه له افغانستان څخه لیدنه کتنه کړې ده.»

په همدې وخت کې د شمال لویدیځ ایالت داسې راپور ورکړ: «د ډکې سرحد دار ته له کابل څخه اروپایي عکسونه له امرونو سره راغلي دي چې که مو پیدا کړ، ګرفتار یې کړی. ویل کیږي چې عکسونه په هند کې تیار شوي دي او داسې فکر کیږي چې د لارنس وي.»

همفریز ته ویل شوي وو چې لارنس په دې وختو کې پېښور ته بدل شوی دی، لیکن بدل شوی نه و او تر اوسه پورې په میرانشاه کې و.

د افغانستان له کیسو څخه یوه کیسه داسې وه چې د ختیځې سیمې په غرنیو سیمو کې یو پیر د شورش په وخت کې لیدل شوی، چې تر هغه وروسته بیا ونه لیدل شو. دا پیر کله د پیر کرم شا او کله به د پیر منشي شا په نامه سره یادیده او داسې عقیده موجوده وه چې هغه لارنس و. څرنګه چې زیاتره افغانان ابي رنګه غټې سترګې لري، نو د لارنس دا ډول سترګې به د دې سبب نه کیدې چې له خپلې عهدې څخه دې بې برخې وګرځول شي. هغه ممکن په پښتو ژبه نه پوهیده، او د عربي ژبې د تیرلو تجربو سره سره په صحیح توګه په عربي خبرې نه شوې کولې چې یو عرب یې په خبرو پوه کړې وای. څلور تنه له رمزه ډک پیران په ربښتیا سره د افغاني غرونو له لارې تګ راتګ کاوه. دوی هغه نماینده ګان وو چې د کابل له نماینده ګانو سره په تماس کې وو او د هند له مسلمانانو څخه وو چې ګولې یې شول له سرحد څخه تیر شي.

په لاهور کې پر یو مشهور پیر باندې د قهرجنو هندیانو لخوا، چې فکر یې کاوه، هغه به لارنس وي برید وشو او نژدې و چې ویې وژني. په افغانستان کې یو سړی د برتانویانو له خوا د هغوی په خپله خوښه د ځینو افواهاتو په منظور پیژندل شوی. همفریز داسې تلګرام وکړ: «هغه اروپایي سړی چې ساخته ګي ږیره یې درلوده او په دې وختونو کې په متون کې ګرفتار شوی دی، ممکن یو جرمني سړی وي چې سپارلنګ (Sparling) نومیږي. هغه یو ډنګر سړی دی، ژیړ بخنه څیره، متوسطه ونه، نژدې اووه ویشت کاله عمر لري او د وحشي په شان

ښکاري. څواوونی دمخه هغه له کابل څخه ورک شو. سپارلنگ اسلام ته مخه کړی ده او د افغان حکومت په زیات بی اعتبار او مرموز مالیاتی راکړه ورکړه کی ورځخه لاره ورکه شوی ده... پیشنهاد کړی چی که دغسی سړی چی د سپارلنگ اشتباه ورباندی کړی، گرفتار شی. دا هغه اروپایی دی چی افغانان ورباندی د لارنس شک کوی. » د لندن د بهرنی په یو یادداشت کی داسی یو خواشینی کوونکی خبر خپور شوی و: « داسی ښکاري چی د لارنس کیسه به له منځه لاړه شی که چیری سپارلنگ لاس ته راشی. لیکن په متون کی د هغه گرفتاری به دا موضوع مشکله کړی چی موږ په خپلو قبایلو کی بی طرفه پاته شو. »

که څه هم، کله چی پر لارنس باندی د پاچا جوړونکی په توگه عامه افکار ځینی توضیحات تحمیلول، وروسته په لندن کی داسی پیشنهاد شوی و چی په هند کی د « منشی شا (لارنس) د خدمت د دوری کرونولوجیکی خبرونه خپاره شی او که ممکن د هغی طریقی مطلقه څرگندونه دی وشی چی دی په کی خپله د رخصتی دوره تیره کړی وه، که چیری ورته درکړله شوی وی. که دا ادعا حقیقت ولری چی هغه تر اوسه په پښتو نه پوهیږی ممکن گټور وی. »

په ځواب کی د « آزادی نماینده » په باره کی چی د رخصتی په موده کی په تحریک لاس پوری کړی و، اشتباه گانی لیدل کیدی. « د (هغو معلوماتو له مخی چی د هوایی وزیر له خوا موږ ته راکړ شوی دی) داسی اټکل شوی دی چی وویل شی چی موږ پوهیږو هوانورد منشی شا ته د تیری جنوری تر لومړی نیټی پوری په هند کی کومه رخصتی نه ده ورکړی شوی. سره له دی دا امکان لری چی هغه له محلی رخصتیو څخه استفاده کړی وی چی په دی باره کی د هوانوردی وزیر موږ ته څه نه دی ویلی، او حتی که موږ په دی مورد کی مکمل اسناد هم ترلاسه کړو، موږ به تقریباً په دی باندی قادر نه شو چی په یقین سره ووایو چی هغه داسی کومه موده یی څنگه تیره کړی ده. ترڅو چی موږ دقیق معلومات ترلاسه نه کړو، زه فکر کوم دا به عاقلانه نه وی چی هڅه وکړو د اسنادو له مخی اثبات کړو چی هوانورد منشی شا به موقع ترلاسه کړی وی او له بندر څخه د ستونزو د منځ ته راوړلو په منظور اوښتی وی. »

او د هند د بهرنیو چارو د وزارت مرستیال سر ارتر هرتلزل (Sir Aurther hirtzel) له هوایی وزیر سره د خبرو اترو په منځ کی به د هند حکومت ته تلگرام وکړی چی: « دا به ښه وای چی د هند حکومت (لارنس - شا) یه له نژدی څخه تر څارنی لاندی نیولی وای، چی نه ویل کیږی له هند څخه د وتلو د مخالفت په وجه به تیښته وکړی. »

هرتلز زیاته کړه: « که چیری هغه او عمر دواړه ورک شي نو دا به ډیر سخت کار شي. »

په دی توگه عمر او د هغه لادرکی له هند څخه غلام صدیق راوپاراوه، چی له کندهار څخه بیرته راغلی و، چی همفریز ته ووایی: « په ۱۹۲٤ کال کی د منگلو شورش په ربښتیا سره کرار شوی و، کله چی له هند څخه د عبدالکریم تیښتـه ددی باعث شوه چی جنگ بیـا پیل شو او د افغان حکومت د سر او مال د خورا زیات تاوان سبب وگرځید. دا به له مصیبت څخه ډک یو کار وی که چیری عمر په موجوده بحران کی افغانستان ته راشی. زه د افغانستان د ارزښت له اندیښنی څخه ځان باسم کـه چیری عـمر، چی له عبدالکریم څخـه ډیر خطرناک دی، په دی باندی بریالی کیږی چی هغه شورش ته قوت ورکړی چی معلومیږی په آخره کی غلی کیږی. »

د افغانستان په هر بحران کی برتانویانو پر شاهی کسانو باندی، چی د « مهاجر » په نامه سره یادول، خپله څارنه دوه چنده کوله، ولو چی ځینی یی په هند کی پیدا شوی وو او بیخی یی بل هیواد د خپل تابعیت په څیر نه پیژاند. سردار ایوب خان په ۱۸۸۸ کال کی له خپلو دری زره تنو خپلوانو او طرفدارانو سره هند ته تللی و چی د هند د حکومت له خوا به حمـایه کیـده. تر ۱۹۲۸ کـال پوری بوازی د هغـه د اولادی نولس تنـه تر حمایی لاندی و، مگر داسی فکر کیـده چی ټول یی د افغانستان د پاچاهی علاقه مند وو، او ددی خاص بحران په موده کی ډیر کسان له دوی څخه برما ته ورل شوی وو. محلی مامورینو د یو شمیر دغو کسانو د انتقال په باره کی انتقاد وکړ. یوه سیاسی نماینده د دوو تنو له پاره چی یو یی پنځه شپیته کلن او بل یی څلور اویا کلن و، د امتیاز د حق احترامانه غوښتنه وکړه چی د افغانستان د واکمنی په باره کی هیڅ کوم تمایل نه ښکاره کاوه.

دمخه تر دی چی دغه پیشبینی گانی وشی، عمر چی د مرحوم ایوب د کشر زوی څخه لږ مشر و، افغانستان ته وتښتید.

عمر تقریباً دو دیرش کلن و، بیضوی شکله مخ، غټی سترگی او لنډ بریتونه یی درلودل، د خبرو په وخت کی به یی په شونډو کی مسکا لیدل کیده. هغه په اله آباد کی اوسیده، او له دی ځای څخـه یی د تلوبند او بست په آسانی سره د دسمبر په ۲۲ نیټه وکړ او د اله آباد د پولیس دده په مورد کی څیړنی په بیړی سره پرمخ بیولی. له هغه سره یو پخوانی دوست ملگری و، چی د هغه په پولیس توضیحاتو کی دا عبارت ذکر شوی و: « هغه یی له دی چی و پرنجیږی، د پزی نصوار استعمالول. »

عمر هم حبري په کرار سره کولی او هم تګ، او دده دارایې چې دده د شونډو له مسکا سره يو ځای وې سرحدي سخت ژوند سره هيڅ تطابق نه شو کولی، نو برتانويانو ددې شي په ويلو سره مطمئن و چې « دده په شان خلک حتی که خپله اصله ځيره هم بدله کړي، په سختۍ سره به وکړي شي حتی يوه ورځ به قبايلي سيمه کې تيره کړي. »

همفريز تلګرام ورکړ چې: « ما ته د يو سړي له خوا چې له روسانو سره اړيکې لري، يوه پټه خبر تيا راکړې شوې ده چې پاچا ته مشوره ورکړې شوې وه چې پر دې نماينده ګۍ باندې د تيرې او تجاوز مرتکب وګرځي. او مسئله له دې قرار ده چې روسيې او برتانوي قوا به هيواد ته رانه‌نوزي او پاچا به له داخلي جګړې څخه پام وګرځوي او پر افغان ولس باندې به غږ وکړي چې د هغو پرغلګرو په مقابل کې مقاومت وکړي چې دده د هيواد د سقوط نقشه يې طرحه کړې ده.

« که چيرې عمر خپل ځان اسير اعلان کړي، د افغانستان په نظر به دا په مطلق ډول د برتانيې د توطئې ثبوت وي. »

په لندن کې د شجاع الدوله د افغاني وزير په توګه يو بل سخت ليک ليکلی و، او په کې د عمر د سير او سياحت په خاطر يې برتانويان ملامته کړي وو. د بهرنيو چارو د دفتر په يو ياداشت کې داسې راغلي وو، « موږ په دې شيبه کې مستقل شواهد لرو چې شجاع الدوله يو عادي نفر او افغان حکومت يو معمول حکومت وای، دا به مناسبه وه چې د ياداشت تر لاسه کولو رد شوی وای ... ممکن داسې تبصره وشي چې شجاع الدوله عادت لري چې د خپلو ځوابونو انتظار وباسي. نو ددې ضرورت به نه وي چې د هغه په ځواب کې دې يې فايدې بيره وشي. »

شجاع الدوله ته شفاهي ځواب ورکړ شو چې هيڅ کوم ثبوت ور څخه باقي پاته نه شو. برتانويانو په دې شيبه کې د اصلي مقصد تر لاسه کولو چانس نه درلود، چې دخپلې امپراتورۍ د سولې په څنګ کې خپله د کابل نماينده ګي هم حفاظت کړي.

په همدې وخت کې د برتانيې استخباريه د عمر تيښته يې پر دووکسانو پورې مربوطوګڼله: د تګاب ملا چې له سقاو زوی او د شينوارو له باغيانو سره يې رابطه درلوده، او عبد الواحد شينواري چې بل نوم يې بناغلي وېداستراليايي و. دې چې دخپل وخت يو سړی و او طالع يې جګه شوې و، او په پاريس کې يې له ادر سره ملاقات کړی و.

افغان حکومت چې خپله استخباراتي شبکه یې درلوده، افغانستان ته د عبد الولي د داخلیدو ممانعت کړي، مګر هغه تر اوسه پورې هڅه کوله چې افغانستان ته راشي. هغه دوباره په پیښور کې غوښتنه وکړې چې ویې لیږي، او داخلي داسې پیشنهاد وکړ چې دهغوي له پاره به عمر پیدا کړي.

داسې معلومیده چې په جلال آباد کې کراري وه، لیکن دا ارامي بد مرغي وه، ځکه چې دعلي احمد په واسطه نیول شوي وچې وسله وال کسان دحکومت له زیاتو پیسو سره په کې وو، او داسې کیسه کیدله چې علي احمد له خوګیانیو او شینوارو سره په چار باغ (صفا) کې ملاقات وکړ، هغه تجویزونیو چې د جلال آباد دروازې دې دهغوي په مخ خلاصې کړې او که چیرې هغوي دې دخپل پاچا په توګه ومني نووسله به ورباندې وویشي، او دهغو قبیلو مذهبي مشران دعلي احمد له سرڅخه پټکې تاوکړ، چې د تاجګذارۍ عمل و. هغه پیغام چې علي احمد واستاوه امان الله بې مطمین کړ چې دهغه له پاره کار کوي چې داد تګې لوبه وه. امان الله چې دعلي احمد دمخالفت نیش وهل یې دمخه حس کړي و، دالیک ورته د داډګیرنې لیک نه و.

شینوارو او خوګیانیو دهغه د رارسیدو د مخه پریکړه کړې وه چې خپله تربګنې به هیره کړي، او د برې د نوې هیلې په خاطر به دوباره خپلې قواوې سره متحدې کړي چې دامان الله د کابل دستونزو په هکله اوریدلي و، اوس دوې په خپله هم آرامه وو او په جلال آباد کې هم ارامي منځ ته راغلې وه، ځینې غلزي چې به تهدید کاوه هم ارامه وو، مګر داسې ویل کیدل چې هغوي پریکړه کړې وه چې جلال آباد نورو قبایلو ته پرینبودل شي، ځکه هغوله پاره به کابل کې زیات کارونه موجود وو.

دد سمبر په ۲۷ نیټه له پیښور څخه داسې راپوروکړشو. «دلته په افغاني تولنو کې خوشبیني فضا منځ ته راغلې ده. د تجارت نماینده وایي چې د پترولو لې لارې اماده دې چې سبا ته به له جلال آباد څخه حرکت وکړي. دافغان او جرمني کمپنۍ وايي چې د بوې اوونې په موده کې به خپل تجارت له سره پیل کړي. پرون د تجارت نماینده ډکې ته لس زره روپۍ ولیږلې. دا د هغوافواهاتو په مقابل کې دحقایقو څرګندونه وه چې ویل کیدل له خوګیانیو سره بوډول سوله شوي ده او دچکنور مسلابیا په دې قادر دي چې لاره وساتي.»

بیا هم، دکابل په جنوب کې تازه مشکلات منځ ته راغلل، پریومامورباندې حمله وشو، او

د کابل غزني په لاره کې د پوستې یو موټر لوټ شو او د تیلفون پنځه پایې په بدنیتی سره له بیخه وایستل شوې.

د خوست دارپوب ځیني ملکان د برتانیې نماینده ګۍ ته د یوې مصاحبې په ترځ کې د کورمې نماینده ته وویل چې منګل، ځدران او ځاځي غواړي چې خپله سیمه د برتانیې حکومت ته ورکړي. سیاسي نماینده د هغوي له لیدو څخه انکار وکړ. البته امان الله په دې باندې خبر نه و.

همدا راز هغه خبرونه چې د سلیما نخیلو د غلزي مشهور ملکان په جنوبي وزیرستان کې سیاسي نماینده ګۍ ته لیکلي وچې: « دا ژر پیښیدونکې ده چې تردې اړ وروسته به د علماو، دولتي صاحب منصبانو او د افغان اولس په خوښه به داسې یو پرهیزګار سړی به پر تخت باندې کښینول شي چې د خدای(ج) او د پیغمبر (ص) د اوامرو تابع وي. » هغوي به داسې هم ویل، « د دې سړي (دسقاو زوي) په غیر چې د پاچا پر ضد دي او منګل او ځدران هم ورسره ولاړي، ټول هڅه کوي چې کلکه خونریزي وشي... پاچا بوازي پاته شوي دي... خدای پوهیږي چې په راتلونکې کې به څه وشي، خدای دي اسلام ته خیر کړي. که تاکوم شي غوښتل، پر موږ باندې امر وکړه. »

امان الله خان خلکو ته په هغو رقو کې چې له الوتکې څخه ورباندې شیندلي وي، ویلي و، « تاسو ټول باید په هوسا یې کې ژوند وکړي او ستاسو یو نفر هم باید عبثو خبرو او افواهاتو ته غوږ ونه نیسی. » هغه د قران شریف ایات ذکر کړ چې ترجمه یې داسې ده، « هغه څوک چې خپل پاچا ته اطاعت کوي ما ته اطاعت کوي او هغه څوک چې د پاچا پرضد ودریږي. زما پر ضد دریږي. » مګر هغه په خپله په دې خوش باورۍ کې شریک نه و.

هغه سلاح او مهماتو ته ضرورت درلود، او ډیرو دغو شیانو ته هغه ډیر نژدې و. هغه وکړې شول چې هغه ماشیندار ټوپکونه هیواد ته په الوتکه کې راوړي چې اروپا ورته ورکړي و، او روسانو ورته ډیر نو ربونه په الوتکه کې راوړل، لیکن یوه الوتکه قصر ته نژې ټکرو کړ، چې روسیي پیلوت په کې ووژل شو او، کشاف یې دومره سخت ټپي شوي وچې څو ورځې وروسته هغه هم مړ شو. روسي اتباع وارخطا شول.

امان الله پوهیده چې مجبور به شي د خپلو ریفورمونو فسخ اعلان کړي. ځینو پیشنهاد کړي و، چې هغه دي په خپل ژوند کې داسې یو حرکت وکړي چې قبایلو ته یوه ثرګند ونه وشي چې امان الله له خپلو نوو طریقو څخه اوښتي دي او بیرته زاړه دودونه ځان ته غوره کړي دي. هغه داسې یو حرکت اجرا کړ هغه د یوې ښځې د کولو قانون لغو کړ.

بیا هم، امان الله دغه بدلون اعلان نه کړ، لکه چې باید د سیاسي پایتخت له پاره یې پاید کړې واي. دا یوه شخصي موضوع پاتې شوه.

نصر الله، د هغه اکا چې له هغه څخه یې پاچا یې تر لاسه کړې وه، یوه ښکلې لور درلوده، چې عالیه نومیدله، چې په دې وخت کې نولس کلنه وه، عالیه چې دا کالوریې وه، په آزاده توګه له مانۍ څخه لیدنه کتنه کړې وه او دا امان الله ملګرې وه.

اوس چې ثریا په کندهار کې وه او د پیښو فشارو نه هم پر امان الله باندې دومره زیات وو چې روحي آرامتیا ته یې ضرورت درلود، نو امان الله عالیه یې قصر ته راوغوښتله او رأسا یې ورڅخه وغوښتل چې که ورسره واده وکړي، حال دا چې دا کار باید د دود او دستور له مخې د یو بل سړي له خوا د ریبار په واسطه تر سره شوي واي. هغه د سیاست په باب هیڅ ونه غږېد او یا د هغه ضرورت په باب یې هم څه ونه ویل چې قبایلیانو به د زیاتو ښځو د کولو په هکله څه وایي، هغه عالیې ته وویل چې ته زما خوښېږې.

عالیې وویل چې زه به له تا سره واده وکړم. یو ملا چې د یو ملګري او دوست په توګه پاته شوي و، راوغوښتل شو، او یوازې د امان الله د شخص سکرتر په شهادت او حضور نکاح وتړله شوه. په دې توګه عالیه د امان الله دریمه ښځه شوه.

کله چې د سقاو زوي د دسمبر په څوارلسمه نیټه خپله لومړۍ حمله پر کابل باندې وکړه، لکه د نورو ښوونځیو په شان، د نجونو ښوونځي تړل شوي وو، مګر امان الله یوه رسمي اعلامیه خپره کړه چې نور به د نجونو له پاره ښوونځي وجود ونه لري، او د دې له پاره چې دا و روستی تصمیم عملي شوي وي، هغه د نجونو د ښوونځي سامانونه او لوازم لیلام کړل او د ښوونځي تعمیر یې د یو بل کار له پاره اختصاص ورکړ.

هغه اعلان وکړ چې هغه نجونې چې ترکیې ته استول شوې دي بیرته به راوغوښتلې شي، ټولې افغانۍ ښځې به مجبورې کړې شي، چې چادرې په سر کړي چې ملکه او شهزادګانۍ هم په کې راتلې، د اروپایي جامو د اغوستلو مقررات له منځه یوړل شو.

هر ملا کولی شو تدریس وکړي بې له دې چې د تدریس د لیاقت تصدیق ورسره وي. هر عسکر کولی شو د کوم پیر مرید شي. دهشت نفري د عسکري جلب به وجود و نه لري او د پنجشنبې دورځې په عوض د جمعې ورځ بیا رخصتي شي.

همدا راز امان الله خپلې ټولې نظامنامې یاد قوانینو مجموعې، له منځه یوړې او اعلان

بې وکړ چې، «ملایان به د هیواد مذهبي چارې و څېړي او کولی شي چې دوخت له غوښتنې سره سم یې جوړې کوي او پوه دي شي چې د دولت په پالیسي کې افراطي عمل نشته.» مذهب ته دو روستي امتیاز په ورکولو سره امان الله وویل چې زه به یو مامور مقرر کړم چې څارنه وکړي چې هیڅوک دې واین ونه څښي.

په دې اعلان سره تقریباً د کار د شوق درلودلو یو لیسیز له منځه لاړ. دا یوه داسې ضایعه وه چې د کابل او کندهار په کوڅو او بازارونو کې به خلکو یو بل ته نصیحت کاوه چې دومره حدي دې داشې فکر نه کوي، ځکه چې هغه به په یو مناسب وخت کې بیرته خپله پخوانۍ ترقۍ لاره لاړ شي.

په اعلامیه کې د شورشیانو عمومي بخښنې ته هم ځای ورکړل شوی و، خو دوه استثنایي حالتونه یې درلودل. هغه د سقاو زوی او یا دهغه نایب وکیل سید حسین او یا د هغه سل تنه نژدې پیروان نه وومعاف کړي. هغه ویلیله چې که چاد سقاو دزوی او دهغه د نایب سید حسین سرونه راوړل، نو څلویښت زره روپۍ به ورته د بخشش په توګه ورکړي شي او دهغو دسلوتنو پیروانو د سر په بدل کې به پرهر سرباندې څلور زره روپۍ بخشش ورکړي شي.

هغه شرطونه چې شینوارو وړاندې کړي وو له دغو شرطونو څخه زیات سخت وو. دهغو په شرطونو کې ویل شوي وو چې ثریا ته دې طلاق ورکړي شي، کورنۍ یې منفجر کړي شي. هغه د هغوی د نورو خبرو نو په انتظار کې وچې له جلال اباد څخه راتلې.

د هند حکومت د علیا حضرتي حکومت ته دجنوري په دریمه نیټه تلګرام وکړچې، «د دې نه د بل مناسب وخت تصور ګران دي چې د امیر له خوا په دې موسم کې غوښتنه وشي چې مونږ خپله وعده تر سره کړو یعنې وسله ورته ورکړو.»

... د دې غوښتنې نه منل به زمونږ په بې وفايي باندې بدګوماني زیاته کړي... له بلې خوا د دې غوښتنې منل به د دې سبب شي چې د امیر د ځپونکو اقداماتو له امله قبایلي ذهنیت مونږ ونه مني. برسیره پر نورو ملحو ظاتو د ماینده ګي مصئونیت نه یوازې د افغان حکومت، بلکې د شورشیانو په ښه نیت پورې هم تړلې دي، ځکه چې دا زمونږ په وس کې نه ده چې له پاچا سره مرسته کول د قبایلو په مقابل کې په قطعي توګه یوه لمسوونکې ښه غوره کړي... مونږ... باور نه لرو چې د زیاتو وسلو درلودل به کوم ځای ونیسي... په ښه توګه خپاره شوې رپوټونه چې مونږ ورته ورکړو، ممکن ځای ونیسي، خو په خطر ناکه نقطه کې یعنې زمونږ د نماینده ګۍ په شاو

حواکي دهغې سملاسي نتیجه بنايي داسې وي چې شورشیان پر نماینده ګۍ باندې د یرید کولو له پاره ولمسوي.

په دې توګه عملي نتیجه داسې ښکاري چې امیر ته دهغو لار پو په ورکولو سره چې هغوي یې غوښتنه کړي ده مرسته وکړو او ورباندې وپلورو څو چې دوعمده کړي شوو وسلو په ررلیږدولوکې ځنډ راشي. «په اوسني بحران کې د وسلو د عدې په تر سره کولو کې پروت خطر او ستونزې موږ اړباسي چې د خپل دغه تلاش سلا کاران و ازما یو چې وعده په یوه نقدي تحفه باندې ادا کوو. په دې برخه کې موږ باید په خاصه توګه د وزیر له نظر څخه خوښ و اوسو په داسې حال کې چې خپل حساب تصفیه کوو.

«له امیر سره د تماس نیولو طریقه کیدې شي چې دوعده کړي شوو وسلو په ترلاسه کولو کې د لازم ځنډ څخه د ډې کولو ښه والی وي او دارنګه تازه خبري اتري بنايي په ناڅاپي توګه موږ ته وسه ورکړي پرته له دې چې د مرستې نه کولو ذهنیت ورکړو، وخت وتاکلی شو.»

د انګلستان حکومت چې ددې تلګرام په وجه اندیښمن و، ښتیني ځواب یې ورته برابر کړ:

«داسې ښکاري چې مشکل په دې کې نه وي چې په دې بحران کې موږ څومره شاید او باید له هغه سره د خپلې مرستې دوعدې له عهدې څخه وتلی شو، بلکې مشکل په دې کې دې چې که فرضاً هغه بري ومومي دهغه د احتمالي عکس العمل په مقابل کې به موږ څومره لږ تاواني شو، او په دې محاسبه کې دا باید له یاده ونه ایستل شي چې افغانان د تیر شوو حسناتو په مقابل کې ددايي احسان له منلو څخه عاجز دي، او که چیرې ژمی سخت راشي، شخړه به لاڅه موده نوره هم اوږده شي.»

د انګلستان حکومت داسې تبصره هم کړې وه:

«که موږ هم څومره په قوي توګه وغواړو چې ووینو مرکزي حکومت له داخلي شخړې څخه څومره کي په بري سره وځي، موږ دا نه شو کولای چې له قبایلو سره په مخالفت کې ځان په خطر کې واچوو د امان الله پاچا د بوزیو (Beauxyeax) له پاره ټول قبایل په حلقه کې ایسار کړو، په تیره بیا چې هغه له دې سره سره ماتې وخوري. داد به هم ښه نه وي چې موږ د ملایانو په نزد خپل موجوده ښه شهرت له لاسه ورکړو، او شکر دې چې ورته د اسلام ضد ریفورمونو منځ ته راوړونکي پیژندل شوي نه یو.»

کابل د [illegible] نهايي جګړې توقع کوله.

د سقا وزوي د جبل السراج بالاحصار یی محاصره کړي و او په آخره کی یی هغه تصرف کړ ، که څه هم بالاحصار دهغه ځاي د برېښناله ستیشن څخه لېمهم و . دهغه یو سړي د اوبو هغه ویاله یی و اړوله چی کابل ته یی برق تهیه کاوه. هر عصري شي سمدستی متوقف شو. دا پیښه هغو افغانانو ته کوم مفهوم نه درلود چی کورونه یی د سلطنتی حلقی له کورونو څخه بهروو ، ځکه چی هغوي یی له هغه برق نه درلود . مگر په حربی وسله تون کي حربی مهمات نور تولیدیدي نه شو.

بوازي په قلعه مراد بیک کی چی له کابل څخه پنځه میله لیري و ، د سقاو زوي د امان الله دعسکرو له خوا دولی خان په مشري په شاو تمبول شول.

وروسته دجنوري په اتمه نیتیه همفریز داسی راپوررکړ :

« دکوهدامن ددري دسخت جنگ په نتیجه کی دسقاو زوي قلعه مرادبیک بیا فتح کړ او د خیرخانی د پیچومی تربیخ پوري چی کابل د کوهدامن له دري څخه بیلوي ، نژدي راغلی دي. قلعه مراد بیک زمونږ د نماینده گی د شمال لویدیځی برخی په اووه میلی کی موقعیت لري. د پاچا د پوغ سره بخت یاري ونه کړه. لوگریان ، منگل ، ځاځی او وزیر چی د پاچا له پاره جنگیدل درانه تلفات یی ولېدل. وزیر د جنگ له تاکتیک څخه ناراضه وو ، په دي چی په شاباندي د ملگرو له خوا لگیدل، نو ځانونه یی وایستل.

« گل اقا په خپله دنده کی ناکام شو چی د تگاب قبایلی خلک واستوي. هغوي د سقاو د زوي سره یوځاي شوي دي... ددي او ښتون په حساب خلک بیا خپل ارزښتن شیان ښخوي او ځانونه په ښارکی پټوي. قصر د هزاره گانو له خواد یو مشهور غل او داړه مارتر قوماندي لاندي اداره کیږي او یوه زیاته اندازه مواد او سامان په هغه ځاي کی ذخیره شوي دي. په قصر کی دځمکی لاندي پناگاه وي هم جوړي شوي دي.

« محمود طرزي چی له مذهبی دودونو سره له اوږدي مودي راهیسی یی بیلتون درلود ، نن لیدل شوي وچی قران شریف یی لوستلو او د اووتنو ملایانو په ټولنه کی یی تسبیح اړولی ، غلام صدیق می پرون ولید چی ږیره یی پري ایښی وه او ټولو بهرنیو کارکوونکو اروپایی شپوگانی لري کړي وي. »

بله ورغ دسقاو زوي د یو نوي تاکتیک په کاراچولو اقدام وکړ او هغه داو چی خپله قوایی یه ده ، کو چنیوډلووویشله چی په مختلفو جهتونو کی ناڅاپی برید وه وکړي. د برتانیی نظامی

آتشي داسې ليکلي دي: «په دې ورځ باندې د هوايي ميدان په جنوب لويديځ گوټ کې پنځه فرانسوي توپونه موجود وو. دا توپونه پاک لريدل، ليکن داسې معلوميږي چې هيڅوک دهغه په استعمال نه پوهيږي. د توپخانې يا بوگان ډېر زيات خام او بې خونده ترسيري (افسار) لري او داسې ښکاري تارونه يې سره تاو کړي دي.»

ترکيبي هيأت چې کولې يې شو افغانانو ته دهغو توپونو د استعمال د طريقې درس ورکړي. له کندهار څخه د کابل په لور روان شو. دوې خپلې ښځې په هند کې پرې ښودلې او هغوي هلته په يونه فيصله کېدونکې حالت کې پاته وې چې راشي کې نه.

دسقاو د زوي د نفرو له خوا پوسترونه په داسې ځايونو کې ترسترگو کېدل چې هيڅ توقع يې نه کېدله او په کې د شپيتو زرو روپيو اعلان د امان الله د سر په بدل کې شوي و. امان الله چې توقع کېدله د لمانځه له پاره مسجد ته لاړ شي. احوالې يې ورکړ چې ناروغ دي.

د کابل په بازارونو کې دلومړي ځل له پاره اوړه کميا به شو.

د جنورې په ۱۳ نيټه د ماښام په اتو بجو باندې همفريز داسې تلگرام وکړ:

«دسقاو زوي د پاچا لښکرې ئن له کوهدامن څخه وايست... شورشيان پر دد کپيک باندې يرغل کوي، چې دوه ميله د نماينده گې په شمال لويديځ کې پروت دي. هغوي د لړو په تياره کې پر مخنگ کړي دي. د جنرال محمد عمر د لښکر د قوماندې ورکولو مرکزي اداره په ده کپيک ده، او پوهندي ډاکتر چې دهغه ځاي په روغتون کې يې کار کاوه، نماينده گې ته راغلې دي. هغه وايي چې جنرال کلا بند دي. او داسې توقع کيږي چې ترڅو هغه له کابل څخه تقويه نه شي، نو قوا به يې د شپې په موده کې تسليم شي. ډاکتر وويل چې دې ورځې په لومړيو شيبو کې، دسقاو زوي د کوهدامن هزاره کلا (حسين کوټ) يې ونيوله، چې کابل ته ډېره نژدې ده او درې سوه تنه عسکري درلودل.

«دغرونو د پاسه له ليدل کيږي او واوره هم وريږي. ويل کيږي چې سبا به بوه هيجانې ورځ وي.»

په هغه شپه باندې هغه لړه او د واورې او ربښت د امان الله کلک دښمنان شول. دلړې اې اخوا څخه پر قوماندان باندې غږوشو چې ته ديوولسو زرو نفرو له خوا محاصره يې او تاسو بايد خپله وسله کيږدي او تسليم شي. قوماندان چې نه يې شو کولې ووينې په شاو خوا کې يې څوک

دي. او فکريې کاره چې په هر شکل سره بېرې د ډوبېدو په حال کې ده، پر خپلو نفرو باندې عېږکړ، چې وسله دې پر ځمکه واچوي. دوسلې دا چولودا غړد سقاو د زوې د کشروررله خوا شوي و چې يوازې يوسل او پنځوس تنه نفريې درلودل، ليکن نور زيات نفر دراتلو په انتظار کې وو.

شورشيانو حسين کوټ ونيو او دهغه په غتيو توپونو باندې پر باغ بالا او دهغه پر غونډيو باندې ډزې پيل کړې. د جنورې په ۱٤ نېټه د غرمې په وخت کې همفريز داسې تلګرام وکړ:

«د پاچا توپخانه عکس العمل نه ښکاره کوي، داسې ښکاري چې د پاچا لښکر په دې ګډوډې کې ماتې وخوري. احتمال لري دسقاو زوی به نن شپه په ښار کې داخل شي.»

په داسې حال کې چې دهغه سنګرونه دده د خپلو توپونو په واسطه هدف نيول شوي وو، امان الله له عنايت الله څخه غوښتنه کوله چې پاچاهي ونيسي لکه چې پخوانۍ هم ورڅخه زيات خواهش کړي و. عنايت الله چې تل بې انکار کاوه، پوه شو چې مصيبت نژدې شوي دي، نوبې ومنله، ځرنګه چې هغه يو غير حريص او استراحت طلبه انسان و، هيڅکله د پاچاهي په فکر کې نه و، مګر اوس چې هيڅ قدرت نه وچې پاچا شي او پاچاهي يو درد سرو، ده په زړه ورتوب سره ومنل.

امان الله پلان ترتيب کړ چې له پاچاهۍ څخه خپل لاس اخيستنه اعلان کړي او له کابل څخه لاړ شي. دامان الله جسمانې قوت هيڅکله نه کيده. د افغانستان پاچاهان دهيواد د تاريخ په پاريدلې دوره کې له ډيرو سختو بدمرغيو سره مخامخ شوي دي: ړندول، عمري بند شکنجې مګر د غه شيان پردوي باندې د هغو کسانو له خوا عملي کيدل چې هغوي هم پاچاهان وو، هيڅ يو پاچاهم د يو غل او داړه مار په لاس نه و، لويدلی. دسقاو له زوي سره د خبرو اترو په وخت کې، داسې وخت راغلی و، چې د کوهستان د ملايانو په لمسون دسقاو زوي غوښتنه کړې و، چې امان الله دې خپله عمومي بخښنه په قران کې لاسليک کړي، او دامان الله مشورتي مجلس ورته ددې کار اجازه نه وه ورکړې او ورته ويلي يې وو چې دا شرم دې چې د يوغله سرې سره ومره درناوې وشي. اوس امان الله د شخصي پلنې احترام رد کړ. دسقاو زوي حتی له هغه احترام او درناوي څخه چې هغه پوهيدلی و، هم ليرې و.

همفریز مجبور و چی داسی ولیکی، «د تعجب خبرداده چی امان الله چی د میړانی او شهامت ښبتن و د خپل پوځ په لاس کی قرارو نه نیو او په وروستی نافرجام جنګ کی هرشی یی په خطر کی وانهچول، هغه ممکن داعهده یی منلی واي که چیري مقابل نفر یی هم شاهی ریښه درلودله. کوم شی چی امان الله هغه نه شو زغملی داوچی نه یی غوښتل دابی عزتی قبوله کړي چی په خپل کورکی د یوغل او داړه مارله خوا په ونه وتړل شی او په تړپک وویشتل شی.»

# اته ويشتم فصل

# د ۱۹۲۹ کال د جنوري له ١٤ څخه

# د ۱۹۹۲ کال د جنوري تر ۱۹ نيټې پورې

يوه الوتکه چې له تيلو څخه ډکه وه او پيلوټ يې هم ترځنګو ولاړ و څو ورځې په هوايي ډګرکې ساتل شوې وه، چې امان الله کندهار ته يوسي، خو هغه ته حتی د قصر او هوايي ډګر تر منځ لنډ سفر هم خطرناک و، د جنوب په لور سفر ورته بې خطره و، ګرد شورشيانو د ډلو راپورونه ورکول کيدل، حتی د کندهار په لاره کې عبد الاحد، د داخلي وزير ته وظيفه ورکړې شوې وه، چې تر شيخ آباد پورې د مخه لاړ شي او وګورې چې لاره محفوظه ده که نه او هلته دې د امان الله له پاره انتظار وباسي. عبد الاحد په لاره کې هيڅ کوم شورشي ونه ليد او انتظار وويست.

د جنورې د ١٤ نيټې د سهار په اتو بجو باندې يو شمير موټرونه له قصر څخه ووتل، چې امان الله، محمود طرزي، غلام صديق او يعقوب دربار وزير چې د اروپا په سفر کې ورسره ملګرې او د کندهار د شاهي کورنۍ دولس تنه محافظين هم په کې ناست وو.

امان الله به مدام په موټر کې خوشحاله و او طاقت او زغمل به يې افسانوي و. هغه د ۱۹۲۷ کال دخوست د ملاقات په پاي کې پراس باندې دري څلويښت ميله ګرديز ته تللی و او بې له دې چې د ډوډي خوړلو او استراحت له پاره له اس څخه ښکته شي، جيل رالز - رايس (Rolls - Royce) موټر ته وخوت او د پنځه اتيا ميلو په سرعت سره د کابل په لور روخوځيد او

کابل ته د هغو صاحبمنصبانو په مقایسه په ښه روحیه راورسید چې په ګردیز کې پاته وو او یوازې داس په سپرلي ستړي او ستوماه راغلل.

لیکن دا سفر د کندهار په لور ډېر خطرناک سفر و. د غزني او د کابل د لارې د پاکولو په خاطر د جایزې دورکولو سره سره. هغه واوره چې په تیرو وو میاشتو کې اوریدلې وه، د لارې په مختلفو برخو کې د سخت یخ له کبله د ډېرې په شان کلکه شوې وه، تر شیخ آباد پورې چې باید د موټر په ذریعه په یوڅو ساعتو کې رسیدلي واي، ديخ له امله په اتو ساعتو کې ورسیدل. عبد الاحد په هغه ځای کې په انتظار کې و او امان الله د غزني حاکم ته تیلفون وکړ چې ډوډۍ دې تیاره کړي او د سرک غاړې ته یې راوړي، لیکن ورته یې وویل چې هیچاته دې زما د راتګ په هکله څه ونه وایي. همداراز امان الله امر وکړ چې ترمقره پورې په هر ځای کې چې که سرک د تیرید وونه وي، جوړ دې شي.

امان الله له خپل حرکت څخه دولس ساعته وروسته د شپې په اتو بجو غزني ته ورسید چې اته نوي میله مزل یې کړی و. دې او د هغه ملګري له خپلو موټرونو څخه ښکته نه شول چې هغه ډوډۍ وخوري چې ورته راوړله شوې وه، لیکن خپله ډوډۍ یې په هغه ځای کې وخوړله چې تیر دولس ساعته په هغه ځای کې ناست وو. امان الله د غزني حاکم پې له دې موضوع څخه خبر کړ چې ده له پاچاهي څخه لاس اخیستی دی او واک یې عنایت الله ته ورکړی دی او وې ویل چې زه کندهار ته ځم چې خپل وروته د تابعیت تضمین حاصل کړم.

هغه وروسته د مقر په لورو خوځید، او کله چې د جنوب په لور خپل سفر ته دوام ورکاوه، دو اورې خطر له منځه تللی و، لیکن باران ورته د طبیعت یو بل خطر شو. باران دوٌمره زیات وریدلی وچې د غزني د سیند د معاونو سیندونو د پاسه ویل یې بیخي وړې و، چې د مقر د شمال په اته میلۍ کې واقع و. تر هغه چې زیار ایستل شوې نه واي چې موټر له هغې ویالې څخه تیر کړې چې ختیه یې درلودله، بله ... نه وه، موټرې بندې پاتې شوې. امان الله خپلو نفرو څخه یو تن واستاوه چې یا بوګان ترلاسه کړي، لیکن دا نفر ډېر ځنډ وکړ او امان الله ته نوره حوصله نه وه پاته، چې په موټر کې کښیني، نو کله چې یو هوښیار کلیوال راغی او وې لیدل چې موټران په ختیو کې بند پاته شوې دي. امان الله هغه فر د یو ۷، ښه د په توګه له ځان سره ونیو او همغه باران کې تر مقره پورې په پښو لاړل. عبد الاحد او غلام صدیق هم ورسره روان شول. تقریباً له څلور سوه میله پیاده تګ وروسته هغه سړي له یابوګانو سره د دوې مخې ته راغی. دوې پر دغو یابوګانو باندې سپاره شول او نیمه شپه وه، چې مقر ته ورسیدل.

امان الله و وبښتل چې له مقر څخه خپل ورور (عنایت الله) سره چې په کابل کی و ، تیلفونی خبري وکړي ، مګرو یې نه شو کړاي له شیخ اباد څخه اخوا له کابل سره ارتباط ونیسي. دده له قصر څخه هیڅ ځواب وانه وریدل شو. وروسته یې کندهار ته تیلفون وکړ او د خپلی کورنی له غړو ، ثریا ، علیا حضرتی او حسن جان سره خبري وکړي او هغوي ته یې وویل چې زه روغ او سلامت یم. همدا راز هغه د کندهار له والی سره خبري وکړي او دوباره یې ورته ډاډ ګیرنه ورکړه چې هغه خبري درستی نه دي چې په کابل کی کارونه په ښه توګه پر مخ ځی او هم دا چې په جلال آباد کی حساب ډیرژر تصفیه کیږي. هغه ټینګارو کړ چې ټول دغه خلک دي دده د راتګ رازپټ وساتی. همدا راز موټرو غوښتنه یې وکړه.

د شپی په دوو بجو حسن جان د علیا حضرتی په رالز - رایس موټر کی له کندهار څخه روان شو چې اته نور موټران هم ورپسی روان شول. کله چې هغوي د سهار په اوو بجو باندي ورسیدل ، امان الله په مقر کی سباناري کاوه. هغه د ورځی په ځلورو بجو باندي د کندهار په لورو خوځید او ۳۲ ساعتونه ضرورت وچې ۳۱۳ میله واټن یې وهلی واي.

د هغه سور شاهی بیرغ د یوي تانی د پاسه رپیده. د هغه ځاي یو نفر هم خبرنه و ، چې امان الله له پاچاهی څخه لاس اخیستی دي. دجنوري په ۱٤ نیټه په کابل کی د غرمی په موده کی جارچیانو په ښار کی وګرځیدل ډولونه یې غږول او په جګ او ازسره به یې ویل چې ټول خلک دي ماسپښین پردوه نیویجو د دلکشامانی مخی ته سره راټول شی چې یو مهم پیغام ورته اغلانیږي. د کابل ټول خلک چې د لوړو مقاماتو خبروته وږي وو ، په هغه ځاي کی سره راټول شول. د عالی محکمی یوتن په برنډه کی ښکاره شو او دامان الله اعلامیه یې ولوستله چې په کی لیکل شوي وو ، ددي له پاره چې له زیاتی وینی توییدنی څخه مخنیوي شوي وي. امان الله له پاچاهی څخه لاس اخیستی دي او تاج او تخت یې عنایت الله ته ورکړي دي ، چې ټول افغانان دي باید دهغه تابعیت قبول کړي. وروسته عنایت الله راښکاره شو او ګل اغا دهغه پر سرباندي د پاچاییی پټکی کښینسوده او داسی یې وویل تر هغه پوري چې نه د مذهبی اصولو درناوي وکړي ، ته به پاچاهی ، د تاجګذاري دا مراسم یو توهین آمیزه مراسم و.

په هغه وخت کی چې امان الله له واوري او باران سره په مبارزه کی و ، په کابل کی اسمان شین شوي و او لمر ښکاره شوي و . ټول ماسپښین کابلیان قصر ته تلل چې د عنایت الله د پاچاهی تعهد نامه لاسلیک کړي. له دغو خلکو څخه ډیر کسانو فکر کاوه چې همغسی چې

هغوي له واوري او باران څخه خلاص شول، دوي له جنګ څخه په امان کې شول. دستاو زوي به تل همدا خبره کوله چې جنګ يې يوازې له امان الله سره دي، نه له خلکو سره، نو هغوي فکرو کړ چې له نوي پاچا سره به سوله او ارامي هم منځ ته راشي امان الله يوه ارامه څېره وه. هغه پټکې چې د امان الله پر سر باندې د تاج په توګه اېښودل شوي و، يوازنی پټکی وچې ده په سر کړي و، عنايت الله چې دمخه به په محلي جامه کې ځرګندېده، اوس يې له احتياط څخه کار اخيستلاو يوازې قبا او پټکی به يې اغوست، هغه هيڅکله خپله لنډې زيرې ته ترک ورنه کړ.

د عنايت الله لومړي اقدام د ملايانو د مشرانو راټولول و، چې ګل آغا د هغوي په جمله کې و، او له هغوي څخه يې وغوښتل چې خپلو مخکنيو ډلو او شورشيانو ته خبر وركړي، ملايان په يو واګون کې دباغ بالا په لور لاړل، چې له هريوه سره ... بيرغ و، چې د غريبانو په فکر د سولې هغه علامه وه چې يوازې همدا اوس يې ترلاسه کړي ده، لېکن دلته د اسلام نښه وه، او ډېر زيات د پام وړ يوشی و، کله چې هغوي بېرته د کابل خواته راستانه شول، ځلور زره تنه شورشيان هم ورسره راغلل، د شورشيانو د ټوپکونو غږونه په يخه هوا کې اوس هم اورېدل کېدل مګر دا بيخي د خوشالۍ ډزې وې.

له نيمې شپې وروسته د ښارله لوري ډېرې درنې ډزې پيل شوې. همفريز دجنوري په ۱۵ نيټه باندې تلګرام وكړ، « ټوله شپه د ټوپکو، تومانچو او ماشيندارو درنې ډزې اورېدل کېدې. » دهغه د بې سيم دستګاه يوازنی دستګاه وه چې له بهرنی نړۍ سره يې ارتباط نيوه، ځکه چې د کابل د بې سيم ددستګاه د پيغامونو استول بند شوي وو. « (ډزې) تر اوسه پورې دوام لري، خو بيا هم اندازه يې کمه ده. داسې ښکاري چې يوه خواهم پر بل باندې اعتبار نه کوي. »

اوس ګل آغا خپل وروستی فشار پر هغه ستر پلان باندې واچاوه، چې دهغې د ورور له خوا ترتيب شوي و.

« يو پرهيزګار سړی » به د پاچا په توګه اعلان شي. داهغه پيغام وچې لس ورځې پخوا په ختيزه قبايلي سيمه کې خپور شوي و. دواړه ورونه پرهيزګاران وو، شير آغا يوليډرو او په هند کې تردې وخته پورې دومره عامل وچې برتانويانو هڅه کوله دهغه په مورد کې نوې شيان کشف کړي. هغوي دده د پوستې مراسلاتو څارنه کوله او دا مراسلات تر هغه وخته پورې ختم نه شول چې پوسته رسان د څارنې هغه پيغام يې چېرته غورځولی و او هغه يې ورک کړي و، چې

په دې توګه موضوع بې خطر ناکه کړې وه، اما شیر آغا ډیر لیرې و او ګل آغا یوازنی متقي سړی و، چې حضور یې درلود.

ګل آغا د سقاو زوي ته وویل چې عنایت الله دې تل د پاچا په توګه پاته نه شي. دې په خپله ګل آغا ته پاچاهي ترلاسه کړي. دسقاو زوي مجبور وچې دې شي نه ملتفت شي.(۱)

تر دې وخته پورې دسقاو زوي ډیر تاسیسات یې په اختیار کې درلودل. نور نو هغه د قوي او شهرت تر اغیزې لاندې نه راته. هغه وروسته تبصره کوله چې د یو لارې و هونکي په توګه زما سابقه د امان الله د خیانت او دهغه د وزیرانو د جب او بیوفایي په پرتله شرم آوره نه ده. هغه پوهیده چې یوازې دهغې وسلې زور چې دده په اختیار کې و، دهغه د احترام وسیله کیدای شي او په دې باندې خبرو چې دده قوه په کابل کې یوازنی قوه وه.

د سقاو زوي ګل آغاته وویل چې تا اشتباه کړې ده. زه په خپله، دسقاو زوي، به دافغانستان پاچاهي ترلاسه کړم. نودا غزنی داړه مارد هغه کورنی جانشین شو چې د هغو د منلو وړ نه و. هغه چې په ژوند کې د سقاو د زوي په نامه سره شهرت موندلی و، ځان یې په خپل اصلي نوم یاد کړچې ډیرو خلکو ته دا نوم سخت ښکاریده.

هغه د امیر حبیب الله په نوم یاد شو.(۲)

هغه جنرال چې دامان الله د قو او قوماندان و اوس دښار د یوې لویې دروازې په سر کې و اویو لوي توپ یې مستقیماً د قصر په لور هدف نیولی و، هغه د سقاو د زوي خواته تللی و، د امان الله پخوانی دوست او معلم، محمود سامي هم په هغه خوا شوي و، د امان الله دوه وروڼه هم دسقاو زوي خواته شوي وو چې دا بانډیت د خپل پاچا په توګه قبول کړي: یو یې حیات الله وچې د ۱۹۱۹ کال په ګډوډې کې یې پاچاهي ته سترګې نیولی و اود یو امیر د دوهم مشرزوي په توګه دهغه ده وقف یادول مشکل و، او کبیر، چې په یو وخت کې هند ته تبنتیدلی و.

تقریباً پنځلس زره کسان چې زیاتره یې کورهدامانهان وو، د ښار په شاو خوا کې ګرځیدل. دهغوي د قهر لمبه په هغه وخت کې پورته شوه چې یوه لویه الوتکه چې د روسانو له خوا استول شوي وه. د کابل په فضا کې یې پرواز وکړ، نو ډیر مرمي دهوا په لور شلیک شوي او الوتکه بې له دې چې راکوزه شي بېرته وګرځیدله او روسیې ته لاړله. روسانو چې د امان الله هوایي قوایي ژوندې ساتلې وه، او چې پر دغو قبایلیانو باندې بمونه غورځولي وو، په قطعي توګه رخصت کړې شوي وو او ورته ویل شوي وچې خپل هیواد ته لاړشي.

زیات شمیر خلکو غوښتل چې باغ بالا ته لاړشي او خپل نوي امیر چې په خپل سر یې د پاچاهي اعلان کړي و، بیعت وکړي. داکار دوي تر دي حده پوري مصروف وساتل، چې عمومي چور او چپاول، چې خلک دهغه په ویره کې وو، صورت ونه نیو، دسقاو زوي پر خپلو خلکو باندې انضباط ټینګ کړ، یو شمیر چې په غلا نیول شوي وو، ووژل شو، همفریز تلګرام وکړ چې، «دا ډیره سخته ده چې دا شورش تر کنترول لاندي راوستل شي.»

زیاتره هغه ایله جاري عسکر چې امان الله ته دوظیفې د اجراکولو په خاطر کابل ته راغلي وو، بیرته خپلو کورونو ته لاړل چې هر فریبي لېترلږه یو یوټوپک له ځان سره یوړ. په کابل کې قصر هغه یوازني برخه وه، چې د سقاو د زوي تر اداري لاندې نه وه. هغه تري وخته پوري هم دفاعي حالت درلو او له تیر کښونو څخه پرهغه چاپاندې ډزي کیدي چې خطر ناکه معلومیده.

همفریز تلګرام وکړ، «دارګ په داسي ضمانت کې سختي هلې ځلې کیږي چې په ارامي سره تسلیم شي. که چیري ارګ د هجوم او شبخون په واسطه نیول کیږي، نو دا به ناممکنه وي چې د قتل عام او خزانې د لوټولو مخنیوي وشي.»

داسي وه هغه وضعه چې همفریز په هغه ورځ لیدلې وه:

«عنایت الله پاچا له پنځو زروتنو نفرو سره لږتر لږه یو کلن د تجهیزاتو له ذخیري سره محاصره دي، په داسي حال کې چې د دولت دخزانې یوملیون سټرلنګ دري پر څلورمې برخي ته رانښکته شوي ده، او دوسلې زیاته ذخېره دهغه په لاس کې ده.

«حبیب الله (دسقاو زوي) د شپاړس زرو تنو په درلودلو او سره ټول هغه ستراتیژیکي موقعیتونه یې تصرف کړي چې ارګ یې تر قوماندې لاندې و او دالوتکو میدان له زیات شمیر ټوپکونو سره دده په اختیار کې و، مګر د مرمیو له سخت کمښت سره مخامخ و.

«یوه لویه قبیلوي قوه چې دیوي خوا تابعیت یې هم نه درلود، اخوا دي خوا کیدله او په دي هڅه کې وه چې ښارلوټ کړي او په عمومي اخ او ډب کې څومره چې کولي شي وسله تر لاسه کړي.

«دسقاو زوي زرداني زیني برابري کړي، او خپل توپونه یې په پوښونو کې دارګ د دروازي تر پنځوس متري پوري کش کړل، وروسته یې عنایت الله ته دڅلور ویشتو ساعتو الټي ماتوم ورکړ چې په ارامي سره دي ځان تسلیم کړي. بله لاره دا وه چې دوي د زینو په واسطه برید وکړي، دروازي به والوزوي او هیڅ ترحم به ونه کړي. ددي کار په سرته رسولو کې هغه دي ته

آماده و چې اووه سوه تنه تلفات ورکړي، او ددې کار حتمي نتيجه به ددولتي حزانې اوټول، دعسکرو قتل عام، پراخې جبه خانې ته انفجارورکول، دښار او بهرنيو هيوادونو ټولې نماينده ګۍ وراني کړي شي. هغه د انتظار ايستلو توان نه درلود. »

عنايت الله د مخه پوهيده چې مقاومت کول به دده او دده د ملګرو له پاره ستره بدبختي وي. هغه غوښتلي چې تسليم شي. يو نفر وغوښتل شو چې د پاچا او باندېيت تر منځ منځګړيتوب وکړي.

ګل آغا، چې تر اوسه پورې يې خپل موقف د قدرت منبع ته نږدې ساتلی وه، داکار په خپله غاړه واخيست. هغه به د سقاو د زوي او د عنايت الله تر منځ، چې يو په ارګ کې او بل يې په باغ بالا کې و، تګ راتګ کاوه، ګل آغا چې د ويشتل کيدو خطر يې مدام موجود و، يوه موافقه يې ترتيب کړه.

د جنوري د ۱۷ نيټې په ماسپښين، ګل آغا د برتانيې نماينده ګۍ ته لاړ او غوښتنه يې وکړه چې له سر فرانس همفريز سره ووينې. دا د هغه په ژوندانه کې لومړي ځل و، چې له يو سړي سره يې مخامخ خبري کولې چې مسلمان نه دي. هغه له ځان سره يو مکتوب هم درلود چې د کوهدامن ديومامورله خوا، چې شيرجان نوميده، ليکل شوي و، او د نوي زما د مدار د دوري له پاره د درباره وزير عنوان يې لا دمخه غوره کړي وه په مکتوب کې داسې ليکل شوي و:

« شهزاده عنايت الله له پاچاهي څخه لاس اخيستی دي او په خپله خوښه د اعليحضرت حبيب الله تابعيت يې قبول کړي دي. هغه تقاضا کړي ده چې دي او هغه د کورنی شل تنه غړي دي (چې زياتره يې ماشومان دي) بايد د الوتکې په ذريعه کندهار ته واستول شي. موږ کومه مناسبه الوتکه نه لرو، نو له تاسو څخه هيله کوو، چې يوه الوتکه موږ ته برابره کړي او دسبا سهار د اتو او لسو بجو ترمنځ د شير پور په هوايي ډګرکې دي بايد ښکته شي. »

ګل آغا وويل چې دا د کابل د تباهي د مخنيوي يواځينی لاره ده. همفريز ځواب ورکړ چې د برتانې هيڅ يوه الوتکه کندهار ته نه شي تلی ځکه چې د هغې د امنيت ضمانت نه شي کيدي. مګر هغه موافقه وکړه چې له خپل حکومت څخه وغواړي چې دوي لويې الوتکې واستوي چې سلطنتي کورنی دي پيښور ته انتقال کړي، له هغه ځای څخه به د اورګاډي په ذريعه ترچمن پورې ورسول شي او له هغه ځای څخه به، دوباره افغانستان ته واستول شي.

بوه شپه د مخه د پيښور افغاني تجارتي نماينده ګۍ د عنايت الله د بري په وياړ جشن

ترتیب کړي و ، په اروپا کې افغاني نماینده ګیوډ برتانیې د بې سیم په واسطه د افغاني بهرنۍ دفتر له خوا خبر کړي شول چې امان الله له پاچاهۍ څخه لاس اخیستی دی. البته هغوي له دې موضوع څخه خبر نه وو. په لندن کې بهرنۍ دفتر څرګندونه کړي وه ، چې د عنایت الله په رسمي پیژندنه کې کوم مشکلات نشته ، ځکه چې وضعه همغې وه ، لکه چې یو نفر د بل نفر وژلو په واسطه بري تر لاسه کوي.

اوس ، یوازې یوه ورځ وروسته ، همفریز پیښور ته تلګرام وکړ چې: «که چیرې کومې موافقې ته رسیږي نوزه غوره ګڼم چې دوې وکټوریا (الوتکې) دې واستولې شي ، ځکه د داسې غوښتنې په وخت کې به زموږه مرسته هغه یوازنی لاره وي چې کابل له تباهۍ څخه وژغورل شي. خنډول یې ممکن هر شی خراب کړي. زه به پیښور ته بیا تلګرام وکړم او په هغه صورت کې به (یو هوائي نفر) د شیرپور په میدان کې د نبي (T) توري کښیږدي. که چیرې په هوایي ډګر کې (T) ونه لیدل شونو وکټوریا الوتکې به یې له دې چې ښکته شي ، بیرته پیښور ته لاړې شي.»

له نیکمرغه چې د کابل دجوي دوضعې ښه والې دوام درلود.

د جنوري د اتلس نیټې په سهاره همفریز پیښور ته تلګرام وکړ چې سمدستې دې دوې الوتکې راواستوي.

په عین وخت کې عنایت الله یو مکتوب لاسلیک کړ چې په دې ډول و:

«د مهربان اوښونکي خدای(ج) په نامه ، زما ورور حبیب الله خان!

«هر څوک خبر دي چې زه د پاچاهۍ سره کومه علاقه نه لرم... اوس زه د مسلمانانو د هوساینې په خاطر د غه شی وړاندې کوم او د افغانستان له امیري څخه لاس اخلم ، او هغې چې ټول مسلمانان تاسو ته د تابعیت مراسم ادا کړي ، زه هم تاسو ته خپل تابعیت وړاندې کوم.»

هغه وروسته دهغه مخورو خلکو نومونه په لست کې ولیکل چې له ده سره په قصر کې وو اووې ویل چې دوې هم دسقاو زوې ته خپل تابعیت څرګندوي.

امان الله تر اوسه پورې قادر نه وه چې له کابل سره تیلفوني تماس ونیسي ، هغه یوازې تر غزنی پورې ارتباط نیولی شو. هغه له غزنی څخه واوریدل چې عنایت الله بندي شوي دي. هغه هیڅ نه پوهیده چې څه پیښنه ده.

کندهار ته له رسید وڅخه دوه ورځې ورسته ، امان الله د ښار له یوزرتنو مخوروکسانو سره د مجلس کولو غوښتنه وکړه او ، په داسې حال کې چې له دغې ډراس څخه تراوسه پورې کړکه

کوله، دا خبره یې رده کړه چې خلک دې د معمول په شان د هغه خبرو ته داوریدو په وخت کې ودریږي. هغه په خپله چې دخلکو د راپاریدو په باب خبرې کولې، ناست و، او د شینوارو د راپاڅیدو پیښه یې وغندله چې د یوې توطئې په توګه یې صورت نیولې و، او بیا یې کندهاریانو ته وویل چې ما له پاچاهۍ څخه لاس اخیستی دې او ناسو باید عنایت الله ته خپل تابعیت څرګند کړي.

وروستی خبرې د خلکو احساسات راوپارول او د نارضایتی تهدید ونه یې وکړل. یو قاضي د عنایت الله منلو څخه انکار وکړ او په جګ اواز سره یې وویل چې امان الله زموږ پاچا دی، او ډیر کسان چې هلته حاضر وو په جګ اواز سره یې وویل چې امان الله زموږ پاچا دی، د هغه د وفادارۍ څرګندونه، چې د امان الله له خوښۍ څخه لیرې وه، هغه یې په بدحالت کې واچاوه، او پورته شو چې مجلس هم ناتمام پاته شو.

هغه د مخه امر کړی وچې شاهي بیرغ دې را کوز کړي شي، ځکه چې په کندهار کې هیڅ کوم پاچا وجود نه درلود.

اما هغه یو تفریبی کوټتی ته استولی وچې یو پیغام په لاس هلته یوسی ځکه چې هغه ته غوښتل د تلګراف په واسطه له کندهار څخه پیغام واستوي، له کوټتې څخه لندن او د هغه پخوانی دوست شجاع الدوله ته، چې هلته مختار وزیرو، تلګرام وشو او شجاع الدوله دا تلګرام د برتانیې بهرنی دفتر ته واستاوه.

هغه وویل چې له پاچاهۍ څخه د امان الله لاس اخیستنه داسی یو تدبیرو، چې له کابل څخه په سلامتی سره ځان وباسی، او امان الله خپل ځان او خپلې کورنۍ د بیا منځ ته راوړلو هیلې لرې، هغه وویل زه د برتانیې له حکومت څخه غوښتنه کوم چې ورسره دې مرسته وکړي. وسله دې ورته ورکړي چې پاچاهي دوباره ترلاسه کړي، ددې مرستې په مقابل کې هغه خپله بې ساري مننه څرګنده کړه او وعده یې وکړه چې ددغو وسلو د پیسو د تادیه کولو مسئولیت به دده پر غاړه وي.

شجاع الدوله زیاته کړه چې زه اطمینان لرم دغسی کومه مشابه غوښتنه له مسکو څخه نده شوې.

دهمفریز عکس العمل داسی و، «زه مام شکمن وم چې له پاچاهۍ څخه د امان الله لاس اخیستنه... د باکس او کاکس (Box and Cox) ترتیب و، ماته به مدام د امان الله له خواویل

کېدل چې د ستونزو په وخت کې به زه لومړي له لوېي بريتانيې څخه مرستې وغواړم او که دغوي له لاري له ناکامۍ سره مخامخ شوم نو مجبور روسيې ته به مخ واړوم... په اوسنيو شرايطو کې داځرگنده شکاري چې موږ امان الله ته هيڅ ډول مرسته نه شوو کولی او که امکان ولري نو زه به پيشنهاد وکړم چې د عليا حضرتی حکومت دي بايد له روسيې د عدم مداخلې مفاهمه وکړي، چې امان الله ته دي عسکر او جنگي مهمات ورنه کړي.

«زه پيشنهاد کوم چې د افغاني وزير مختار ځوابيه دي بايد داسې بنه ولري: «له پاچاهي څخه د امان الله لاس اخيستنه د عليا حضرتی له حکومت سره رسمي خبري شوي دي، او د افغان د تاج او تخت نومول شوي جانشين پايتخت يې تسليم کړي دي او اوس د سفر په حال کې دي چې دهند له لاري له مخلوع پاچا امان الله سره په کندهار کې يوځاي شي. نو په دي توگه د عليا حضرت حکومت نه شي کولی په لندن کې د افغاني وزير مختار صلاحيت په رسميت وپېژني او ورسره دې رسمي خبري اتري وکړي څو چې موجوده وضعه بيرته منظمه شي.

«زه فکر کوم له مستقيم منفي ځواب ورکولو څخه دي ډډه وشي په دي چې امان الله بد چانس تر لاسه کړي او روسيې ته به د مرستې غوښتلو پيشنهادونه وړاندي کړي. »

دا دځنډلو هغه لو به وه چې د بهرنيو چارو دفتر له شجاع الدوله سره دلوبولو په خاطر په کار اچولې وه چې دهغه «شخص او غير رسمي» غوښتنې يې په برکې لرلی. د بهرنيو چارو د فتر وروسته داسې وويل: «موږ (د دي غوښتنې) د اغماض په فکر کې وو مگر نماينده گی تيلفون وکړ او پوښتنه يې وکړه چې څه وخت به ممکن وي ځواب تر لاسه شي. »

د بهرنيو چارو د وزير اوستين جمبرلين له خوا ځواب موديانه و، چې نه مياشتې دمخه يې له امان الله سره په کلاريج (Claridges) کې ليدنه کتنه کړي وه او امان الله په شاهي لباس کې و اوور سره د ډيري زياتې وسلې ژمنه کړي وه، او په دي وخت کې ورته له يو جهان وسلې څخه هم زياته معنی لرله:

«د عليا حضرتی حکومت دغې غوښتنې ته خپله ډيره زياته خوا خوږي ښودلې ده، مگر هغوي ډير افسوس کوي چې بين المللي ملحوظات د افغانستان په داخلي چارو کې «هغوي د وسلې د مرستې په ورکولو سره د افغانستان په داخلي چارور کې دهغوي د مداخلې مانع گرځي، ځکه چې په افغانستان کې داسې يو حکومت يا واکدارو جودنه لري چې په عمومي توگه په رسميت پيژندل شوي وي. زه دا ضرور نه گنم چې زياته کړم چې که د عليا حضرتی

حکومت د اعلیحضرت له حکومت سره په کومه طریقه خپله دوستي څرګندولی شي چې داسې مداخله کول په بر کې ونه لري، هغوي به د دي کار په کولو سره زيات خوښ شي. »

له پاچاهۍ څخه د امان الله لاس اخيستنه، چې ورپسې عنايت الله دا کار وکړ، د برتانيې د امپراتورۍ پوره معظله يې حل کړې وه.

په کابل کې دلندن بدبيني نوبلس ابلګي (Noblesse Obligi) په قهرمانانه عمل سره پرتله او اجرا شو. دبرتانيې د نماينده ګۍ نفر، به له وسلې په بوره بيجه باندې ارګ ته لاړل، عنايت الله او دهغه د کورنۍ غړي يې ترالوتکو پورې بدرګه کړل چې څرخونه يې له چورليدو څخه لانه ودريدل او د دوي په انتظار کې وه. دسقاو د زوي انضباط ټينګ شو. دوي الوتکې يې له کوم تکليف څخه، وروسته له څو دقيقو د پيښور په لور پرواز وکړ.

پيښور راپورورکړ، « د خلافت کوميته سبا ته په شاهي بن کې د يو مجلس اعلان کړي دي چې په کې افغاني چارې تر بحث لاندې نيول کيږي. د ماوراي سرحد يو زيات شمير قبايليان چې زياتره يې افريدي او مومند په کې وو، نه په پيښور کې يو مجلس داير کړ او په شور اوزوږ سره يې ادعا وکړه چې د افغان شاهي کورنۍ د حمايې په خاطر دي وسله واخلي مګر حتمي د امان الله په خاطر نه.

« تېرل دغه شيان له پيښور څخه د عنايت الله او دهغه د ډلې د انتقالولو په خاطر وو چې هر څومره ژر چې امکان ولري ورته ي انتقال ورکړشي. »

د کابل په بوره الوتکه کې يونفر قاچاقي تير شوي و: « محمد عمرد امان الله اکا باندېيت يې د پاچا په توګه قبول کړي و، مګر دهغه موټروان په چالاکي سره الوتکې ته وخوت او بوي څوکي لاندې يې ځان پټ کړ.

عنايت الله او د هغه ملګري په يو اورګاډي کې کښينول شول او دهند خاوري ترهغې نقطې پورې ورسول شول چې کولی يې شول له هغه ځای څخه کندهار ته لاړشي. له هغه وخت وروسته چې امان الله د موټر په ذريعه له ارګ څخه وتلی و، عنايت الله ته دهغه په مورد کې کوم احوال نه وو رارسيدلی چې آيا کندهار ته رسيدلی دي او کنه نه. کله چې اورګاډي په چمن کې تم شو. نو يې غوښتنه وکړه چې په چمن کې انتظار وباسي څو ځان مطمئين کړي چې په کندهار کې به دي له مخالفت سره مخامخ نه شي.

همفريز تلګرام وکړ چې، « زه دا ضرور ګڼم چې عنايت الله او د هغه ډله دي بايد له

بندر څخه تیره شي او څو مره ژر چې امکا ولري، کندهار ته دي واستول شي. د مخه تري چې عنایت الله له کابل څخه حرکت وکړي پردي ټکي باندي د دواړو خواو موافقه شوي وه او دا بوازني شرط وچې برتانوي الوتکې آماده شوي او دوي بې پېښور ته ورسول. که هغه په هند کې پاته کېږي، پر موږ باندي به دوعدي د ماتولوتورو لګول شي او که ضرورت احساس شي، نو هغه به په زور سره له چمن څخه کندهار ته واستول شي. »

دجنوري د ۲۲ نیټې د ماسپښین په لومړیو وختو کې د افغانستا دوهم مخلوع پاچا په موټر کې دکندهار په لور لاړ.

د جنوري په ۱۹ نیټه د برتانیې قونسلګري په نیس کې چې د فرانس په جنوب کې واقع دي د نادرله ورورهاشم سره یو بل ملاقات وکړ، په دي ملاقات کې هاشم دخپل ځان او خپل ورور شاولي له پاره د ویزې غوښتنه وکړه چې د هند له لاري افغانستان ته لاړ شي.

قونسل، دهغو کسانو پر لست باندي مشوره وکړه چې هغوي ته بې له یوي خاصې موافقې څخه ویزه نه ورکوله او په لست کې دهغه د ورونو نومونه بې ولیدل چې په افغانستان کې ووچې د همفریز په غوښتنه دهغوي نومونه دد سمبرپه ورو ستیو وختو کې لیکل شوي وو، هغه هاشم ته وویل ترڅو چې پاریس ته رجوع ونه کړي، زه نه شم کولی ویزه درکړم.

هاشم چې زیات ځوریدلی و، له قونسل څخه یې غوښتنه وکړه چې پاریس ته تلګرام وکړي. هغه وویل چې دهغه دوه نورو رونه د مخه افغانستان ته تللي دي. بل ورځ سهار له پاریس څخه قونسل ته تلګرام راغی او په کې غوښتنه شوي وه چې نادر په کوم ځاي کې دي. نادر هیڅ ځاي نه درلود.

هاشم د څوور ځوپه موده کې پاریس ته تللي وچې دبرتانیې په سفارت کې د خپل ځان او شاولي له پاره دویزي موضوع بیا تکرار کړي. هلته بې داخبره و اوریدله چې موضوع دي باید لندن ته حواله شي. په داسې حال کې چې فکر کیده ممکن دي په خپله شخصاً موضوع تعقیب کړي، لکه څنګه چې په پاریس کړي و، د برتانیې سفارت یوازي د انګلستان ویزه ورته ورکړه، اما هغه په عوض کې نیس ته لاړ، د پاریس سفارت داسې راپورورکړ، « موږ ته د افغان نماینده ګۍ د یو سکرتر له خوا معلومات راکړي شوي دي چې شاولي په نیس کې له نادرسره اوسیږي، نوموږ په دي فکر کې یو چې نادر تردي نژدي وختو پوري هلته و. »

پر نادر او دهغه پرورونو باندي دوبزي بندول بوه تحمیلي دسیسه وه. « ددي له پاره چې د

امان الله د وارخطايي مخنيوي په داسې وخت کې شوې وچې هغه دځپل تاج او تخت له پاره په جنګ اخته و. » په بدل شوو شرايطو کې، همفريز توره کومه سپارښتنه ونه کړه چې ويزه دې بنده شي.

« دا به مشکله وي چې ردول يې عادلانه وښودل شي. حتى که (دسقاو زوي) زمونږ عمل ضعيف وګڼي، او دا پوره امکان لري چې دد غسې يو سردار يا د ټولو سردارانو را رسيدل، چې په افغانستان کې د ښه طرز تفکر خاوندان دي، ممکن دهيواد په متحد کولو کې چټکه اغيزه ولري. »

ددې له پاره چې د هاشم مخنيوي دلندن له تګ څخه شوي وي، چې هغه ډيوي مصاحبې غوښتنه يې کړې واي، د بهرنيو چارو دفتر په بيړې سره پاريس ته يو هدايت واستاوه چې، « که غوښتنه کيږي نو نادراو د هغه ورونو ته دې ديپلوماتيک ويزه ورکړې شي او ورته دې دداسې ورکولو څخه ډډه وشي چې هغوي فکروکړي د شخصي ملحوظاتو له کبله دهغوي ويزه ځنډول شوې ده. »

هغه الوتکه چې عنايت الله او دهغه کورنۍ يې وړله په کابل کې لا معلوميدله چې دسقاو زوي او دهغه ملګري د ارګ ماڼۍ ته ننوتل.

دا دومره آرامي نه درلوده لکه چې دځوشيبې مخکې غزيمت درلوده. لومړنى نفر چې قصر ته ننوت دکوهدامن يو ملک وچې نه يې غوښتل په شورش کې برخه واخلي، ليکن د هغه کلي ټول خلک را پورته شوي وواود تګ ليوال وو. هغه پوه شو چې نه شي کولى هغوي و دروي، دې دهغوي ملک، دهغوي لارښود و، او که چيرې خلک پرته له ده څخه کابل ته تللي واي، نو دې به زياتي ددوي لارښودنه و، نو هغه د جنوب په لور حرکت وکړ، او دسفر په هر رباط کې به هغه د ملايانو يوه ډله ليدله چې له ضروري شيانو سره به په انتظار کې وه: لاتينونه، وسله، خوراکي مواد او هغو شيانو په باره کې معلومات ورکول چې ددوي په مخ کې راتلل.

ددې سړي د تجربو په ساحه کې دغسې دعالي ترتيباتو نيول يو نوي شي و. دده دکوهدامن ژوند د تصادف په شکل و، په داسې حال کې چې هغه هيبت وهلى معلوميده هغه درک کړې وچې يوازې يو توضيح وجود لرلى شي: ټول دغه شيان د خداى له لورې دي.

له ده څخه ټوله بې ميلي او بې علاقه ګي ليرې شوه او هغه د نورو قبايلي خلکو په شان په زور او قوت سره مارش وکړ او دهغوي په شا به يې چغې وهلې چې د خدايي وظيفه ترسره کوو.

کله چې هغه د دې غونډې په واسطه د قصر خواته روان و، پوه شو چې دې به لومړي سړي وي چې قصر ته ننوزي او په داسې حال کې چې دسقاو د زوي له پلان څخه خبرنه و، دا خبره یې په فکر کې وګرځیدله چې خداي دې وکړي دې پاچاشي.

هغــه د دروازې له درشل څخــه تیرشــو. بو مـرد کې- هیڅ پوه نه شــو چې دده د ملګرو له خواو، یاد پاچا د نفرو له خوا- دده دشقیقو په منځ کې ولګید. هغه دخپل ژوند په پاته سودو کې ړوند شو. ده به مدام فکر کاوه چې داهم دخداي (ج) له خواو.

د ارګ په حرمسراي کې تقریباً واخطایی لیدل کیدله. دامان الله د پلار ناوادة شوي لوڼې، ټولې پيغلې وې. ځینې یې له قصر څخه تللې وې، خود امان الله دبلنې له مخې بیرته راغلې وې چې زده کړه وکړي. ډیر ځوانې ښځې په هغــه ځاي کې اوسیدلې (د حبیب الله ښځې خوښیدلې)، او ټول ځانو نه دجنګ قربانیان فرض کړي وو.

ددې پرځاي چې دوحشي شورشیانو له هجوم څخه ویره وکړي، دسقاو زوي ورته یوسپین زیري واستاوه، هغه ورته وویل چې ترتیبات نیول شوي دي، چې تاسو د عنایت الله کورته یو سو. بله ورځ د هغوي خپلوان راغلل، څرنګه چې امیرحبیب الله د مختلفو قبایلو څخه ښځې کړي وې، چې د افغانستان له ټولو برخو څخه وي نو د دوي دا خپلوان د دوي له مورني ټبر څخه وو. دهغوي خپلوان یا خپله کابل ته راغلي وو یا یې په هغه ځاي کې نماینده ګان درلودل. هغوي داښځې لــه قصر څخه وایــستلې او مخــتلفو کــورونو تــه یــووړل. داکورنه غریبانه وو، لیکن محفوظ وو.

دهغې ورځې په ماسپښین باندې د سقاو زوي ځان په ارګ کې ځاي پرځاي کړ. هغه خپلو نفرو تــه د هغو وزیرانو او مــاموریــنو نومــونه ورکړي وو چې امــان الله ته یې کار کــاوه او امریې کړي وچې په ترتیب سره کیدي شي، هغوي پيداشي او سمدستي دې راوستل شي. په دوي کې ځینې په خپلو کــورونوکې په کمیس او پر توګ کې وو، ځینې یې بازار ته وتلي ووچې له خلکو سره یوځاي شي او له هغوي څخــه واو ي چې څه پیښــه دد. دکــوهســتــان والي دسقاو د زوي د ګاونډیانوله خوا ټوله شپه په یوه پښه ځړند شوي و. دامان الله د اقتدار په وخت کې دغه خلک دهغــه له خوا ډیر ځورول شوي وو، شورشیــانو دغــه مــامورین خپــل لیــدرته راکش کړل بې له دې چې ورته مــوقع ورکړي وي چې خــپلې کــرتې واغــوندي، د ارګ په لاره کې کــوڅې ختې وي، او ځینې یې په رښتیا سره کش کړل. د کوهستان والي سمدستي ټوټې ټوټې شو.

له دغو خلکو څخه اتیا تنه دارگ د قصرانګړ ته راوستل شول او په یخه هوا کی هلته ودرول شول او دسقاو زوي یی له کړکی څخه لیده چی دوډي یی خوړله. دغه کړکی چی دسقاو زوي یی له هغوي څخه بیلاوه، لومړنی ښیښه لرونکی کړکی وي، چی ده ولیدلی، دهغه ځینو پیروانو به د چرګانو هډوکی دباندي غورځول او په دي باندي به اریان شول چی هډوکی په هندارو لګیږي او بیرته کوټی ته را ولویږي. دا ځکه چی هغوي پرته دغلاله وخت څخه نور کله په داسی کوټوکی نه وو داخل شوي.

ځینی به په ارک کی دکالیو له الماریو څخه جامی ایستلی او هغه به یی اغوستلی دوي ددغو کالیو برش او تنګ شکل او اندازي ته اریان پاته کیدل او دومره بی فکرنه کاوه چی داد ثریا کالی وو. په هغه تشناب کی چی لاجورد په کی کارشوي و، دوي ته باید نه یوازي ویل شوي چی لاجورد څه شی دي، بلکی باید تشناب نورسامان هم ورته ښودل شوي او تشریح شوي واي.

د سقاو زوي خپله دوډي خلاصه کوله او کړکی بی خلاصه کړه، ده له کړکی سره په خپل قبایلی لباس او پټکی سره ودرید چی قطاروزمی بی هم په غاړه کی وي او هم په ملایی تړلی وي او داسی معلومیده لکه چی له مرمیو څخه یی ځان ته جامه جوړه کړي وي. شیر جان دهغه د دربارنوي وزیر وویل، «اعلیحضرت غواړي له تاسو سره خبري وکړي.» او بیابی هر نفر چی لړزیدل د معرفی له پاره وړاندي کړ، خو شیرجان په شخصی توګه له دغو کسانو څخه زیات شمیربی پیژندل او کله چی هغوي په قدرت کی وو، دي یو بیچاره مامور و.

دسقاو زوي دلست له مخی اجرات وکړل، لومړي محمد عمرد امان الله اکا، راغی او وروسته حیات الله اوکبیر دامان الله وروڼه، چی ځانونه یی لادمخه د بریالی نفر په خوا ټاکلی وو.

کله چی د کوهستان والی بی ولید چی په یووخت کی پرده باندي یی ریښتینی قدرت درلود او هغه حی په ونه کی څوړند کړي شوي و، دسقاو زوي ورته وویل: «ستا په شان کثیف ترین سړي تر اوسه پوري مانه دي لیدلی.»

میر هاشم، د مالیی وزیر وړاندي کړي شو. د سقاو زوي پر کړکی باندي تکیه وکړه او ورته وویل: «اي لوي کافره!»

د مالیی وزیر وویل: «زه کافرنه یم بلکی یو واقعی مسلمان اوسیدیم.»

د سقاو زوي پوښتنه وکړه: «آیا تا بودجه نه ده وړاندې کړې؟»

«بودجه څه شی دی؟ داد حساب داري زوړ سیستم دی. په کورکې، په دوکانونو کې، موږ تول بودجې لرو، دا یو نوي نوم دی.»

دسقاو زوي وویل: «آیا دا د یو کافر کارنه و؟» د مالیې وزیر وویل: ن«د، نه و.»

د سقاو زوي وویل: «محترمه! ساله تاڅیني وغوښتل چې د غرمې ډوډې راسره وخوري. د دربارو زیر به یوه پاتېه درکړي، او تاسو باید هغه لاسلیک کړي.»

پخواني مامورین په لاندې منزل یوې کوټې ته یووړل شول، چې معمولاً، نوکران هلته اوسیدل اویخ کشمش پلاو ورته ورکړ شو.

وروسته شیرجان له یوې کتیبې سره رانوت چې یو ټوک قران شریف هم ورسره ضمیمه و او په داسې حال کې چې کتیبه یې لږه خلاصه کړه یوه نقطه یې ورته نښه کړ، چې مامورین مجبور وو په هغه ځای کې لاسلیک وکړي، ده هغوي ته اجازه ورنکړه چې هغه شی چې دوي یې لاسلیک کاوه، ولولي، مګر څرنګه چې دوي داسې موقف نه درلود چې اعتراض یې کړي واي، نویې هغه شی لا سلیک کړ.

کله چې د عبد الهادي وار راغی، نو هغه بوازنی نفرو چې زرورتوب یې وکړ او کتیبه یې خلاصه کړه او ویې لوستله. عبدالهادي چې محمود طرزي ورته به سراج الاخبار کې موقف ورکړي و، یو غریب سړی و او وروسته د بهرنیو چارو دفتر ته یووړل شو او په دې توګه هغه ته موقع ورکړشوه چې په یو مسلک کې له مخالفینو سره سره پر مخ ولاړ، ولو چې په دې باندې پوره پوه وچې خلک ورپسې خبرې کولې اوورته به یې غوږه مال ویل، لیکن عبدالهادي دخپلو دوستانو په مقابل کې «صادق او راست» سړی او ددښمنانو په مقابل کې «زیږ اورد ویونکی» و، برتانویان یې هم په دې کې شامل کړي ووچې دهغوي پر ضد مدام دفاعي حالت درلود. سره له دې برتانویانو به حتی ویل چې هغه «رشوت خور» نه دی، هغه اوس د هغه سړي په نزد چې کابل یې په لاس کې و، داسې مستقل و، لکه چې و.

عبد الهادي پوه شوچې ده نژدې هغه کاغذ لاسلیک کاوه چې نه یوازې دسقاو زوي یې دپاچا به توګه مانه بلکې امان الله یې دکافر به توګه تصدیق کاوه... ده هغه کتیبه لاسلیک کړه، ځکه چې مجبور و، مګر دخپل نوم په څنګ کې یې داسې ولیکل، «دمذهب تفصیلات ددیني علومو پر شاګردانو پورې اړه لري.»

داسن ملايانو ترتيب کړي و او په هغه وخت کې چې دوي بريالي وو، خلکو ته د امان الله د هغو اعمالو په باره کې ويلي وو چې هغوي يې څورول او را و يې پارول چې امان الله له پاچاهی څخه وغورځوي.

د هغه ټول اعمال د قران شريف او د حضرت پيغمبر (ص) له اوامرو څخه مخالف وو، لاندې څو مثالونه دي چې له محمدي شريعت څخه د هغه په ډاګه سر غړونه ښيي او په عوض کې د هغه د اختراعاتو څرګندونه ده:

١ - هغه دخپل سلام او عليک شکلونو ته ترک ورکړ او په عوض کې يې کافرانو د سلام او عليک شکل يې غوره کړ چې د حضرت پيغمبر د او امرو پر خلاف ر او پر خلکو باندي فشار راوړ چې د غه طريقه استعمال کړي.

٢ - هغه پټکی له منځه يووړ، چې حضرت پيغمبر (ص) استعمالاوه او لمونځ هم ورسره په اسانی سره کيده او پر ځاي يې شپو رواج کړه چې کافرانو به په سر کوله. يو سړي چې د شپو و په ارتباط دامان الله خبره ونه منله، په جزا محکوم شو.

٣ - هغه مسلمانی لباس ته يې تغيير ورکړ چې د پخوانو مسلمانانو له خوا استعماليده او امر يې وکړ چې ټول دي هغه ډول لباس واغوندي چې د کافرانو له لباس سره ورته والي درلود. دانوي لباس تر اوسه پوري رواج لري.

٤ - قران شريف حکم کوي چې نامحرم نارينه دي له ښځو سره سترګه په سترګه نه شي. امان الله سره له دي چې د خداي (ج) له دي امر څخه يې سر غړونه وکړه او د ښځو د مخ لوڅې امر يې هم صادر کړ.

٥ - مذهبی قانون پوهان داشی يې قانون ګڼی چې پيغلی نجوی دي دخپلو لوميرونو له اجازي پرته د باندي ووځی، سره له دي، امان الله امر وکړ چې ټولی ښځی او نجونی دي بايد ښوونځی ته لاړي شی. هغه په دي کار يوه اسلام ته بی حرمتی کړي ده.

٦ - د ږيري پريښودل او د بريتونو منځنی برخه پهاتی کول، د حضرت پيغمبر (ص) کاراو امرو، مګر د امان الله امرونه د دغو پر خلاف وو.

٧ - هغه امر کړي وچی هلکان دي ښوونځی ته لاړشی. هلکان د پيغلو نجونو په شان قانونی موقف لري. په دي مکتبونو کی د مذهب، شريعت او د قران اصولي زده کړه نه کيدله، بلکی هغه مضامين تدريس کيدل، چی د شاګردانو عقيده يې خرابوله.

هلکان بې شرمه شول... له زده کړې څخه مقصد بوازې قراني او امردي نه د اروپايي ژبود ليکنې علم او دهغوي انځورول، ياد هيواد و نواود تيرو پاچاهانو په باره کې معلومات، ياد کافرانو د ژبو زده کړه.

٨- دا هيڅلګه رواج نه و او نه شي چې مسلماني پېغلې نجونې دې له يو اسلامي هيواد څخه بهر وليږلی شي چې اروپايي ليکنې او هنر زده کړي، ددي نا مطلوب عمل په حساب، مونږ مسلمانان د نورو مسلمانو او غير مسلمانو هيواد وو له خوار يشخنندشولو. هيڅ يو پاچا دغسې نه دي کړي او نه به خلکو باندې له دې څخه زيات ظلم وکړي. »

په سند کې داسې خبرې هلم شوې وې چې امان الله د اروپايي هيوادونو په شان د قمري کال په ځاي د لمريز کال تقليد کړي و، د جمعې د ورځې په ځاي د پنجشنبې ورځ يې رخصتي اعلان کړې. د خوست په شورش کې له ګوړ ملا سره دهغه مخالفت او همدا راز د ګل آغا سندي کول ټول هغه موضوعات وو چې په سند کې راغلي وو.

ددې له پاره چې دشورش اصلي د لايلوته نږدي شوې او سو، ملايانو داسې ليکلي وو، «هغه دملايانو، موذنانو او د جوماتونو د خدمتګارانو هغه تخصيصه له منځه يووړله چې د پخوانيو پاچاهانوله خوا ورته حواله وه... د هغه خوښيده چې ملايان او د هغوي طالبانو ته بد دوايې.

کوم شي چې په دغوتو رونوکې زيات کړې شوو، د طورم هغه غږو چې دمخه يې نفر د جنګ له پاره سره راټولول او هغه سرې چې دار ګ د ماني په درشاهي کې ناست و او دخداي(ج) ثنا او صفت به يې ويل هغه په زړه کې اوريدلې و او دګولې د او از احساس يې کړې و:

« دامان الله اعمال... ددې فاني دنيا په انګيزو باندې متمرکز دي. هغه دمذهب پر مختګ ته کومه پاملرنه ونه کړه چې ابدي ژوند ته سري رهنمايي کوي. »

# نه ویشتم فصل

## د ۱۹۲۹ کال د جنوري له ۱۹ څخه

## د ۱۹۲۹ د فبروري تر ۱۳ نیتی پوري

د جنوري په ۱۹ تاریخ له پیښور څخه کندهار ته یو تلګرام را ورسید. په تلګرام کی امان الله ته «اعلیحضرت» ویل شوي وو او د سیاسی چاور په باب په کی کوم ذکر نه وشوي. یوازي د امان الله د ښه صحت هیله په کی شوي وه. تلګرام د عنایت الله له خوا راغلی و، چی ځان یی په کی «معین السلطنت» ښودلی و، او دا هغه لقب وچی ورته د شهزاده په توګه ورکړ شوي و، او امان الله د غه ځارل شوي لیک څخه پوه شو چی دهغه ورور هم له پاچاهی څخه لاس اخیستی دي.

لیکن امان الله په فکر کی شو چی تلګرام له پیښور څخه راغلی و او تعجب یی وکړ، چی که له کابل څخه د پیښور له لاري، ریلی شوي وي او یا که عنایت الله په حقیقت کی په هغه ځای کي وي. هغه د پیښور افغانی تجارتی نماینده ګی ته یو عاجل ځوابیه تلګرام واستاوه چی په کی د د غو موضوعاتو پوښتنی شوي وي، مګر دغزنی د سوداګرو له خوا ورته ژر ځواب ترلاسه کړ.

په کندهار کی بیاد ماشیندارو دخونو د برجونو د پاسه شاهی بیرغونه په اهتزاز راغلل. له پاچاهی څخه د عنایت الله له لاس اخیستو وروسته امان الله یو ځل بیاد پاچاهی اعلان وکړ او د دوهم ځل له پاره یی تاج او تحت ترلاسه کړ.

بیا هم، بوازې دهغه د مورکورنی غړو ورته خوشبینی ښکاره کړه، دکندهار نور خلک د غله دانی او غذایی مواد وله کمبود سره مخامخ وو.

د کندهار ډیر مارږه کسان چی سوداګران وو، له اهل هنود څخه وو او ډ ارېدل چی د مذهب په خاطر به ځوروول شی. دامان الله تر زمامداري لاندي هغوي له مسلمانانو سره مساوي الحقوق وو او له هغه څخه خوښ وو او اوس چی امان الله همدردي ته ضرورت درلود، هغوي ورسر همدردي ښودله. اوس، دهغی بوپاچا دقدرت دضعیف والی د ښني ښنانی په توګه، چی مذهبی تعصبات یی محکومول، مذهبی خصومتونه دوباره منځ ته راغلل.

امان الله تصمیم ونیو چی باید هرات ته لاړشی. دا دهغه دهیر شوي دوست او دهغه د خسر محمود طرزي مشوره وه. محمود طرزي فکر نه کاوه چی برتانویان به له امان الله سره مرسته وکړي او اټکل یی وکړ چی دي به تاوان ونه کړي، او ممکن ددي احتمال ډیر زیات وي چی د روسیي په ګاونډیتوب کی ځان ته متحدین پیدا کړي.(۲)

په خپله طرزي، چی ستړي ستومانه او صحت یی ښه نه و، غوښتل یی چی له افغانستان څخه لاړشی، هغه داسی نفرو چی دامان الله په شان قدرت دخپل ځان له پاره په فکر کی ساتل. ددي پوهی په لرلوسره چی هغه ورڅخه استفاده کړي وه او ددي پیړي په سرکی یی افغانی ځوانان راوېښ کړي وو. هغه د فارسی ددو ولغتونو په استفادي سره د امان الله له دي تصمیم سره علاقه مندي ښکاره کړه چی له پاچاهی څخه یی لاس اخیستی و. هغه دفارسی دوه لغتونه « تخت » او « تخته یا تابوت » وو چی تخت یی د پاچاهی معنی ورکوي او تابوت یوه تخته ده چی مړي وربانديي اینښودل کیږي، طرزي وویل چی دامان الله به اوسنی مرقف کی تخت او، تابوت دواړه یو شی دي.

طرزي له برتانیی څخه غوښتنه وکړه چی دبمبیي د قونسلګري له لاري دي ورته د هند ویزه ورکړي شی، مګر هغوي په یاد راوړل چی دي دهغوي په مقابل کی څنګه دریدلی و او همفریز ته داسی ویل شوي وو، « دهند حکومت احساس کوي چی په موجوده بحرانی کی بوازنی ویزه چی د طرزي په شا یو نفرته ورکول کیدي شی، هغه به داسی یو دول ویزه وی چی له چمن څخه د هغه تګ مستقیماً تربیړي پوري وي. » او هغه بیرته تلګرام وکړ چی، « ممکن محمود طرزي بی له کومی ویزي څخه له بندر څخه واوړي او هند ته په دي منظور لاړشی چی پروپاګند وکړي. زه به پیشنهاد وکړم چی هغه دي تر دقیقی څارنی لاندي ونیول شی. » او وروسته: « مشکل په دي

کې دي چې کـه طرزي د عـه شرطونه حتی قبـول هم کـړي، ممکن هڅـه وکړي هغـوي وغـولوي.» هغوي نه پوهیدل چې هغه څومره ستړي او دلسرده و.

کندهاریانو، چې د امان الله له ژرپیښیدونکي وتلو سره مخامخ وو، سمدستي یې ولیدل او پوه شـول چې د کـابل د باندیت په مقـابل کې هغـه ددوي پوازنی هیله ده، د هغـوي لاربښود ملایان، چې خپله قوا یې د امان الله د حمایې په خاطر په کارنه اچوله، وپتیله چې هغه به ممکن بیخي پښیمانه وي او دهغـوي د ترلاسه کولو غوښتونکي وي، هغوي فکروکړ چې د سقاو زوي هم د کافر په توګه اعلان کړي، البته ددي په خاطرنه چې هغه اسلام ته کوم شی کړي دي بلکې ددي په خاطر چې پاچاهي یې ترلاسه کړي ده.

امان الله دوي ته او هم هغو کسانو ته چې غوښتل یې امان الله دي پاته شي، ځواب ورکړ چې زه د خپل تګ په مورد کې دوه دلیلونه لرم. لومړي دا چې افغـان اولس زما د لسوکالو هغه خواري ورانه کړه چې ما په دي موده کې د خپل اولس دښیګنو په خاطر پر ځان منلې وه، «په نتیجه کې ماد پاچاهي کولو ټولې هیلې له لاسه ورکړي دي.» هغه وویل، «زما دصبر کاسه ډکه شوي ده.» او وي ویل، ددي پر ځاي چې پرماباندي فشار راشي لکه څنګه چې په کابل کې پر مـا راغلی و، نو دا به بهتره وي چې دخپل ترتیب شوي تقسیم اوقات له مخې په خپله خوښه هرات تـه لاړ شم. هغـه وویـل، دوهـم دلیـل دادي چـې پـه وروسـتـیـو مـیـاشـتـو کـې داڅرګنـده شوه چې کندهاریان ددوه اړخیـزي کړي دي او کله چې ماد نفرو غوښتنه کـوله، دوي هیـڅ کـوم ځـواب نه دي راکـړي او هـمدا راز هغـه کـسـان چې یې نومـونه لیـکل شـوي وو، جنـګ تـه اماده ګي ونه ښودله.

هغوي ومنله چې مرستـه ورسره وکړي او وي ویل چې امان الله دي باید له هرات څخه تر غزني پوري پاچاهي وکړي، په پاي کې هغه راضي شو چې په کندهارکې پاته شي. هغه یو قرار داد کـوونکي ته ډیري زیاتي پیسـي ورکړي چې له هند څخه لاري وپیري. پنځـه سرویسـونه چې فرمایش یې دخوښې په ورځـو کې شوي و، کندهار تـه راورسیدل. له دغـو سرویسونو څخه چې ۲۱۰ تنه په کې ځاییدل دلومړي ځل له پاره دکلات په لورد قـوا ووپه استولوکې استفاده وشوه چې هغه عسکري وژغوري چې دده په امر سره د کابل په لور استول شوي وو، خود عنایت الله له وتلو وروسته یې عقب نشیني کړي وه. کله چې هغوي د کوررونو په لور روان وو، دغلزیو له خوا وربانـدي حـمله وشـوه. دلتـه هم جـوي اوضـاع د امان اللـه دښمن شـو، د کندهار او کـلات تر منځ

سخته و اوره وورېدله، ځینی سپاهیان د یخ له لاسه و څورېدل او په دي باندي قادر نه وو چی پر مخ ولاړشي.

امان الله په نوي پایتخت کی خپل زوړ ملګري، غلام صدیق، بیاد بهرنیو چارو وزیر مقرر کړ چی برتانویانو هغه یی خپل « بونه پخلا کېدونکی دښمن په افغانستان کی ګڼلی و ، او د غلام صدیق لومړي وظیفه اوه چی مختلفو ملیتونو ته اعلان وکړي چی امان الله چی له پاچاهی څخه لاس اخیستی و، بیرته د افغانستان پاچاشوي دي.

همفریز وویل، «زما مشوره داده چی خبرتیا دي خپره نه شی.»

عنایت الله د جنوري د ٣٢ نیتی په ماښام کندهار ته ورسید ، بله ورځ امان الله د خلکو دیوي عمومی غوندي اعلان یی وکړ. هغه وویل ، که د کندهار خلک په ربښتیا سره پر ما ولاړوي، نو دوي دي په قران باندي د خپلی وفا داري ژمنه وکړي. هغه پوښتنه وکړه چی ما د پاچا په توګه غواړي که عنایت الله که تاسو مانه غواړي نو ربښتیا خبره راته وکړي چی زه هرات مزار شریف او میمنی ته د مرستی په خاطر لاړشم، که په د غوځایونو کی هم له ماسره چا مرسته ونه کړه، نوزه به مکی ته لاړشم او خپلی پاته ورځی به د یو درویش په بڼه تیري کړم، ځلوېښت شپی به شوګیرو کړم او ریاضت به وباسم.

هغه ډرامه، چی د کابل په باغ عمومی کی دهغه په خبرو کی نه لیدل کیدله، دلته زیاته وه، دا د کندهارد خلکو روحیه یی راوپاروله. هغوي دوباره په ژړاشول. عنایت الله له پاچاهی څخه منصرف شو. خلکو په جګ اواز سره وویل چی موږ بېرته له امان الله څخه بل څوک نه غواړو. عنایت الله چی په هغه ورځ له کابل څخه لاړ ، هغه د جمعی ورځ وه، او حتی په هغه وخت کی چی دي په پېښور کی تبعید و، د کندهار په جوماتونو کی خطبه دهغه په نوم ویل کیده. هغه هیڅکله ځان په داسی توګه نه واورېدلی. کله چی بیا جمعه راغله، خطبه د امان الله په نوم ولوستل شوه.

دختیځ سرحد په اوږدو کی هغه قبایلیان چی د نوامبر میاشت کی د د غوپیښو لړي یی د شورش په ذریعه پیل کړي و خپلو هغو اعمالو په اورید و سره هک پک پاته شول چی سرته یی رسولی وو، هغوي ته د سقاو دزوي د بریالیتوب په باره کی د اومړي ځل له پاره دهغو عسکرو له خوا وویل شو چی کابل ته استول شوي وو، چی د امان الله له پاره وجنګیږي. هغه فکر کړي وچی اوس په جلال اباد کی کراري ده او یو څه لښکر دي باید له دي ځایه څخه وخوځول شي.

دسقاو د زوي بريالي نفر له دغو خلکو څخه وسلې واخيستلې او هغوي يې بيرته د مشرقي په لورو استول. وروسته څينې الوتکې چې د کابل له ټولو برخو سره د سقاو زوي په اختيار کې لويدلي وې، د جلال آباد پر فضا باندې الوتنې وکړې او ځينې اعلامې يې وشيندلې چې په کې په داسې حال کې چې د امان الله د له منځه وړلو په خاطر ورڅخه ستاينه شوې وه، داسې ليکل شوي وو، «زما د ختيځ ولايت گرانو ورونو!

هغه قوانين چې د امان الله په واسطه (هغه يو مغرور او دخداي (ج) په باره کې يو بې پروا سړی و، منځ ته راوړل شوي وو، لغوه شوي دي او دهغه پر ځای د حضرت محمد (ص) شريعت نافذ دی.

د سقاو زوي ختيځو قبايليانو ته وويل، «تاسو بايد مضرو عناصرو خبرو ته غوږ ونه نيسی، بلکې په خپله تاسو بايد پر يوې موضوع باندې فکر وکړئ، او خپل ماغزه په کاروا چوئ. د يوه مدعي خبر په عمومي توگه غلطي وي. تاسو بايد د دښمنانو پر بې اساسو خبرو خپل فکر خراب نه کړئ. ستاسو زياتره مخور کسان زما ليدو ته راغلي دي. ستاسو له پاره هم لاره خلاصه ده که وغواړئ له ماسره خبرې باليدنه کتنه وکړئ. زه به يو خوش طبع او متدين قوماندان د برژر تاسو ته واستوم.»

دغسي لا د اد گيرنې د شينوارو، خوگيانيو، مومندو او د نورو هغو قبايلو خطرناک مصيبت له منځه وي نه وړل چې د افغانستان په ختيځه سيمه کې گډو ډي منځ ته راوړي وه. هغوي ډير يوه کسان په دې باندې پوهيدل چې دسقاوي زوي د يرغل او د دوي د شورش په منځ کې اړيکې موجود وو. دهغې مياشتې د لومړيو وختو مکتوب چې په کې د يو «متقي سړي» وعهد شوي وه، چې د امير په توگه به وټاکل شي، هم حتي د سقاو د زوي په اصلي نوم، حبيب الله ليکل شوي و، چې په هغه کې دا نوم په عمومي توگه خلکو ته معرفي نه و.

مگر د راتلونکې نوي نظام په انتظار کې چې دهغه چاله خوا منځه راته چې دوي غوښتل هغه له منځه يوسي، هغوي د عنعنې له مخې دهغه امير په باب فکر کاوه چې ددوي په فکرو کوري او د سوابقوله مخې مستحق گڼل کيدل: د شوربازار له حضرتانو څخه يوتن او يا نارد. دغه ساده قبايليان په دې باندې بيخي پوه نه شول چې هغه قواوي چې دوي له قيده خلاصې :وي وي ممکن د دوي له قبضې څخه ووځي.

برتانویانو په پېښور کې داسې راپورور کړ، «عمومي نتیجه ګیري داسې ده. چې کله چې امان الله ته داسې نسبت ورکړ شو اسلام ته یې خطر متوجه کړی دی، نو د سقاو د زوی بریالیتوب هم پښتنو ته سپکاوېدي. » دا خبره ژر څرګنده شوه چې د سقاو زوي په قوم تاجک دی او د کابل د شمالي سیمې له داسې پوتېر څخه دي چې د عنعنې له مخې داسې یو تیر ته هیڅ حق نه ورکول کېږي چې د افغانستان داسې یو مهم نفرو ګرځي. سره له دې چې ډېر قبایلیان په لیک لوست نه پوهېدل او ځینې یې ثوازي دومره پوهېدل چې کاروان لوټ کړي، مګر بیاهم داسې یو امیریې غوښتلو چې په دې مناسبتونو په خپله له دوي څخه ښه وي.

نو د ځوروول شوي سرحد د دوارو خواو په اوردو کې د امان الله په خاطر د همدردي احساس راپورته شو. ځینې د انساني همدردي له مخې وو او ځینې یې د داسې یو احساس له مخې چې امان الله د دې اوسنی نفر څخه چې د دوي امیر شوی و، ښه و.

برتانویانو په پای کې وویل: «نو که څه هم د (سقازوي) په کابل کې قدرت ترلاسه کړی دی، هغه یوازې د کوهستان تګاب او د کابل د ملایانو له حمایې څخه برخوردار دی. زمور خپل د سرحدي سیمې قبایل، جلال آباد او خوست، غزنی او کندهار ټول د هغه په خلاف دي... د ټیټې طبقې خلک د سقاو له زوي څخه متنفره دي او غواړي چې د شاهد کورنی کوم نفر چې د ټینګې عقیدې خاوندوي بیا منځ ته راشي. » ځوورځی د مخه داسې یو راپور وجود درلود:

«داسې شواهد مخ په زیاتید ودي چې غلزیان له موجوده وضعې څخه بهره برداري کوي. داسې راپورهم ورکړای شوي دي چې غلزي او شیواري سره موافقه کړې ده چې نادر د افغانستان پاچاهې ته کاندید کړي. »

عجب خان اپریدي چې میرمن ایلسې یې وژلې وه اومول ایلسې یې تښتولې وه د سرحد په اوږدو کې د یو اولس قهرمان په توګه پېژندل شوی و. خلکو داهیره کړې وه چې هغه یوه تورسوي تښتولې وه او یوازې داخبره یې یاد وله چې هغه د لویې برتانیې د امپراتورې د کافرو په مقابل کې دریدلی و، اودا چې امان الله د عجب خان د تبعید په واسطه د کافرو له قضیې سره مرسته کړې ده .او د عجب خان په باره کې آوازې پیل شوې. یوبه ویل چې عجب خان د سقاوزوي یې وژلی دی بل به ویل چې د سقاو زوي عجب خان و چې خپله بڼه یې بدله کړې وه.

برتانویانو، چې پوهېدل په ټولو د غوکلونو کې عجب خان د امان الله د ښه نیت له مخې له هغوي څخه په ترکستان کې لیرې ساتل شوی و، په ویره کې وو چې عجب خان به په ربښتیا سره ژوندي وي او پیدا به شي چې دوي ته تکلیف ورکړي.

دهنده لاهور او پېښور په ښارونو کې هغه مسلمانان چې د امان الله موضوع سره همدردي درلوده تصمیم ونیولو چې دهغه کورنۍ حمایه کړي.

موسی خان، د امان الله وفادار حامي خلک یې سره راټولول چې د کابل په لور مارش وکړي، او ځینې کسان چې ورسره شول د برتانیې د سیمې مسود وو چې په سرحدي سیمو کې اوسېدل، هغوی له بدبختۍ سره مخامخ شول، او بېخي کابل ته ونه رسیدل.

په عین وخت کې د اتو زرو اوښانو کاروان، چې دوسله والو شینوار له خوا بدرګه کېده، برتانوي سرحد ته درسیدو په حال کې و، د پنځه ویشتو سوو اوښانو یوبل کاروان لنډي کوتل ته و اوښت چې زرتنه شینوارو د دوي بدرګه کوله او دغو شینوارو ته کرچیانو د اوښ پر سرباندي نه روپۍ فیس ورکاوه. یاغیتوب ګټورو. د نورو خواو پر لارو سفر کول دومره په استانۍ سره ګټور نه تمامیده پریو کاروان باندي چې له او و افغانانی له ریو څخه متشکل و اوله پېښور څخه د جلال آباد په لوړ روان و، حمله وشوه، چې دوي لاري چې د حکومت قوا و له پاره یې تیل بار کړي وو، د اورپه لمبو کې وسوځیدي. او پاته پنځه لاري یې تیري شوي. په یوه لاري کې سل زره روپۍ باروې چې جلال آباد ته یې وړلی، دا د سرک له لاري د پیسو د استولو وروستۍ پړاوو، ځکه چې عنایت الله دخپل لنډتم کېدو په وخت کې دهغه ځای د تجارت نمایندګۍ ته لاربښوونه کړي وه، چې نور دي دحکومت پیسې جلال آباد ته ونه لیږي، بلکې کندهار ته دي ولیږي.

علي احمد تر اوسه پوري په جلال آباد کې وه چې هلته له قبایلي خلکو سره د فکري توافق په علاوه، دحکومت له پیسو څخه هم ورسره مرسته کوله چې خپله اداره او تسلط په هغه ځای کې ټینګ وساتي. هغه په نږدې وختو کې جګدلک ته نژدې د غلزیانو یوه حمله یې په شاتمبولې وه.

علي احمد د کابل د پیسو قبیلوي خطري حالت له پاره د حل یوه لاره درلوده. هغه مدام غوښتل چې امیر وي.

د ټولو هغو غوښتنو سره سره چې شورشیانو کولی، په خزانه کې لاهم یو څه اندازه پیسې وې. وروسته به دا تور لګول کېده چې د امان الله پیسې خلاصې شوي وې او همدا شی دهغه د زوال مد وګرځید. سره له دې چې پولي بحران موجود و، بر تانویانو، چې موضوع یې مطالعه کړې وه، څرګنده کړې وچې هغه په مالي لحاظ په کافي اندازه حمایه کېدله. عنایت الله ته

اجازه ورکړې شوې وه چې د تنګ په وخت کې درې سوه زره روپۍ له ځانه سره واخلي خو بیاهم بوه زیاته اندازه پیسې پاته وې.

سره له دې دسقاو زوی، چې د برو پیسو ته متوجه وچې حتی دده له غلا شوو پیسو څخه زیاتې وې، نه یوازې ددې په خاطر تر تعرض لاندې و، چې دامان الله نوم او دهغه ښځو پر سکوباندې وهل شوې وو، بلکې ددې په خاطر هم تر تعرض لاندې وچې له لمریز سیستم څخه کار اخیستل چې د ملایانو په فکر د مذهب په خلاف و. هغه د خپلې سکې امرپه صادر کړ چې د ۱۳۰۷ کال د کلیز په عوض د ۱۳۴۷ قمري کال سیستم منځ ته راغی. (داکال د حضرت محمد (ص) د هجرت کال و.) هغه د نوټونو کوټه کشف کړه چې که امان الله برحال پاته وای نو دا به په افغانستان کې لومړنی نوټونه وای چې په چلند کې به اچول کیدل، دسقاو زوی دهغه په لیدو سره هک پک شو، دا واضحاً پیسې نه وې، او هغه امان الله یې ملامت کړ چې غوښتل یې دافغانستان خلک وغولوي.

دسقاو زوی په وروستی اقدام لاس پورې کړچې معلومیده، چې له هر عمل سره موافق و: هغه دعسکرو په معاش کې زیاتوالی اعلان کړ. همدا راز هغه دځمکو پو شمیر باقیداری او مالیه یې وبخښله او د امان الله مالیې نوې ډول یې له منځه یوړ.

هغه اعلام وکړ: «تعلیمی ښوونځی دې چې د خلکو پیسې ورباندې ضایعې کیږي او هیڅ ګټه ورڅخه نه اخیستل کیږي، ودې تړل شي.»

ددې له پاره چې په دې موضوع باندې تاکید شوې وي، هغه د ټولو هغو کتابونو دلیلا مولو حکم وکړ چې امان الله دخپلو ښوونځیو له پاره ورڅخه امبارجوړ کړی و. هغو کسانو چې داکتابونه یې رانیول زیاتره یې هغه کسان ووچې داکتابونه یې لوستل.

حتی دغې دولتی بنیادي اقدام او عملونه دسقاو د زوی له صلاحیت څخه لیرې وو، هغه ته دیو شمیر وزیرانو له خوا چې د تعلیم یافته ګانو او دهغه د پخوانی غلو ملګرو څخه متشکل وو، مشوره ورکول کیده، دحربیې وزیر دده له د برو نژدې ملګرو څخه و، چې په کلونو سره شریک ژوند کاوه او د سقاو زوی اعلان کړې وي چې زما او دده ژوند سره مساوي دي. سید حسین چې څو کاله کشرو د چاریکارود یو شتمن سړي زوی و. هغه دخپل پلار په مړینې کې هغه پیسې په خوښې سره ولګولې چې په میراث پاته وې او بیایې د یاغیتی مسلک ځان ته غوره کړ. هغه په داسې حال کې چې یو ظالم او بې رحمه سړی و، له هغو ښیګنو څخه یو هم په کې نه لیدل کیده چې د سقاو په زوی کې لیدل کیده.

همفریز داسی راپور ورکړ، «سید حسین چی نه یې شوکولی خپل پخوانی شغل پریږدي له گمرگ څخه هره ورځ پیسی پیلولي او چاریکار ته یې خپل کورته استولی.»

بل پخوانی غل او لاري وهونکی د سقاو د زوي د جنرال مرستیال شو او دهغه کشر ورور، حمید الله ته د سردار مالی لقب ورکړ شو چی د مخه نادریا د محمود طرزي غوندي مخو روکسانو ته ورکول کیده. د کابل والی، د سقاو د زوي پخوانی کارفرما، ملک محسن و، چی یو مخور او د احترام وړسړي و او دده له ظالمانه اعمالو څخه څرگندیده چی دي هم په قفاکی مدام یو یاندیت و.

په دوي پوري ځینی نورکسان مربوط وو چی تعلیم یافته وو او په دولتی چارو کی یو څه پوهیدل لکه شیرجان او دهغه ورور عطاالحق، چی د بهرنیو چارو وزیرو. دهغه د خزانی د چارو مسئولیت د هغسی یو سړي په غاړه وچی په مالی چاروباندي هیڅ خبرنه و.

همفریز د جنوري په شملم تاریخ داسی لیکلی و، «په زرگونو تنو ته چی له اطراف څخه کابل ته راغلی وو چی د سقاو زوي له پاره خدمت وکړي، امرو شو چی بیرته خپلو کورونو ته لاړشي او خپله وسله دي په ارگ کی پریږدي. د توپکونو تحویلول د دي په لحاظ ضرور دي چی ممکن په کوم وخت کی بیا ورڅخه کارواخستیل شی.»

«په اوس وخت کی بازار ونه له خلکو څخه ډک دي او کوچنیو ډلوته دا زمینه برابره ده، چی خپل پخوانی دښمنان ووژنی او له هغو کسانو سره چی دښمنی لري د هغوي کورونه چور کړي. داسی ویل کیږي چی د پخوانی کابینی دوه تنه وزیران د ځمکی لاندي د اوبو په تونلونو کی پټ شوي وو.

څو ورځی وروسته هغه داسی لیکلی و: «د دوو تنو جرمنیانو کورونه، چی د پخوانی حکومت له خوا استخدام شوي وو او څومیله له ښار څخه لیري ووه پاک لوټ شوي دي. همدا راز د (برسر اقتدار د محمد زایی کورنی) کورونه هم لوټ شوي دي.

«د بهرنیو چارو د وزارت د سکرتر مرستیال ته، تیره شپه یوازي یو پر توگ پري ایښی و.»

بیاهم بی کنترولهو دهٔ کوونکی یاغیتوب، چی خلک دهغه په ویره کی وو، پر مختگ ونه کړ، همفریز راپورورکړ چی، «ما د کابل د ښار له مشهورو هندیانو څخه پوښتنه کړي د هغوي په تاکید سره وایی چی د سقاو زوي نفرد برتانوي هند له اتباعو سره د اخلاقی موازینو له

مخې سلوک کړي او د هغوي حقوقو ته احترام کوي... د هند یانو کورونه لېغلاکیدل او هغه هم په داسې صورت کې چې پر دغو کورونو باندې د افغانانو د کورونو گومان کیده او بیا به ورته پوره تاوان ورکول کیده... هغه نظم چې د سقاو زوي د تقرروله خوا په ښارکې تراجرالاندې نیولی دي تراوسه پورې د یادونې وړ دی. »

داخلي امنیت په دې خاطر په بیړې سره تامین کیده چې د سقاوزوي بهرنې خطرونو ته متوجه شي: علي احمد په جلال آباد کې او شینواري چې غوښتل یې په خپله وړباندې حمله وکړي، هغه ته خطرو نه وو، هغه ړ د ډله ملایان یې دهیواد ختیځې برخې ته واستول چې له شینوارو سره خبرې وکړي، او کابل ته دهند... راتګ محکوم کړي. دهغه بهترین ساتندوي ډېره شدیده یخه هوا شوه چې... هم ورسره یوځای و او پر کابل باندې د هر ډول حملې امکانات یې...

همفریز تلګرام وکړ، « دلته سخته اوازه ده... له لارې پر کابل باندې یرغل کوي. زما ځینې همکاران... ته تش داسې یو پروپاګند ښکاري چې دسقاود زوي متزلزل...

« نن د سید حسین وړوکې زوي دکابل په سیند کې چې عمو... پرځینو کسانو باندې ډزې وکړې چې په نتیجه کې خلک وارخطا شول او چغې یې وکړې چې (شینوارو پر موږ باندې حمله وکړه!) او یو بل یې ترپښو لاندې چیت پیت کړل. »

دجنوري په ۲۹ تاریخ سر اوستین چمبرلین په پارلمان کې دافغانستان په مورد کې د برتانیې پر پالیسي باندې رسمي خبرې وکړې او هغې پوښتنې ته یې ځواب ورکړ چې ده فکر کاوه ورڅخه پوښتنه کیږي. ده د خپلې بیانیې په الفاظو کې له زیات دقت څخه کاراخیست. د هند دبهرنیوچارو سکرتره و سکونټ پیل (Viscount peel) نه غوښتل چې امان الله ته کوم خاص نسبت ورکړ شي یا « هر هغه شي چې دافغانستان دراتلونکې مرکز حکومت په خاصیت پورې مربوط وي، هغه خاصیت او هلې ځلې چې موږ په موجوده وخت کې پر هغه باندې نظر نه شو ورکولی. »

کله چې چمبرلین پورته شو چې خبرې وکړي، هغه په خپل لاس کې په غلطۍ سره ددې خبرو شکیدلی یاد داشت درلود. کوم شي چې ده وویل او کوم شي چې تېولو ترېوالوته راپورورکړ شو، داسې و:

« داعلیحضرت حکومت نه غواړي له هغو ډلو سره د مرستې کولو اوحمایه کولو له مخې، چې غواړي په هغه هیواد کې اقتدار تر لاسه کړي، په موجوده وخت کې د افغانستان په داخلي

چارو کی مداخله وکړي. دوي په ټینګه سره علاقه مند دي چی په افغانستان کی یو مرکزي حکومت منځ ته راوړي، نو کله چی داسی یو حکومت تشکیل شونو له هغوي سره به زموږ دوستی مرستی پیل شی او هغوي به له دې مرستو څخه دخپل هیواد په ودانولو کی استفاده وکړي. امان الله پاچاد علیا حضرتی حکومت یی له پاچاهی څخه د لاس اخیستلو په باب رسماً خبر کړي دي او په نتیجه کی ترڅو پوري چی معلوم نه شی چی له پاچاهی څخه دهغه له لاس اخیستو سره سره بیاهم هغه د افغانستان د خلکو له خوا په عمومی توګه د پاچا په توګه اعلان شوي دي، د انګلستان حکومت به په دې قادر نه وي چی دهغه حکومت د افغانستان د قانونی حکومت په توګه وپیژنی.

د تصویب شوو خبرو کی تش داسی ویل شوي وو. «دا یوازې د افغانستان د خلکو کار دي چی معلوم کړي څوک دي د افغانستان پاچاشی او د علیا حضرتی حکومت دهغوي د پریکړي په انتظار کی دي. » چمبرلین له پیل (peel) څخه معذرت وغوښت او ور څخه یی هیله وکړه چی له وایسرا څخه دي معذرت وغواړي او ورروسته هغوي ټولو هڅه وکړه له هغه شی څخه ډیره استفاده وکړي چی پیښه شوي وه.

هغوي هیله ځرګنده کړه چی روسیه به دغه مطلب ولولی. په اخبارونوکی داسی تحریک امیزه مطالب د افهام او تفهیم یوازنی شکل و، چی د برتانیی امپراتوري ته له وخت راهیسی میسرو چی په ۱۹۲۷ کال کی له روسی سره سیاسی اړیکی شکولی وو. دلندن په یو یادداشت کی داسی لیکل شوي وو، «په دیپلوماتیکی لحاظ ددي امکان موجود دي چی روسیی ته دي خبر داري ورنه کړي شی چی مداخله دي وه کړي. په خپله د برتانیی دریځ نامعلوم دي. » نو برتانیی په ډاګه سره خپله یی طرفی اعلان کړه.

وایسرا لارد ارون (Lord Irwin) پیل (Peel) ته داسی ولیکل، «که موږ د روسیی پرتلګرامونو باندی، چی د هغو مخنیوي موکاوه، عقیده وکړو نو دا د ډاډ و ړخبره ده چی وینو چی د مسکومقامات، لکه زموږ په شان غواړي چی دانتظار ایستلولو به په صحنه کی ولوبوي او د ګډوډي مخنیوي وکړي. په حقیقت کی که دامان الله د بیا منځ ته راتلو امکانات لکه څنګه چی همفریز فکر کوي، ډیر لیږوي، نو په اوس وخت کی ددي پوهیدل اسان نه دي چی روسیی ته به څه ګټه متصوره وي چی دهغی په خاطر مداخله کوي ترڅو پورې چی د یو زیات مهم شی نوم ځرګند نه کړي. »

پر عربي لارنس باندې په هره ژبه په اخبارونو کې بحث صورت نیوه، او د ډېرو خلکو په فکر هغه په همغه بڼه چې په عربستان کې گرځیده په غزني افغانستان کې هم گرځیده چې پاچاهان له منځه یوسي او منځ ته راوړي.

په پای کې دجنوري په ۸ تاریخ لارنس له میرانشا څخه په داسې چټکې سره بې ځایه کړی شو چې دهغه گراماقون چې دجورج برنارد شاو له خوا ورته تحفه ورکړي شوې و، ورڅخه پاته شو. د جنوري په نهم تاریخ همفریز تلگرام وکړ او په عصبانیت سره یې وویل چې لارنس چیرې دي او په څواب کې ورته وویل شو چې هغه بوه ورځ د مخه له سرحد څخه تللی دي. لارنس اول لاهور بیا بمبی ته وړل شوی وه چې انگلستان ته لاړ شي چې دهغه خپل انتخاب و.

اخبارونو په طبیعي توگه داسې پوښتنه وکړه، «که د لارنس موجودیت په هند کې کومه گټه نه درلوده، نو د هغه د بیرته ستنید و په باره کې دغه ټول اسرار څه معنی لري؟»

ددې آوازې نتیجه دا شوه چې هغه نفر چې بالاخره د بیړي په ذریعه په لیموت (Playmouth) ته ورسید لارنس نه بلکې دهغه مې نوټ و او حقیقي لارنس لا په افغانستان کې وظیفه اجرا کرله.

لارنس د یو رسمي فرمان په اساس په لندن کې په خپل آپارتمان کې گوښه ژوند کاوه، وروسته یې هغه فرمان مات کړ او دعوامو مجلس ته لاړ او هلته د انتظار په خونه کې ځان ارنست ترتل (Earnest Thurtle) ته معرف کړ او هغه داسې یو غړي و، چې وارخطا کوونکې پوښتنې یې کولې. بیا هم هغه سوال چې لارنس یې وارخطا کړ، دهغه غلط نوم سوال وچې داغلط نوم، شاو چې وروسته قانوني گرځول شوي و، هغه د لارنس د زیږیدنې په باره کې حساس و، چې غیر قانوني ر، لارنس، ترتل ته د منټ (Mint) نسخه وښودله چې میرانشا ته دهغه د تبدیلی د مخه لیکل شوي وچې وښیې هغه جاسوس نه کوله او ددې اثر په لیکلو دیر مصروف و، ترتل داسې ومانه. هغه د لارنس دوست شو او همدغه ډیر مشهور لیکونه وروسته رسیدل. لیکن ځینې نور انگلستان تردې حده ناراضه وو چې د لارنس نقش ته او رورته کول. (۲)

همفریز اوس بوازې بیرندوکې دلچسپي درلوده چې دلارنس په مورد کې افواهات رد کړي هغه علاقه مند وچې بهرنیان له کابل څخه وباسي. که څه هم دهغه کارمندان کم شوي وو او ځینې تکړه کسان یې پاته وو چې وروسته به ابستل کیدل، خو هغه دهغو هندیانو مسئولیت

هم په غاړه درلود چې په کابل کې وو او د برتانیې له اتباعو څخه وو ، هغه همدا راز تعهد: یې کړې وچې له نورو نماینده ګیو څخه به هم د نورو هیوادو اتباع له کابل څخه وباسي. ددې امکان موجود وچې د سقاو د زوی بې اعتباره قوه به یوه ورځ په ناڅاپي توګه له منځه لاړه شي او داسې یوه ګډوډي به جوړه شي چې په کې ټول هغه غیر افغاني کسان پرېنا به شي چې ګواکې دوی د متدینو خلکو پر ضد له امان الله سره په عمل کې لاس درلود .

عطا الحق په حکومتي چارو بلد و او پوهیده چې د سقاو زوي له شان سره دا مناسب دي چې بهرنیان دي په کابل کې وساتل شي او په دې باندې پوه و چې دهغوي ډله بیزوتل به خلکو ته داسې انتباه ورکړي چې ګوندي پاچا د ټیټې مفکوري لرونکی دي. ددې په څنګ کې عطا الحق د دغو ناپوهو کسانو په جمله کې چې یوازې د داړه ماري خواته روان وو ، ځینې ماهرو کسانو ته ضرورت احساسا وه. له دې جملې څخه ډېر کسان، چې ځینې هندیان هم په کې شامل وو ، قراردادونه یې لاسلیک کړي وو چې ددې قراردادونو له مخې هغه هڅه کوله دوي وساتي.

د عطا الحق په لاس کې قوي وسله وه. برتانویانو په یوه اوونۍ کې څو واري یوه الوتکه ب ، افغانستان ته استوله چې کابل ته د هرچا له پاره لیکونه راوړل او بابې وړل او هم یې بهرنیان هند ته انتقالول. دې الوتکو د عطا الحق په اجازې سره الوتنې کولې. کله چې هغه پر همفریز باندې احتجاج وکړ چې د هند په اخبارونو کې پر هغو باندیګانو باندې تبصرې کیږي چې اوس د هیواد په لوید یزه برخه کې حکمروایي کوي ، نویې په یونزاکت سر؛ ورته وویل چې الوتکې دې نور تګ راتګ بند کړي.

هغه دوباره تهدید ونه کړ لیکن د تهدید امکان موجود وکله چې دهند له لارې د پوستې په مورد کې سوال مطرح شو. دجنوري په لسم تاریخ د لندن افغاني نماینده ګۍ کابل ته واستوله چې په هغه وخت کې په افغانستان کې یوازني حکومت و ، په هغه وخت کې چې د پوستې کڅوړه پیښور ته ورسیدله، په هغه ځاي کې دوه حکومتوو وجود درلود ، نو شجاع الدوله، دلندن مختار وزیر ، غوښتنه وکړه چې دبهرنیو چارو دفتر ي باید داپوسته نیغه هغه چاته واستوي چې ورته استول شوي ده ، یعنې امان الله ته دې واستوي چې په کندهار کې دي.

عطا الحق په کابل کې همفریز ته وویل چې ټولې رسمي پوستې دي باید کابل ته دبرتانیې د هوایي پوستې په ذریعه واستولې شي.

د پوستې کڅوړه څوورځې په پیښور کې پاتې شوه حال دا چې دلندن او دهلي په لوړو مقاماتو کې یوې فیصلې باندې غور وشو چې د پوستې په مورد کې څه وکړي. په عین وخت

کی هغه کځوړه له يوي بلی کځوړي سره يو ځای شود چی له پاريس څخه په همدي موضوع کی د افغانی وزير مختار له خوا استول شوي و...

همفريز داسی تلګرام وکړ: «دا يوه مشکله قضيه ده. امان الله چی له پاچاهی څخه لاس اخيستی دی او خپله کابينه يی د مشکل په حال کی پري ايښی ده، نو دا به صحيح نه وي چی رسمی پستی دي ورته له کابل څخه کندهار ته واستولی شی... د حل شه لاره به يی داسی وي چی دواړه پستی دي چی شخصی او رسمی پستی دي د هغه ځای د پستی امريت ته واستولی چی اصلاً په هغه ادرس استولی شوي هم دي.»

د لندن هندي اداري داسی اعتراض وکړ: «ليکن دا موږ ته د بی طوفانو په شان غير ممکن پر بريښی چی د يوي پيژندل شوي اداري يا مقام پستی بل چاته ور تسليم کړو. په دي طريقی سره زموږ له پاره دانا شونی ده چی د هغو افغانی رسمی مقاماتو په کارونو کی مداخله وکړو چی په بهر کی دي، او وفا داري هم لري. موږد بی طرفی له نقطه نظره پرته له دي چی د شجاع الدوله غوښتنی ته غاړه کيښيږد و بل ډول اختيار نه لرو.»

په همدي وخت کی يو نفر په پيښور کی دا کځوړه يی له نژدي څخه معاينه کړه او ويی ليدل چی، که څه هم په انګليس باندي يوازي ليکل شوي و، د کابل د بهرنيو چارو دفتر، خو د غلام صديق نوم هم ورباندي په دري ليکل شوي و.

همفريز داسی تلګرام وکړ: «زه باور لرم د هند حکومت به له دي حقيقت څخه سترګی پټی نه کړي چی که موږد عطأ الحق دوه واري تکرار شوي غوښتنی رد کړو. نو هغه به پستی علاقه له لاسه ورکړي او داسی يو خطر به منځ ته راشی چی موږ به هم په کابل کی دالوتکی د راکوزيد و اود پستی د ترلاسه کولو امتيازات له لاسه ورکړو. دغو او ځينی نورو موضوعاتو چی د کابل پر نماينده ګي باندي اغيزي کړي دي، د کابل د بهرنی دفتر د هغه وخت په بر سر اقتداره امر پوري ارتباط نيسی. او تر هغه پوري چی موږ دلته يو، تر يوي اندازي پوري به مجبور يو د هغه په طبع رفتار وکړو. د کابل د بهرنيو چارو له اداري سره د غلام صديق اړيکی په څرګند ډول د تل له پاره شکيدلي دي. زه هيله کوم څوچی دا مهمه موضوع حل شوي نه وي، دي نماينده ګی يا نورو نماينده ګيو ته د سياسی پستی هيڅ يوه ګځوړه ونه ليږل شی. که په کابل کی هيڅا سياسی پسته تر لاسه نه کړه، دا به د کابل حکومت د تورونو په کمولو کی مرسته وکړي.»

په لندن کی وضعه اريا نوونکی وه. «هيڅ شواهد وجود نه لري چی عطأ الحق به پوه شی

چې هغه کڅوره چې د کابل د بهرنیو چارو د دفتر په نوم پیښور ته را رسیدلې وه، وروسته کندهار ته استول شوې ده، لیک دادې باید په فکر کې ونیول شي چې هغه په پیښور او ځینو نورو ځایونو کې چې دغسې کڅوړې ساتلې کیږي. مخبران لري.»

په دهلي کې وایسرا، چې په ویره کې و، یو شخصي تلگرام یې په دې ډول واستاوه: «سرې فکر کوو ددې کڅوړو ډول او بلې خواته یې استول به یو ډول لاس وهنه وي، چې دا زموږ له هغې پالیسي سره برابر نه ده چې تر اوسه مو غوره کړې ده، او برسیره پر دې، زموږ د مناسبې لوبې له نظر یو څخه مخالفه ده. که چیرې نادر هڅه وکړي په کومې طریقې سره له کندهار سره اړیکې پیدا کړي. لکه څنگه چې اوس لږ غوندې یقیني ښکاري، نو دا به لا بهتره وي چې پرې نه ښود ل شي دا کڅوړې د سقاو د زوي لاس ته ولویږي.»

لیکن همفریز له کابل څخه خپل تینگار ته داسې دوام ورکړ: «که موږ د کابل پستې کڅوړې ځمکې له لارې کندهار ته راجمع کړو، چې عطأ الحق وربانديې پوه نه شي، که هر څومره مناسب او صحیح هم وي، موږ به دهغه په مقابل کې جرم او گنا کړې وي او خپلو الوتکو د شمیر قطع کولو خطر زیات کړو. د کابل موجوده حکومت د الوتکو په باره کې ډیر سخاوت مندانه برېښي او په دې مقایسه ممکن د امان الله حکومت دومره سخاوت مندانه نه معلومیده. د ټولو افغانانو نظریه بدله شوې ده، هغوې د زیات شمیر الوتکو راتلل په خپله خاوره کې یو ډول تهاجم گڼي.

ټول انگلستان چې علاقه مند وو، له هغه شي څخه کرکه وکړه چې وروسته یې تصمیم نیولی وو هغه وکړي. هندي دفتر د بهرنیو چارو د دفتر په موافقه داسې تلگرام وکړ: «د نماینده گی حفاظت هغه اعتراض چې ممکن په نورمال ډول وشي، باید په کلکه سره له منځه یوسي.»

هغه پسته چې هڅه کیدله امان الله ته ورسیږي، دسقاو د زوي حکومت ته واستوله شوه.

د انتقالاتو گټه چې ډیر گران تمام شو، د ټولو له خوا هغسې چې باید شوې واي استقبال نه شو. په هغه ورځ چې عنایت الله له کابل څخه لاړ، لندن خپلو ټولو سفیرانو ته په هغو هیوادونو کې تلگرام کړي و، چې په کابل کې یې نماینده گی درلودلی، او ورته یې پیشنهاد کړي وچې د کابل د ټولو نماینده گیو غړي دې کولی شي د برتانیې د الوتکو په ذریعه له کابل څخه ووځي. همفریز د جنوري په ٢٤، نیټه باندې داسې راپورورکړي و، «زما ایتالوي همکار راته وایي چې حکمت بای (د ترکیې سفیر) پرون ورته ویلي وچې زه په دې پوهیږم چې د اسیا د تسلط په

خاطر د روس او انګلستان ترمنځ د جګ لومړي شرط په افغانستان کې ګډوډي ده. نو په دې توګه دا به د ترکیې دحکومت له پاره یو مجبوریت وي چې خپله نماینده ګي په کابل کې د دې په خاطر وساتي چې دغه دهومري په شان د مبارزې په باره کې لومړي درجه معلومات تر لاسه کړي. هغه په قطعي توګه ګومان نه کاوه چې دبرتانیې نماینده ګې به په کوم وخت کې له کابل څخه لاړه شي. » د فبرورۍ په شاوخوا کې همفریز داسې لیکلي و، «که زه لاړ شم، نوزما جرمني، ایتالوي او فرانسوي همکاران هم غواړي چې لاړ شي مګر هغوی د خپل ولس په خاطر بند پاته دي. پارسیان د خپل حکومت له خوا کوم امر ته دي تر لاسه کړي نو د پاته کېدو له شرطونو څخه په ویره کې دي. ترک کاظم پاچا له ډلې سره د دوهم نړیوال جنګ په انتظار کې دي. »

ځلور ورځې وروسته هغه داسې تلګرام وکړ «زما درې تنه اروپایي همکاران په دې فکر کې دي چې خپل زیات نفرله کالو سره دځمکې له لارې ولیږي، او په سر کې دایې غوره وګڼله چې دخپل حکومت د غلط فهمۍ یادداشتونو ته متوجه شي... چې ورڅخه استنباط کېده چې زه به ورته تر پېښوره پورې د لاریو کاروان برابر کړم. ماورته تشریح کړې ده چې دا یوه غولوتکې او خیالي نظریه ده.

«همدا راز ماورته څرګنده کړې ده چې په هغه وخت کې به دا یو جرمني سوداګر، فرانسوي پروفیسور یا ایتالوي انجنیر له پاره ممکن وي چې د هندوکش دغرونو په سمڅو کې په میاشتو میاشتو ځانونه تر هغه وخته پورې پټ کړي هغه توفان ختم شي، چې دهغه توقع کېدله، نو دا به لومړي درجې قدرت له پاره په مشکل سره درنه لاره وي. »

عطأ الحق تر اوسه پورې خبرنه و چې برتانیې تصمیم نیولی وچې خپلې نماینده ګي په کابل کې په بشپړه توګه وتړي. همفریز چې پوهیده هغه به احتجاج وکړي، پلان درلود چې په وروسته شیبه کې ورته ووایي. اروپایي هیوادونو چې په کابل کې نماینده ګي درلودې، د راز محرم وو، مګر برتانیې وپتیله چې دا به ډېرلوی خطروي چې پارس او ترکیې. دوو مسلمانو هیواد و نو ته وویل شي. دغو هیوادونو تصمیم درلود چې هر څه چې کېږي دوی به پاته شي.

په ټولو دغو وختونو کې همفریز د خپلو ارزیابیو له مخې د افغانستان په مورد کې د برتانیې پالیسي یې اساس فکر کاوه چې په ډېر شوق سره په دهلي او لندن کې لوستل کېده او فکر کېده چې د « پر موقف باندې ولاړ ) سرې له خوا منځ ته راغلې ده.

اوس علي احمد امیر شوي. د جنوري په ۲۰ تاریخ دهغه پر سرباندي په چار باغ کی د پاچاهي پټکی کینبودل شو او د مشرقی ولایت زمامدار وټاکل شو. دادوه تنه ملایان وو او په مشرقی ولایت کی په اولس کی هغو مرد مهم کسان وولگه چی په کابل کی د شوربازار حضرتان وو.

یویی د چار باغ حضرت و. بل یی د بغداد ډیر زوړ نقیب و، دي په شهرت کی حتی د شور بازار له حضرتانو څخه هم زیات و، لیکن له سیاست څخه یی لاس اخیستی وه او مذهبی لاره یی غوره کړي وه.

اوس د بغداد نقیب علی احمد ته د نصیحت په واسطه خپل معنوي حاجت او په سیاست کی لاس نه وهونکی څرگند کړ. هغه علی احمد ته د نصیحت په ترڅ کی وویل، چی هغه دي باید په واقعی توگه ځان امیر ونه گنی بلکی د هغه امیرو کیل دي ځان وگنی چی وروسته ټاکل کیږي.

د علی احمد په شان پر ځان غره سړي باید پوه شوي واي چی هغه په عام ډول نه دي تایید شوي. په ټوله قبایلی سیمه، حتی د برتانیی د حکومت په دفترونو کی به خلکو ویل چی دي به دیو بس واکه امیر په توگه کفایت وکړي. بیاهم ځینو قبایلیانو به جرگی دایرولی او وبی پتیلی چی دي حتی د هغه له پاره هم مناسب نه دي، دلیل به یی مدام یو شی و: دهغه شخصیت. دهغه د شخصیت اساسی نقص داو، چی د حضرت محمد (ص) د اوامرو اطاعت به یی نه کاوه چی دشرابو په مورد کی وو او هغه یی منع گرځولی و.

دغه شخصیت تر دي حده پوري پوره پیژندل شوي و، چی د مخه تر دي چی پاچا شی، مجبور کړي شوي وچی پر قرآن باندي قسم وکړي چی نور به شراب نه څښی.

وروسته علی احمد له یو ویشتو لاریو او تیز رفتار موټرو نو سره چی د خوگیانو له خلکو څخه ډک وو، د جگدلک په لور لاړ او د یو امیر په توگه یی په اقداماتو پیل وکړ. د خوگیانو خلکو دده په مورد کی خوشبینه وو. په بله ورځ باندي هغه خپلواکی خوگیانو خلکو، حکومتی قواو او د ځینو غلزیو له پاره جرگه دایره کړه. ده د ټولو دغو خلکو له خوا د امیر په توگه ومنل شو، موزیک شاهی سلام وغږاوه، شاهی سور بیرغ چی د امیري په نوم یا دیده، د مرکزي اداري د پاسه، چی یوه زړه استراحتگاه وه اوچت شو.

یوه اوونی وروسته علی احمد د خپل اخبار په چاپولو پیل وکړ، چی ده په کی ځان دیو

«زرور او متدین سړي په توګه ستاېلو... هغه به ویل چې زما روښانه مفکوره مدام دهیواد دخلکو د پرمختګ په لاره کې په کار اچول شوي ده. »هغه یو نوی اعلامیه، چې له یو امیر څخه توقع کېږي، خپره کړه: د امان الله د قوانینو لغوه: د قران او شریعت ته احترام، هغو عسکرو ته د میاشتنی شل روپۍ ورکول چې د پچې خستلو په اساسي عکسري یې نه کوله. علي احمد دهډې صاحب په زیات کې دهغو نامتو ملایانو مذهبی مراسم جوړ کړ چې په دې وخت کې دشورشیانو مشران وو، او دجمعې په ورځ یې د جلال آباد په جومات کې د امیر علی احمد په نوم خطبه ووایدله. هغه دضدو قوا وپه مقابل کې خپله تواضع ښکاره کوله.

هغه دعلی احمد د اخبار په یوه برخه کې هم دامان الله د نماینده په توګه ذکر شوي نه و. دا یوه باریکه موضوع وه. شینواري په دې ویره کې وو، چې هغه به پاچاهی امان الله ته ورکړي، او په دې توګه یې د هغه له حمایې څخه انکار وکړ. نورو به د امان الله د کوم متحد ملاتړ کاوه، اما نه په خپله د علي احمد.

علی احمد تولی هغه پیسی یې تولی کړي او تر لاسه کړي وي، چې هندي سوداګرو افغانستان ته ورکړي وي او هغه یې لګولی وي. اوس هغه دخپل دجلال اباد له شاوخوا ملګرو څخه وغوښتل چې دځمکو مالیې دي په پیشکی توګه تولی کړي او دده له پاچاهی سره دي دپیسو مرسته وکړي. دلته دوستی کومه ګټه ونه کړه.

هغه په داسی یوه خاوره کې حکمروایی کوله چې هلته یو سیلانی داسی وویل:

«خلک دداسی یو قدرت ترا داري لاندي دي چې هیڅ ویره ورڅخه نه لري. »

د خیبر په غاښی کې د چکتور ملا فکروکړ چې هغه دفیس له تقسیم اوقات سره ځینو لارښوونو او حکمونو اساس یې د کاروانونو د بدرګی په خاطر کیښود: ګروي او دهغه ګاونډي کلي به ترلنډ یکوتل پوري د اوښ پر سر دوي روپی اخیستی، او د لعل پوري کلی د لاري په پاته برخه کې ترډ کی پوري به دوي روپی اخیستی. د اوښاو یو کاروان چې ۱۳۶۱ اوښان یې درلودل، ددوي نظم او ترتیب له مخی تورخم ته ورسید، اوله دي ځاي وروسته دلاري د امنیت په برخه کي ورته پیشګویی وشوه. دي کاردوام ونه کړ. یولوي کاروان چې څو اوونی دمخه له کابل څخه خوځیدلی و، د اوښ پرسر یې دوه څلویښت روپی ورکړي اولس ورځی ورته ضرورت و، چې له جلال آباد څخه تر پیښوره پوري سفرو کړي. دوي د جلال آباد او جګدلک ترمنځ له

زیاتو خطرو ته سره مخامخ شول، ځکه چې د علي احمد متحدین، خوګیاني، په خپلو منځو کې سره په جنګ وو.

علي احمد هڅه کوله له خوست څخه، چې په ۱۹۲٤ کال کې یاغي شوي و، مرسته تر لاسه کړي، د خوست خلکو مثبت ځواب ورنه کړ. په هغه ځای کې هم هیڅوک حکمروایي نه کوله. په داسې حال کې چې هغوی د ډیر سرحدي قبایلو په شان د حکومت له ټولو شکلونو څخه ناراضه وو، او س هغوي د داسې یو حکومت خاوندان وو، چې په کې د آرامۍ احساس کولی شو: دا یو انارشي حکومت و.

مګر په خوست کې یو نفرجا طلبي ښودله، دا نفر د اسونو سوداګر غوث الدین و، چې هغه په وسله ګې هغه ټوپکې شاملي وې چې امان الله څخه بې تو لاسه کړي وې. کله چې غوث الدین د خپلو قبایلو او د ګردیز له ځدرانو څخه خپله جرګه په خوست کې جوړه کړه، برتانویانو داسې تبصره وکړه: «ممکن غوث الدین ډیر ژر لاس په کارشي.» هغه علي احمد ته د تابعیت ژمنه ولیږله. لیکن درست په همي وخت کې د برتانویانو په مقابل کې هم لاس په کار شو. دهغه استازي د شمال لویدیځ ایالت کومشنرته یو لیک ورکړ چې داسې په کې ویل شوي وو، «یخولي بې مذهب او بې ارزښته پاچا روسیې ته تللی دي.» او که چیرې روسیې حرکت وکړي، نو له افغانستان سره به دبرتانیې له خوا مرسته وشي. هغه پوښتنه وکړه، چې که برتانویان د افغانستان په مورد کې کوم مقصد لري، «نو یو نماینده دي باید مقرر کړي چې پردې موضوع باندې له ماسره خبرې وکړي. په دې چې زه د ټول جنوبي ولایت په خاطر خبرې کوم او د دې له پاره چې ممکن زما دوستي د برتانیې له حکومت سره تاسیس شي.»

دا دبې ربطي له مخې پر برتانویانو باندې کومه اغیزه ونه کړه، په خپله غوث الدین په دې پوه شوي وچې د سقاو زوي چې امیر کیږي هوهوڅوک امیر کیدي شي د برتانیې امپراتورۍ د دهلي او لندن په موافقې سره د غه غیر منظم کوچي سوداګر ته چې یو بې ارزښته سړي و، د پارلمان د خبرو د غه ادبي ترجمه واستوله: «دا د افغانانو کار دي چې خپل پاچا په خپله وټاکي او زموږه پالیسي داده چې د افغانانو په چارو کې مداخله نه کوو. سره له دې، د برتانیې حکومت د افغان اولس دښې دوستي قدر داني کوي او کله چې افغانان خپلې چارې سمې کړي نو د برتانیې حکومت به په هغه وخت کې خپله دوستي په اثبات ورسوي، په دې شرط چې له موږ سره خپله دوستي وساتي.»

غوث الدین، چې د یوپاچا په توګه په مخاطب ګرځولو نشه او مست و، بیرته یې یو ځواب واستاوه چې شرط یې درلود. هغه غوښتنه کړې وه چې راتلونکې مراسلات دې په هندوستانۍ ژبه وي. هغه په خپله نه په کومه ژبه لیک کولی شو او نه یې کومه ژبه لوستلی شوه، مګر دا ده ته تر لاسه شوې قدرت څخه د استفاې یوه طریقه وه

د فبرورۍ په دریم تاریخ علي احمد پېښور ته یو لیک واستاوه چې د الوتکې په ذریعه دې باید همفریز ته چې په کابل کې و، واستولی شو. په هغو کې ویل شوي وو چې ټول هغه شیان چې علي احمد د برتانیې له حکومت څخه غواړي، دغه شیان ې: یو ملیون سټرلنګ پونډ، سل عرادې د لاریو موټران چې هر یوه یې یو موټروان او دوه میخانیکان ولري، دوه زره خیمې، د دوو زرو تنو له پاره سرجې یونیفورمونه او بالا پوښونه، شل زره ټوپکې او شل میلیونه کارتوسونه، دیوش دانې غرنۍ هاوان او د هر یوه له پاره زرداني ګولۍ، زر اسان له زینونو سره، دولس پایې بې سیم تیلفونونه له فني نفر سره یې، یو شمیر ماشیندارلرونکې جنګي الوتکې او لوېې مسافر وړونکې الوتکې چې پیلوټان یې برتانویان وي، له اتیا زره ګیلنه سرېټ او پټرول سره چې د هوا نوردې له پاره په کارېږي.

علي احمد داسې لیکلي و، «هغسې چې زما له خوا پیشګویي شوې وه، امان الله په خپله په بشپړه توګه ثابته کړه چې د پاچاهۍ ارزښت نه لري. د سقاو زوي یوازې یو لاروهونکې په دې نژدې وختونو کې به پر کابل باندې له هرې لورې حملې وشي، بالشویکان د جمهوریت له پاره پلان لري چې دا پلان به افغانستان وران کړي. هغوي د خوسامنۍ په شان دي چې د منۍ ټوله ټوکرې ورانوي.» هغه چې ځان ته د برتانیې د حکومت پخوانی دوست خطاب کاوه وویل چې برتانیې یوبې ساري او فوق العاده چانس لري چې یو دوست داسې پاچا کړي چې هغه پاچاهي به بېخي رنګه نه شي «که چیرې د برتانیې د پیلوماسي د هغه د تر لاسه کولو افتخار حاصل کړي.»

همفریز داسې تلګرام وکړ، «په دې وروستیو وختو کې د سقاو زوي او علي احمد یو بل ته د پیغامونو په ذریعه سختې خبرې کوي او یو بل ته اخطار ونه ورکوي. نژدې دوه زره تنه عسکر له ټوپکو او توپونو سره د سقاو د زوي له خوا پنځلس میله د کابل د ختیځې لورې ته د تنګو غرونو تر دهانې پورې استول شوېدي او هغه همدا راز د تګاب او لوګر له حملې څخه ساتي. د علي احمد د جنګ تاکتیک داسې معلومېږي چې غواړي د سقاو د زوي پوځ د

جلال آباد پر سرک باندي اېسار کړي او له خپلو سترو قواو سره يو محاصروي حرکت د تګاب او پنجشير له لاري وکړي چي په نتيجه کی به د سقاو دزوي لښکر تهديد کړي او دهغه د نفرو ارتباط له خپلو کورونو سره قطع کړي.

«علی احمد کابل ته خبر لېږلی دي چي که ارګ په آرامی سره ورته تسليم نه کړي شی، نو هغه به د کوهدامن او کوهستان په وادي کی ټول کورونه وران کړي، د کابل په ښار کی کوهستانيان ډير تاکراره دي او دهغوي له جملي څخه ځيني همدا اوس د شمالی په لور بيرته تګ پيل کړي دي.»

مګر واوره، وريدله، د تودوخی درجه به هره شپه له صفر درجی نه ښکته لوېږي، چی شيان يخ نيسی. د ۱۸٤٠ کال په داسی موسم کی د برتانيی مهاجرين، چی په مخالف جهت کی روان وو، ډير تلفات يی وليدل او يوازي يو نفر يی ځان تر جلال آباد پوري ورساوه، همفريز داسی ليکلی و، «د دي ګومان کول مشکل دي چی د ختيځی سيمی قبايل به له خطر سره مخامخ شی که په دي موسم کی پرمختګ وکړي. هغوي مجبور وو چی د وچی او شاړي سيمی لس ميله واټن ووهی.»

علی احمد پرمخ لاړ، کوم شی چی هغه يی نا اميده کړ. دهوا جوي وضعه نه بلکی د طبيعت يو بله قوه وه، هغه يی لوزي او خيانت و، د خوګيانو دوه تنه مشران د علی احمد اعتمادي کسان وو، يو يی ځان کابل ته ورساوه او د سقاو له زوي سره يی يوه معامله وکړه چی د هغه په مورد کی به عطا الحق همفريز ته باتي وهلی. له علی احمد سره خيانت وشو. شينواري او خوګيانی دهغه مرکزي اداري ته د بابعيت د خرګندولو په پلمه ننوتل. په بدل کی هغوي ورباندي حمله وکړه او په څو شيبو کی هغه ته هيڅ شی، حتی يونيفورم پري نه ښود ل شو.

هغه په خپله وروسته وويل چی هغوي په څه ترتيب سره دخوب کوټی ته دغلا له پاره لاړل او دهغه دخوب کالی يی وشکول. دهغه تر توشکی لاندي هغوي يو بوتل ويسکی پيدا کړ.

علی احمد وويل داد اوبو د شاد زخم د علاج کولو دارو دي.

دوي په قار شول او دهر هغه مايع په مورد کی چی دوي ته نا اشنا معلوميدل، بدګومانه شول کله کله چی دوي له سودا واټرا و نورو شربتونو سره مخامخ شول نو دغه ډول شربتونه به يی د ځکی په خاطرو نه څښل او ويل به يی چی نه ويل کيږي د حضرت پيغمبر (ص) رضانه وي. هغوي بوتل پزي ته نژدي کړ او ګومان يی ونه کړ چی د علی احمد بوتل د اوبو د شاد دوايی بوي وکړي. هغوي ورته وويل، په هر حال ته د اميري له پاره مناسب نه يی[۳].

برتانویان، په داسی حال کی چی په دي موضوع باندي تبصره کوله. داسی به یی ویل چی علی احمد بو پښتون ته د داسی اشتباه مرتکب گرزېدلی دي چی هیڅ چاره نه لري: هغه خپله ځان ریشخند کړي دي.

دا ریشخنده څیرد، د ملایی په جامه کی، د دغو خلکو له حفاظت څخه چی غوښتل یی پر هغو باندی حکمروایی وکړي، بی له دي چی ورسره کومه تمانچه یا پیسی وي، د هو غلزي په کورکی ځان ته یو مناسب دام ځاي پیدا کړ. کله چی همفریز د علی احمد د زیاتو شیانو د غوښتنی مکتوب ترلاسه کړ، دي په هغه ځاي کی پټ و.

شینوارو او خوگیانو جلال آباد ته د ننوتو په واسطه په جگدلک کی خپل بري ته دوام ورکړ، عسکري قشله یی له منځه یووړله او هرشی یی چی لیده د هغه په لوټولو یی پیل وکړ.

لیکن د علی احمد تراژیدي د جلال آباد قشلی ته یو څه وخت ورکړ. چی آماده گی ونیسی. هغوي د یو ساعتی بم ترتیبات ونیول چی له نیښتی وروسته جعبه خانه والوزوي. دهغه چاودیدونکو مواد و توره لوخړه اولوگی چی په تحویلخانه کی د جعبه خانی د اورد اخیستو له امله پیدا شو، څلور زره فوټه هوا ته اوچت شو، هغو کسانو چی له لیري څخه ددي شی نندار ه کوله تبصره یی وکړه چی د مرخیړي (mushroom) په شان معلومیده، دهغو کسانو له جملی څخه چی د جلال آباد ښاریی لوټاوه، ا ته سوه تنه ووژل شول او ښار ته او رور ته شو. د فبروري په لسمه شپه په ټول مشرقی ولایت کی آسمان سورښکاریده.

دري تنه شینواري چی پنځه ماشیناري یی وړي وو، اوله جعبه خانی څخه په کافی اندازه لیري وو، غوښتل یی له دي تباهي څخه وتښتی، دغه ټوپکی یی ښخی کړي، چی څوک یی ونه وینی او شینواري هغه لوټ نه کړي. مگرد یروو مجبور شول لوټ کول بس کړي او دخپلو ملگرور او عزیزا نو چسدوه په سوزید لی ځایونو کی پیدا کړي او دهغو ټپیانو علاج وکړي چی زیات شمیر یی په سختی سره د نماینده گانو روغتون ته، چی په پیښور کی و، یووړل شول.

که چیري عنایت الله تسلیم شوي نه واي نو دغی پیښی به په کابل صورت نیولی واي.

د علی احمد له معزول کیدو دمخه د سقاو زوي مجبور شوي وچی نادر پس احوال ولیږي.

د نادر ورور شاه محمود، د سقاو د زوي شخص سکرتر مقرر شوي و دا د نادر هغه ورور و، چی د جلال اباد والی و او حتی په هغه وخت کی چی د امان الله له پاره یی کار هم کاوه، په هغه

پسې خبرې کولې. د سقاو د زوي په باره کې هغه وويل، که څه هم سواد نه لري، خو د ېر پياوړي شخصيت لري او يوبا انصافه سړي دی.

د فبروري په پنځم تاريخ، له همفريز سره د اوږد وخبرو اترو په ترځ کې، شا محمود د سقاو د زوي کودتا، د رضاشا پهلوي له کودتا سره پر تله کړه، رضا شا پهلوي يو عسکري حولدار و چې ځان يې قدرت ته رسولی و او د فارس حکمروا شوی و، مگر په دې نظريې باندې يې ټينگار کاوه چې د سقاو زوي به پايښت ونه کړي. هغه په خپله ختيځ او جنوبي ولايت ته وليږل شو چې قبايل راضي کړي چې جنگ بس کړي او له يو راتلونکي کنفرانس سره موافقه وکړي چې هغسې يو پاچا انتخاب شي، چې د افغانستان اولس له خواد منلووړ وي.

د شاه محمود په عقيده د سقاو زوي په ربښتيا سره دې ته تيارشي چې د يو شريف افغان په طرفداري، چې د قبايلو هم ورباندې موافقه شته له پاچاهۍ څخه تيرشي په دې شرط چې هغه سړی د امان الله له کورنۍ څخه نه وي. هغه وويل چې هرشی د نادر او دهغه د نورو ورونو په وختي راتگ پوري اړه لري، هغه متيقن وچې نادر به جنگ ونه کړي او فکريې نه کاوه چې هغه به پاچاهي قبوله کړي، مگر د کنفرانس په واسطه د حساب په تصفيه کې به د هغه اغيزې ډېرې زياتې وي.

د افغانستان په ټولو کورڅوکې به خلکو ويل چې که نادر يوازې حاضرهم وي، نو هغه به وکړای شي چې نا آرامي له منځه يوسي هغه خلک چې په کافي اندازه مهم وو، عين شی به يې د سقاو د زوي په باره کې ويل، او په خپله دده په زړه او روحيه کې هم د آرامۍ د ټينگولو احساس موجود و او هغه په خپله شاوخوا کې گډوډې ليدله چې دې داسې يو دولتي ماهر سړي ته چې په پوره اندازه بايد وغندل شي. په هغه وخت کې چې شا محمود له همفريز سره خبرې کولې، د سقاو د زوي نماينده گان د فرانسې د جنوب په لور روان وو، چې نادر هيواد ته راول.

هغه دوه کسان چې غوښتل يې نادر وولي، د هغه د تره زوي و، چې احمد شاه نوميده، چې د علي احمد له خور سره يې واده کړی و، او عبد العزيز، دهاشم ماما چې د ورم او فارس پخوانی مختار وزير و، يو پوخ سړی او په غوږ بيخي کوڼ و، هغوی د فبروري په شپږم تاريخ د برتانيې په پستي الوتکه کې د مخصوصو نماينده گانو په توگه پيښور ته لاړل، دهند حکومت په خپلو الوتکو کې د افغانانو له داسې سفر سره علاقه نه درلوده، مگر دوباره يې دې نظريې ته

غاړه کېښودله، چې « د برتانيې نماينده گۍ ته دا په ځرگنده ډول ضرور ده چې د دې له پاره خپل انتقالات سره ته ورسوي د يو غير رسمي حکومت شرايط ومني. »

په پېښور کې داسې لارښوونه شوې وه چې « د اورگاډي او د بخاره بېړۍ ټکټونه به د احمد شاه له پاره زموږ له خوا وانه خستل شي. هغه دې په خپله بايد د پ. او. او (P او O) د (بخاربېړۍ) کمپنۍ ته تلگرام وکړي، که چېرې دا ضروروي چې پيسې پېشکي ورکړل شي، دا ضرور برېښي چې ډېر زياد احتياط وشي چې په قرار داد کې زموږ برخه د رلودل، افشا نه شي. »

دلته يوه بله معضله موجوده وه: دا بايد يقيني وي چې دغه افغانان، چې په وخت باندې پابند نه دي، او هيڅکله دي ته اړ شوي نه دي چې د اورگاډي له پروگرام او تقسيم اوقات سره سم رفتار وکړي، په هغه وخت کې دې بمبۍ ته ورسول شي چې په خپله بېړۍ کې کښېني.

بمبۍ ته امر شوي و، « لطفاً د دوو تنو افغانانو له پاره چې په پېښور کې دي، هغه د دې کوټې انتقال کړئ چې استراحت په کې کېږي او د بهرنيو چارو د دفتر له خوا نيول شوي دي. افغانان به د مستقيمې تيريدنې تلگرام وکړي. »

او بله ورځ له پېښور څخه داسې تلگرام وشو: « احمد شاه په دې نه دې بريالی شوی چې له تجارتي نماينده گۍ څخه پيسې تر لاسه کړي او اوس په دې لټه کې دی چې له بنار څخه يې تر لاسه کړي. »

د تجارت نماينده ته، چې د امان الله نفرو، د دريو تنو له خوا چې امان الله، دسقاو زوي او علي احمد و، امر شوي و، چې د حکومت پيسې او بودجه دې يوازې دوی ته ورکړي. په نتيجه کې هغه هيڅ يوه ته هغه بودجه ورنه کړه، ليکن هغه د افغاني سوداگرو يو کنفرانس داير کړ چې زيات شميريې په تاوان کې ووه او هغوي فيصله وکړه چې دا کار به عاقلانه وي چې پيسې ورکړي نه شي.

« زه به ووينم چې احمد شاه او عبد العزيز سباته د بمبۍ د پستې په ذريعه وکړي او دستيشن له امر څخه وغواړم چې ورته دې ټکټ ورکړي، که هغوي ورته پيسې ورکړي او که نه. د پ او او (P او O) د ټکټ د پيسې د تاديه کولو په هکله زه هيڅ نه شم کولی، مگر دا هيله شته چې احمد شاته وويل شي چې هغوي ته تلگرام وکړي. »

او وروسته: « د ډين هوټل ته واستول شول. هغوي بې له دې چې د هوټل پيسې يې تحويلي

کړي او يا ټکټونه واخلي، لاړل. دهغوي د ټکټونو پيسې له يو شمير مهاجرو سره تاد يه شوي دي چې پرون رسيدلي دي او هغوي هم د سرحدي پستي په ذريعه لاړل.

د تجارت نماينده احمد شاته ٤٨٠ سترلنګ پونډه ورکړل. داسې و اوريدل شو چې هغه ٦٠٠ سترلنګ پونډه په ناڅرګنده توګه عبد العزيز ته راوړل.»

مګر په هغه ورځ، د فبروري نهم تاريخ، چې د غسو کسانو په بمبيي کې بيړې کې سپاره شول، نادر، هاشم او شاولي له مارسيلي (Mareille) څخه د بيړي په ذريعه را روان شول.

د فبروري په ۱۳ تاريخ وايسرا وسکوټ پيل (Viscount ped) ته يو شخصي ليک واستاوه: «زه بيخي فکر کوم، دي سره سره چې خرابي پروپاګندي رواني دي، هر شي زموږ په خوښه برابريږي. زه اميد لرم موږ به په دي برياليي شو چې نادر راولو بې له دي چې ضد برتانوي تحريک منځ ته راوړوو، او په حقيقت کې دا داسې معلوميږي چې په دي مناسبت هم هرشي زموږ په ګټه وي چې په کې د افغانستان د تولود لوله خوا هغه په عمومي توګه ډيوس ايکس مشينا (Deus ex machina) څرګند يږي.»

له ملايانو څخه يو تن چې د شير آغا د پلانونو په غونډوکې د هند په پنياله (Paniala) کې ګډون کړي و، د کندال (Candal) ښار خواته روان شو، چې شير اغاز ته ووايي اوس هغه وخت را رسيدلي چې ته هم بايد خپل هيراد ته لاړشي.

# دیرشم فصل

## د ۱۹۲۹ کال د فبروري له ۷ څخه

## د ۱۹۲۹ کال د فبروري تر ۲۵ نیټې پورې

امان الله د همدغه افغاني نماینده ګۍ له لارې نادر ته تلګرام کړی و، چې کندهار ته دې راشي او د هغه صدراعظم شي.

کومې پیښې چې پر افغانستان باندې تیرېدې، د هغو په باب یو لوېدیځ شاعر داسې لیکلي دي:

« ګډوډې منځ ته راغلې ده، مرکزثبات ترلاسه کولی نه شي. »

امان الله د یوې لسیزې له پاره خپل هیواد پاچا و اوس یوازې یوه ټوټه شوې وه، هغه د ایټس[1] (Yeatsص s) د شعر یو بازوان و، چې باز نه شو کولی د هغه غږ واورې په خپله هغه هم نورد هیواد غږنه اورېده. هغه خبره و، چې د سقاو زوی هم نادر ته احوال لیږلی و.

پاته کسان په مساوي توګه سره لیرې وو او یو له بل نه خبرنه وو، د اپریل د میاشتې دونډ سوردماني[2] (Windsor Castle) محترم میلمه د فبروري تر میاشتې پورې یو حریص بهرنی سړی و او د هغوشیانو غوښتنه یې وکړه چې حق یې نه درلود. د هغه له غوښتنو څخه یوه

---

۱ - ویلیام بټلر (۱۹۳۹ - ۱۸٦٥) ایرلینډي شاعر، دستان لیکونکی او ډرامه لیکونکی، چې په ۱۹۲۳ کال کې پرېبه ادبیا توکې د نوبل جایزه ترلاسه کړه - (ژباړونکی).

۲ - د فاتح ویلیام په وخت کې دانګلیسي واکمنانو هستو ګنځی - (ژباړونکی).

دوسلي د تحفې په خاطروه چې دهغه د خاصو غوښتنو په بدل ورته په پوره دقت سره پیشکش شوه. کله چې هغه دوسلې غوښتنه وکړه، پوه شو چې دا تحفه دده یعنې د امان الله له پاره، چې له جورج پاچا سره یې ذوډي خوړلې و، او یوو کتوریایې ځنځیریې ترلاسه کړي و، نه ده، بلکې د افغان حکومت له دداو دي له دي تحفې سره له یوه کوچي سره زیات ارتباط د درلود، چې په خپلو او ښانو پسې به غرونوکې روان و.

امان الله نه پوهیده چې برتانویانو له اول څخه په فکر کې درلودل چې دا تحفه به لېږلي ورته ولیږي، چې په دوامداره توګه بې خوښ وساتي او چې دوسلې دلومړي ځل استول تر هغه پورې وځنډول شوځو چې شیان سره ګډوډ شول.

همدا راز هغه په دي هم نه پوهیده چې سر اوستین چمبرلین، دهغه پخوانی کوربه، په پارلمان کې دهغه نوم یې واخیست اودهغه له پاچاهي څخه بې صرف نظرو کړ، او دا هغه شي وچې وایسرا هغه شي د «یوه کوچنی عجیبه او غریبه پیښه» په توګه بیان کړ.

غلام صدیق ته د چمبرلي دوینا یوه کاپي دبوهندي مسلمان له خوا، چې په کندهار کې قونسل و، ورکړي شوه، هغه په قهر سره ځواب ورکړه «امان الله د برتانیې د حکومت له خوا د مخه د افغانستان د پاچا په توګه پیژندل شـ ـي دي او په هغه مورد کې یوه معاهده وجود لري. یو داخلي شورش د امان الله د پیژندنې حق له منځه وړي نه شي. که چیرې د برتانیې حکومت د امان الله له پیژندنې څخه انکارو کړي، دا به له معاهدې څخه سرغړونه وي او د افغانستان په داخلي چارو کې به یو ډول لاس وهنه وي چې بد عواقب به ولري. دا سریح ځواب نه دي. صریح ځواب دي باید ژرراکړل شي.

غلام صدیق داسې ادامه ورکړه، «له پاچاهي څخه د امان الله لاس اخیستنه یونیرنګ و، د روسي سلوک یو واقعي خطر دي. امان الله خیال نه لري چې د برتانویانو یا له روسانو څخه د پوځ غوښتنه وکړي، لیکن کوم حقیقت چې دبرتانیې حکومت خپور کړي دي، ددي څرګندوي نه شي کیدي چې په هغه باندې امان الله روسانو له خوا محکوم شي او هغوي ته بهانه په لاس ورکړ شي او دځان د حمایه کولو په پلمه به ترکستان او هرات ونیسي. د تاشکند افغاني لوي قونسل راپور ورکوي چې یولک او پنځوس زره روسان لا دمخه د هرات او نورو بند رونو سره ځاي په ځاي شوي دي. موږ نه پوهیږو چې برتانویانو ولې امان الله په رسمیت نه پیژني حال داچې هغه د روس، جرمن ایتالیې، فارس او دترکیې له خوا په رسمیت پیژندل شوي دي. زه فرانس

همفریز ته په رښتیا سره خبر ورکوم چې که د امان الله حکومت له منځه یوړل شي، نو جنګ به حتمي وي.

همفریز د یوې تبصرې په ترځ کې د دې خبرې اترې راپور داسې ورکړ، «پورته خبرې یوازې د غلام صدیق بې ربطي، بې معنی او د او توپو تو خبرې دي.» همفریز پوهیده هغه ملاتړ او تایید چې هغه بیان کړ په زیاته اندازه خیالي او غیر واقعي وو. برتانویانو ته د بهرنیو چارو د وزارت د جرمني وزیر له خوا په پټه سره ویل شوي وو چې هغوي «نه غواړي د امان الله د په رسمیت پیژندلو په ذریعه د افغانستان په داخلي چارو کې... ځان دخیل کړي.»

کوم ځواب چې همفریز غوښتلو امان الله ته د غلام صدیق له عصبانیت څخه وروسته ورکړي، د چمبرلین خبرو تونډ تکرار او د عبد الرحمن د لس له پاره له هغه ځواب څخه لږ غوني غیر ادیبانه شکل درلود چې داسونو سره اګر، کوچي غوث الدین ته، ورکړ شوي و.

همفریز وویل: «دا هو خواشیني کوونکې حقیقت دي چې نه امان الله او نه غلام صدیق په خپلو منځو کې په کلکه توګه په هیواد کې یو دوست لري.» دا یوازنۍ جمله وه چې د یو انګلیسي مامور له خوا په تپولومکاتیبو کې چې، پر افغانستان باندې بحث کاوه لیکل شوې وه، چې یوه ګرامرې تیرو ته یې درلوده. د دې افراط په خاطر همفریز د امان الله په ارتباط خپلو احساساتو په واسطه پسې واخیستل شو. دا جمله مبالغه امیزه جمله هم وه، «حقیقت» داو چې امان الله دوستان درلودل.

د هند حکومت داسې اعتراف وکړ: «مونږ د هغو پرپاګندونو له خطرونو څخه پوره باخبر یو چې له کندهار څخه د امان الله په طرفدارۍ کیږي.

امان الله په کندهار کې لس غرنۍ هاوان، د دریو زرو په شاوخوا کې توپکونه او پنځلس شینداره درلودل. د هغه په اختیار کې د افغاني روپیو معادل تقریباً او یاره او دوو سوو سټرلنګ پونډه، د پنځلسو زرو سټرلنګ پونډو په ارزښت د سپینو زرو خښتې او د څلویښتو زرو سټرلنګ پونډو په ارزښت د سرو زرو پونډونه یې درلودل. هغه هڅه کوله چې له هند څخه د سکې جوړولو ماشین لاسته راوړي چې د سپینو زرو له خښتو څخه پیسې جوړې کړي. په غزني کې هغه سکې چلیدلې چې د سقاو د زوي په نوم وهل شوي وي.

د کراچۍ په هندي بندر کې شپیته ماشیندار لرونکې توپکونه موجود وو چې امان الله په اروپا کې رانیولي وو، هغه توقع کوله چې د دې ماشیندارو پیسې به د دولت له خزانې څخه ورکړې وي، د غه ماشیندارو نه په کراچۍ کې پاتې شول.

هغه یو میلیون او سل زره روپۍ چمن ته ولیږلې چې د هغو ټوپکونو قیمت تادیه کړي چې هغه هم په کراچۍ کې وو ، ده نه شو کولی هغه ټوپکو نه ترلاسه کړي. هغه د انګلستان د برمنګهم د کوچنیو وسلو د ټوپکو له اتحادیې څخه د ټوپکو او کارتوسو د رانیولو امر صادر کړی و. انګلستان په پټه او شخصي توګه پوه کړي شوي و ، چې افغانستان ته د دغو وسلو دلیږلو په خاطر د لانیسي کومه هیله وجود نه لري او د بهرنیو چارو له دفتر څخه ورڅخه غوښتنه وشوه چې بریږدي ، چې موضوع له منځه لاړه شي. شجاع الدوله غوښتنه وکړه چې په نغدو پیسو وولویچ (Wodwich) له وسله تونو څخه (په بل عبارت د انګلستان له حکومت څخه) دوه زره ټوپکي او یو میلیون کارتوسونه په بیه واخلي چې له خپل ځانه سره به یې د جرمنې او روسیې له لارې راوړي. د بهرنیو چارو دفتر ورته داسې لیکلي و ، « له هندي دفتر سره مشوره وکړه ، مګر دوه زره ټوپکونه او یو میلیون کارتوسونه یو اریانوونکې شی دي ، د اسلحې له قیمت څخه به یې د اورګاډي کرایه زیاته شي. » سراوستین چمبرلین حکم صادر کړچې: « دا یوه بې معنی غوښتنه ده. »

سره له دې له سرحد څخه څو میله لرې ، د کوهاټ د غاښ په هغه لویه ساحه کې یوازنۍ صنعت د ډول ټوپو ګونو تولیدول وچې په هر چاپاندې به خرڅیدل. له شلوګلونو څخه ډېر د مخه یو مشهور افریدي له بمبۍ څخه فولاد د راوار کړی و ، او د ټوپګونو په تولیدیې پیل کړی و ، چې دا ټوپګونه د اروپايي ټوپکونو په شان ، چې له هغوي څخه تقلید شوي و ، ښه نه وو ، مګر ډېرارزانه وو ، قبایلیانو د دغو ټوپګونو په جوړولو کې ، چې بهر په لاس جوړیدل ، له ابتدايي سامانو نو څخه کار اخیستلو ، او د کوهاټ د غاښي ټوپکونه د لی انفلیډ (Lee- Enfield) او مارتینی هنري (Martini Henry) په شان مشهور وو ، چې د هغوي نومونه مدام یادیږي.

د فبروري په اووم تاریخ د شمال لویدیځ سرحدي ایالت داسې تلګرام وکو ، « د دې راپورپه حواله چې شورشیانو ته زموږ له خوا وسله ورکول کیږي ، زه د هغې نظریې طرفداریم ، چې د کوهاټ غاښي د ټوپوکونو تولید او د هغه صادرول دې له نظره تیر کړي شي. د ټوپکونو تجارت له پخواني اندازې څخه ډېر زیات شوی دی. د خوست له لارې په ږوارلیږنه کې ۲۰۰ ټوپکونه ولیږل شول او معلومات شته چې د راي مشت (Zaimusht) په سیمه کې بند پاته شول. یو زیات شمیر زموږ خپل قبایلیان او افغانستانیان د ټوپکو د رانیولو په خاطر دې غاښي ته راځي او په دې کې شک نشته چې ټول د غه رانیول شوي ټوپکونه افغانستان ورل کیږي. همدا راز

داسې فکر کېږي چې له افغان حکومت څخه غلا شوي ټوپکي هم په دغه ځای کې په لیلام خرڅیږي. »

دهند حکومت هیڅ کوم دلیل نه درلود چې دغه مخصوص ټوپکونه له افغانستان څخه لیږي وساتي، مگر داموضوع په فکر کې درلود له چې، « دهغو خلکو له خواچې پس طرف موقف لري، دجنگ په حال کې کسانو ته دوسلې برابرول (ټ د هغوسلو په خلاف چې په خپله حکومت یې برابروي) د اصول له مخې قانوني دي او په دي توگه مورد بې طرفي دوظیفې په لرلو سره مجبور نه یو دهغه مخنیوي وکړو. بیاهم د بې طرفي سوال یوشې دي او دسیاسي غوښتنې سوال بل شی. »

بې طرفي او سیاسي غوښتنې دهند حکومت له پاره په یو وخت کې سره تصادف وکړي چې ځرگنده کړي چې دکوهاټ د غاښ ټوپکونه دي باید برتانوي هند ته تیرنه شي او په نظري ډول ازاد ووچې پرتیولو ډلو باندي وپلورل شي. حقیقت داو چې هرټوپک چې د کوهاټ له غاښي څخه افغانستان ته وړل کیده باید د آزادي سیمي له منطقي څخه تیر شوي واي چې ځومیله واټن یې درلود. ددي سیمي د خلکو توند طبیعت او مزاج د برتانیې له پاره دا مشکله وگرځوله چې داشي اداره کړي، ولو چې دخبرو اترو په وخت کې به افغانانو ته ځرگندوله چې ددي سیموهر انچ او هره ټوټه په هند پورې تړلي ده. « مورږ البته، کولی شو چې فابریکه یې وتړو مگر د دي کار نتیجه به داشي چې په نورو بر خوکې به فابریکه جوړه شي چې زموږ تراداري لاندي نه دي. افغاني قبایل دومره په وسله باندي ماړه دي چې ددي منبع د ټیټي درجې وسله به پر دوي باندي کومه ځرگنده اغیزه ونه لري، او په اوس وخت کې موږ غواړو هرشي په خپل حال پرېږدو. »

امان الله هڅه وکړه چې له کراچي څخه خپلې ټوپکې او ماشینداري تر لاسه کړي اوویل به یې چې داوسله شخصاً دره له پاره برابره شوي ده، ځکه چې په سندونوکې دده نوم ذکر شوي و، برتانیې وویل، فرق نه کوي.

نو امان الله یوازې روسیې ته سترگې نیولې وي.

روسیه د افغانستان د شورش په موده کې ییخي اریان وه. په افغانستان کې دهغه د استخبارېي له املې چې لویدیځ ته تبنتیدلی و، وروسته په داسې تاپور ور کړي و، چې روسیه، ددي په مورد کې چې په افغانستان کې څه تیریده، کومه صحیح نظریه نه لري. (۱) دنوي ارتجاعي حکومت په نظره چې کابل یې تصرف کړی و، د بالشویک ملحد حکومت یو منظور

حکومت دي. دسقاود زوي تر امر لاندي شورشیانو، وروسته له هغه چی پر روسی الوتکو باندي ډزي وکړي، هغي ته د ښکته کیدو اجازه ورکړله.

د برتانیی د استخباراتي یو راپور چی دهند و ایسرایی ډاډه کاوه داسي ویل، د روسی داخلی وضعه خرابه ده او داسی ښکاري چی له هر نقطه نظره سیاسی صنعتي او مالی، لا پسی خرابیږي. په ښارونو کی د غذایی مواد وکمبت زیات لیدل کیږي. کروند ګرډ برناراضه دي. د اورګاډي وضعه ښه نه ده. صنایع تر اوسه پوري د جنګ نه د مخکی تولید څخه ټیټه درجه لري. له موجوده د یکتاتور، ستالین، سره، چی هڅه کوي د خپلو مخالفینو یوه برخه له منځه یوسی، په ازاده توګه مخالفت موجود دي، سره له دي، د عوامو لتیي اوسستي او دلیډرانو عدم موجودیت انقلاب یی غیر متحمل ګرځولی دي او یی له کوم شکه د حکومت بحران به وجود ولري.

«دا مناسب نه دي چی حکومت د اوسني داخلي حالاتو د په نظر کی نیولو سره په افغانستان د یو پراخ عملیات د کولو هڅه وکړي. هغوي به یی له کوم شکه د برتانیی د سیسی اوپروپاګنډونو له پاره هر چانس تر لاسه کړي، مګر مورږ پوهیږو چی داوسنی کړکیچنی وضعی په واسطه هغوي اریان پاته دي او په داسی تعجب کی دي چی پر غلطو اس باندي سپور شوي نه وي... »

د فبروري په لومړ وختونو کی د کندهار په هوایی ډګلاکی دهغو روسی الوتکو له پاره تیلی څراغونه ساتل شوي ووچی ممکن د میدا موقعیت ورته معلوم نه وي، د امان الله د معاهدي له مخي چی یی له برتانیی سره کړي وه، روسانو ته اجازه نه وه چی له کندهار څخه لیدنه کتنه وکړي. دفبروري په اتم تاریخ الوتکی راورسیدي، چی شپږ تنه روسان یی راوري وو، چی یو یی سالویف (Solovieff) نومیده چی د مسکو د بهرنیو چارو د دفتر غړي و، هغوي له ځان سره د مخابري یوه نمونه راوړله، چی امان الله ته درلودله: دبی سم دستګاه.

د برتانیی رسمی بی سیم به په ورځ کی دري واري له رګبی (Rugby) څخه د خبروو پروګرام انتقال کړ، د فبروري په اووم تاریخ د غرمی له خپروني وروسته د رکیی د امواجو په ذریعه داسی یو پیغام واستول شو:

«په پیښور کی سخته اوازه وه چی روسانو حبیب الله (دسقاو زوي) ته اخطار ورکړي.»

داسی اعلان شوي دي چی ترڅو (هغه) د خزانیی او ټول بس نه کړي او تر اتو ورځو پوري روسیی ته دري میلیونه سترلنګ پونډه دهغی وسلی په بدل کی ورنه کړي چی امان الله ته ورکړي شوي

وي، نو روسان به کابل بمبارد کړي. » هر چاپي ددي پيغام، چې دا مپراتوري عسکري تا سيسات يې هم په برکې نيول، مخيوي کاوه، فکر يې کاوه چې داد برتانيې د رسمي خپروني يوه برخه ده، دا داسې نه وه، او هيڅوک نه پوهيدل چې دا پيغام له کومې منبع څخه راغلی و.

دلندن د ډيلي اکسپرس چلوونکې د «خپلومنابعو» له لارې، څنګه چې هغوي د بهرنيو چارو دفتر ته توضيحات ورکړي وو، د آوازي بل ډول تفسير يې و اوريد، چې د فبروري په اتم تاريخ يې خبر وکړ او دالتې ماتوم د وخت حدود يې اتو څلويښتو ساعتونو ته رسولی و، حتی پارلمان مجبورو اخطار قبول کړي، د يو سوال په ځواب کې، د بهرنيو چارو د فتر ټول معلومات يې داسې رد کړل: «د افغانستان وضعه پيچلې ده.»

دروس د مرستو په باره کې افواهات په ډير احتمال سره ممکن د امان الله د دښمنانو له خوا پيل کيدل نه هغه د ملګرو له خوا، هربهرني سړي چې به قبايليانو کې په مهمه توګه ظاهريده، لکه د برتانيې د پيلوټانو په شان چې ټوټې ټوټې شوي وو، د مخه تردي چې هغه ته ښه راغلاست ويل شوي وي، هغه مجبور وچې د خپل نه روسي توب اطمينان يې ورکړي واي، له برتانويانو سره د غوث الدين د حمايي غوښتنه به ځير کې له روس سره د امان الله د ارتباط موندلو په واسطه پيل شوي و.

کندهار، په خاص ډول، له روسي اتحاد سره په ويره کې و، نو له مسکو څخه الوتکو را رسيدل د امان الله ټوله ناکراري يې په هغه ورځ باندې کراره نه کړه.

د فبروري اتمه د جمعې ورځ وه، د کندهار نارينه او ښځې چې د ښځو مخونه يې پټ وو، د جمعې په ورځ د لمانځه د ادا کولو له پاره شاهي جومات ته لاړل. په هغه ورځ باندي جارچيانو وختي کوڅه په کوڅه د ډولونو په غږولو سره لاړل او ناري يې وهلې چې امان الله له لمانځه وروسته له خلکو سره خبري کوي.

هغوي ټول حاضر شول. اول غلام صديق خبري وکړي. هغه خلکو ته ۱۹۱۹ کال او د استقلال په خاطر جنګ ورپه ياد کړ، چې بيرغونه پورته کړي شوي وو او خلک ورڅخه را ټول شوي وو چې د پاچا له پاره جنګ وکړي، او تر هر بيرغ لاندي دوه سره يا دري سوه تنه ټول شوي وو، اوس، لس کاله وروسته، امان الله تقريباً يوه مياشت ليري چې په کندهار کې دي او بوازي وعدي ورسره کيږي.

وروسته امان الله د نوروز په ورځ وويل چې که د سقاو زوي تر اوسه پوري پر کابل باندي

حکمروایي ولري، نوزه به لښکرو لیږم چې دهغه په مقابل کې وجنګیږي او که ضرورت وي نو په سرکې به زه خان تیا کړم.

پو فارسي وان، چې شیعه و ، خبري وکړي او وي ویل که زما د دلي خلک جنګ ته لاړشي، افغانان (پښتانه - مترجم) به يې کورونه لوټ کړي. پو زاړه سړي وويل، «مونږ غريب خلک له تاسوه مرسته نه شو کولی. تاسو بايد له هغو کسانو څخه دغوارې چې د فيشن او د ښځو ليوال وي.

د ابيتي هغه شمير به ويل کيده چې:

بهترين کسان ثبات نه لري، حال دا چې بدترين کسان زيات هيجان او، جذبې لري.

په هرحال، امان الله د هيجان او جذباتو شدت درلود. دا احساسات سره وپاشيدل. په دي ورځو کې هغه هيڅکله بې له تمانچې نه ګرځيده. هغه خپله تمانچه واخيستله او هغو خلکو ته يې ونيوله چې دي يې ملامته کړي و، عبد العزيز، د هغه حربيي وزير، د هغه په څنګ کې ولاړو او دا حرکت يې په هغه وخت کې وايد چې خپله سلاح يې بيرته ښکته کړي وه.

د جرمات خلکو هم داشې وليد. غوږ نيونکو کسانو غابښونه سره چيچل، چغې يې وهلې او يوه تهديدونکې پاريدنې دله ورڅخه جوړه شوه. خلک بيرته وګرځيدل او له دروازې څخه په چټکۍ سره ووتل غلام صديقي ورباندې غږ وکړ، چې ودريږي، مګر چاور ته غوږ ونه نيوه. وروسته هغوي چې په مرکې وو، بيرته د امان الله او غلام صديق خواته وګرځيدل. هغوي چپ و دريدل.

امان الله ورته وويل چې زما ټول کارونه لورينې او يوازې له وطن سره د مينې د درلودلو په خاطر دي. هغه وويل چې افغانستان د دو وقوي هيوادونو په لومه کې ايساردي چې که يوه متحده مخکښه جبهه ونه لري نوله منځه به ولاړشي. خلکو ورته وکتل او هيڅ يې ونه ويل، وروسته په يو منظم شکل بيرته وګرځيدل او له امان الله څخه لاړل.

دا د روژې د مياشت پيل و، چې په دي مياشت کې مسلمانان له پيشلمې څخه ترماښامه پورې د خوراک او دڅښاک شي خولې ته نه وراندي کوي اعصاب اومزاجونه په آسانۍ سره خرابيږي. په دي وخت کې کار هغو مره چې لازم وي، پرمختګ نه کوي. د امان الله تيکه هيڅکله د روژې رعايت نه کاوه او داسې اتکل يې کاوه چې د مسافرو او ناروغانو په شان پرپاچا باندې هم ژوژه روانه ده...

لیکن د امان الله د ټولو مذهبونو د مراسمو په رعایت کولو کی ډیر محتاط و ، هغه دانه شو زغملی چی د « کافر » نوموړ عادلانه اوسم وښیی. ثریا هیڅکله مخ لوڅی ونه لیدل شوه. هغه به په منظم ډول هر ماښام د لمانځه د اداکولو له پاره جومات ته تلله. د را لز رایس موټر به د قصر په دروازه کی مدام ورته ولاړو. کله چی کندهاریان ورته راټولیدل او په څیر سره به یی ورته کتل، د احترام گارډ په دواړو خواو کی تر هغه وخته پوري ورته دریده څو چی هغه په ښکلی عسکري یونیفورم کی راوته او خپل موټر کی به کښیاسته او روانیده به هغه د رسم او رواج یو مهم اصل یی نه مانه: هغه داوچی هیڅکله یی خپله دریشی نه ایستله، ملی لباس (کمیس او پرتو گ) او پټکی به نه سرکاوه او هم یی بیخی ږیره پري نه ښودله. پرورو ستی ټکی باندي د سیسه به واقعیتونه اغماضول اوسره له دي چی بریتونه یی پري ایښی وو ، د قبایلیانو له خوا به ویل کیدل چی هغه ټول بریتونه وهي او لږه برخه یی پریږدي چی د پتنګ په شان ښکاري.

کله چی امان الله د روژي د میاشتی له ضرورتونو څخه خلاص شو ، له نورو بحرانونو سره مخامخ شو چی دي یی ارامی ته نه پریښود. هغه په کندهار کی یوازي په پنځلس سوه وسله وال کسان درلودل، بیاهم دومره که قوه چندان داندیښنی سبب نه کیدله، ځکه چی دافغانستان په هر ښځه کی به قبایل له قوا وسره یوځای کیدل. هغه هره ورځ له هغو قبایلیانو سره خبري کولی چی هیله من و ، دده له پاره به وجنگیږي. په عمومی توگه داد پیسو موضوع وه، په دي چی دهغوي وفا داري او صداقت دمخه اخیستل شوي او پلورل شوي و.

د هیواد د پیاده او سپاره پست وړونکو په غیر د امان الله د تلگراف مزي یوازي ترچمن پوري او د تیلفون مزي یی ترمقره پوري رسیدل. په کندهار کی هیڅ الوتکه نه وه ، امان الله په دي هڅه کی و ، چی له جنگرانو (Janker)[1] څخه دوي الوتکی ترلاسه کړي. داسی خبري څنگه چی منځ ته راغلی، ښی نه وي ، دمقر شورش په دي قیمت تمام شو چی پیسی هلته وساتلی شوي، په فراه کی هم ستونزي موجودي وي. غلزي، هغه قبیله چی شیراغا ورباندي زیات نفوذ درلود ، کندهار ته دداسی خبرو استولو ته ادامه ورکوله چی موږ یوازي پر کافر امان الله پاچا باندي اعتراض لرو او تر هغه پوري چی امان الله له هیواد څخه وتلی نه وي موږ به کرار کښینو ، مگر فعلاً ژمنه کوو چی پر کندهار باندي به بریدو نه کړو. د «کافر» لغت کندهاریان یی وویرول، هغوي ډاریدل چی اوس دا لغت چی یوازي دامان الله له پاره استعمالیږي، ممکن ژر

---

١ - جرمنی اصیل زاده گان.

مـوږ ته به هم کـافـر وويل شي، حـتى ددي کـامي اوريدل ورته تکان ورکـوونکي و، امـان الله تصميم ونيو چي بوازني کار چي بايد وشي داديي چي خپل حکومت هرات ته انتقال کړي.

هغه نړي چي امان الله ورڅخه داسي بيخبرو، د امان الله په مورد کې زيات خبرو، دلندن ډيلي اکسپرس يو کارتون خپور کړ چي، «په کي يو تحريک اميزه مطلب راوړل شوي و.» چي په کي امان الله يوبي احساس قبايلي سړي ته، چي له خپل ټوپک سره دهغه په څنګ کي ناست و، ويل، «زه اوس تاسو ته يو غربي کاکتيل (Cocktail) جوړوم! لومړي په ايټالوي خوند ورشراب چي دور موت (Vemouth) په نوم يادېږي راواخلو... وروسته به لږ فرانسوي ورموت اوبيا به لږڅه انگليسي ويسکي (Whisky) په کي علاوه کړو... وروسته له هغه به يو څانکي جرمني زاړه بير اويوغړب روسي و د کاپه کي زيات کړو... ار د ترکيبي په قوي شرابو، چي د ترکي کمال (Turkish Kimal) په نوم يادېږي پوري به يي کړو... بيابه يي تاسو وښوروي... اوويه يي څښي.» قبايلي سړي هغه څښي او امان الله په لغتو باسي.

بيا هم، يو غربي اخبار يوه با ارزښته هڅه وکړه او خپل خبريال يي کندهار ته واستاوه چي له امان الله سره ووينى، او هغه يو امريکا يي اخبار روچي د خپلي ګټي او علاقي په خاطر يي هر نفر به يي ويښاوه: دشيکاګو د تربيون اخبار، چي پيشنهاد يي وکړچي لاري رو (Larry Rue) واستوي.

د سراي ويلرټ (Sir A. Willert) د شمالي ديپارټمنټ د بهرني اداري تبصره داسي وه، «دشيکاګو د تربيون اخبار په خاص ډول په زړه پوري، اخبار نه دي او کله کله د برتانيي ضد اخبار شي. مګرو مسلک له مخي د هرتز (   ) د مطبوعاتو په شان د برتانيي ضد نه وي. هغه نسبتاً د امريکا طرفداري په ګستاخانه توګه کوي. برسيره پردي داد امريکي په متحده ايالاتو کي ډير قوي اخبار دي.»

فيري رو، دفبروري په ١٤ نيټه له تهران څخه راورسيد، چي الوتکي يي د کندهار د عجيبو او غريبو خلکو له خوا تقريباً ترحملي او هجوم لاندي راغله او د يو منصبدار له خوا چي دهغه بدرګه يي کوله، د متروکي په ذريعه شړل کيدل. له رو او دهغه له پيلوت سره ښه سلوک وشو. له يو فارسي ډګروال سره چي له هغوي سره ملګري و، په فوق العاده توګه اديبانه سلوک و شواو ورته وويل شو چي د فارسي سړي مرسته کوم ضرورت نه ليدل کيږي.

نور السراج، دامان الله کشره خورچي له هغه سره امان الله مدام په مينه او احتياط رو په

کوله، دخپل لومړني ماشوم دزیږولو په درشل کی و، او دهغی په باره کی د هغی په باره کی د هغی د وړورعالی احساس ددي موجب شو چی دچمن د تلګرام په ذریعه یی له برتانویانو څخه غوښتنه وکړه چی دطبی څارنی په خاطر دي هغی ته اجازه ورکړي چی کراچی یا بمبیی ته لاړه شی. همفریز مشوره ورکړه او خپله په زړه پوري خوا خوږي یی وښودله او وي ویل: « هغه یوه جذابه نجلی ده. » دا د محمود طرزي له پاره هم یو چانس شو چی ترانزیتی ویزه ورته ورکړي شی، چی هغه توجه معلومه کړي چی دسقاود زوي نماینده ګان نادرته ښودلی وه.

اوس چی امان الله غوښتل له هرات څخه واکمنی وکړي، تصمیم یی ونیو چی خپله خور هرات ته واستوي او که وکولی شی له هغه ځای څخه یی تاشکند ته د تکلیف د رفع کیدو په خاطر واستوي. عبد الوهاب طرزي، چی د غلام صدیق په تګ سره د بهرنیو چارو وزیر مقرر شوي و، د رو له پینسلوټ څخه غوښتنه وکړه چی نور السراج هرات ته ورسوي، په هر حال هغه به پنځه فالتو ورځی درلودي. په هغه وخت کی چی رو خپل راپور اوګزارشات تر لاسه کول، پیلوت دداسی یوسفر له پاره اضافه تیل نه درلودل، لیکن په کندهار کی د الوتکی څوسوه ګیلنه تیل موجود و، چی امان الله غوښتل دخپلی خورد استولو په خاطر له هغه تیلو څخه کارواخلی.

د رو تبصره، دده په اخبار کی داسی وه: « روسیه تر اوسه پوري په پوره اندازي صمیمی دوست شوي نه دي چی د پاچا خورته اجازه ورکړي چی هغی له الوتکی څخه استفاده وکړي. دا الوتکه همغه ډول الوتکه وه چی د تربیون (Tribune) له خوا ورڅخه کار اخیستل کېده. که څه هم د غه الوتکه په هنګر (Hanger) کی د دوو ورځوله پاره وه، د مخه تردي چی زموږ الوتکه ورسیدله، دا دتربیون الوتکه وه چی... یو خاص سفر دهرات په لور له یو هیأت سره وکړ چی پاچاداشی دخپلی خورد صحت په مورد کی خورا مهم او ضروري ګڼلو. »

محمود طرزي او هغه میرمنی له نور السراج سره ملګر تیاو کړه. هغوي په داسی حال کی چی اروپایی لباس یی اغوستی وو، دالوتکی په لور لاړل او طرزي عصري پشمی دریشی یی اغوستی وه، دواړو ښځو شپوګانی په سر کړي وي او یو ډول نقاب یی بر خپلو مخونو باندي اچولي و. طرزي له لاري رو سره په فرانسوي ژبه دریویا (Rivieria) پاریس، برلین او وینا (Viema) د ژوند د مزایا وو په باره کی خبري وکړي. هغه وویل چی زه غواړم په تاشکند کی دمعدي د ناروغی په باب له ډاکترانو سره مشوره وکړم.

هغوي الوتکی ته وختل، وروسته دواړو ښځو له خپلو مخونو څخه نقابونه لیري کړل او په

دامې حال کې چې په شونډ وکې يې مسکا ليدل کيدله، له خپلو خپلوا نوسره خداي په اماني وکړه چې مخه يې ته يې ورغلې وو.

دالومړنی پرواز نقصان پيدا کړ، ورووسته له لسو دقيقو الوتکه د ماشين دزياد گرم راتلو په سبب بېرته راوگرځيدله. امان الله چې د ماشين په تخنيک هيڅ نه پوهيده، اوله سپار راهيسې يې نه کوم شی خوړلی واو نه يې څښلي وو، په قهر سره وويل چې په هر شکل چې وي الوتکه دي بايد خپل سفر ته ادامه ورکړي، ځکه چې ډيره ښه منډه يې وکړله، چې دا يو مهم شی و، دوهم پروازپه بريالیتوب سره سرته ورسيد، الوتکې ته په هرات کې هر کلي وويل شو، چې دهغه ځاي والي د عليا حضرتي له خپلوانو څخه و، امان الله پيلوټ او ميخانيک ته دسرې په سرپنځه سوه ډالره ورکړل.

مگر نور السراج له هرات څخه وراندي لاړه نه شوه، دهغې ماشوم دهغه ځاي د يوې سيمه ييزي قابلې په مرسته پيدا شو.

په همدي حال کې، ليري رو، دخبرو اترولس وعدي او هره وعده يې ماته شوه، پوځلی وويل شو چې امان الله سخت ريزش دي، بل ځلی وويل شو چې هغه ځان وينځي. له روسره د امان الله روغبړ او هر کلي دهغه سلام په شان صميمانه او احترامانه وچې يو بل ته به يې سره په يوه فاصله کې کول. هغه يوازې د عبد الوهاب طرزي له لاري ورسره خبري کولې.

د امان الله خبري اتري برتانويانو دهغه جرم په مقابل کې په بشپړه توگه بري الذمه وگرځولې چې په اړدوړ کې دهغه پر ضد مرتکب شوي وو. د روسيي د بهرنی د فتر اداري مامورسولوويف رو (Rue) ته وېلې وچې روسان هم له ملايانو سره نفر لري، او پوهيده چې عربي لارنس هغوي ته بدي ورکړي دي. امان الله چې د عبد الوهاب له لاري خبري کولې، وويل، ملايان يې له دي چې ورته پيسې ورکړي شوي وي له ماسره مخالف دي. هغه پوهيده چې د سقاو زوي د نماينده گی له دروازي سره له همفريز سره خبري گړي دي، مگر متيقن وچې يوازي دنماينده گی د ساتنې او امنيت په باره کې ورسره خبري کړي دي. دا هغه دي چې دا پورته وويل شو. هغه په حقيقت کې فکر کاوه چې دده هڅې چې غوښتل يې افغانستان، ترکيه او فارس په يوتړون کې سره متحد کړي، برتانويان يې پارولي چې محروم يې وگرځوي، مگر دداسې اظهار کولو جسرأت يې نه شوکولی.

برتانويانو خوشحاله وو، کله چې هغه خبري چې دوي ته بهتري وي په هغه اخبار کې را څرگندي شوي چې دوي ورڅخه ډاريدل.

لیري رو ، د پنځو ورځوله پاره تر مطالعې لاندې ونیو ، د یوه نوي راغلي امریکایي له پاره په ډنډونوکي د قابونو پریمنځسل ، کارفرما خپل نوي استخدام شوي نفر پر مخ باندې په خپیرو په داسې توګه ووا هه چې هغې ورته تیاریې ولاړ و . په وریجو کې شګه او په یخ موسم کې د خلکو لوڅې پښې ګرځیدل ، یو تعجب آوره شی معلوم شو .

هغه امان الله ته په یوه سوثره امریکایي لهجې سره د پوښتنو یولست واستاوه چې افغانستان ته نا آشنا و ، په دغو پوښتنو کې د قبایل ، فرعي قبایل او نورو هغو کسانو نومونه ، چې امان الله یې حمایه کاوه ، دهر قبیلې د نفرو شمیر سره غوښتل شوي وو ، د لست له مخې د داسې خاص ډول موجودې کول به په هر ډول شرایطو کې دافغاني قبیلو د خصوصیاتو او طبیعت له کبله ناممکن و ، لیري رو ، په داسې حال کې چې کوم ځواب یې تر لاسه نه کړ استنباط وکړ چې امان الله نه پوهیږي د چاله خوا حمایه کیږي . دهغه د استلال له نیګرتیاو سره سره دغه استباط رښتیاو .

روسان لاړل . سالوویل لیري روته وویل چې زه دامان الله د هلوځلو او زیاتره دې ټکې ته متوجه وم چې له قبایلو سره د مرستې کولو په منظور به امان الله څومره پیسې برابرولې شي .

روسانو په بیر حمانه توګه دبې سیم دستګاه یې یووړله اوویل به یې چې ضرورت ورته نه لیدل کیږي . دامان الله اړیکې ، چې فکر یې کاوه ، دا یو تحفه وه ، بیا و شکیدې .

د روسیې په اخبارونو کې به امان الله ته مشوره ورکول کیدله چې پر دهقانانو باندې د ځمکې د ویش په ذریعه دې ځان وژغوري . روسانو تزاري روس او د افغانستان ترمنځ د ټولنیزو ساختمانونو داختلافاتو په باره کې معلومات نه درلودل ، چې په افغانستان کې د ډیرو ځمکه درلودل کومه معضله نه وه . هغوي خبر نه وچې یو شمیر پښتنې قبایل به په هرڅو کلو کې دځمکو دبیا عادلانه ویش په ذریعه په یو کمونیستي عمل لاس پورې کول ، یوازې په دې تازه کیوکې همقریز خوش او اریان شوي وچې د ایتالیې د وزیر د ناسمو خبرو له مخې معلومات تر لاسه کړي و ، چې د روسي سفیر د سرحدي جغرافیې او رسم رواج په برخه کې معلومات نه لرې . یو ځلې امان الله پوهندي کمونیست ، ام ، ان ، راي (M. N. Roy) ته ویلي وو ، چې زه په خپله هم یو انقلابي او کمونیست یم ،[۲] په حقیقت کې هغه په داسې یو هیواد کې انقلابي وچې هلته یو نفر د ښځو د مخونو دلوڅولو په ذریعه انقلابي کیدي شو مګر کوم برداشت چې هغه د کمونیسي په هکله کړي و ، کوم دیالکتیک یا کوم ټولنیز ترکیب او ساختمان نه و ، بلکې داسې یو عمومي احساس وچې ټول خلک دې خوښ او مساوي و اوسي .

امان الله د کندهار له والی، عبد الکریم سره سختې وویل، چې په نتیجه کې هغه په خصوصي توگه د برتانیې له قونسل څخه غوښتنه وکړه چې ورته اجازه ورکړي شي چې له هند څخه تېرشي او فارس ته لاړشي یا «تر هغه وخته پورې ورته په هند کې د اوسیدلو اجازه ورکړي شي چې موجوده گډوډي ختمه شي.»

خلکو، چې لیدل د هغوي والي هم د وتلو په حال کې و، هغسې چې د امان الله په باره کې فکر کاوه، د دې تشخیص یې وکړ چې څومره یې سرپرسته به پاتې شي. په هندوانو کې هم وارخطایي لیدل کیدله، د فارسي وانانو کورونه د یرغمل کسانو په مقابل کې له هغه وخت نه وروسته سنگرونیول شول چې د هغوي یو تن په جومات کې بې باکې خبرې وکړې، د ډېرو افغاني مامورینو په کورنیو کې داسې یو ډول ناروغې پیدا شوه چې علاج یې یوازې په هند کې کیدلو.

امان الله له ځان سره شخصي یو ولس لکه روپې درلودې، چې هند ته یې استولې وې، چې په چمن کې په یو شخصي کور کې وساتلې شي. د هغه د آشپزخانې موټره چې د هغه په ذریعه د هرات په سفر کې غذاتیاریدله، لا د مخه په لومړي مرحله کې په گرشگ کې و. هغه اعلان وکړ چې خپل ورور، عبد الله، خپله مور او عبد العزیز، د حربیې وزیر، چې خپلوان یې کیده، د خپلو نایبانو په توگه به پرېږدي، ځکه چې دادري تنو په کندهار کې اړیکې درلودې.

هغه د فبروري په دوهم تاریخ په جومات کې له کندهاریانو سره د دوهم ځل له پاره خداي په اماني وکړه او وي ویل چې زه تاسو ته کوم د ویلو شی نه لرم، غواړم د مرستې له پاره هرات ته لاړشم، هغه وویل چې د سقاو زوي ورځ په ورځ پیاوړي کیږي او کابل ورانوي هغه وژړل.

دا ځلې خلک له امان الله سره یوځاي شول. هغوي د امان الله او ښکو او خواشینی ته مثبت ځواب ورکړ، ځینو ورسره وژړل. هغوي په خبرو کولو پیل وکړ، او د داسې شیانو په ویلو یې پیل وکړ چې د مخه ویل شوي نه وو، ځکه هغه پاچا و هغوي د نوروشیانو په ضمن کې وویل، چې والي او د هغه ورور، چې د جلبولو وظیفه په غاړه لري، د کندهار د ځواب او عکس العمل د مخنیوي اساسي وسیله گرځیدلي وو، او وي ویل چې د غه دوه تنه په رښتیا سره ستا د گټو پر خلاف کارکوي. امان الله خپل ورورته په مخ څپېړه ورکړه.

د کندهار خلکو، په داسې حال کې چې د خپل ځان، او د افغانستان د راتلونکي په باره کې

دخپلی بی علاقه گی د نتیجو احساس بی کاوه، سمدستی بی اماده گی وښودله چی اصلاحات وکړي. هغوي چغی وکړي چی موزه په کلکه درسره ولاړ یو او غواړو تاسو بیاد افغانستان د یو زمامدار په توگه ووینو.

امان الله پاته شو، پیسی یی له چمن څخه بهرته راوړلی شوي، د آشپزخانی موټر راوغوښتل شو، غلام صدیق ته په هرات کی پیغام واستول شو، عبد العزیز د کندهارنوي والی مقرر شو.

دوه ورځی وروسته امان الله او د کندهار خلکو یوله بل سره په جدي توگه ژمنی وکړي.

په کندهار کی خرقه مبارک یو مقدس شی دي چی د حضرت پیغمبر (ص) د کورنی دیوي ښځی له خوا د اوښ له وړیو څخه ورته جوړه شوي ده. داسی ویل کیږي چی حتی د کندهار د اوړي گرمی خلک زه ژبلوي او ویل کیږي چی هغسی چی دا مبارکه خرقه د حضرت محمد (ص) په وخت کی معلومیدله، اوس هم همغسی معلومیږي. داسی روایت دي چی د حضرت پیغمبر (ص) تروفات وروسته دهغه زوم حضرت علی کرم الله وجهه مبارکه خرقه یی خپل یو ملگري ته ورکړه چی دهغه له وفات وروسته، مکی معظمی ته نژدي، یو غارته یو وړله شی وروسته له ډیرو کلونو د یو شیخ له خوا بغداد ته یووړله شوه او بیا وروسته له ډیرو کلونو د دي شیخ د اولادي له خوا بخاراته انتقال شوه، اتیاکاله وروسته بلخ ته یووړله شوه چی مزار شریف ته نژدي یوښار دي، او دیرش کاله وروسته د ختیځ په لور د بدخشان فیض آباد ته انتقال ورکړشو. په هغه وخت کی بلخ او بدخشان افغانستان جز نه وو، لیکن د اتلس پیړی د نیمایی په شاوخوا کی، احمد شاه ابدالی بلخ او بدخشان یی تصرف کړ. دحضرت محمد (ص) مبارکه خرقه هغه ته ورکړي شوه او هغه یی له ځان سره کندهارته یووړله، چی دهغه مقبره تر اوسه پوري په هغه ځاي کی شته.

دکندهار په اخبار کی داسی لیکل شوي وو: «دغه مبارکه خرقه کندهار یی مقدس کړي او د افغانستان دغه مرکز ته یی خاص برکت وربه برخه کړي دي.»

په هغه وخت کی یو وړوکی جومات جوړشوي و، چی دخرقی مبارکی د جومات په نوم سره یا دیده او هغه ځاي چی مبارکه خرقه په یوه صندوقچه کی په هغی کی ایښودل شوي وه، په ښکلو شمع دانونو او قندیلونو ښکلی کړي شوي و. دخاصو خطرونو په وخت کی به د مبارکی خرقی صندوقچه یی خلاصوله او هغی ته به یی په خیر سره کتل. په دي وجه کندهاریانو به د دي احساس کاوه چی خداي (ج) د دوي په منځ کی زور اچولی دي.

د فبروري په څلور ویشتم تاریخ مبارکه خرقه له صندوقچې سره بولوي جومات ته یووړل شوه، چې د ښځو په شمول چې مخونه یې پټ وو، د کندهار ګن شمیر ښاریان ورته راټول شوي وو، د ورځې په یوه بجه امان الله په خاصو مذهبي مراسمو سره صندوق خلاص کړ او مبارکه خرقه ښکاره شوه، هغه مبارکه خرقه یې ونه ښوروله. سپدان، چې د هغه شخصیت او لاده وو، چې دا خرقه یې اغوستله، امان الله سره نژدې ولاړوو، همداسې ځینې معزز ملایان هم نژدې ورسره ولاړ وو، هغوي خرقې ته متوجه وو، مبارکه خرقه د دوو ساعتوله پاره په آزاده فضا کې ایښودل شوې وه، او حتی هغو کسانو چې کولی یې شول مبارکه خرقه له لیرې څخه په مشکل سره ووینی د مذهبي احساساتو له امله لړزیدل.

امان الله په جګ آواز سره د عقیدت نذرانه وکړه او وې ویل، « لا اله الله محمد رسول الله » دا د عقیدت د هغې نذرانې په شان و، چې غلزیانو په پر ځینو هغو کسانو باندې تکرار رول چې د هغوي لاس ته ورتلل او په دې کار سره هغوي یې ځان ته معلومول چې دغه کسان د هغه په شان کافر شوي نه دي، قران شریف راوړل شو. امان الله، په داسې حال کې چې پر هغه باندې بې خپل لاس ایښی و، وعده یې ورکړه چې د شریعت مذهبي اصولوته به احترام کوي. ځینې ملایان اوچت شول او پر هغه قران باندې یې لاس کیښودل او وعده یې ورکړه چې قوا به ورته برابروي، نور به هم وراندې راتلل او همداسې وعدې به یې کولی، جمعیت العلما، په خپله یوه اعلامیه کې وویل، څرنګه چې امان الله قسم کړي دي چې شریعت ته به احترام کوي، نو هر څوک که ورسره مخالفت وکړي، پر هغه باندې به د باغی حکم وشي او د مرګ په سزا به محکوم شي.

مسلمانان په ځینو خاصو مراسمو کې هغه څاروي حلالوي چې د همداسې مراسمو له پاره یې ساتلي وي. دا همداسې مراسم وو، پرونه او غوایې جومات ته راوړل شول، امان الله، حتی په هغو یوولسو ساعتونو کې چې بري یې تر لاسه کړي و، د اسلام له ساحې څخه هم لیرې فکر کاوه او د نورو فرقو د مذهب په فکر کې هم و، هغه فرمان صادر کړ چې غوایې دې د هندوانو د نارضایې په خاطر حلال نه شي، نو یوازې د پسونو په مري چړې راکش شوې، د پسونو غوښې تر یو وخته پورې د جوماتونو پر دیوالونو باندې وځړولی شوې او بیا یې غریبانو ته ورکړې چې و یې خوري.

اسلام چې افغانستان یې تل متحد کړي دي، اوس د دې مذهبي مراسمو په دراسه کې،

امان الله د قار او هیجان هغه شدت ولید چې د کندهار د معتبرو خلکو عادت وو، ډېرو کسانو بیرغونه د نښانې په توګه دهغو کسانو له پاره ودرول چې غوښتل یې خپل نومونه ثبت کړي، خلک ژر تر ژره بیرغ لاندې سره راټول شول. امان الله وویل هر څومره چې ژر وکړي شوموږ به د کابل په لور حرکت وکړو. هندوانو موافقه وکړه چې د لارې د هر رباط دغلې او دانې مصرف پر ځان ومنی.

امـان الـله ته دوبـاره امـیـد پیـدا شـو، هغـو د خـوش بـاوري لـه پاره یو بل دلیل درلود: نادر راروان و.

همفریز په اخره کې عطأالحق ته د فبروري په شلمه نیټه معلومات ورکړ چې لویه برتانیه خپله نماینده ګي له کابل څخه وباسي.

هغسې چې همفریز توقع کوله، هغه ډول خوش طبعي او خوش اخلاقي نه لیدل کیدله، چې عطأ الحق دهغه غوښتنه کړې وه چې برتانیه به ورسره څنګه مفاهمه وکړي او آیا قونسل به په کندهار کې پاته شي که نه. دهمفریز ځواب داسې و، چې عطأالحق لا هم تلګرام کولی شي، او قونسلګري به همزمان له کندهار څخه وایستل شي. د عطأ الحق د خوش اخلاقي د ضمانت وروسته تصمیم نیول شوی هم و.

په هغه وخت کې چې دا دوه کسانو سره خبرې کولې، سخته وا وره وریدله. د کابل هوایي ډګر څوورځې د الوتکه د راکوزید لوله پاره مساعد نه و، او د نورو ورځو د ښه والي دور نماهم نه لیدل کیدله. همفریز عطأ الحق ته وویل، چې د خلکو د ایستلو د وروستی ورځې له پاره الوتکوته اړتیا لري، دهوایي ډګرمخ په ډېره چټکې سره خطر ناک ګرځیدلی و، او د برتانیې نماینده ګي په دې مورد کې هیڅ نه شو کولی چې که پرسونلي یې پر ځمکه بنو ییدل، هغه له عطأالحق څخه د هغه زیاتي مهرباني په خاطر مننه وکړه او څرګنده یې کړه چې دا به سیاست مدارانه عمل نه وي چې هغه په بدخلقي سره ولیږل شي.

عطأ الحق له او والوتکو سره موافقه وکړه، او بیایې د خپلې هیلې په خاطر د خبرواترو بند او پست ونیوچې نماینده ګي به ژربیرته راشي. هغه وویل چې د سقاو د زوې قدرت په هیواد کې پراختیا مومي او هم دهیواد له ګوټ ګوټ څخه د تابعیت نوي اعلامیې ورته استول کیږي. هغـه د څـوتـنـو نومـونـه یـاد داشـت کـړل چـې پـه هـغـه ورغ بانـدې خـپـل تابعـیـت یـې اسـتـولی وو، مګر همـفـریز په خـاص ډول تر اغـیـزې لاندې نـه وتللی کـه څـه هم له هغـو کسانو څخه یو غوث الدین نومیده.

وروسته عطأ الحق دغه مهمه خبره وکړه، «نوي پاچا، هر څوک چې وي» هغه وویل، دا پاچا به داسي سهوي بېاتکرار نه کړي چې له برتانيې پرته له کوم بل هيراد څخه د مرستی په لټه کی شی عطأ الحق وویل، «امان الله د زړه له کومې د انګليسانو دوست دي او په بهرنیا نوکی برتانيه يوازي بهرنی وه، چې هغه ورته احترام قابل و، مګر هغه دخپلو حريصو اوبې تجربه وزيرانو له خوابې لاري شو، هيواد د غلام صديق له خوا زيات په داخلي جنګونو اخته شوي و، نه دامان الله له خوا، اوس افغانان د برتانيې مرستو ته سترګی په لاره ووچې له انارشی څخه يې خلاص کړي.»

وروسته د همفريز تبصره داسی وه، «دغه او ډيري نوري غوري تبصري بی له کوم شکه تريوي زياتی اندازي پوري دښوشيانو د منځ ته راتلو په باره کی دښې پيشګويې کولو له مخی شوي دي، مګر په موجوده وخت کی له موږ سره د افغانانو د ټولو طبقو د پادونی وړ دوستی يو مسلم شی دي.»

په نورو دوو ورځوکی همفريزد نماينده ګی ټول هغه سندونه وسوزول چې کاپی کافی يې په نورو ځايونو کی وي، نوکران يې وګومارل چې دنماينده ګی څارنه وکړي، لس د تيز رفتار موټرونه يې په ګراج کی قلف کړل، او «د منظمو معلوماتو دراټولو له پاره يې ترتيبات ونيول.» همدا راز هغه له روسانو سره خبري وکړي او په برتانيوي الوتکه کی دهغوي د نجات په خاطر د چوکيو پيشهاد وکړ. دهند حکومت يوه مياشت دمخه داسی څرګندونه کړي وه، «دا به همفريز له پاره يو عادي او معمولی روش نه بلکی يوه غوره پاليسی وي چې د (روسانو) د ژغورنی په مورد کی هم ميلان وښيي. تر هغه ځايه چې موږ پوهيږو، روسان په اوله مرحله کی زموږ د الوتکه د راکوزيد وخنډنه دي ګرځيدلی.» روسانو ومنله، مګر خپه شول.

د فبروري په ۲۳ نيټه هوا صافه وه، مګر يوفټ واوره په هوا يې ډګر کی پاته وه، يوه الوتکه راکوزه شو، مګر پرواز يې ونه کړي شو. بل سهار همفريز څوسوه تنه افغانان راوغوښتل چې هوايي ډګر ته دي راشی او پر واورو باندي دي وګرځی هغوي پرواوري باندی وګرځيدل او ميدان يې داسی هوار کړ لکه چې سمنټ شوي وي. وروسته يې بيلونه راواخيستل چې د الوتکو د ځغاستی کرښه پاکه کړي باد به کله له يوي خوا را چليده او کله به له بې خوا.

مګر الساتو الوتکو په دي بريالی نه شوي چې ځمکی ته راښکته شی او د فبروري په ۲۵

نیته ټولی د پیښور په لورو الوتی. په وروستی الوتکه کی، چی د کابل د شاوخوا غرونو د پاسه په پرواز کی وه، دا علیحضرت مختار وزیر سر فرانس همفریز، ناست و.

د دسمبر له ۲۳ نیتی راهیسی شاهی هوایی قوا په ۸۲ الوتکو کی ۵۸٦ تنه یی انتقال کړي وو، دغی الوتکی چی د ژمی په منځ کی د غزنی هیواد په فضا کی خپل پروازونه سرته ورسول یی له کومی بدي پیښی خپل مسافرین یی ورسول.

دا دنړي لومړنی هوایی انتقالات وو.

ددغه انتقالات په بشپړ ډول له هغی ورځی نه اوو، کاله وروسته بای ته ورسیدل چی همفریز د برتانیی دلومړی وزیر په توګه د افغانستان له پولی څخه د لومړي ځل له پاره تیر شواو یوه نوي دوره یی پیل کړه.

نادر او دهغه ورونه دفبروري په ۲۳ نیته په هغه بیړي کی بمبیی ته ورسیدل، چی د قیصر هند په نوم سره یاد یدله.

د بمبی سیاسی څانګی ته دهغوي د رسمی هر کلی امرپه یو تلګرام کی په دي ډول شوي و:

«... دټولو دوستانه اړیکو په درلودلو سره سره... دهند حکومت ډیر افسوس کوي چی په افغانی چارو کی دهغوي لاس نه وهلو پالیسی، دوخت څرنګوالی، تربوي اندازي پوري په خپله د نادر ګتیی متاسفانه د احترام کولو او اسانتیا و د برابرولو په لاره کی مانع ګرځی که نه نود هند حکومت به په خوښی سره دداسی یو سرشناس سړي احترام کاوه او اسانتیاوي به ورته برابرولی.

«د هند حکومت باورلري چی هغه به ددغو دلیلو توقدردانی کوي چی ولی ورته خاص تسعیلان ونه نیول شول او هم هغه انګیزي به په نظر کی ولري چی زمونږ په هیلو کی پرتی دي او ترڅو پوري چی هغه په هند کی تشریف لري هر را زسیاسی فعالیتونو څخه دي ډډه دوکړي او څومره چی کولی شی ژر دي افغانستان ته ځان ورسوي. »

« په بمبی ګی د تم کیدو په موده کی هغوي دي باید تر څارنی لاندي ونیول شی... بکسونه یی باید بی له کومی پوښتنی څخه له ګمرک څخه تیر شی. لطفاً له بیړي څخه دراکوزید وپه وخت کی دهغوي د مرکی او د وروستی حرکتونو احوال په تلګرام کی راکړي. »

کله چی قیصر هند نومی بیړي د خپل اوږد سفروروستی پړا وونه دبمبیی بند په لور ووهل، او ټول مسافرین چی په ریل کی وو یو مشهور طاق ته کتل چی دهند مدخل یا «ګیټ وي آف انډیا » په نوم سره یادیده، نادرله یوبرتانوي مامورفریک (Fereke) سره یوي ګوښ ته شو.

نادر په شوق سره هڅه کوله چې له هغه څخه د هند د حکومت په دې راز باندې پوه شي چې دهند واکمنان کوم افغان ته په رښتیا سره ترجیح ورکوي.

نادر وویل، «زه په کلکه سره د برتانیې طرفداریم، او دهغه پالیسي دغوره کولو شوق من یم چې دهند حکومت ورته ترجیح ورکوي ترهغې چې دا پالیسي له قوي او مستقل افغانستان سره سازګاره وي.

«زه په واضح توګه تعهد نه شم کولی چې امان الله یا کوم بل څوک حمایه کړم.»

نادر وویل چې امان الله ورته ویلي وو، د روسیې له لارې دې افغانستان ته راشي، هدایت الله، د امان الله مشرزوی، چې په فرانسه کې په تحصیل بوخت وه، دمخه په هغه لاره راغلی و، مګر هغه (نادر) د هند لارې ته ترجیح ورکړ.

درې واړه ورونه په بمبیې کې یوازې دومره موده تم شول چې خپلې رسالې، چې د نادر لاسلیک په کې و، په چاپ ورسوي. رسالې داسې پیل شوې وې:

د لوی ښښونکي او مهربانه خدای په نامه.

«ګرانو قبایلیانو، هیوادوالوته زما د زړه له کومې مشوره.»

په رسالو کې ویل شوي وو چې د افغانستان وقف شوي خدمتګاران نادر او د هغه ورونه هیواد ته د خدمت کولو په خاطر راغلي دي.

«نه زه او نه زما کوم خپلوان د افغانستان د پاچاهۍ خیال لري.»

وروسته نادر د دهلي له لارې د پېښور په لور روان شو. هغه په بمبیې کې له فریک (Freke) سره یو بل ملاقات وکړ، فریک د هند د حکومت پیغام یې په شفاهي توګه ورته ورساوه، او ورته وې ویل چې د هند د حکومت او ستا خواهش سره یو دې او هغه د افغانستان مخکنی هوسایي، اتحاد، پیاوړتیا او دوستي ده. د دې باورلري چې د یو وطنپال او دو راندیش افغان په توګه به ده دا درک کړې وي چې که په موجوده کشاله کې د همدردۍ له مخې په خپلو داخلي چارو کې زموږ مداخله ونه منی، نو دده مقاصد به له خطر سره مخامخ شي او پر مختګ به ونه کړي. بیا هم، دې دې باورولري چې کله چې په یو متحد افغانستان کې سوله دوباره ټینګه شي، دهغوي د دوستۍ ثبوت به کم نه شي.»

د فریک شخصي انتباه داسې وه، «چې نادر په خپل مورد کې داخبره ته ده رد کړي چې ممکن دې په خپله د افغانستان د اوچت قدرت کاندید شي.»

دفبروري په ۲۵ نیټه دري تنه مهم کسان له دریوخوا وڅخه دسفر په درو طریقو سره پېښور ته ورسیدل: هسفریز له کابل څخه د الوتکی په ذریعه نادرله ببېی څخه د اورګاډي په ذریعه او علی احمد د مومند و دسیمی له لاري په خپلو پښو دهند تر اداري لاندي سیمی پوري لاړ او له هغه وروسته تر پېښوره پوري په هغه موټر کی لاړ چی د خوا خوږي سیاسی نماینده له خوا ورته استول شوي و.

# يود يرشم فصل

## د ۱۹۲۹ کال د فبروري له ۲۵ څخه

## د ۱۹۲۹ کال د مارچ تر ۲٤ نيټې پورې

يوازې تصادف، نادر او همفريز، په يوځاى او يو وخت کې سره پېښ کړي وو، مګر د هند حکومت، دهغه فوق العاده اعلان له نظره چې منشا به يې پېښورو، متردد و، چې همفريز ته اجازه ورکړي چې له نادر سره خبرې وکړي.

همفريز داسې تبصره وکړه، «که زه ورسره ووينم که ونه وينم، دروسيې سفارت به ومنې چې ما ورسره خبرې کړې دي.

«... تقدير ما او نادر خان يوځاى کې سره پېښوي. که چېرې زه د هغه د ليدو په باره کې ميلان ښکاره نه کړم، نو هغه او دهغه ورونه به، چې په افغانستان کې زما نژدې او پخوانى ملګري دي، ټول حالات غلط تعبير کوي... هرڅه چې زه وکړم، روسيه او د هند د يوې شخصي برخې مطبوعات به راته بدوواېي، مګر دافغانستان له يوه بانفوذه کورنې سره دښمنې کول... ماته هغه بدترين شى ښکاري چې کېدى شي پېښ شي.»

له هغه وخت نه راهيسې چې همفريز له نادر سره ليدلى وو، له پنځو کلو څخه هم زيات وخت تېر شوى و. ده په هغه وخت کې له نادر سره دومره تود احساس نه و ښودلى او کله چې برتانويانو دخپلو ګټو مقابل کې دهغه موجوديت په سرحد کې خطرې ګڼلى و، نو د ټول شيانو په باره کې دهغه د پيشګويې خبرې بې ارزښته ګڼلې وې. په رسمي سند ونو کې نادر يوځلې د

« دقضيي ورانكار » په توګه معرفي شوي و ، هغه ته د « يو واقعي دسيسه كار » نسبت هم ورکړ شوي و ، مګر افغانستان د (Duesexmachina) ياد زړي پرزي په توګه په بيرته راتګ سره چې ګډوډي له منځه يوسي ، دغه فعاليتونه په هغه چاكې مطلوب او مرغوب ښكاره شو چې اوس د برتانيي په ليكنو كې « يو فوق العاده باكلتور افغان » او « په افغانستان كې د بهترين فكر څښتن » په توګه معرفي كيدله. »

شامحمود ، د نادر ورور ، چې په هيواد كې و ، دسقاو د زوي له خواسهيل ولايت ته په سفر بوخت و ، ليكن هغه (شامحمود ) د سقاو د زوي له نماينده څخه ، چې احمدشاه نوميده ، كاراخيستی و ، چې نادر ته پيغام وليږي چې هندي سواد اګر ام. اي. حكيم (M. A. Hakim) دي په كابل كې ورسره ملاقات وكړي.

« حكيم د شاه محمود له خوا دغوښتل كيدو په باب ځان ناپوه معرفي كوي.

هغه يوه برتانوي تبعه او د يو شركت غړي دي چې دهغه شركت نماينده ګان په كابل كې زياتي تجارتي معلوملي لري او د شركت له خوا هغوي ته اجازه نشته چې كابل ته لاړشي... خبردي چې (هغه) يوزيات مقدار پيسې په خپل واک كې لري ، چې ورته د مخكني افغان حكومت له خوا پيشكې وركړي شوي وي. »

په خپله نادر د فبروري په ٢٧ نيته له شاولي او هاشم سره پيښور ته را ورسيد. هغوي په يو امانت اخيستل شوي سراچه كې اوسيدل.

برتانويانو داسې راپوروركړ ، « ډير هيأتونه ورته لاړل چې ورباندي فشار راوړي چې كندهار ته دي لاړشي او امان الله حمايه كړي او په مودبانه توګه ورته وويل شوچې خپلو وظيفو ته دې متوجه شي. »

د امان الله دوه تنه نماينده ګان د پيښور په لور دهغه مقصد په خاطر روان وو چې دهغه مياشت په سركې د سقاو د زوي نماينده ګان تللي وو : مقصدبې د نادر راوستل و.

امان الله نادرته يولنډ ليک استولي و چې په كې د پيښو لنډيز يې ليكي و او په شاهانه لهجه چې يو پاچا خپل يو مامورته وايي ، ورته ليكلي وو چې كندهار ته دي راشي. د مخه تردي چې د امان الله نفر را ورسيږي ، نادرله همفريز سره ملاقات وكړ په اوله كې نادر اصرار وكړ چې همفريز ورته ووايي د برتانيي حكومت به چا ته ترجيح وركړي چې د افغانستان د پاچا په توګه ووينې ، او په تيره بيا چې كه امان الله دمنني وړوي.

«افغانان د موجوده لانجې په هکله دلویې برتانیې د کړو وړو په باره کې خپل فکر په اساني په کار اچولی شي. موږ به هیڅ هغه څه نه کړو چې دهغوي په ازادي کې مداخله وي، او هم د هغوي له ضعف څخه به استفاده ونه کړو.»

نادر له همفریز څخه د یوپخواني دوست په توګه د غوښتل چې ورته مشوره ورکړي چې باید څه وکړي. همفریز ورته مشوره ورکړه چې مجلس دې دایر کړي او قبایلوته ووایي چې یو تن دې دخپل پاچا په توګه ومني، امان الله یا کوم بل څوک.

وروسته، له دېروو ختونو څخه په یوه وخت کې، دعوامو د مجلس له هغې خبرې څخه به کاروا خیست چې چمبرلین سهواً کړې وه، همفریز هغه خبره یې نادر ته نقل قول کړه اووې ویل چې لویه بریتانیا به اماده وي هغه چاته د دوستۍ لاس ورکړي چې وکړي شي یو مستقر حکومت منځ ته راوړي.

نادر وویل، «دېرې اشتباګانې چې زما په فکر کې دې له منځه تللې دي.» هغه خپل د راتلونکي پلان لست داسې بیرون نویس کړ: په پېښور کې له درو ورځو تم کیدو وروسته به دې او دده یو ورور د جلال آباد په لور لاړشي او په همدې وخت کې به یوبل ورور یې په سهیلي ولایت کې له شاه محمود سره ملاقات وکړي- هغه د برتانیې په ستاینو سره خبره ختمه کړه چې، «کله چې موږ په دې بریالي شو چې خپل هیواد منظم کړو، افغانان به هیڅکله دغه شیان هیر نه کړي.» او بیا نادر دغه خبره یې د «انشاء الله» په ویل وسره محدوده کړه چې هر افغان یې د یوې پروژې په بنسټ اینبودلو کې وایي.

هغه داسې هم وویل چې نه غواړي د امان الله او امروته اطاعت وکړي.

څو ورځې وروسته همفریز یو شخصي تلګرام د عطأ الحق له خوا ترلاسه کړ چې ورځینې غوښتنې یې ووجې نادر دې د سقاو زوي کابل ته واستوي چې ددې را رسیدو په هیله د سقاو زوي امرو کړ چې د نادر د استقبال په ویاړ په هوا یې ډګر کې دې یوه دولت دروازه جوړه شي. هغه په تمام معنی سره غوښتل دخپل قدرت یوه برخه نادرته ورکړي او هغه خپل صدراعظم مقرر کړي چې هغه له دې عهدې څخه به وتلی شو. دې بانډیت د اشرافیت قوي احساس له هغو ډېرو کسانو څخه درلود چې په اشرافیت کې پیدا شوي وو.

په عین حال کې احمد، چې د ډین په هوټل کې اوسیده په دې هڅه کې و چې له سرحدي قبایلو سره خبرې وکړي، لیکن دهغه له رسیدو څخه یوه ورځ وروسته د پولیسو یو ګارد د دهد

هستو گنځی په شاو خوا کی موظف شو او د برتانوي سیمی هیڅ یو قبایلی سړي ته اجازه نه وه چی ورسره وویني. هغه به کله کله له خپل محل ځخه په موټر کی دباندي تللو، مګر برتانویانو په دي باندي متیقن وو چی هغه « دد سیمی په جوړولو کی په سختی سره کولی شو چانس تر لاسته کړي. » وروسته برتانویان پوه شول چی هغه افریدو ته یو خصوصی لیک استولی دي او غوښتنه یی کړي ده چی له هري برخی ځخه دي ورته زرتنه ورکړي هغه له شاولی سره غږیدلی و او وروسته له هغه ځینو نورو ویلی ووچی ممکن د اوسیدلو له پاره کشمیر ته لاړشی.

کله چی علی احمد له همفریز سره ملاقات وکړو ویل، « زه پیسو ته عاجل ضرورت لرم، زه فکر نه کوم چی د برتانیی حکومت به دومره تنګ نظري وکړي او په داسی وخت کی چی زه پیسو ته ضرورت لرم، خپله پولی مرسته به راباندي و دروي. زه د برتانیی دحکومت عصري دوست یم او دا ستاسو چانس دي، چی بیا به بیخی تر لاسه نه شی. که زه یو ځلی پاچاشم، نو دا به خپله لومړي وظیفه وګرځوم چی له برتانیی سره د تهاجمی تدافعی تړون وکړم او په افغانستان کی د بالشویک فعالیتونه محوه اونابود کړم. »

همفریز یو ځلی بیاهم د عوامو د مجلس له هغی جملی ځخه استفاده وکړه چی په بی فکري سره شوی وه چی، « په دي توګه تاسو باید دپولی مرستی تولی هیلی له فکر ځخه وباسی چی تاسو تشویقوي چی پاچاهی تر لاسه کړي. »

علی احمد ځرګندونه وکړه چی، « پیسی ممکن په خصوص توګه تاد یه شی. » همفریز وویل له داسی ځرګندونی ځخه بدوړم.

وروسته علی احد یوه اشاره وکړه چی که زه د برتانیی کومه مرسته تر لاسته نه کړم نومجبور کندهار ته به لاړشم او دامان الله ملا تړ به وکړم ولو چی له هغه او دهغه له تولو عملو نو ځخه متنفریم.

همفریز ورته وویل، چی د اروپا د سفر په وخت کی، ماته محکومولی چی په آزاد ډول دي له امان الله سره عدم وفا داري ځرګندوله « ته دخپل تصمیم په نیولو کی آزاد یی. »

علی احمد وویل، دمخه تردي چی دخپل بل حرکت تصمیم ونیسم، غواړم ځو ورځی په پیښور کی پاته شم. همفریز ورته وویل چی زیات پاتی نه شی.

ځوورځی وروسته نادرله برتانویانو ځخه پوښتنه وکړه چی آیا علی احمد ته پیسی ورکول کیږي که نه، او آیا ورته اجازه ورکوله کیږي چی افغانستان ته بیرته لاړشی که نه، ځواب

داسي وچي افغانستان ته به لاړشي خوپيسي ورته نه ورکولي کيږي. په هغه ماښام دا پيغام واستول شو:

«نن سهار علي احمد له نادر خان او دهغه له ورونو سره او ږدي خبري وکړي. دسهار له ځلورو بجو وروسته هغه نشه و.» علي احمد پيشنهاد کړي وچي بوله دوي ځخه اسير کيږي. نادر اصرارو کړ چي لومړي دي بايد دسقاو زوي محود شي.

داهغه وخت وچي علي احمد خپل هغه زوي، چي ورسره په الوتکه کي پيښور ته تللي و، افغانستان ته واستاوه چي که امان الله يي بيرته قبول کړي.

ځو ورځي وروسته د هند حکومت له نوي ستونزي سره مخامخ شو: «په ځه ترتيب سره نادر او علي احمد ته په منطق سره په اثبات ورسول شي چي ژر دي حرکت وکړي ځکه چي هغوي د هر کلي له لازمي مودي ځخه زيات تم شوي دي.»

نادر اول لاړ، هغه او شاولي د جنوبي ولايت په لور خوځيدل، حال دا چي هاشم د جلال آباد په لور روان شو، نادر لومړي په ټل کي تم شو چي په برتانوي سيمه کي يي موقعيت درلود. ددي سيمي د کومي سياسي نماينده ار ار مکوناچي، نوميده چي دده د کابل پخواني دوست و، په داسي حال کي، چي نادر له ميرمن مکونا چي سره د مارچ په اوومه نيټه يوتولنيز صحبت درلود، د يو «شخصي دوست په توګه» يي دمکونا چي دمشوري غوښته وکړه.

نادر وويل، «ژرپيښيدونکي خطر دادي چي امان الله، په داسي حال کي چي ځان په جنوب لويديز او شمالي ولاياتوکي پياوړي کړي، تريوي اندازي پوري به د روسانو په لاس ولوېږي او بيا، په داسي حال کي چي ځان به په دي باندي قادر ونهويني چي د کابل، جنوبي او مشرقي ولايتونو واک بيا په خپل لاس کي ونيسي، هڅه به وکړي، لکه ځنګه چي په ۱۹۱۹ کال کي يي کړي وه، د هند پر ضد د جهاد په اعلانولو سره به د دغو قبايلو مخالفت خان ته واړوي. په داسي يو خطر ناک پلان کي به دي دخپلو اهدافو په خاطر د روسانو له خوا وهڅول شي او يوازي په کابل کي به له ماتي سره مخامخ شي که چيري د کابل، جنوبي او شرقي ولايتونه د يومنځګړي سړي ترقيادت لاندي، چي وکولي شي هغوي اداره کړي، د تير ايستل کيدو او تباهي ځخه يي خلاص کړي شي، سره متحد شي.

نادر پوښتنه وکړه، «د دي پلان په باره کي ستانظر ځه دي؟»

مګو ناچي وويل، «زه صلاحيت نه لرم چي په دي موضوعاتو باندي په رسمي توګه خبري وکړم»

«زه په دې باندې بیخی پوهیږم، مگر زه له تاسره یوازې دهغې یو پخوانی دوست په توگه خبری کوم چی په ډاگه سره له ماسره دې تل ښه سلوک کړی دی.»

مگر نا چی وویل: «ماته کمزوري نقطه داشی برېښی چی هرد غسی بی علاقی او بی طرف منځگړي به دقبایلو له خوا بی اعتباره وي. قبایلیان به پر هغه باندې شکمن شی چی کوم یل سړي ته د تسلیمولو په منظور به هغوي په لومړي مرحله کی ترکنترول لاندې راولی، بدگومانی دعلی احمد په واسطه زغل شوي وه، او داسی ښکاري چی دهغه دسقوط یو دلیل همدا شی وي.»

نادر وویل: «زه دعلی احمد په ارتباط له تاسره موافق او کوم خطر چی تاسو دهغه ذکرو کړیو واقعی خطر دي.

نادر ادامه ورکړه: «زما په ارتباط تاسو د جنوبی او مشرقی ولایتونو د پېښېدونکی وضعی په باب څه انتباه اخیستی دي؟»

«هغو قبایلیانو، چی ماورسره خبري کړي دي، راته ویلی دي چی تیاري د لارښوونو پیروي وکړي او حتی داچی تا د امیر په توگه منی، مگر هغوي فکر کوي ته به ناروغ وي او د پاچاهی کومه هیله به ونه لري.»

نادر وویل: «زه په رښتیا سره ناروغ یم، مگر اوس ډیر ښه شوي یم. اصلاً ماهیڅ فکر نه درلود چی د پاچاهی ادعا وکړم خوکه دي کار ته مجبور شم، ممکن ویې منم.»

وروسته نادر دروسی خطر ته مخ واړاوه او وې ویل چی که څه هم زه مداخلی معلومات کم لرم خو پوهیږم چی تر اوسه پوري روسانو د امان الله سره په ښکاره توگه مرسته نه ده کړي.

شاولی خبره قطع کړه او وې ویل، «هغوي ورته الوتکی ورکړي دي.»

نادر وویل: «ما اوریدلی دي چی له روسی منابعو څخه پیسی دشخصی کسانو او تجارانو په واسطه په داسی طریقی سره برابریږي چی واقعی منابع یې پټیږي.» وروسته نادر د مکوناچی مرستیال ته خپله نظریه څرگنده کړه چی د روسیی اقتصادي مسئله او سیاسی مشکلات به د هغه هیواد له یو مانع وگرځی چی په څرگند ډول مداخله وکړي، حتی که وغواړي دغسی یوشی وکړي.

نادر وویل: «دا یو نه منونکی شی دي چی دسقاو زوي به په کابل کی په اقتدار پاته شی، او زه فکر کوم دا به ناشونی وي چی جنوبی او مشرق ولایتونه به امان الله دوباره ومنی، په تیره

بیا تر هغه وخته پورې چې د هغه موجود مشاورین محمود طرزي، غلام صدیق، عبدالعزیز او نورو ورځینی راتاووې، د غو مشاورینو د هغه پالیسی د حتمي نتیجو په باره کې نابینا وو چې امان الله یې عملي کاوه.

مکوناچي نادر ته هغه پیشګویې ورپه یاده کړه چې په ۱۹۲٤ کال کې، کله چې خداې په امانی بې کوله، کړې وه چې په کمه موده کې به هغوی ووینی چې افغانستان د امان الله د چټکو ریفورمونو په نتیجه کې وران شي.

شاولي سمدستي یوه نوې پوښتنه وکړه اووې ویل، «ولې امان الله په هند کې د خلافت په جنبش کې دومره شهرت لري؟»

مکونا چي ځواب ورکړ، «زه د خلافتستانو په باب زیات معلومات نه لرم مګر ماته داسې ښکاري چې هر هغه څوک چې په کوم وخت کې برتانویانو ته کوم تکلیف ورکړي وي، دخپل ولس قهرمان ګرځي. په خپله د نادر محبوبیت له هغوي سره ممکن زیاتره د حقیقي جنبې پرځاې تظاهري جنبه ولري او زیاتره د هغه ستونزي له مخې وي چې هغه مورږ ته په ۱۹۱۹ کال، په تل کې راکړې و.»

نادر په دې خاطر ګیچ پاته شو. هغه، په داسې حال کې چې شاولي ته مخ واړاوه، د مکو ناچي د ساده خبرې کولو پر عادت باندې یې تبصره وکړه. وروسته یې وویل چې علي احمد هیله لري چې د برتانیې د سیمې د افریدو او مومند و قوازیاته کړي، چې پر کابل باندې غلبه حاصله کړي او د مکونا چي د نظر یې غوښتنه یې وکړه.

مکونا چي وویل: «آیا ته زما نظریه د افغان له نقطه نظره غواړې که د برتانیې له نقطه نظره؟»

نادر وخندل او وې ویل، «تاسو له خپلو قبایلو سره د داسې مداخلې په باب خپله نظریه کلونه د مخه په کابل کې راته څرګنده کړې ده، او زما له یاده نه ده وتلې، زه غواړم پوه شم چې تاسو د افغانی نقطه نظره څه فکر کوې.»

«ماته دا اساس بریښي چې افغانان دې په خپله معضله حل کړې بې له دې چې له بهرڅخه ورسره مرسته وشي یا یې په چارو کې لاس وهنه وشي.»

«دا هغه شی دې چې ما علي احمد ته وویل، مګر د دې پلان په باره کې یوبل اعتراض شته، او هغه دا دې چې دا به روسانو ته لاره خلاصه کړې چې له مقابل سرحد څخه مداخله وکړي.»

مکونا چې ځواب ورنه کړ: هغه هڅه کوله چې پر روسیې باندې بحث وه کړي. نونادر وویل په هر حال، ممکن يو موفق پلان نه وي، په دې چې عالي کومشنر د علي احمد د هوټل پر کوټې باندې پیره دار دروليو، چې خلک د هغه ملاقات پرې نه ږدي.

د هغې شپې په وروستیو برخوکې شاه محمود، چې دبندر له بلې خوا څخه غوښتل شوي و، پاړه چنار ته راورسید، چې دسقاو له زوې څخه یې یو مکتوب راوړي و. نادر چې هغه ولوستلو نود زړه له کومې یې وخندل. يو مطلوب چې هغه يې په خاص ډول په تعجب کې واچاوه داسې و:

«ماتول د غه شیان ستاله پاره کړي دي. دا ډیر یوناشونې کار دي چې زه دخلکو له خوا پاچا وټاکل شم. که ته له ماسره دوستانه اړیکې ساتې او له ماسره مرسته کوي، زه کابل ته ستاد راتګ په باه کې کوم اعتراض نه لرم چیري چې ته به له ماسره هیڅ مشکل ونه لري.»

نادر له شاه محمود څخه ده د مختلفو قبایلو د کړو وړو پوښتنه وکړه چې دسقاو د زوې د بوهیأت په څیر هلته تللي و، او هغوي يې څیرلي وو، ځواب داسې وچې له ځینو غلزیانو، له بري موند لو وروسته دهغه ژوند په خطر کې و، اوپه پای کې دسق

نادر وویل: «هیڅ داسې يو عمل باید ترسره نه شي چې خلک داسې فکر کولو ته اړکړي، چې ګوندي موږ له امان الله سره دښمني کووا و یا که چیري په خپل مقصد ونه رسید و، عواموته شرمنده او رسوانه شو.»

شاه محمود دیو استازي په توګه ولیږل شو چې خلکو اعتبار ترلاسه کړي، او دنادر له خوا لیکونه هم ورته ورکړل شوي ووچې خلکو ته يې بوسي. هغه ته ویل شوي ووچې تر هغه پورې چې په مشرقي ولایت کې دهاشم دلیدنې کتنې نتیجه معلومه نه شي هیڅ دي ونه ګړي، ځکه که چیري هغوي دهغه ولایت حمایه او ملاتړ هم تر لاسه کړي نو دري واړه ورونه کولی شي کابل ته لاړشي. شاه محمود نادر ته د سرو زرو د خښتو یوه وړوکې بسته ورکړه.

بله ورځ شاه محمود سهار وختې حرکت وکړ، مګر دومره وختې نه وه چې ملاقات کوونکې ځان ته ونه شي منلی، يو ملاقات کوونکی ام، اي، حکیم و، چې غوښتل يې افغانستان ته ورسره يو ځاي لاړشي، لیکن د برتانيې له خوا دهغه مخنیوي شوي و.

د تل دوه تنه خلافتستان هم له هغه سره ملاقات وکړ او دیوې ډاډ ګیرنې په خاطر يې پوښتنه وکړه چې نادر او دهغه ورونه په ګډه سره هلې ځلې وکړي چې امان الله بیا په اقتدار راولي.

شاه محمود وویل، «زما کورنی نه غواړي چی زمونږ کوم یو پاچاشی، مگر غواړي چی هغسی یو پاچا په خپلو سترگو وويني چی د ټول افغانستان له خوا تاکل شوي وي. د اوسنی ليکي هغه کوچنی شخصی عسکرو و چی قبیلوي مشرانو ته، چی د دوي لاربنوونه

هیأت پوښتنه وکړه چی که دسقاو زوي شاه محمود ته څلور سوه سترلنگ پونډه ورکړي وي چي نادر له اروپا څخه راولی، هغه دا پوښتنه رد کړه.

وروسته هغوي پوښتنه وکړه چی داځنگه مسئله وه چی په هغه وخت کی چی شاه محمود او نور افسران د کابل د جعبه خانی واک په خپل لاس کی درلود، د سقاو زوي بی له کوم مقاومت غشوش او وارخطا شه.

شاه محمود وویل، کله چی لښکر او ټول خلک ناراضه شول، نوزه خپله هم مجبور شوم ځان تسلیم کړم. «زه او زما ورونه د سقاو له زوي سره کومه همدردي نه لرو.»

هیأت په تاکید سره تقاضا وکړه چی دا ورونه دي په خپل ټول قدرت سره باید هڅه وکړي چی امان الله په اقتدار راولی.

نادر، دمخه تردي چی افغانستان ته داخل شی، یوه ورځ به انتظار ایستلی واي، مگر هغه قاصد چی ده خوست ته استولی وله داسی یو احوال سره بیر ته راغی چی هغه قبایلیان چی پرولایتی مرکز، متون، باندي غوښتل برید وکړي، تصمیم ونیولو خپله حمله وځنډوي ځکه هغوي اوریدلی وو چی نادر راځی. نادر مکونا چی ته وويل چی دا ضرور دي چی هغه دي له دي خلکو سره په تماس کی شی او د هغوي له سلوک څخه دي استفاده وکړي چی له هر وخت ډزیات ارزښت لري.

غه څخه به هیله هم کیدله چی په هغه ښارکی د جاسوسی سیستم تشکیل کړي چ وښت، چی د ۱۹۲٤ کال په پسرلي کي ورڅخه تللی و او دهغه وخت څخه راهیسی یی خپل هیواد په سترگی نه ولیدلی.

دهغه له تگ څخه وروسته، یوه ټوټه کاغذ په هغه کوټه کی پیدا شو چی دی په کی اوسیده، دا کاغذ د هغه لیک یوه برخه وه چی دمشرقي ولایت له خوا د جنوبی ولایت قبایلو ته لیکي شوي و او هغوي بی جرگی ته غوښتی وو.

شاه محمود هڅه کوله چی له روڅي وروسته دي دا جرگه ژرگردیزته وغواړي، مگر دا ورته مشکله معلومیدله چی د هغه ځاي قبایل قانع کړي چی دوي به په آخره کی

امـان الله ته په لاس ورته کـړي شي او هغـه وسله چی دوي چور کـړي و ، له دوي څـخـه بـه وانه خیستله شي.

مکوناچی داسی تلگرام وکړ ، « دابه ښه وي چی ډاورونه دي مجبور کړاي شی له هغه څخه هم ډیر ژر خپل مقصد خلګو ته څرګند کړي ، چی هغوي یی غواړي. »

دسقـاو ، زوي چی کـابل یی نیـولی و ، په مـشـکل سـره دیو غـل په څـیـرپیـژندل کـیـده ، برتانویانو غوښتل خپله رساله د افغـان شورش په مناسب چاپ کړي او نشرته د لومړي نسخی په برابرولو سره هغوي د « شورشیانو » دلغت پرځاي د « قبایلیانو » لغت استعمال کړ او په حقیقت کی دا دبری په ارتباط پریونوي موقف باندي اعـتراف کول و ، او هغوي دسقـاو زوي د پخوانی تولو علمونو نسبتونه له منځه وړي وو . د هغـه ظاهري بڼه په ډیره لږه موده کی دهغه له موقف سره بدله شوه ، هغه چی پخوانی د کارتوسونو قطار وزمی په ځان پوري کولی ، اوس یی ډیر ښه عسکري یونیفورم اغـوست او داسی بوټی به یی په لاس کړ چی دمخـه ورسره بیـخی بلدنه و ، دستکلی یاد ستکشی . هغه خپله ډیره هم د پاچاهانو په شان اصلاح کوله.

دهغـه تولیو پیروانو خپل عکسونه واخیستل. څرنګه چی حضرت پیغمبر (ص) د انسـان دڅیري تصویریی منع ګرځولی و ، نو عکاسی کول هم د کافرانو له اختراعاتو څخه شمیرل کیده او په خاص ډول ور څخه کرکه کیدله . مګر باطل پر مذهب باندي غلبه حاصله کړه ، هغوي ، چی په پښـوکی یی پتی وي ، په شلیـدلو جـامـوکی به له خـپلو توپکو نوسره کـامـرو ته هیـبت وهلی ودریدل او مـاشومـان به یی لوڅی پښی سنګین ، ساکت او صـامت د دوي له پښـو سـره دریدل ، حتی وړي نجونی یی هم ، چی لاد چادري د پرسو کولونه وي ، ورسره دریدلی . د کابل ددې نوي زمامدارانو په لاس نورعکسونه هم ولویدل چی د هغو ځوانو او نه واده شوو نجونو عـکسونه وو چی کورنی یی په عنعنوي توګه پاچا وه .

د امان الله پلار تردي حده پوري د عکاسی شوقی و چی نه یوازې د نورو شیانو د عـکسـونو کوټه ورسره و ، بلکی د هر نفر عکس هم ورسره و . خلکو به دغـه عـسکونه د سقـاو زوي ، سید حسـین او نوروته ښـودل ، ځکه هغـوي ، پـه داسی حـال کی چی قـصـر ، جـعـبـه خـانه او نور سامان لوازم یی په خپل تصرف کی لرل ، په دې باندي پوهیدل چی دیوي نجیبی کورنی دځوانی نجلی په صورت کی داسی یو شی ته متوجه کیږي چی باندیتانو هغه شی نه درلود .

د سقاو پر زوي باندي د عبد القدوس د وړوکي لمسی مخ ډیره اغـیـزه کړي وه . دا وړوکی نجلی بی نظیره نومیدله . هغه یوه ښځه درلودله چی د باندیتی په تولو فعالیتونو کی بـه د هغـه

ترشا ولاړه وه، چی ددې کار په خاطر د « بی بی ستګرې » په نوم سره یادېدله. دې ښځی د خپل زړورتیا په خاطر د تحسین وړوه لیکن بی بی سنګری دهغه له نوې ژوند سره برابره ده وه او دسقاو زوې دبی نظیری له کورنی څخه وغوښتل چی بی نظیره ورته په نکاح ورکړي. هغوي مجبور وو د شرایطو د ایجاباتوله مخی ورسره موافقه وکړي.

د سقاو د زوې انتخابی ناوې هڅه وکړه چی ځان ووژنی، وروسته تسلیمه شوه، مګر کله چی دسقاو زوې دواده په شپه د خپلی ناوې مخ ته وکتل ویی لیدل چی مخ یی په سیاهی تورشوي و. په افغانانو کی د « مخ د تورولو » عمل داسی تعبیرېږي چی په هغی سره ښځه خپل له مېړه پوهوې چی دواده په باب ښځه یی په څه فکر کی ده.

هغه وریاندی په قهر نه شو، هغه یا درکه سرې و او ددې عمل په مقابل کی یی ځان غلی کړ: هغه وپوهیدله چی داسی یو مېړه لرې چی ددې احترام کوي او حتی دومره اختیار یی ورته ورکړي وچی په خپله په ده کی اصلاحات راولی. همدا ښځه وه چی هغه ته یی وښودل د ستکش څنګه په لاس کړي. هغی ورته وښودل چی د اوامرو د صادرولو په وخت کی دې کرار وغږېږي، ډیرې چغی دې ونه وهی. پرچوکی باندې پر دو وپښود کښیناستو پر عوض د هغه لینګو به په تدریج سره دا عادت پیدا کړ چی پرچوکی باندې کښېنی. نور به یی هډوکی دکړکیو دساده هندارو په لورنه غورځول. هغی ونه شوکړای چی خپل مېړه په هغه تشناب کی د چرګانوله په جنګ اچولو څخه منع کړي چی د لاجور دو کاشی کاري په کی شوې وه، مګر په توله نړې کی به نورې ښځی داسی ویلی، « هغه بیکاره شی تشناب ته یوسه. »

د سقاو زوې تول شیان یی په خوښی سره زده کول. دغوشیانو، دې د نړې وخواته لارښوونه وکړه چی دې په کی د برخی اخیستلو شوق من و. دده ښوونکی یوه ځوانه ښکلی ښځه وه چی وروسته یی ورڅخه کومه ویره نه کوله. څوکاله وروسته، کله چی دهغه اصیل زاده ناوې له کوم بل چا سره واده شوې و، او کورنی یی تشکیله کړې وه، دهغی خپلوان به هغه یی دیو « ښه مېړه » په توګه او د هغوي مشترک ژوند به یی د « ډیر خوشال » ژوند په توګه معرفی کاوه.

سید حسین د عالیی عکس ولید او امریی وکړ چی ورسره دې واده وکړي. دهغه ورونه، چی دسقاو د زوې د نوې خینښی له تجربی څخه د مخه خبروو، داسی یو ځواب یی ورته واستاوه، موږ له تاسو څخه ډیر خوښ یو چی موږته مو په درنه سترګه وکتل، مګر زموږ خور عالیه مجرده نه ده. هغی دد سمبر په ۱۳ تاریخ له پخوانی امیر، امان الله، سره په خصوصی توګه واده کړې و.

د سقاو زوي د رسمي اخبار نوم ته تغییر ورکړ چې د حبیب الله له نوم سره ورته مطابقت ورکړي چې د هغه خپل نوم و، اوس د حبیب الاسلام اخبار د عالیې دواده موضوع له امان الله سره، په شدیده لهجه د امیر پرضد خبره کړه او وې ویل چې دا بد امیر، په داسې حال کې چې نور خلک یې د زیاتو ښځو له واده کولو څخه محروم کړي وو، د خپل ځان له پاره یې هغه خوښ غوره کړي وه.

اوس دې اخبار د غلا او لوټمارۍ هغې خبرې خپرولې چې څه موده د مخه کیدلې. هغو کورنیو چې په اخبار کې لوستل چې غله معرفي کیږي، کولای شو چې د سقاو د زوي هغو اصلي غړو ته د رشوت ورکولو په واسطه د غه خبر د غلطه ثابته کړي چې په هغه ډول چې د ه (دسقاوزوي) توافق کړي و، هغوي نه وو کړي. هغوي د باتجربه غلو په شان حدس وهلې شو چې ارزښتن شیان چیرې پټ کړای شوي دي، او کله چې یې حدس وهل ناکامیدل نو په ازار او شکنجو به یې لاس پورې کاوه.

د ازارولو او دیانډیتی د نورو طریقو ډیر زیات شوقمن هغه مامور وچې د مخه تردې چې دسقاو زوي ورته دا زمینه برابره کړي، یو مخور همشهري، د کابل نوې ښاروال، د هغه پخوانی آمر، ملک حسن وچې په خپله یو د شخصي بندي خانه یې درلودله. له ملک محسن څخه تریوې اندازې پورې عادي عسکرو هم تقلید کاوه چې ځانونو ته به یې «مستقل» ویل او پر لارو یو باندې به یې حملې کولو او ورته به یې ویل چې پیسې راکړي که نه نو به وژل شي.

د سقاو زوي حتی په خپل سم حالت کې هم د غچ اخیستنې له تهدید څخه دیو عادي دولتي وسیلې په توګه کار اخیست، په پیښور کې د امان الله وکیل التجار او ځینو نورو پارتیز انانو امان الله په طرفدارۍ او د سقاو د زوي پر ضد خپل پروپاګند وته کم کړي وو ځکه چې د هغو کورنۍ په کابل کې وې چې ممکن تکلیف به ورپیښیده. په اوله کې د کابل پیلوټانو نه غوښتل الوتکې جګې کړي او پر خلکو باندې هغه ورقې وشیندي چې د نوي رژیم اعلان په کې شوي و، نو د هغوي کورنۍ د څرګندو یرغملو نو په توګه هوایي ډګر ته یووړل شوي وو.

بیا هم هغه له خپل قدرت څخه لکه څنګه چې یې کولی شو لږ کار اخیست داسې فکر کیده چې د شرایطو د په نظر کې نیولو سره، هغه کابل یې له هغه څخه چې خلکو فکر کاوه، په سوله کې ساتلی و.

د سقاو زوي له خپلو پخوانیو ملګرو څخه زیاته فاصله ونیوله. هغه ډېر ژر په لوړه ماڼی

کی ژوند کاوه او هغوي چې یوله بل څخه بیل وو ، په کوڅوکی به په خلکو پسې گرځیدل چې یو څه تري وشکوي.

له ټولنیزو نزاکتونو د دولتي چارو زده کول ډیر مشکل و. وروسته به داسې کیسه کیدله چې دسقاو زوي د بهرنیو هیوادونو له ډیپلوماتانو سره دلیدنې کتنې په وخت کی داسې ویل، « تاسو ښه انډیو الان یاست، زه غواړم ستاسو معاشونه زیات کړم. » او کله چې یې یوه فرانسوي تبعه ولیدله چې ږیره یې درلوده، نویې ورته وویل، « خوښ یم چې په فرانسه کی هم مذهبی کسان شته. »

بیاهم، هغه پر حکومت بر لاسی ووچې په نورو هیواد و نوکی به د گراس روټي(۱) (Grass vads) په توگه یادیدله.

په یوه اعلامیه کی چې دسقاو د زوي په نوم خپره شوي وه، داسې لیکل شوي و، « په دې وسیلې سره... دهیواد ټولو کسانو او دحکومت مامورینو ته خبرورکول کیږي. چې :دي له پاره چې خداي (ج) خوشاله شي، په خپلو چاروکی دي له ښې رویې څخه کاروا خلې، دا ضرور ده چې ټول وزیران او دحکومت مستخدمین دي باید له نوموړو مامورینو سره مناسبه ادبیانه رویه وکړي. » پر ادبی سلوک باندي ټینگار دداسې یو نفرله خوا کیده چې د « اداري په بې ډبوالی کی » یو ازمویل شوي نفرو، او دغه ټینگار د امان الله د اعلامیو خاطري یې د سړي فکر ته راوړلې، « موږ اعلانوو چې افسران، کوچنی مامورین، او حتی سپاهیانو دي باید په مناسبه نغده بیه هغه شیان وپیري چې د ټولنی موافقه وربا ندي شوي وي. زموږ معظم اعلیحضرت فکر کوي چې د ټولنی غړي د ملکی او نظامی افسرانو مسلمان ورونه دي او په دي وجه ملکی او نظامی افسران او سپاهیان هیڅ حق نه لري پر غیر نظامی خلکو باندي گوزاونه وکړي... دحکومت حقوق دي باید په پاکی او په ښې طریقې سره ادا شي. »

ولی خان، چې دنایب السلطنی په توگه د امان الله د حکومت په راس کی واقع شوي و، یو له هغو دروتنو مامورینو څخه وچې ورته خاصه تحریري اجازه ورکړي شوي وه چې له عنایت الله سره ملگرتیا وکړي. دوي مجبور شوي وو یوه لوزنامه لاسلیک کړي چې دسقاو د زوي سره به مخالفت نه کوي. بیا هم ولی (په کابل کی پاته شو. ځینو به دهغه د ناروغتیا دلیل راوړ چې دهغه په خاطر دمخه پلان درلود چې په اروپا کی دهغه علاج وکړي، ځینو به ویل هغه نه غواوي، خپله لویه کورنی پریږدي، اوځینی داسې کسان هم ووچې ویل به یې چې هغه ځکه پاته شو چې په پټه دسقاو د زوي ترتوجه لاندي و.

د کابل د نيولو په اوله ګډوډۍ کې، هيڅوک خبر نه وچې ولې چيرې و. وروسته د سقاو زوي هغه خپلې ډلې ته اوياله او ورسره په يو داسې احترام سره خبرې وکړې چې وروسته به ورته (ولي ته) ډېر ارزښت درلود. د سقاو زوي د فبرورۍ په مياشت کې يوه ورځ په يوه تولنه کې چې اوس په کابل کې يو عامه ځای و، او په دې تولنه کې ارستو کراتان او ډېر عادي خلک سره تول شوي وو، يوه ښکلې تــانچه يې خلکــو ته وښــودل چې ولي د خپل باغوان په لاس ورته ورکړې وه، او د خلکو په مخ کې يې له ولي څخه مننه وکړه. دا دهغه د تبصرې موضوع وه او مورال يې د يو بانډيت پــه تــوګــه د امــان الله د وزيرانو لــه مورال څخه اوچت و. ولي په پټه ښکاره توګه وارخطا شو.

دولي په مورد کې دسقاو د زوي درناوي به تل د هغو کسانو له خوا په نظر کې نيول کيده او تر سوال لاندې نيول کيده چې ددې تشخيص يې نه شو کولی چې دهيواد دوه سمبولونه چې دسقاوله زوي سره يې هيڅکله خپله عقيده نه وه شکولې، ولي او د برتانيې امپراتوري وه، هغه هم له برتانيې سره ښه و، کله چې ځينې سپاهيان د نماينده ګۍ بڼ ته ننوتل او کمپلې او د سونګ لرګي يې غــلاکړل، د نماينده ګۍ سر پرست ته يې لــه يوې تبصرې سره يو ليک واستاوه او په معذرت غــوښتې وچې زه د برتانيې په مورد کې يوازې ښه نيت لرم او د هغوي پر بې طرفۍ باندې باور لرم.

کــبير، د امان الله او عنايت الله نـاسکه ورور، چې يو ځلې د کورنۍ د تنظيم او ترتيب په وجه نـاراضه شوي و او هند ته تبنتيدلی و، اوس د سقـاو زوي ته دومره خـوشبين و او دومره دهغه دوست شوي وچې تيوله کورنۍ يې ورتـه بې شرم ويل. بيا هم د سقاو زوي خپلو پخوانيو دوستانو پسې ځوريده او ورته وفادار و. دمخه تردې چې همفريز له کابل څخه لاړشي، دسقاو زوي يو غوښتنليک ورته واستاوه چې د پيښور له بنديخانې څخه دې هغه ځلور تنه خوشې کړي چې يو کال دمخه په کوهدامن کې دده دير غلو نوملګري وو، کله چې دې يوازې يو بانډيت و.

کله چې دعلي احمد د ماتې خبره د سقاو زوي ته خوشالي راوړله، نادر ته دده استازي لا په لارکې وو.

په داسې حال کې چې يو حريف ليرې و او دهغــه موقف ډير په امن کې و، خلکو به له ځان څخه پوښتنه کوله چې آيا اوس به دسقاو زوي دومره دې ته آماده وي چې نادر او دهغه ورونو ته دهغې صحنې ته دداخليدو اجازه ورکړي چې دده په تصرف کې وه.

د سقاو زوي نادر ته سترګې په لاره و او د شاه‌محمود په لاس یې ورته یو لیک واستاوه چې په کې لیکلي وو، چې «هیڅ تکلیف» به ورته ورنه کړي شي. هغه د عطأ الحق له لارې له برتانویانو څخه وغوښتل چې یوه الوتکه دې ورته واستوي، او هغه د الوتکو میدان یې ښکلی کړی و.

نادر را ونه رسید. ورځې تیرې شوې، بیا هم هغه راونه رسید.

وروسته د سقاو زوي پوه شو چې نادر جنوبي ولایت ته تللی دی، او شاه محمود، د هغه خپل نماینده د مشرقي په ولایت کې و او هلته یې د نادر له پاره فعالیت کاوه. دوې هڅه کوله چې هغه شي د قوي په واسطه واخلي چې د سقاوزوي د هغه پیشنهاد د تحفې په توګه دوی ته کړي و، حتی هغه د ومره نامناسب سړي و، چې د هغه له خوا د قدرت قبلول یو نامناسب عمل و، هغه یو ځل بیاهیواد ته د مقاومت پښه ټینګه کړه چې له سپکاوي او اهانت سره مخامخ شو.

د سقاو د زوي له پاره په دا وروستي د غسې تجربه وي. هغه خپلو نفرو ته وویل چې تاسو ازاد یاست چې د نادر د کورنۍ کورنو ته لاړ شې او څه چې غواړي هغه تر لاسه کړي. هغه امرو کړ چې دا کورنۍ کوهستان ته واستوي، مګر وروسته یې له نرمۍ څخه کار واخیست او یو لیک یې د هغوي په نامه واستاوه:

د هغوبې عدالتیو په خاطر چې دوي د امان الله له لاسه لیدلي وي، ما له نادر خان او د هغه له کورنۍ سره خوا خوږي وکړه او له نادرخان څخه مې وغوښتل چې افغانستان ته دي راشي او ښه دولتي منصب تر لاسه کړي. زه تاسف کوم چې د نادر خان او د هغه ورور، شاه محمود، سلوک زما د شاهانه لورینې په مقابل کې خاینانه و، تر هغو چې ممکن وي تاسو او ستاسو خپلوان چې په کابل کې دي تر هغو پورې به حمایه شي چې د نادر خان له خوا د ده په مقابل کې عدم وفاداري په عمومي توګه اعلام شي. وروسته له هغه چې داسې یوه اعلامیه صادره شي، کومه بدبختي چې تاسو ته رسیږي باید د نادر خان دروازي ته دې واچولی شي. تاسو د خپل ژوندانه د امن په خاطر باید داسې عمل وکړي چې ستاسو په فکر ډیر ښه وي.»

د سقاو زوي خپل نفر هوايي ډګر ته واستول چې هغه دولتي دروازه ورانه کړي چې د نادر دهر کلي په ویاړ جوړه شوي وه. او تر دي وروسته چې قهرېي لاموجود و، هغه نورکسان واستول چې د هغې مناري یوه برخه له منځه یوسې چې امان الله په ۱۹۱۹ کال کې د نادر په ویاړ جوړه کړي وه.

نادر کندهار ته هم راونه رسید.

امان الله، دا یوه نافرمانی وګڼله مګر نادر د سولی او دنوي امیر د تاکل کید و په باره کی خبري کولی، او دسقاو پر خلاف چی په انتخاباتو کی دخپلو چانسونو په باره کی په غلط فکر کی نه و، امان الله فکر کاوه چی دي به اسیرشی. نود نادر فعالیتونه، که څه هم دده ترا داري لاندي نه وو، ورته ګټور معلومیدل.

له بلی خوا د علی احمد هڅي بوازي ورانوونکی وې. په دي وجه کندهارته د امان الله بلنه یوه منونکی ورته وه. مګر علی احمد تر اوسه پوري هم دعلیاحضرتی ګران وراره و، ثریاهم دهغه په مورد کی نرمی ښودله. دواړه ښځی یو دبل ښی نه ایسیدلی او دکندهار د ژوندانه تر سخت فشار لاندي دوي دومره په شدت سره جنګ کړي وچی علیا حضرتی دخپلی یوي خپلوانی کورته لاړله، مګر هغوي دعلی احمد په خاطر سره یو ځاي شوي، او په آخره کی امان الله پیښور ته احوال ولیږه او ورته وي ویل چی رادي شی.

کله چی د امان الله پیغام راورسید، علی احمد برتانویانو ته حتی زیاد خوا شنی کوونکی و. دهند حکومت پیښور ته د مارچ په اتم تاریخ داسی تلګرام وکړ، «اوس چی نادر او دهغه ورونه تللی دي... دا به اسانه شی چی له علی احمد سره معامله وشی.» د هند دحکومت نماینده وویل چی همفریز، په داسی حال کی، چی «زماد استخباراتی چاري بی بشپړي کړي دي» له پیښور څخه تللی و او شعلی ته تللی و.

«دهند حکومت به خوشاله وي که تاسو ګټور ګام واخلی چی (علی احمد) مجبور کړي له سرحد څخه واوړي. هغه ته دي باید یادونه وشی چی د پاچاهی له پاره دیو معقول کاندید نفر او د پخوانی پاچا موجودیت هغوي ته د پریشانی موجب ګرځیدلی دي او په چرپه خوله د اوږدي د پاته کیدنی منل به ممکن د بی طرفی د دریزپه توګه تعبیر شی، او هغوي دي باید ورڅخه وغواړي چی ددوو ورځو په موده کی دي د افغانستان په لور لاړشی.

ممکن دا به دکومشنر دمرستیال له پاره بهتره وي چی ستاله خوادي ورته له شفاهی پیغام سره دیو مکتوب مرسته سرته ورسیږي چی په دي کار سره به علی احمد ته هیڅ کوم شک پاته نه شی، چی زموږ مقصد معامله کړي ده.»

دمارچ په ۱٤ تاریخ علی احمد لاهم په پیښور کی و او بیا ورته دوي ورځی ورکړي شوي وي چی لاړدي شی. وخت ددي له پاره تمدید شوي وچی د امان الله د پیغام په انتظار کی و.

حتی هغه هم دعلي احمد مشکلات حل نه کړل. دوي اووني وروسته هغه ترکوېټې پورې تللی و، لیکن دهغه ځاي نماینده داسی لیکلي و، «هغه ډیر شکمن دي چی دامان الله له خوا به یې هرکلي وشي که نه، او وایي چه که یې د زوي راپور نامناسب وي نودي به له سرحد څخه وانه وړي. هغه غوښتل پوه شي چی په هغه صورت کی به ورته اجازه وي چی د پېښور له سرحد څخه تیر شي او یا په کشمیر کی میشته شي. زما ځواب داسی وچی زه متیقن یم حکومت به یو پیشنهاد هم ونه مني او ورته می وویل چی ستاد خوښی په خاطر به موضوع مقاماتو ته حواله کړم چی څه امر کوي.»

یو تازه پیغام له لندن څخه را رسیدلی و: «که چیري علي احمد، هغسی چی خپله تجویز کوي، له امان الله سره ددي شرطیه منلو بریالی نه شي چی له سرحدي ایالت څخه تیرشي او جلال آباد ته لاړشي، نو موږ هغه ته د دوباره اجازه ورکولو مخالف یو، دا یو ناشونی ښکاري چی دي به وکولی شي جلال اباد ته لاړشي او ډیر احتمال لري چی دهغه خط السیر د مومند وسیمه وي او، که څه هم هغه یوه غیر موثره قوه نه ده، مګر دسرحدي اداري له پاره به دا تشویش پیدا کړي چی هغه به دبرتانوي سیمی مومند، خانه جنګی راوپا روي. ددي امکان هم شته چی هغه به بیا په پېښور کي دمیشته کیدلو په خاطر داسی دلیلونه وړاندي کړي چی په ظاهر کي دمنلو وړوي او که موږ هغه په زور سره وباسونو ممکن زموږ موقف په ښکته راشي.»

علي احمد د کوېټې په سرحدي پوسته کی، د برتانیې د امپراتوري په لوړ خپله یوه وروستی هڅه وکړله. «هغه په مفصله توګه پر افغانی چارو باندي بحث وکړ، پر امان الله یې تور ولګاوه چی په کلکه سره د روسیې طرفداردي او پیشنهاد یې وکړ چی د برتانیې حکومت دي باید په پټه توګه ماته دامان الله پر ضد په پیسو حمایه کړي، ځکه چی دبرتانیې ریښتینی دوست یم ماوویل چی له موضوع څخه خارج سوال دي او ماورته مشوره ورکړه چی څه پېښېږي هغه دي قبول کړي او هم دي د کندهار په لوړ پر مخ لاړشي او یادي دبهرنی بندرله لاري یا د د دزداپ (Dazdap) له لاري له هند څخه لاړشي.

علی احمد له بندر څخه و اوښت اووي ویل چی له ډیري مودي وروسته به کندهار ته ورسیږم.

د افغانستان د پاچاهی یو ادعا کوونکی تقریباً هیرشوي و. دا سړي عصر نومیده، چی کرار کرار خبري یې کولی او دښځو په شان یې عادت درلود، د پخواني پاچاهانو اولاده و. له

افغانستا څخه دهغه تبتيدل ددې باعث گرځيدلی و ، چی نور نارينه خپلوان يی هم بيره وکړي او له هند څخه افغانستان ته راشی.

له پروپاگندې موضوع څخه پرته، عصر ته د برتانويانو له خواد دومره لږ خطر ناک نسبت ورکړی شوی دچی پيښور ته داسی لاربښوونه شوې وه، « که چيرې هغه تعقيب اوږ پيدا شی، هغه ته دې وويل شی چی کوم شی چی موږ به ورته وکړو هغه به داوې چی ترهغه چی دا توفان پاې ته رسيږي دې به له خطر څخه په امن کی وي. »

شينوارو ورته په افغانستان کی ځای ورکړی و، اوس هغوی يو پيشنهاد ولبيږه چی ترټاکلو شرايطو لاندې دې برتانويانو ته تسليم کړي: دهغه معاش دې بايد کم نه شی، هغه ته دې دپتيدلو په خاطر سزا ورنه کړې شی. هغوی ته دې پنځلس زره روپی دهغه په عوض کی ورکړي شی، که چيرې هغه ديو پاچا په توگه ضرورت وي، و برتانيی دې بايد ژمنه وکړي چی بيرته دې شينوارو ته ورکړي.

دلومړي دوو شرطونو منل آسان و، په دې شرط چی عمردې په موقتی توگه بايد برماته لاړشي، د دريم شرطيه په باره کی برتانويانو غوښتل د پيسو اندازه کمه کړي. ليکن هغوی داخبره رد کړه چی عمر دې افغانستان ديوپاچا په توگه وساتی.

هغوي په لندن کی وويل، « دا داحتمال نه دېره ليرې خبره ده چی په شرطونو کی داشی زيات کړي شی چی هغه د افغانستان د ټولو خلکو له خوا پاچا انتخابيږي، او دهند حکومت فکرو کړ دداسی کارد کولو له پاره به دا په ښرگندډول غلط تعبيروي. »

عصر به په جون کی بيخی بی له کوم شرط څخه تسليم شی او برماته به واستول شی.

همفريز دمارچ په ٢٤ تاريخ د حالاتو نتيجه گيري داسی وکړه. « که چيرې قبايل په دې باندې قادر ه شی چی توافق وکړي او که چيري سخت جنگ پيښ شی چی يوې خواته يی هم مناسبه گټه ونرسيږي، زه دا حتمی گنم چی په نتيجه کی به له موږ څخه غوښتنه وشی چی مداخله وکړو او خپله کړنلاره بيا په کار واچوو او داسی يو کانديد پاچا کړو چی په عمومی توگه د منلووړوي. دمخه تردې چی زه له کابل څخه لاړشم ماته په غير رسمی توگه پيشنهاد ونه شوي ووچی د يومنځگړي په توگه اقدام اوعمل وکړم.

« که نادر حتی په دې باندې هم بريالی شی چی بی له کومی شخړې څخه قبايل راوپا روي چی له يوه کانديد سره موافقه وکړي او هغه حمايه کړي، زه فکر کوم دا به امکان ونه لري چی ټاکل شوي نفر به بی د برتانيی له تضمين او حصابی څخه پاچاهی قبوله کړي.

د نورو لسوورځو په موده کې د په زړه پورې انکشافاتو توقع کیږي. دا مهمه ده چې موږ باید په جدي توګه خپله بې طرفي تر هغو پورې وساتو چې د تطبیق وړوي. »

د شمال لویدیځ سرحدی ایالت، د یوې لړې مهمې موضوع په توګه داسې راپور ورکړی و ،
« د ځه کنې ملکان د کورمې له سیاسي نماینده څخه د یوې سرې مرکې غوښتنه کړې ده په دې چې دوې اورې چې روسان راځې چې امان الله بیا پاچا کړي، او دوې غواړې هیواد برتانیې ته تسلیم کړي موږ ورته د معمول په شان ځواب ورکړی دی. »

د امان الله نماینده ګان، نادرته، چې په پېښور کې وو، یوبل پیغام یووړ دا دبرتانویانو له پاره و ، لیکن څرنګه چې دغو کسانو د کویټې د پولیس د مشرتنه پرته د کوم بل عالي رتبه مامور له خوا استقبال نه شول، نو کوم ځواب یې نه درلود . کوم شی چې دوې غوښتلو هغه په پټه توګه د امان الله دهغو وسلو استول و چې دبمبې او کراچې په بندرونو کې پرتې وې. دهغوی دنه تسلیم کړي شوي پیغام بله برخه داسې وه:

«امان الله احساس کوي چې د برتاني حکومت دده پرضد شوي دي او د لیل یې هم ورته معلوم نه دي. لطفاً دغه غلط فهمې اصلاح کړي. »

# دوه دیرشم فصل

## د ۱۹۲۹ کال د مارچ له ۲۵ څخه

## د ۱۹۲۹ کال د اپریل تر ۸ نیټې پورې

پسرلی په افغانستان کی تل نا ارامی راوړي. دغرونو په پیچوموکی، چی په سرکونو او نریو لاروکی سیلا بونه راځی، کوچیان ډلی ډلی را روان وه. هغوي د یوه پوغ په شان سفر کوي. نارینه یی په زیاته وسله سمبال وي او لږ ترلږه یو تن به یی له کیږد یو څخه د باندي ویښ پاته کیږي، چی ټوپک یی پر زنګنو او سپیان یی په ناکراري سره په څنګ کی ورسره وي او د کوم نابلد سړي دغږ په اورید وسره وربانديي غورېږي.

د کوچ له پاره غلامدام یو خطروي یوکوچی سودا ګر به له هند څخه تیرېږي او تر کلکتی پوري ځان رسوي او هغه شیان افغانستان ته راوړي چی په هغه ځاي کی کمیابه وي. په دواړو هیوادونو، هند او افغانستان کی داسی ویل، چی ټول کوچیان شهن دي، او که څه هم ډیروبی د هند په بانکونو کی حسابونه درلودل، خود غلو داحدس درست ووچی زیاتره کوچیان خپله شته له ځان سره ګرځوي.

د کوچیانو له پاره یو دایمی خطر دهغوي دموسمی ګاونډیانو مخالفت وو. افغانانو ژمی د پسرلی او اوړي په شان په خپلو ځیږو ځمکو تیراوه. دیخنی او سختو ځمکو ستونزي یی پر ځان ګاللی، او بیا، کله چی د ژوند شرایط مساعد کیدل، هغوي به لیدل چی کوچیان به له هوا رو ځمکو څخه چی ژمی هلته نه احساسیده، بیرته راخوځیدل او په سترګو یی لیدل چی دهغوي

پسونه او وزې هغه شنی گبلی او مرغی خوري، چې دهغوي د کلکو څمکو يوازنی حاصل وو، پر دغو څرځايونو باندې په تيره بيا په هزاره جا توکی، چې په لويد يځه برخه کی پروت دي او کوچيان ورځی، جنگونه کيږي. هزاره گان پر خپلو ځمکو باندې د تيرې په مقابل کی دوسلی په زورد تشديد کولو تاريخ لري.

د کوچيانو او هزاره گانو تر منځ شخړې لا پخوا پيل شوي وي. يو شمير کوچيانو تصميم ونيولو چې په دايمی توگه په افغانستان کی ميشته شی، دايوه داسی موضوع وه چې حکومت به تل هغوي دي کارته هڅول. دهغوي هزاره گاوند يانو به تل دوي شړل او په مقابل کی به کوچيانو پر هزاره گانو باندې بريد کاوه، چې نتيجه به يی د ټولو له پاره وينی تويول و اوبس.

زيات شمير کوچيان د غلزي له قبيلی څخه دي. په افغانی قبايلو کی دغلزي شمير زيات دي. دمخه تردي چې د دورانيو احمد شاه ابدالی، د امان الله او نادر دواړو جد، هغوي فتحه کړي او له ټيټو پر کوقبايلو څخه يو اولس جوړ کړي چې د افغانستان وم يی وړباندې کينبود، غلزو کوچيانو په دغه برخه باندې تسلط درلود. دا دغلزو هيڅ کله نه هيريدله چې دوي په يوه وخت کی په هغه ځای کی حاکميت درلود. چې اوس په کی لالهانده گرځيدل، هغوي په بنپړه توگه داحمد شاد اولادې حاکميت ته غاړه کينښو دله. دهغوي د پسرلی را رسيدل تل د افغانستان سياسی حالت ته بله بڼه ورکوله. پسرلی به په زرگونو تنه جنگی کسان له ځان سره راوړل، چې له واکمنی کورنی سره يی په کلکه خپل مخالفت ښودلو.

په دې کال غلزي د افغانستان لوړ و سطحوته له معمول وخت څخه مخکی لاړل، ځينی کاروانونه په هغه وخت کی د غو سيمو ته ورننوتل، چې لارې لاد و اوروله امله بندې وې. په لندن کی يو برتانوي جنرال په يوه اخبار کی داسی ليکلی و، «هغوي به د امان الله له پاره وروستی خبرې ولري.» سږکال د غلزونه يوازي شمير زيات و، بلکی قوت يی لاهم زيات شوي و، ځکه هغوي د شير آغا خبروته غوږنيولی و، چې ديو روحانی شخص په توگه دوي يی زيات تراغيزې لاندې راوستی وو، شير آغا او هغوي نماينده گانو به دوي ته تل ويل، چې امان الله کافر شوي دي او بايد پاچاهی ونه کړي.

کوچيان په هغه لاره تيريدل، چې امان الله په هغه لاره کابل ته دجنگ له پاره تللو، امان الله د دې له پاره چې د کوچی غلزيانود ډيرلوي کاروان له مقابلی څخه په امان کی پاته شی، چې ممکن پرده باندې بنه په غصه هم وي، نو بايد ژرله دغی لارې څخه ځان وباسی، هغه خپل حرکت له کندهار څخه تردغه وخته پورې ځنډولی و، ځکه د عسکرو برابرول اسانه کار نه و.

د کابل په لورد تياري نيولو په وخت کې دده ته يو ناوړه خبر راورسيد. يو استازي د هرات دوالي دوژني خبرورته راوړ، چې دده له خپلوانو څخه و، امان الله دکندهار له خلکو څخه دا خبر پټ کړ. هغه خپل ځان او نژدې ملګرو ته داډ ګيرنه ورکړه چې دده له رښتينو دوستانو څخه يو تن، چې شجاع الدوله نوميده، د روسيې له لارې راخي چې په هرات کې مقرر شي.

امان الله خبر نه و، چې شجاع الدوله د لندن د افغاني وزير مختار په توګه خپله وظيفه خوشې کړې و، او په هوايي ډګرکې ورته دلندن د پوليسو دا داري د يوه پلټونکې له خوا مخه نيوول شوې وه. چې د شجاع الدوله او د هغه د مرستيال ترمنځ د لاجورد و دلانجې د حل کولو په خاطر راغلي و. په هر حال، دا يو له هغو شيانو څخه و، چې دافغانستان يوواکمن عادت درلود چې هغه هير کړي. امان الله دشجاع الدوله په رارسيدو کې دهرات ژغورنه ليدله، او دغه لويد يخ ښار د افغاني پاچاهانو وروستې حصارو. دا ښار چې له مرکز څخه ليرې وه داسې يو ځاى دي چې کوم وخت چې هغوي قدرت له لاسه ورکاوه، نوهلته به په شا تلل، په تيرو وختونو کې به هم ډېرو دغسې کړي وو.

بل استازي په وردکوکې دسقاو د زوي د لښکرو د ماتې راپورور کړه دغه سړي يو قبايلي سړي وچې په سوکالې سره د کابل په جنوب لويديځ کې په خپله کرونده کې پوخت و، او دامان الله دوست و، په دې هڅه چې پاچاهي بياد امان الله له پاره ترلاسه کړي، دهغه د لښکرو قوماندان عبد الاحد و، چې په اصل کې غلزي و، خود يوي اوږدې مودې له پاره په وردکوکې اوسيدلي و او دهغوي په شان ګرځيدلي و. دې سړي چې په ۱۹۱۹ کال کې يې د نصر الله ملاتړ کاوه د امان الله له خوا بخښل شوي و، او دده له ښوکسانو څخه و او دکورنيو چارو وزير و.

لومړي امان الله په اعلاميو سره جنګ وکړ. دختيځې سيمې قبايل، چې په افغاني او برتانوي قلمروکې اوسيدل، په خپلو وعدو ولاړوو. به دوي کې هغه کسانو چې لوست يې کولی شو، له امان الله، نادراو د سقاوله زوي دري واړو سره په تماس کې وو.

د امان الله اعلاميې په طلايي رنګه پاڼوکې چاپ شوي وې چې د نومونو د ليکلو له پاره تش ځايونه په کې پريښودل شوي ووچې دده د استازي له خوا د اعلاميو د اخيستونکونو مونه په کې ليکل کيدل. يو له دغو اعلاميو څخه پر «هغو کسانو باندې بحث کاوه، چې د شيطاني

اور یې لګولی او او غوښتل یې چې زموږ د دښمنانو مقصد د افغانستان د قدرت او عظمت په باطلو لوسره ترسره کړي. » او زیاته کړې یې وه،

« ما غوښتل چې افغانستان پر مخ بوزم او په تېرې کې ورته له برمه ډک موقف ورکړم... تاسو به لیدلي وي چې د کابل ځوانی او هلکان ترکومې اندازې نه سپکاوي او له شرمه ډکې وضعې سره مخامخ دي. او تر ټولو بدتر دادي چې د افغانستان د ملي خزانې ذخیره او تحویلخانې چې زما او ز ما داجدادو له خواد ګران هیواد افغانستان له پاره د کفر پر ضد او داسلام د پر مختګ په خاطر ټولو شوي وي ټولې له منځه تللې دي... زه به اوس پر کابل باندې برید وکړم. زما حکومت ستاسو تیر ګناهونه ټول بخښلي دي... او هیله کوي چې تاسو د افغانستان د تیرو افتخاراتو د زخمونو علاج په خپل زړور توب او په خپلو بې پروا تورو سره وکړي - حکومت هیله لري تاسو... تاسو خداي (ج) اورسول (ص) ته مسئوول ونه ګرځی. »

نادر دا اعلامیه صادره کړه، « تاسو ته باید وویل شي چې زه په فرانسې کې د افغانستان له ناوړه حالاتو څخه خبرشوم. سره له دې چې زه په هغه وخت کې ناروغ وم، فکر مې وکړ چې د افغانستان خدمت زما وظیفه وه او وي به، نو ځان مې په چټکۍ سره پېښور ته ورساوه... موږ به د کابل په لور پرمخ ولاړ شو او وروسته ترهغې چې موظالم غل، چې د کابل په پایتخت باندې یې خیټه اچولې ده، له پاچاهۍ څخه وغورځاوه، د قبایلو په مشوره به داسې یو نفر پاچا کړو، چې هیواد ته دخدمت کولو لیاقت ولري. »

په همدې وخت په پېښور کې د سوداګرۍ نماینده، عبدالحکیم، چې امان الله ته وفا دارو، د نادر او د هغه د ورو ر په باره کې یې داسې اعلامیه ترتیب کړې وه:

« دواړه ناپاکه ملګرې ټګان دي. (نادر) هغه څوک دې چې امیر حبیب الله یې وژلی و. د هغوي کورنۍ د امیر عبدالرحمن له خوا له افغانستان څخه شړل شوې وه، ځکه چې هیواد ته وفا داره نه وه. مګر د وژل شوي امیر له خوا بیرته راوغوښتل شوه. هغوي دخپل مشر په وژلو سره خپله له غدارۍ په ډاګه څرګنده کړه، هغوي برتانیې ته وفا داره دي ځکه کله چې هغوي په هند کې وو، دوي یې افغانستان ته راوستل، دوي د اسلام دښمنان دي او غواړي چې افغانستان د برتانیې تر نفوذ لاندې راولي. اوسنې بحران هم د برتانیې په لمسون سره منځ ته راغلی دي.

« علما وو، چې د برتانیې دحکومت له خوا ورته پیسې ورکولې کیدې او اوس هم ورته ورکول کیږي، هم په دې باره کې ورسره مرسته کوي. هغوي غواړي افغانستان د برتانیې

تراغـيـزي لاندې د راوسـتلو په واسطه، اسلام ته خطر پيښ کړي، د مثـال په توګـه د برتانيي حکومت ورته د تبليغ کولو په خاطر ۳٦۰۰۰۰۰ روپۍ ورکړې دي. کله چې دوی د برتانيي له حکومت سره په پيښـور کې داسې موافقه وکړه، زه حاضروم. هرڅوک چې له دوی (نادر او د هغه له ورونو) سره مرسته کوي، د برتانيي پلوي کوي. »

نادر هڅه کوله برتانويانو ته د ډاډ ګيرئ په توګه دځېل ليکونو ټولې نسخې ښکاره کړي چې قبايليانو ته يې ليکلي وي او په دې توګه وښي چې دهغوی مرستو ته هلې ځلې نه دي کړي. هغـه دا کـار په خـصـوص توګـه وکړ، ځکه د سـوادګـرې د نماينده نـه علاوه نورهم په دې عـقـيـده ووچې انګريزان د نـادر ترشـاو لاړدي، او دې کـار د نـادر هيلوته تاوان رساوه، دهغـه ملګري چې دغـه ليکونه يې وړاندې کول د برتاينيي سرحدي مـامورته ډاډ ورکړ چې فـعلاً نـادر د بهرنيـو قبـايلو مداخله کول نه غواړي، مګر د وزيرو له پنځلسو تنو نماينده ګانو او د مسعود وله پنځلسو تنو نماينده ګانو څخه هرکلی کوي چې د نوي امير په ټاکلو کې مرسته ورکړي.

نماينده راپورور کړ چې، «هغـه له امان الله سره د نادر دښمنی تاييـد کړه، هغـه وويل چې (نادر) خيال لري له اختر څخه درې ورځې وروسته ګرديزکې په يوه لويه غونډه کې برخه واخلي چې د سقاو د زوی په شان (امان الله) په ښکاره تهديد کړي. »

د نادر پلان له تقسيم اوقات سره سم پرمخ نه ولاړ. کله چې هغه او د هغه ورونه د جنوبي ولايت د مرکز په لور وخوځيدل، له مخالفت سره مخامخ شول او مجبور شول ځان وباسي.

د برتانوي هند د شمالي لويديځ ايالت د مارچ د ١٤ نيټې په را پورکې داسې راغلي وو، «د ټولو منابعو له راپورونو څخه څرګنديږي چې دامان الله په ګټه د احساساتو ناڅاپي بدلون په ختيځ او جنوبي ولايت او زمـوږ بـه قبـايلو کې مخ په زياتيـدو دی. پر نادر باندې د خـوست د ځو قبايلو له خوا فشار راوړل شوی دی چې څرګنده د امان الله به خواشي. که دوی ورسره مرسته ونه کړي هغه به ناکامه شي، عين شی په لال پوره کې هم واقع شو... »

د چکنور ملا، يو بانفوذ مذهبي سړی، چې په ملګرو کې يې عبد الواحد شينواري چې بدل نوم يې ښاغلي ويد استراليايي و او دامان الله پخوانی دښمن و، دځېل جومات په سربي يونوي بيرغ درولی وچې داسې په کې ليکل شوي وو: «د مذهب قانون روڼ ځليږي او دقوانينو نوري مجموعې بيکاره دي. » هغه دمخه اعلام کړی و، څوک چې دامان الله طرفداري کوي د خدای په قهر به ګرفتار شي، دا بيرغ د ټولو پاچاهانو له پاره دکرکې څرګندوی و.

د برتانيي په يوه راپور کې داسې راغلي و، «د سقاو د زوي او دهغه د رژيم له خوا کوم ناراض کوونکي شيآن چې منځ ته راغلي وي، ټول د امان الله په گټه دي. »

د سقاو د زوي دلښکرو ځينې کسان په پټه سره امان الله ته دمرستې ډا ډگيرنه استولې وه، دسقاو د زوي پلويانو تر زياتې اندازې په ده پوري تکيه درلودله. په دې ويره چې د دوي پر کورونو به څه واقع شي، دوي له دې څخه هم په ويره کې ووچې له روسيې څخه امان ته زياته وسله استول شوې ده.

د سقاو زوي غزنې ته، چې کابل ته نژدې و، د لښکرو په استولو پيل وکړ، غزني د کابل او کندهار ترمنځ د لارې يو مهم تم ځاي و. وردکو په خپلو حدود وکې د دغو لښکرو د امنيت ژمنه وکړه او وروسته يې له سنگرونو څخه وريانديې بريد وکړ، له پيښې څخه يوه اوونۍ وروسته همفريز ته په شمله کې داسې معلومات ورکړې شو، «د سقاو زوي په ځانگړې توگه د يوې سترې قوې لارښوونه وکړه، چې له ورد کو څخه کسات واخلي، هغه وروسته له دې چې دورد کو ځينو کلوته او رواچاوه، اته ويشت تنه يې ونيول او دهغوي يو شمير مواشي يې لوټ کړل... بيرته د کابل خواته راستون شو. دتگاب د ځينو مشرانو سرونه چې ريگ روان نه نژدې په جنگ کې وژل شوي وو، دکابل په شور بازار کې پيدا شول. دتگاب اته ويشت تنه بنديان چې مخونه يې تور کړي شوي وو، د کابل په کوڅو کې وگرځول شول. »

په آخره کې امان الله د مارچ په ۲۵ نيټه باندې له کندهار څخه حرکت وکړ. هغه درې ورځې په منزل باغ کې خيمه ووهله، چې خلکو ته دوروستې ځل له پاره موقع ورکړي چې له ده سره يو ځاي شي. ډېر لږ کسان ورسره يو ځاي شول.

په کلات کې امان الله بياله خپلو لښکرو سره يو ځاي شو چې د عنايت الله تر قوماندې لاندې يې په يو ښکلي سمور ځاي کې چې د او بولښتې هم په کې ښهيدل خپلې خيمې ودرولې. دهغه موټرونه دغرمې په وخت کې په هغه وخت کې راورسيدل چې هغوي خيمې درولې وې او چاي يې څښلي. موزيک ملي سرود وغږاوه او امان الله په يوه آرامه طبعه ډوډې وخوړله، استراحت يې وکړ، لمونځ يې ادا کړ او بيا د سيند د غاړې په لور لاړ چې د مرغيو سورلنډيو او گيدړو ښکار وکړي.

په هغه وخت کې چې امان الله په دغو کارونو لگياوه، يو زر تنو هزاره گانو دهغه د زلمي ورور، امين جان تر قوماندان لاندې مقرر ورته فتح کړ. مقريو زوړ کلي و، چې يوه له ختيو څخه

جوړه شوي کلا، يو سراي او يو وړوکی بازاريي درلود، ليکن دا هم په تيلفوني ارتباط له کابل څخه ډير ليري و، چی امان الله نه شو کولی د تيلفون په ذريعه ارتباط ونيسي. دهغه تيول مهم و، عبد الاحد چی قصد يی درلود دقوي په ذريعه مقر ونيسي، په خوښی سره استقبال شو. هزاره ګانو د امان الله شاهی بيرغ د هغه موټر د پاسه ولید، چی عبد الاحد په کی سپور و. هغوي، په داسی حال کی چی فکريی کاوه په دي موټر کی هغه پاچا سپور دي چی غلامی يی له منځه وړي ده، منډي يی وکړي او موټر يی ښکل کړه.

امان الله به له خپلی خيمی څخه په دوربين کی مقر ته کتل. دوه ګړندي موټران چی په چټکی سره دده په لور راتلل يو په کی هغه موټر و، چی هزاره ګانو سينګار کړي و، او کله چی ودريد، هغه ولسی خلک چی له عبد الاحد سره په کی سپاره وو، له موټر څخه خپلی توري ښوروللی، او په پښتو يی ناري وهلی، «موږ مقرو نيو او دښمن تار ومار شو!» امان الله تريلی ورځی پوري پوه نه شو چی دا هزاره ګان وو چی دا کاريی کړي وو.

نور ښه خبروه هم ور ورسيدل، دا دهغو ځوانو افغانانو د بيرته راتګ خبرو چی ترکيی ته دعسکري صاحب منصبی د زده کړي له پاره تللی وو. هغوي داخبره را وړله، چی په روسيه کی مختار وزير غلام نبی د مزار شريف په لور را روان و، په مزار شريف کی د سقاو د زوي پلويانو د غلام نبی ورور عبد العزيز چی يو باغ سړي او دهغه ځاي والی و، برطرف کړي و، هغوي دا خبره هم راوړله، چی شجاع الدوله په هرات کی خپله وظيفه اشغال کړي ده.

امان الله ته خبر ورکړي شوي و، چی ځيني قبايلي مشرانو چی ده پر خوا وو په پټه يی دده پر ضد يوه ډله جوړوله، هغه دا خبره خپل مخکښی لښکر ته ورسوله خوله نومړو مشکوکو مشرانو سره خپل روش ته تغيير ورنه کړ، کوم شی چی ده ګاللو، هغه بوازي د پاچاهی د ملک د لوبی دخطرو نو يو خطرو. عبد الاحد مقر ته راستون شو، مګر لومړي امان الله ورته داسی خبر داري ورکړ: «داسی فکرونه کړئ چی دښمن بله حمله نه کوي. هغوي ممکن حتی نن شپه يوه خواشينی کوونکی يرغل وکړي.» عبد الاحد ځواب ورکړ چی په لوړ وځايونو کی يی توپکی او ماشيګنی ځاي په ځاي کړي دي. «نور کارونه د خداي په لاس دي.» هغه ته دامان الله د خداي په امانی دوخت خبري د تيلفون د وظيفی په باره کی وي چی وران شوي و.

د هغی ورځی په ماښام امان الله په دي پوه شو چی هزاره ګان دده، پلويان دي او دي متحسس شو. د تيلفون مزي جوړ شو، او ده له عبد الاحد سره خبري وکړي. او هزاره وو ته د خوښی پيغام واستاوه.

بله ورځ، د اپریل ٦، امان الله مقرته د داخلیدو په خاطر خاص مراسم جوړ کړل. د سرک په دواړو خواو کی د کندهار عسکر او له هرات څخه رالیږل شوي عسکر ولاړ وو. هزاره گان ددد د سلام او احترام له پاره مرتب شوي وو، مگر د هغه د تعجب له پاره د سقاو د زوي مغلوب عسکر هم وو چی د هغوي وسلی بی انتقالولی.

د ماسپښین له لمانځه وروسته، امان الله یوي لویی درباري خیمی ته ننوت او ترتیولو د مخه یی هغو دري سوه هزاره گانو ته احوال ولیږه چی په هند کی د برتانیی په عسکرو کی یی وظیفه اجرا کوله. ډیرو هزاره گانو چی له هزاره جاتو څخه د کار د پیدا کولو په مقصد له خپل وطن څخه د باندي تلل، عادت یی درلود چی هند ته لاړشی او په عسکري ځانونه شامل کړي. کله چی برتانویانو پر افغانستا باندي پروتست کاوه چی د برتانوي سیمی د قبایلیانو په چارو کی لاس وهنه کوي نو افغانان به هم مجبوریدل داشی ورپه یاد کړي چی برتانویانو هم د افغانی قبایلو په چارو کی تردي حده پوري لاس وهنه کوي، چی په خپلو عسکرو کی یی شاملوي. یو کنډک د هزاره و د مخکښ کنډک په نوم باندي یادیده. لس تنه هزاره گان چی حاضر وو، د ماشیندار په استعمال باندی پوهیدل، او د هغوي مشر په نښه ویشتلو کی خاص استعداد درلود، چی د برتانیی نظامیان د ټوپک لرونکو په ډله کی ورته هک پک پاته شوي وو، هغوي به ویل چی دده د ټوپک ډزي د لویس (Lewis) د ټوپک د ډزو په شان دي. نور هزاره گان بزگران وو، مگر هغوي هم خپل ټوپکونه راوړي وو، امان الله هر یوه ته دوي روپی ورکړي او مننه یی ور څخه وکړه.

هغه وروسته عبد الاحد ته احوال ولیږه او پوښتنه یی ور څخه وکړه چی د سقاو زوي د عسکرو له تسلیمیدو وروسته ولی له هغوي څخه وسله وانه خیستله. عبد الاحد وویل ما او امر و ته انتظار ایستلو. امان الله وویل، «تاسهوه وکړه» هغه نفریی خلع سلاح کړي او گرفتار کړي وو، او امر یی کړي وچی ډگروال دی ووژل شی. د دغو نفرو لږ کسان له کندهار څخه وو، هغه د غه کسان بیرته د هغوي خپلی تولنی خلکو ته ورکړل. او اوه شپیته تنه یی له تگاب څخه وو، هغه دوي یی هم خپلو کورونو ته واستول. پاته کسان یی چی د غزنی له تاجکانو څخه وو، ډیرغل په توگه وساتل او ورته وی ویل، چی کله چی زه غزنی ته لاړم، اوستاسو تاجیکی ملگرو د خپلو تیرو عملونو پښیمانی وښودله، نو تا سو به معاف کړم، که نه، تاسو به ووژنم.

امان الله دري ورځی استراحت وکړ او بیا یی حرکت وکړ، نژدي دري زره تنه هزاره گان

ورسره شول، دهغوي مشران د امان الله لاسونه ښکل کړل، او ورته اجازه ورکړي شوه چې خپلې خيمې دې دده له خيمې سره نژدې ودروي. بله ډله چې امان الله ته اخلاص منده وه، ورغله، داد برتانې د سيمې وزير وو، چې امان الله د ۱۹۱۹ کال له جنګ وروسته هغوي يې په شاجوي کې ميشته کړي وو، هغوي د کابل د کنفرانس په نژدې وختونو کې د خپل چپاول د بدسلوک په وجه او برتانويانو ته دخپل خاوري د بوي برخې دورکولو په واسطه، امان الله يې وارخطا کړي و، اوس د شاجوي وزيرو خپل ځانونه يې بياد هغه په اختيار کې ورکړل، دهغه لاسونه يې ښکل کړل او ورته وفا داره شول.

د ورد کود ملکانو پيغامونه، امان الله يې تشويق کړ چې بېړه دي وکړي او دمخه تر دي چې دغلزي کوچيان راشي ځان دي خوندي او ځاي په ځاي کړي. هغه دوباره د شمال په لور په تګ پيل وکړ او د ورځې په پاي کې خيمې ودرولې.

امان الله په هغه مازيګر په چکرووت او يو کوربې وليد چې په اورکي سوزي. هغه پلټله وکړه او پوه شو د کندهار ځينو داوطلبو کسانو په قصد سره دا کار کړي دي. هغه سمدستي جارچيان يې واستول چې دده پرتبولو عسکروباندي وګرځي او اعلان دي وکړي چې امان الله دداسې اعمالو تکرار نه شي زغملی. هغه دکور ښبتن يې راوغوښت او دهغه دخولی څخه يې و اوريدل چې دوه زره روپي ورته تاوان رسيدلی دي، نو يې ورته پنځه سوه روپي ورکړي.

« مون راغلي يو چې شورش له منځه يوسو، نه داچې خپل ملګري شورشيان کړو. »

له هغه وخت راهيسې چې امان الله کندهارته رسيدلی و، هيچانه وليدلي، چې هغه په رښتيا سره راضې ښکاره شي، اوس يې په مخ کې تقريباً د خوښې نښې ليدل کيدي. بله ورځ سهار هغه دشمال په لور لږ ليري لاړ او دسرک په غاړه يې يوه لويه خيمه ودروله، او پنځه سوه کسانو ته يې په سپا ناري کې پخه غوښه، ډوډي او چاي ورکړل. دهغې سيمې خلک ددوي دخوښې په خاطر له خپلو ډولونو سره راغلل.

د ده رقيب لاتر اوسه ديخ او واوري له امله په کابل کې ايسارو. پرده باندي دلته پسرلی و. دي په هغه لاره په حرکت کې و، چې دري مياشتې دمخه يې په همدي لاره کې له مقابل لوري څخه په زياته خواشينې سره روان و. هغه بيا يوه وړو کې پاچاهي درلودله. که بخت ورسره ياري کړي واي نودده دا هيله، چې خپله لويه پاچاهي بيا ترلاسه کړي، تر سره شوي واي.

هغه شير آغا بيرته د افغانستان په لور روان ه

هغـه د اپریل پـه ۱۹ لـه خپلی غـتـی پـگړي او آرامـو سـتـر گـو سـره دیره اسـمـعـیـل خـان تـه راورسید. دا ښار افغانستان ته نژدي او دداسې ځاي دي چې هغه ورڅخه د امان الله پر ضد توطئه کوله. دیرش تنه افغانی ملایان د انتقام اخیستونکی ماکی[1] (Magi) محکمی په توگه ورسره ملگري شول هغه په مجلس کی یود غونډه جوړه کړه. دومره خلک ورته راټول شوي ووچی تابه ویل دجمعی ورځ ده. زیات شمیر کوچیان د افغانستان د ځړځایونو په لور روان وو، چی له دیره، اسمعیل خان څخه تیریدل. دغلزي کوچیانو بوي ډلی غوښتنه وکړه چی امان الله دي روغ وي او دایی په یاد ووچی امان الله هڅه کړي وه ورته ښوونکی ورکړي چی ورسره دي سفرو کړي. دوي لـه شیر آغا څخه لیري پاته شول. ځکه پوهیدل چی څه به وا وري. نورو ټولو گډون وکړ.

شیر اغا وویل چی امان الله پاچا په خپله ځانته ستونزي پیدا کړي دي او وي ویل چی دسقاو زوي د پاچاهی وړنه دي شیر آغا ددي له پاره افغانستان ته تللو چی د زیاتی وینی تويیدنی مخنیوي وکړي.

وروسته دري تنه ملایان وگومارل شول چی د امان الله پر ضد اعلامیی خپري کړي، چی په کی هغه نه یوازي «کافر» چی په اسلام کی دیبی عقیدي سري معنی لري، بلکی «زندیق» هم ورته ویل شوي وو او داسی معنی یی ورکوله چی هغه اسلام یی بدنام کړي دي.

تولند نه پوري هم خلک د شیر آغا د بیرته راتگ په مرموز وانگیز وباندي پوه شول. دهغه ورور، گل اغا، په کابل کی د سقاو د زوي سره جنگ کړي و، د ډیلی اکسپرس اخبار د کراچی له راپور څخه یو مطلب خپور کړ چی داسی پاروونکی عنوان یی درلود، «د کابل غاصب واکدار، چی دخپل لوي ملا، ملاتړ یی له لاسه ورکړي دي په خطر کی دي.»

برتانویانو، په داسی حال کی چی پلټنه کوله له پیښور څخه داسی خصوصی راپور واستاوه: «داسی ښکاري چی گل اغا حضرت د سقاو له زوي سره ځینی مخالفتونه درلودل... بیا هم گومان نه کیده چی دارټنه او بیزاري به جدي وي. د موجوده معلوماتوله مخی هغه بیرته کابل ته تللی دي او که څه هم د سردار نادر او سردار شاولی کورنی ده ته پناوړي ده، بیا د سقاو له زوي سره ښه مناسبات لري.»

---

۱ - مجوسیان یا منجمان استوري پیژندونکی چی د انجیل داحکامو له مخی مسیحیان د حضرت عیسی د زیږیدنی په وخت کی دستوري په لارښوونه دهغه سیفته ته راغلل. (مترجم).

د اپریل په لسمه نیټه، شیرآغا، چې هر څه په زړه کې درلود، خو اصلي هدف یې امان الله و، له دیره اسمعیل خان څخه لاړ چې د غلزي کوچیانو له کاروان سره یو ځاي شي او له هغوي سره دي افغانستان ته راشي.

امان الله د خپلې ټولې خوشبختۍ په خاطر د نورو مرستو په انتظاره کې وه، او هغه کولې شریوازي پر هغو قبایلیانو باندي غېږوکړي چې په هند کې اوسیدل.

هغه ورته یو عاجل لیک واستاوه چې په غزنی کې دي ورسره یو ځاي شي، هغه دغه لیکونه یو مامورته ورکړل چې ټیټه رتبه یې درلوده او روحانی جامه یې وراغوستې وه، مگر څرنگه چې امان الله وریاندي ټینگار کړي و، چې لیکونه دي ژر ور ورسوي نو دا استازي په وزیرستان کې له هغه سړي څخه د مرستې غوښتلو ته مجبور شو چې له برتانویانو سره یې اړیکې درلودلې او هغه یې مکتوبونه ولوستل. «برتانویانو وویل، «مخلوع پاچا له خپله حده څخه پښه وړاندي ایښې ده او آگاهانه یې تشبت کړي دي چې زمونږ له قبایلو څخه د خپلو گټو په ترلاسه کولو کې کارواخلي.» او دي سړي چې لیکونه یې وړي و، سمدستي پوه شو چې ورسره ښه سلوک کیږي او میلمه پالنه یې هم په ښه وجه کیږي، نو په هغه ځاي کې پاتې شو، پاتې شو او بیخي پاتې شو.

نادر، په خپل وارسره، په واروار برتانویانو ته داډ گیرنه ورکړي وه چې دهغوي له قبایلیانو څخه به مرسته نه غواړي. سره له دي هغوي یو قانون ترتیب کړ: قبایلي ډلې ممکن افغانستان ته دکومې ادعا په خاطر جنگ ته لاړ نه شي، مگر که چیرې کوم نفر لاړشي دهند حکومت به دهغوي مانع ونه گرځي دهند حکومت پوهیده چې داهڅې به بې له هغې کومه گټه ونه کړي.

د نادر پیغام په څرگندول همفریز په شمله کې ورکړشو. هغه وویل چې زه هیله لرم د سقاو زوي فتح کړم او د یو انتخاب شوي پاچا په ټاکلو سره یو اساسي حکومت تشکیل کړم. هغه ورروسته د پیسو غوښتنه وکړه همفریز په ردکې ورته داسې ادیبانه مشوره ورکړه، «که چیرې داسې تورو لگول شي، چې د یو خارجي قوي له خوا له هغه سره (پولي مرسته) شوي ده، نو ممکن دهغه موضوع ته په ریښتیا سره تاوان ورسوي...زه په ځانگړي توگه خپلې ډیرې ښې هیلې نادرته دهغه د وطن پالونکو هلوځلو په خاطر وړاندي کوم.»

نادر د گردیز په قبایلو کې ځینې بریالیتوبونه ترلاسه کړل، غوث الدین چې په «دسیسه

بازي کی » له نادر څخه وړاندي و ، هم ورسره یوځه مرسته وشوه. هاشم ومره ځان قوي احساس کړ چي هم یې په گردیز کی د قبایلو یوه جرگه جوړه کړه ، چي شامحمود هم په کی گډون درلود او د ځپې له خواهم دوام وکړ او هم یې له گردیز څخه دوه میله لري په خپله د نادر له خوا دهر کلي کولو د مراسمو ترتیبات ونیول شو ، چي د موزیک ډله هم ورسره وه ، احمد زي غلزي له جعبه خاني څخه تیږکونه ترلاسه کړل چي امان الله د خوست له شورش څخه وروسته له هغوي څخه اخیستي وو . دنا رمیلمانه دهغه له دري ورځني میلمستیا وروسته وویل چي موږ نه امان الله غواړو او نه دسقاوزوي، بلکي نادر د پاچا په توگه غواړو.

وروسته له هغه نادر د سقاو زوي ته ولیکل: « گرانه وروره حبیب الله خانه: زه په ریښتیا سره ستاد زړور توب ستاینه کوم. ستاد زړورتیا کارونه د زیاتي ستاینی وړدي...زه داشي لیکم چي تاسو یوه کړم چي زه په قطعي توگه غواړم خپل ژوند ، دخپلو ورونو او دخپلي کورنی دنورو غړوژوند له اسلام ، له خپل هیواد دخپل اولس د هوساینی په خاطر قربان کړم... زه او تاسو دواړه دهیواد خدمتگاران وو ، او یو خدمتگار د خپل هیواد له خدمت څخه پرته باید بل فکرونه لري. په دي کی هیڅ شک نشته چي هیواد یوه پوره اندازه خزانه ستاد نفرو له خوا ضایع شوي ده او په دي توگه ته په دي فکر وظیفه اجرا کوي، چي شاهي کورنی به تاسو او د کوهدامن خلک له منځه یوسی. داخبره صحیح نه ده. هیڅ یو عاقل سړي دي باید داسی فکرونه کړي... که چیري امان الله او یا د سلطنتی کورنی کوم بل غړي پاچاهي بیا ترلاسه کړي، تاسو او ستاسو نفر به په قطعي توگه معاف وگرځول شی. بیاهم ، تاسو باید متوجه و اوسی ، چي تیږکونه او د دولت خزانه دي باید په صحیح توگه وساتل شي . ما دا څوکرښی دیو مسلمان ورورپه توگه درته ولیکلی. تاسو اختیار لری چي هر څه کوی.

دسقاو د زوي ځواب له اسمان څخه ولوید. د الوتکه په ذریعه پرتولو گردیز یا نو باندي پاڼي وشیندلی شوي چي په کی داسی لیکل شوي وو :

« زه باید تاسو ته ددي شورش او دهغه په گناهونو ډک خیانت په باب لارښوونه وکړم. »

د سقاو زوي نادر او دهغه ورونه یې د امیر حبیب الله د وژنی په تور تورن کړل ، اووي ویل ، « وروسته ، کله چي هغوي له امان الله سره یوه ځاي شول ، څنگه چي دخیانت ارابه وړاندي نه ځي ، د یو یا دووکلونو په موده کی دهغوي د تیولونو مونه او پل له افغانستان څخه ورک شو ، او ددي پر ځاي چي کعبي شریفی ته لاړشی د فرانسی سفر ته یې ترجیح ورکړ.

ای دي موږ وساته .

«په هر صورت، په دې مورد کې هم دومره کفايت کوي، کله چې زه عاجز بنده د خداې (ج) په توفيق سره د حضرت پيغمبر د دين د خدمتگارۍ افتخار راته راکړ شوی دی د دغو خاينانو د خيانت څخه مې نه وکړې او فکر مې وکړ چې هغوی د بې عدالتۍ په غلطه لاره تللي دي، حال دا چې مسلمانان هم وو، او څرنگه چې اوس د خداې په فضل سره اسلامي حکومت ټينگ شوی دی نو هغوی دې بايد له پردې خاورې څخه خپل هيواد ته راستانه شي او د حکومت په دستگاه کې دې کار وکړي. همدا وجه وه چې هغوی په رسمي توگه وگومارل شول او له خزانې څخه يوه زياته اندازه پيسې د اسلام د خدمت په خاطر شاه محمود د نادر ورور ته ورکړې شوې وې او هغه د خداې (ج) په نامه وعدې او ذمه وهنې کړې وې، او ماته يې خپل تابعيت څرگند کړې و او ما ورته احوال وليږه چې په عزت سره دې راشي.

«زما د شه نيت پر خلاف، نادر، چې په اروپا کې د خوک د غوښې په زياتو خوړلو او د کافرانو د تقليد او پيروۍ له لارې ماغزه او هډوکي تور کړي دي. د دې پر ځاې چې احترامانه د اسلام لاره يې تعقيب کړې واې، خپل خيانت څرگند وي، خپله جنوبي ولايت ته تللی او خپل ورونه يې مشرقي ولايت ته استولي دي چې هرې خواته وگرځي، دروغ او دسيسې جوړې کړي. مگر د خداې په مهرباني سره دا شيطاني او تيرايستنې به د باوفاوو خلکو په غوږو نوکې کومه اغيزه ونه کړي... زه... پرتاسو پرهيزگارو مسلمانانو باندې امر کوم چې د دغو خاينانو ويني توبول روا دي او هر څوک چې دوې له منځه يوسي هغه غازي او د اسلام خير غوښتونکی به وي او د اسلامي هيواد د محکمې له خوا به ورته په لاندې ډول انعام ورکړشي:

«که چا نادر ژوندي راوست هغه ته به څلويښت زره روپۍ انعام ورکړشي او که چا يې سر راوړ، هغه ته به ديرش زره روپۍ نغدې او يو مغازه يې ټوپک د جايزې په توگه ورکړشي.

«که چا د هغه درې واړه ورونه ژوندي راوستل، د هريو پر سر به ورته لس زره روپۍ او باد درې واړه ورونو پر سر ديرش زره روپۍ ورکړل شي او که چا د غو درې ورونو سرونه او يا يو تن يې ژوندي راولي، نو لس زره روپۍ او يو نوي ټوپک به ورته د انعام په توگه ورکړشي.»

وروسته له هغه چې د نادر پر سرباندې دا بيه کيښود له شوه، نادر د خپلو محافظو شمير زيات کړ او خپلې شپې به يې مختلفو کوروونو کې تيرولې.

د اپريل په اتلسم، نادر مکوناچي ته وليکل چې زه «په ډ ت ... د پر مخ ځم.»

په هماغه ورځ په لندن کی دهند د دفتر یو مامور د امان الله په باره کی به همداسی ځینی مشابه مطالب لیکلی ؤ:

«معلومیږي چی (امان الله) له بل هر صحیح کاندید څخه نسبتاً ښه چانسونه لري چی ځان بیاد افغانستان پاچا کړي (که څه هم چانسونه یی ممکن په قطعی توګه ښه نه وي.) دا څرګنده ده چی د یو ممکن کاندید په توګه یوازي هغه یو څه ربښتینی پشتواني لري، چی د نورو مسلمانانو هیواد و نواخلاقی حمایه ده او دا هیوادونه د ترکیی او فارس هیوادونه دي (چی ناشونی دي چی او یه خړي او ماهیان ونیسی) او همدا راز هغه کولی شی چی له روسی منابعو څخه مادي مرسته ترلاسته کړي. بیاهم حتی ددغو پشتوانو په لرلو سره به هم دي ونه کړي شی په ټول افغانستان کی خپل قدرت ټینګ کړي، په هر حال دي به یوازي دومره وکړي شی چی په کندهار او هرات کی ځان خوندي کړي... که چیري د (نادر) پروګرام له ناکامی سره مخامخ شی، ددي امکان لکه څنګه چی نادر یی پیشګویی کوي، لیدل کیږي چی په افغانستان کی به دیوي اوږدي مودي له پاره داخلی جنګ دوام وکړي او هم به افغانستان تجزیه شی. یود لیل وجود لري چی که فرضاً امان الله ونه شی کړي دداسی تجزیی په صورت کی جنوبی ولایت چی تربلوچستان پوري دوام لري ونه شی ساتلی. ددي احتمال پیښی د په نظر کی نیولو سره، دا مناسب ښکاري چی هغه اعمال دي اصغري حد ته ورسول شی، چی که افراطی شکل اختیار کړي، نو ممکن دهند حکومت ته به مشکل وګرځوي چی له امان الله سره مناسبات وساتی.»

د امان الله پر ضد عمل کول، چی دانګلستان حکومت ورته علاقه نه ښکاره کوله، د سرفرانس همفریز له خوا صورت نیول. که څه هم په شعله کی و، خوتر اوسه پوري د افغانستان مختار وزیرو، او ژربه د انګلستان په لور روانیدونکی و، او بیا بیخی افغانستان ته نه راتلو.

په «قضیه کی د شامل سړي په توګه» هغه ته مشوره ورکړي شوي وه چی دامان الله په مورد کی د انګلستان او دهند دحکومتونو سلوک ته ښه ورکړي، او هغه په اول کی په ډاګه سره اعلان کړي و، چی «امان الله خپل چانسونه له لاسه ورکړي دي.» هغه په څرګند ډول غوښتل خپل حکومت له یو بایلونکی څخه بیل کړي. په یو وخت کی هغه د بریالی کیدو په خاطر قوي تشویق ته اړتیا درلوده. هغه ټینګار کړي و، چی دامان الله په نوم د پستی کڅوړه وګرځوي او دسقاوزوي ته بی ورکړي او په دي کارباندي بریالی شوي و، هغه اصرار کړي وه چی دسقاو دزوي نماینده ګان په ار. اي. اف. (R. A. F.) الوتکه کی نادر ته ورسوي، په دي

باندي هم بريالي شوي و، مگر هغه غوښتنې ود امان الله نمايندگان چې نادر ته راغلي وو، له هند څخه وباسي، مگر ځرنگه چې وخت زيات تير شوي و، چې داکارو کړي، نو دلته يې وبايله.

اوس، د اپريل په نهمه، همفريز داسې تلگرام وکړ: «زما په نظر دا کار ناوړه ښکاري چې په راتلونکي کې دې د امان الله نماينده گانو ته اجازه ورکړې شي چې له هند څخه دې زين جوړونکي، قطارو رمې، لاري موټران او پټرول په بيه واخلي او يا يې هند ته راوړي او هم دې زمونږ پر قبايلو باندي اعلاميې وويشي.» همفريز په دې وختونو کې پوه شوي و، چې د برتانوي هند بوموټروان په کندهار کې په دې تور گرفتا کړې شوي دي، چې د برتانيې جاسوس دي، او په دې مورد کې ضامن هم نه و، منل شوي همفريز چې له ډيرو جاسوسانو څخه راپورونه تر لاسه کول، پروتست يې وکړ چې، «بو بې ضرره برتانوي تبعه بندي شوي دي.»

عبد الحکيم، دامان الله ډير گرم مين، چې په پيښور کې دسودا گري نماينده و، د همفريز هدف و، هغه غوښتل چې عبد الحکيم د برتانيې له قلمرو څخه وباسي، برتانويانو تر اوسه پوري د عبد الحکيم له دې اعلاميې څخه خبر نه و، چې په کې په صحيح توگه راغلي وو، برتانويانو څومره پيسې لگولي وي چې افغانستان له منځه يوسي، هغه تورونه چې هغوي ورباندي پوه وو په مهمه توگه د «افغانستان د دښمنانو» په باب خبري کولي، دا داسې يو مطلب وچې دهند د حکومت په ځانگړي توگه ورباندي پوهيده، مگر دا توقع يې نه کوله چې پر عوامو باندي اغيزه وکړي.

دلندن نظريه داسې وه، «که دهند حکومت د سامانونو د ټولو ډولونو رانيول منع کړي، دا به د سنجاق د څوکې د ځورونې يوه پاليسي وي، او هغه اعمال چې له برتانيې سره د امان الله د معامله کولو مانع گرځي بايد داسې عواقب ولري چې امان الله به له هر وخت نه زياد دروسانو غيږ ته وغورځوي.»

او وروسته: «د تجارت د نماينده په واسطه زمونږ دقبايلو پر ضد د دسيسې کولو قضيه پوره څرگنده ده، مگر زه دا اصل بيخي ردوم چې هغه دې وشړل شي. زمونږ په هغو قبايلوکې چې په برتانوي سيمه کې اوسيږي او هم په نوروکې د امان الله د طرفداري قوي احساس ليدل کيږي او د سوداگري د نماينده له فعاليتونو څخه هغوي خبر دي. که هغه وشړل شي، نو دا به له امان الله

سره د مطلق دښمنی کولو معنی ولري او له هغوموا دوسره به بی قضاوت کول مشکل وي چی دچاپ له پاره تیار دي.

لېِ دمخه لندن داسی تبصره کړې وه، « (دهند حکومت) تراوسه پوري په صادقانه توگه دبی طرفی درناوي کړي دي، حتی په ځينو مواقعو کی د همفرېز د ناراحتی پروابی هم نه ده کړي... دهمفریز دا خبره چی په راتلونکی کی دامان الله دبيا يا چاکيد وامکانات لږليدل کيږي، دومره قانع کوونکی نه دي لکه چی دمخه و. »

څو اوونی وروسته لندن په ناخوښی سره د امان الله په مورد کی داسی وويل، « دهغه ستوري د راختو په حال کی ليدل کيږي. »

# دري ديرشم فصل

# د ۱۹۲۹ کال د اپریل له ۱۹ څخه

# د ۱۹۲۹ کال د می تر ۲۳ نیتی پوري

په مسکو کی د افغانی اله گوله کوونکو مسئله دیر مارکسیست له نظره ساده معلومیدله. په یوه خواکی یو مطلق پاچا و، او په بله خوا کی دسقاوزوي، چی د پرو لتاریایو اصلی سمبول و.

لیکن شورویانو پوهیدل، چی پرته ددوي له پروپاگندي څخه، بل هیڅ شی هغسی چی معلومیدل، ساده نه وو، دسقاو زوي د هغو کسانو له خوا لوړو مدار جوته رسول شوي و، چی د روسی ترکستان په ډرامو او ننداروکی تل د ورانکارپه توگه ښودل شوي و: دغه کسان ملایان وو، روسانو په رښتینی توگه عقیده لرله چی هغه د برتانویانو له خوا هم گومارل شوي. هغوي ډیر سندونه، چی د کابل او لندن ترمنځ تبادله کیدل، راگرځولی وو، او د امان الله. خطر په مورد کی د همفریز له دقیقی پیشگویی څخه هغوي فکرو کړ چی دا یوه ساده پسگویی نه بلکی یو رهبري شوي کاردي.

وروسته، آغا بیکوف، چي په کابل کی د روسیی دخنیه اداري [1] ( O, Q, P. ۱ ) پخوانی غړي و، داسي لیکلی و، «مسکو وار خطادي او نه پوهیږي کومه .ره غوره کړي. دغی اداري هڅه کړي وه چی د امان الله د اروپا له سفرو وروسته د روسیی په باره کی د هغه تصمیمونه تر خپلی اغیزي لاندي راولی، همدا راز د جنوبی قبایلو د بلوا شدت تثبیت کړي.

دهغه په اصلي اهدافو باندې پوه شي ، چې کوم بهرني هیواد یې ملاتړ کړي ، په پاي کې دسقاو زوي او دهغه دپروګرامونو په باره کې معلومات تر لاسه کړي چې هغونه د چا او د څه شي نمایندګي کوي.

د (O, Q, P, Y) اداري ونه شو کړاي دغوښو الونو ته ځواب ورکړي ، د دې اداري دسیاسي استازې په فعالیتونو کې په هغو سیمو کې دبلوا په مناسبت ګډوډي پیښه شوه چې استازې مجبور وو ورڅخه تیرشي. دڅلور وکلو په موده کې په کابل کې د (O, Q, P, Y) درې تنه پاتې شوي و ، لومړي دوه تنه یې له سفیر ستیارک سره دشخړي په واسطه تللي وو ، د روسي په لور دتلګراف لینونو کارنه کاوه.

کوم شی چې روسانو د سقاو د زوي په باره کې پوه شوي وو ، هغوي یې ونه هڅول ، د پرولتاریا سمبول د پاچاهانو له جملې څخه له هغه چاسره دوست شوي وچې د روسانو سخت دښمن و ، دا دبخارا امیر وچې دهغوي له خوا کابل ته شړل شوي و ، دهغو جزشي معلومات له مخې چې تر لاسه شوي وو ، په پغمان کې په مناسبو ورځوکې میلې جوړیدې چې دسقاو زوي او د بخارا مخلوع امیر په کې ګډون درلود.

روسانو دغه یوځاي کیدنې ته د سرتمبه بخارا بیانو دباندونو دبیاقوي کیدو نسبت ورکړ ، او له هغې مودې وروسته چې هغوي بخارا دشوروي اتحاد به سوسیالیستي جمهوریتونو کې ګډکړ ، بخارا بیانو د افغانې سرحد په اوږدو کې هغوي ته ستونزې پیدا کولې.

په همدې وخت کې په ټول افغانستان کې دا آوازه خپره شوه چې روسان له امان الله سره د وسلې زیاته مرسته کوي. حتی همفریز په خپل پیشنهاد کې د دې مرستې یادونه کړي وه ، چې د امان الله نماینده منع کړي چې له هند څخه غیر نظامي سامان وانه خلي ، او دانګلستان حکومت په آرامي سره ځواب ورکړ چې دهغه استخبار یه ددغو راپورنو تصدیق نه دې کړي.

د هغو الوتکو چې امان الله یې له روسیې څخه د رارسید وهیله درلودله ، راونه رسیدې. دهغوي وعدې په دسامبر کې ورکړي شوي وې.

مګر امان الله یوه الوتکه تر لاسه کړه.

یو افغان چې دامان الله له خوا د پیلوټي په شق کې روسیې ته استول شوي وه یو ځوان سړي وچې عمر نومیده او په قدر داني سره یې د امان الله دغه احسان یاداوه. له دغه با احساس او غښتلي پاچانه پرته ، بل هیچا عمر ته ددې اجازه نه ورکوله چې له افغانستان څخه بهر لاړ

شي او په تیره بیا ددې له پاره چې دغسې یو هیجاني مسلک زده کړي. عمر به په خپل مخ تیولی دروازې بندې لیدلی، ځکه چې له اهل تشیع څخه و.

وروسته چې دسقاوزوي امیر حبیب الله شو، عمر یې خپل د حربیې وزیر، سید حسین ته، د یو مخصوص پیلوټ په توګه معرفي کړ، سید حسین خپلو سرکټو عسکرو ته امر وکړ چې عمرو نه ځوروي. دا د عمر د قدر شناسی طبیعت بر خلاف و، چې د امان الله پر ضد پروازو کړي، مګر یو ځلی په الوتکه کې په فضا کې هغه د خپل ځان واکدارو. هغه ته امر شوي وچې دورد کود مشرپر کور باندې بمونه وغورځوي. دا مشر عبد الله نومیده چې د لالا ډګروال په نوم یادیده او د عبد الاحد ورور و. هغه په دې باندې برپالی شوی و چې د غزنی په لور د سقاو د زوي مارش وځنډوي. عمر ته درې ځلی وویل شو چې د لالا ډګروال کلا بمباري کړي، هغه اول ځلی بمونه په یو سیند کې وغورځول. دوهم ځلی دهغه د کلا په نژدې غرونو کې چې چاته یې تاوان ونه رساوه، وغورځول او دریم ځلی یې په داسې یوه منطقه کې وغورځول چې هلته څوک نه اوسیدل.

عمر ته بل امر دا سې شوي وچې دامان الله پرلیکو باندې بم وغورځوي. دا به یو اسان کارو، په دې چې امان الله د غره په لمن کې یوه سپینه توته د خطر د نښان په توګه بنده کړې وه. هغه په دې فکر کې چې ددغو هوا بازانو پر عاطفې باندې اعتماد لري، نو یې په لویو مکتوبرنو کې ورته یوه دعوت نامه ضمیمه کړې وه چې له ده سره دې یوځای شي. عمر د بمونو فیوسونه بنه تاوکړي چې د غورځېدو په وخت کې انفجار ونه کړي، بیا یې په یوه بنایسته لیرې فاصله کې وغورځول چې که انفجار هم وکړي و چاته یې تاوان ونه رسیږي. دا کار درې واري عملي شو.

له دریم پرواز څخه وروسته دسقاوزوي پوه شو چې دهغه د بمو غورځول بې تاثیره وو او نتیجه ګیري یې وکړه چې په کار کې ټکې شوي ده. که چیرې د پیلوټانو کمی نه واي نو عمر ګرفتار کیده. په عین حال کې هغه د میر هاشم په کور کې، چې دامان الله د مالیې وزیرو، میلمه شو، میرهاشم د پټو پیغامونو په واسطه خبرو چې امان الله یوې الوتکې ته څومره اړتیا لري، میر هاشم عمر ته دسرو زرود سکونه یوه ډکه کڅوړه وښودله او ورته وویل که یوه الوتکه کندهار ته یوسې نو دا دسروزرو سکې به تیولې ستاشې.

عمرد سرو زرو نوري سکې رد کړي، یوه سکه یې واخیستله او هغه یې ښکل کړه، ځکه چې د امان الله نښان په کې و.

عمر ته بوه بله وظیفه هم ورکړې شوې و، چې دسقاو دزوي له پاره یې سرته ورسوي. دا د هغو پانو شیندل وو چې په کې د نادر او دهغه د وروو پر سرونو باندې جایزې ټاکل شوې وې. دسقاو زوي د عسکري ډېره ښه تربیه لرله، چې له جنرال محمود سامي څخه یې ترلاسه کړې وه، چې امان الله ښوونکی او نژدې ملګرې، اواوس دهغه د دښمن قوایی رهبري کوله. دغی پوهی په دقیقه توګه ښودل، چې دهوانورد دبو خاص ماموریت د سرته رسولو له پاره څومره تیلو ته اړتیاوې، دهغه پیلوټان د کابل له هوایی ډګر څخه له هغه مقدار تیلو سره پرواز کوي چې یوازې ترخپل هدف پورې رسیدل او بیرته راتلل. له دې نه به یو څاڅکی ورته زیات نه ورکول کېدل.

کله چې عمر په الوتکه کی د نادر دکمپ په لور لاړه خپل پلان یې خپل څارونکی ته ښکاره کړ. دا څارونکی سید محمد نومیده، چې له ده سره یې دنور و سبو تاژونو په ماموریتونو کې ګډون کړې و، او اوس یې موافقه کړې وه چې له هغه سره کندهار ته لاړشي، هغه خپل خط السیر ته د جنوب په لور تغییر ورکړ، په ټانکی کی دومره تیل نه وچې دوي یې ترکندهاره پورې رسولی واي، نو عمر ډېره زیاته ارتفاع ونیوله او وروسته له هغه چې د تیلو ټانکی تشه شوه، دې ارتفاع دومره ګټه وکړه چې هغه یې په دې قادروګرځاوه چې کرار کرار د ارتفاع په دلاسه ورکولو سره کندهار ته نژدې شو او په دې ترتیب سره د کندهار هوایی ډګرکی کوز شو، چې هلته دیوې الوتکی له پاره د اوږدې مودې راهیسی انتظار ایستل کیده.

له عمر څخه نه یوازې د الوتکی په خاطر، بلکی داحوال په خاطر هر کلی وشو هغی له ځان سره راوړې و. په کابل کی داسی راپورونه زیات وو چې غلام نبی مزار ته رارسیدلی دې، نادر له ګردیز څخه په تهدید لاس پورې کړې دې او امین جان خپل هزاره ګان دسقاو دزوي پرضد لارښوونه کوي. اوس په کندهار کی د الوتکی یو څه تیل موجود و او دعمر لومړې وظیفه د امان الله دیوازنی پیلوت په توګه داوه چې د غزنی په ښاو خواکی له هوا څخه پانی وشیندې، چې دا خبرونه په کی وو. داخلی هغه خپل هدف وویشت.

په ۱۹۲٤ کال کی چې د خوست بلوا امان الله یې دالوتکی په خاطر مایوسه کړې و، هغه د برتانیی دمشورې پر خلاف څو زړې الوتکی له یوه زړور سړې څخه چې مرفاي (Murphy) نومیده، رانیولی وې. له دغو الوتکو څخه یوه ( DH9 A ) وه چې په ۱۹۱۸ کال جوړه شوې وه، پرزې پرزې په کریتبو نو کی په کراچی کی پرته وه. په دې وخت کی د مرفاي الوتکی د امان

الله په یاد راغلی او د کراچی افغانی قونسل ته، چی تواوسه پوري یی دده اوامرو اطاعت کاوه، تلگرام وکړ چی دا الوتکی دي چمن ته واستوي. الوتکي د اپریل په ۲۸ تاریخ چم ته ورسولی شوي او یو هوایی صاحب منصب چی له روسیی څخه د ځمکی له لاري راغلی و، چی له امان الله سره یو ځاي شی، له کندهار څخه لاړ او د الوتکو د تسلیمیدو په انتظار کی و.

دهند حکومت داسی تبصره وکړه، «اوس باید الوتکی بیخي له کاره وتلی وي.»

مگر سره له دي هغوي یی وارد ول منع کړل، او په چمن کی د سمنتو له څلورو زرو کڅوړو او دماشین الاتوله صندوقونو سره پراته وو، چی فکر کیده تقریباً د افغانستان لاس ته ورغلی وي، امان الله یو ځل بیا هڅه وکړه چی د کراچی له بندر څخه هغه ماشیندارو نه تر لاسه کړي چی په فرانسه کی یی پیرو دلی وو، دا ماشیندار رونه د نوامبر د ۲٤ تاریخ راهیسی هلته وو چی دي کولی شواي په هغه وخت کی یی بی له کوم اعتراض څخه ترلاسه کړي واي. زنگ دغه ماشیندارونه له کاره ایستلی وو.

عطا الحق د سقاو د زوي په خاطر همفریز ته چی په شمله کی و، تلگرام وکړ، او ورڅخه یی وغوښتل چی دغه وسله دي معطله کړي چی دافغان حکومت له خوا له اروپا څخه رانیول شوي ود. هغه په دي هڅه چی پوه شی دغه وسله له کومو ډولو وسلو څخه ده، زیاته کړه. برسیره پردي ستاسو جلالتماب څخه هیله کیږي چی لطفاً دغه وزارت مختاري ته ددغو سلو اندازه وښیی، چی دهند بندرته رارسیدلی دي او هم دهغه هیواد نوم څرگند کړي چی دا وسله ورڅخه پیرودله شوي ده.»

هغه «افغانستان ته ددغو وسلو د نه استولو د تایید او تصدیق نه پرته چی له هري منبع څخه و اوهري خواته چی استول کیده» بل هیڅ کوم لست تر لاسه نه کړ.

همفریز لندن ته داسی وویل، «دروسانو او افغانانو له پاره ځواب یو شی دي.»

دبهرنیو چارو دفتر دوسلی دبند یزدله منځه وړلو پر قانونیت باندي بحث کړي. د بهرنیو چارود دفتر د اپریل د شلمی نیتیی په یادداشت کی داسی لیکل شوي وو، «امان الله چی احتمال لري خپله دبره لړه دوستی مورته ثابته کړي او له اوسنی پاچاهی غوښتونکو څخه یی اعتباره په نظره راځی. یوازنی نفر به وي چی گنه ترلاسه کړي. دا به په واقعیت کی جانب داري وي ولوکه په ظاهر یا په نظري توگه داسی ښکاره شی.

او وروسته، که څه هم امان الله چی د یو بایلونکي په شان ښکاریده، دبر تانیی مرسته یی دمخه له لاسه ورکړي وه.

د یادداشت لیکونکی دهغه پر خلاف مناقشه وکړه. «که چیري امان الله ته په دي وخت کی، چی ستوري یی دراختلو په حال کی دي، اجازه ورکړي شی، خپل ماشیندارلرونکی ټوپکی ترلاسه کړي، هغه ته به ډیر ارزښت ولري، په داسی حال کی چی دا به دهغه له پخلاکولو څخه ډیر لیري وي، ممکن هغه ته د خودخواهی مبالغه آمیزه ذهنیت ورکړي او که چیري پاچاهی تر لاسه کړي نوله مور سره به یی رویه له هروخت نه زیاته سخته شی.»

مگر دامان الله ستوري په حقیقت کی دجگید وپه حال کی نه و، هغه ماښام غزنی ته راورسید او له یو نژدي ځاي څخه چی تیلفون په کی وهڅه وکړه ځینی کسان، چی په نظامی کلاکی وو، تحریک کړي، خوپه دي کار بریالی نه شو، دوه تنه هند و سود گران ورته راغلل او شکایت یی وکړ چی څومیله لیري موټرونه یی د غلزي اندړود غلوله خوالوټ شوي دي. دغلزي اندړو ځینی بلد کسان چی په کمپ کی وو، امان الله ته وویل چی غله دبو باندیت له خوا چی د (بچه باز) په نوم یادیږي، او تاسره دښمنی لري لارښوونه کیږي. له یو بل باندیت سره د نورو پیښو ورته والي بد مرغی وه، او یادونه داسی وه چی هغه د بیرته راتلونکو غلزي په لور ژرحرکت نه وکړي چی دهغوي دوړاندي راتگ مخنیوي یی کړي واي.

په دي وخت کي یو ډیر بدخبر خپور شو، غزنی د هغی قوي له خوا نیول شوي دي، چی ډیریی غمزي او دسقاو زوي ته خوشبینه دي. عبد الاحد هغه قواپی محاصره کړي وه او د کلابندي په هڅه کی و.

امان الله فکر نه کاوه چی مجبور شی چی دغزني په خاطر جنگ وکړي. هغه د کابل ترنژدیو سیمو پوري د کوم شدید مخالفت توقع نه کوله.

دهغه له کمپ سره یوه کوچنی گرځنده طباعتی دستگاه په حرکت کی وه، هغه د شپی له خوا یوزر رسالی چاپ کړي چی په کی دغزنی خلکوته امر شوي و، ترسبا دو وبجو پوري دي خپل ښار اووالی چی دسقاود زوي طرفدار دي تسلیم کړي. هغه سبا سهار دغه پانی لاسلیک کړي او دوونفروته یی به لاس ورکړي چی په موټرکی یی غزنی ته یوسی. مگر له پانی څخه پردوي باندي ډزي وشوي چی د دوي د پرمختگ مانع وگرځیدي، او پر دوو بجو باندي، چی د هغوي نیته وه، چی ښار تسلیم کړي، بی له دي چی دا التی ماتوم پانی د غزني خلکوته ورکړي، بیرته امان الله قرار گاه ته راوگرځیدل.

عصبانیت د دغو باندیتا نو تینگه اراده له منځه وړله چی پر کابل باندي یی حاکمیت

درلود له څلورو خوا و څخه د دښمنانو توقع کیدله: امان الله له جنوب څخه نادر له ختیځ څخه، هزاره ګـانوله لـویـد یـځ څـخه او د شـمـال لـه لـوري چی د روسـانو پـه بـاره کی خرابه آوازه وه، خداي پوهیده.

د سقاو زوي، هزاره ګان یی له حکومتی کارونو څخه وایستل او بیایی دهغو مامورینو په برطرفه کولو باندي پیل وکړ چی شیعه مذهبه وو، هغه په پاي کی خپل اعتماد له هغو کسانو څخه جلب کړ چی کورنی اړیکی یی سره درلودي او له هغوي څخه یی د برید توقع کیدله او په دي کی د تګاب صافی هم شامل وو، چی دسقاو زوي دهغوي په واسطه له امان الله څخه د پاچاهی د اخیستلو په سترپلان کی برخه اخیستی وه. بوازي کوهستانیان له مسئولیت څخه خلاص ووچی دهغه وطنداران وو.

سـید حسـن چی دباندیتی پخوانی ملګري او اوس د حربیی وزیرو، د ترور او ظالمانه عملونو تر شایو قوت و. هغه او دسقاو دزوي وروړحمیدالله، په کابل کی یوه ډله جوړه کړه چی بی رحـمـانه عـملونه یی خوښـیـدل، ځکه دا ډله دهیڅ بلی ډلی په خـیـال کـې نه وه » ددغی محدودي ډلي په سرکی عطا الحق او شیر جانووچی پوهیدل نور میتودونه هم وجود لري. برتانویانو ته داسی استخباریه ورسیدله، « سید حسین د کابل ددفاع له پاره ترتیبات نیسی. » ویل کیږي هغه په بشپړه توګه د کابل د حکومت له نورو غړوسره تماس نه لري او دهغه پوځ له اداري څخه دوتلو په حال کی دي. »

دوه بی رحـمـانه عـملونه د جرمنی وزیر مـخـتـار، بارون پلن (Baron Pleson) له خـوا ولیدل شول. هغه یوځل یو جسد یی ولید چی یو لاس او یوه پښه یی غوڅه شوي وه. یو ځلي کله چی دبهرنیو چارو دفتر ته ورسید، یو نفریی ولید چی دازار او شکنجی په خاطر کشکول کیده، کله چی هغـه پـه بیړه سره دبهرنیو چارو دفتر ته داخل شو نویی وغوښتل چی له عطا الحق سره ووینی او هغه مجبور کړي چی دباندي لاړشی او شکنجی ته دي خاتمه ورکړي . کله چی داعمل سر ته ورسیده، هغه وویل، دا غیر قابل تصور ده چی ددي اعمالو له مخی متمدن هیواد ونه دسقاو زوي په رسمیت وپیژنی.

دوخت مخور او پیژندل شوي څیره فراري هغه مذهبی قاضي وچی دسقاو د زوي د داړه ماري په وختونو کی دامان الله د غوښتنی له مخی یی یوه اعلامیه خپره کړي وه چی په کی دسقاو زوي یی بی دین معرفي کړي و، او هرنیک مسلمان ته اجازه ورکړي شوي وه چی ویی

وژنې، دسقاو دزوي له بري موند لو وروسته دهغه ژوند په خطر کې و، اوپه پای کې دسقاو د زوي نفرو هغه پيدا کړ. د هغه قصاص د پوليسو د ماموريت له دروازې سره سرته ورسيد. هغه په داسې حال کې چې د قران شريف آيتونه يې ويل او د روسيې د نماينده گۍ يو تن له دې پيښې څخه فلم اخيستلو، کرار کرارو نهونډ شو.

سره له دې، ددې امکان موجود وچې سړې په کابل کې ژوند وکړي، بې له دې چې دغه شيان ووينې او ياد هغوې په باره کې مستقيم معلومات ولري. کيدې شو چې ورزمره ژوند يو بې پيښې ژوندوي، خو بياهم، يو ارام ژوند نه و. يخې هوا او واورې په غير معمولې توگه ځورونه کوله او زيات دوام يې کاوه، ژوند گران و، په بازار کې شيان له تير کال څخه قيمته شوي وو او مختلف شيان چې پخوا پيدا کيدل، اوس نه وو، ځينې هټې والاوو خپل دو کانونه خلاص ساتل، ځکه چې دهټيو دبند ساتلو په صورت کې به ورته جزا ورکول کيده. دسقاو زوي ژر يوه نوې ستونزه يې څرگنده کړه. هغه د دولت په خزانه کې دهغو چاپ شوو بانک نوټونو په ليدو سره ټکان وخوړ چې په جنورې کې يې په خزانه کې پيدا کړل او امان الله غوښتل هغه په چلند کې واچوي. دمې په مياشت کې هغه خپل تصميم اعلان کړ چې دغو بانک نوټونو ته ضرورت لري، نونو ټونه يې وايستل او دامان الله د نوم د پاسه يې خپل نوم ټاپه کړ. بيايې يوه اعلاميه خپره کړه چې د خوا خوږې په ښودلو سره داسې پيل شوې وه. «د پخوانې حکومت د فلزې سکو دگرځولو زيات مشکلات» او داسې ادامه يې ورکړله:

«دا نوټونه چې په چلند کې اچول شوي دي د مسلمانانو د دولتي خزانې د ير زيات مصرف وربانديې شوي دي... دچاپ دلگښت له نقطه نظره دا به د دولت خزانې ته يوه لويه ضايعه وي که چيرې دا نوټونه بې چلنده ساتل شوي واي.»

د سقاو زوي پر افغانانو باندې امرو کړ چې دا نوټونه ومنې، هغه وويل چې د پشتوانې په توگه به نغدي پيسي په خزانه کې وساتل شي. دا پشتوانه به دسترې دارايې يوه برخه وي اويوازې دهغو کسانو له خوا به وربانديې اجراات سرته ورسيږي چې له مانه په دولتې چاروښه پوهيږي. په هر حال، کابل په دې شکمن وچې دفلزې سکې پر ځاي نوټونه رايج شوي واي، کله چې حرفوې باندېت پر هغوې باندې امر وکړ چې نوټونه واخلې، هغوې احساس وکړي چې پاچاهي هم دهغه په مسلک کې کوم بدلون نه دې راوستې.

د سقاو زوي او سيد حسين اټکل وکړ چې دکابل ناخوښ به ممکن پر دوي باندې سختې

راولي، هغوي به کله له اووتنو نه زياته تولنه منع کړه، کله کله به هغه خلک چې سره پسيدل، نيول کيدل. دمې په شپږمه نيټه يوه اعلاميه دهغوي عصبي حالت عام وگرځاوه، هغوي يو شمير عسکريي وگومارل چې دکابل په شاوخواکې وگرځي او اعلان وکړي چې هيڅوک نه شي کولی له کابل څخه ووزي يا کابل ته داخل شي څو چې دتاکلي مامور پاس او تصديق ورسره نه وي. دسقاو زوي د کلا بندي په فکر کې و.

د اپريل په شلم تاريخ غلام نبي د امان الله له پاره مزارشريف ونيو د سقاو د زوي نفر د هرات په لور تللي وو او هغوي دومره قوا نه درلودله چې ځانونه په دواړو ځايونو ټينگ کړي.

امان الله له دې څخه سمدلاسه خبرنه شو. ليکن يو بنه خبرورته راغلی و: نور السراج گرانه کوچنی خوريي له خپل کوچني زوي سره بيا کندهار ته راغلی وه.

دده يو بل بنه دوست، عبدالهادي، دده خواته را روان و. دلندن پخوانی مختار وزير، چې د برتانيي په شاهي قصر ( Court of Stjames ) کې يي هر کلی شوي و، او د افريد و قبيلوي لباس يي اغوستی وله خپلي تولي کورنۍ سره چې ښځې يي چادري په سرکړې وه، څلور تنه ماشومان يي، يو ځوان وروريي او ځينې نوکران په کې شامل وو، پرتهوا سرنويانديي سپاره شول او يوه شپه دمخه تردي چې عسکر په خپله پيره ودريږي، له کابل څخه وخوځيدل. کله چې دوي د کابل له جنوب لويديځ څخه تيريدل. پيره دارورياندي غږو کړ، يونوکر بيرته غږو کړ او ورته وي ويل چې ملک واده ته ځي، پيره دار ورته اجازه ورکړه چې تير شي.

عبد الهادي خپله کورنۍ يي په جلال آباد کې له دوستانو سره پريښوده، او يوازي يي دهند په لور سفرو کړ. دده په مخ کې خطرونه موجود وو. هغه ددي پر ځاي چې هغه لاره غوره کړي چې شينواري په کې ناست وو. دکابل د ځپ ته سيند لاره يي ځان ته غوره کړه چې دسيلابونو له امله يي او به زياتی شوي وي. هغه ترډکې پورې په جاله کې لا ر ، له ډکې څخه تر پيښوره پورې يي په پښو مزل وکړ.

په اخر کې دهغه افريدي ښکلي کالي شليدلي وو، او برښوب نو چې دي تل دهغوي غند نه کوله. دده پر حال ب ندې افسوس وکړ، هغوي وويل چې، « عبد الهادي دي بايد د نامتو شخصيتونو له جملې څخه وشميرل شي، او هيله يي ورڅخه وکړه چې له يوارام نفس ابستلو وروسته دي له هند څخه ووځي. » مگر عبد الهادي نه هغوي څخه د ارام نفس ابستلو فضا ونه غوښتله. هغه سمدلاسه په يوداي ... دي د چمن په لور روان شو او د مخه تر دي چې

دکندهار په لور واوري، دچمن شاوخواته دهغه چاپه ستر گووکتل چې ممکن بیاله خپله پاچا سره دمهاجر په توگه هلته واوسی. هغه د میلمستون یوه بنگله یې مشاهده کړي او د سفر په موده کی دستړیاد لیري کولو په خاطریې دیو مناسب محل په توگه غوره کړ.

امان الله په موټر کی گرځیده هغه چې اوس دغزنی له دښمنی سره مخامخ و، مجبوریت احساساوه چې متحرک واوسی، هغه به پراس باندي هري خواته تلو او یو عجیب لباس یې ځان ته انتخاب کړي و، له خپل عسکري یونیفورم سره، چې په تن کی یې لوي و، ځکه په چټکی سره یې خپل وزن له لاسه ورکړي و، لنگی په سر کوله. هغه داکار د خپلی هوسایی په خاطر کاوه، نه ددي په خاطر چې متقی او پرهیزگار په نظر ښکاره شی، په دي چې دخپل پټکی د پاسه د یوشین سایبان په اینبودلو سره پټکی ته یوه غیر متقی بڼه ورکړه.

امان الله ضعیف او ډنگر شوي و، اعصاب ضعیف، شونډي یې وچې او چاودیدلی وي. غومبوري یې ځوړند، په مخ کی یې خطونه پیدا شوي وو، اواز یې ډډشوي و او کرار کرار خبري یې کولی.

دلیري نه یې د غزی له شاو خوا څخه ډزي اوریدل. غزنی یو پخوانی مهم ښار، او په یو وخت کی دسلطان محمود غزنوي پایتخت و، د هغه د سلطنت مقام یوه جنگی کلاوه چې پاس د غونډي په سروه اوله بیخ څخه یې د غزنی بازار پیل شوي و، چې دونی د ریښو په شان غزیدلي و، غزني په مخ کی د هغه نفرو هغه توپ له خطر سره مخامخ وو، چې امان الله له ایتالیی څخه راتیولی و ،او له جنگی کلا څخه لاندي په هغوي باندي ډزي کولی. عبد الاحد د یوي موډي له پاره هغه کاروان سرایونه او بازار ونه په خپل تصرف کی ساتلی وو چې لیري وو، مگر د توپ ډزي هغه یې هم په شاو تمباوه.

امان الله دهغو غلزیواند ړوښه هر کلی ونه کړ چې د عبد الاحد له یوځ څخه بیل شوي وو او دهغوي د ټوپکو ډزي اوریدل کیدي. دغه ډله اوس راغلی وه او هر یوه یې له ځان سره یو یواس دتحفی په توگه راوستی و، امان الله په خونسردي سره ورڅخه پوښتنه وکړه چې ولی تاسو خپلو قبایلوته اجازه ورکړي وه چې زما پر ضد جنگ وکړي.

د غلزي مشرانو وویل، «په هره تولنه کی نا یوه خلک شته دي. پر خلکو باندي زمور تسلط له حکومت څخه د قبایلو پرډ ارپوري مربوط دي. په خپله مور خپل تول حیثیت له لاسه ورکړي دي.» هغوي د غزنی د بلو املامتی د دو و نفرو په غاړه وا چوله. یو یې هغه داړه ماروچی د (بچه باز) په نامه سره یادیده او بل یې «پیر صاحب» وو.

«دغه پیر صاحب» شیر اغا و، هغه دغلزي له قافلی سره داجل د ملایک په شان دامان الله په لورد پرمختګ په حال کی و، هغه چی غزنی ته رسیدلی و، دوه دیرش میله په ختیځ کی دیو شمیر کوچنیو کلیو په منځ کی په حرکت و، د افغانستان او هند تر منځ په ټوله لاره کی به هغه غلزیو ته ویل چی پر امان الله باندي دي یرغل وکړي، دا دهغه تبلیغ و، چی هغوي دغزنی په لور هڅولی و. اوس د بند دولت په نژدي کلی کی، شیر آغا د غلزیو د څو طایفو او دځینو نورو قبیلو یوه جرګه جوړه کړه او د امان الله په مورد کی یی خبري وکړي.

ملایان چی د شیر آغا له خوا پارول شوي وو، دهغه پر ضد یوه بل مذهبی فتوا ورکړه. هغوي د امان الله پر دښمن باندي د مصئوونیت د مشوري په ورکولو سره چی اسلام بی یو مستحق واکمن ته رواګنی، یو بل ګام کیښود. هغوي وویل ځرنګه چی دسقاو زوي پایتخت او د اسلامی افغانستان پاچاهی یی ترلاسه کړي دي، نو هغه په واقعیت کی یوپاچا دي او د خداي(ج) په نزد دهغه پر ضد جنګیدل به اصولی نه وي.

شیر آغا به دهغو د وو ورځو خبرو په باره کی غوري او افتخار کاره.

د سقاو زوي لومړنی نفرو چی له شیر آغا څخه یی لیک تر لاسه کړه او په کی ورته ویلی وچی ماکندهار او جنوبی ولایتونو ته نفراستولی دي چی دامان الله پر ضد وجنګیږي، او زه خپله به ژر له کابل څخه لیدنه وکړم. د سقاو د زوي ورور هم په غزنی کی چی هلته قوماندان و، د شیرآغا لیک ترلاسه کړ.

نادر له شیر آغا سره مکاتبه درلودله، او ډیر قبایلی مشران دغزنی دختیځی برخی کوچنیو کلیو کی تګ راتګ کاوه چی له مشهور مذهبی مشر سره مشوره وکړي. یو له دغو مشرانو څخه غوث الدین و.

نادر او دهغه ورونه په دي هڅه کی ووچی دکابل په لور برید وکړي هغوي فکرو کړ چی بریالی دي، ځکه چی له غوث الدین او له خپل احمد زي غلزي سره چی د حملی مشري بی په غاړه لرله، مخ په وړاندي تللی، وروسته نادر سمدلاسه پر غوث الدین باندي شکمن شو. هغه ځینی شیان ولیدل چی دده د قناعت سبب وګرځیدل، چی دا سړي خاین دي، او دي خطا باسی. هغه ژرځان وویست.

د هغه ورونو هم همداسی وکړل. نور نو دکابل په لورد پرمختګ کومه عاجله هیله موجوده نه وه.

د پینبور شرقی اتشی داسی لیکلی و، «نادرهند نه د بیرته تګ د سفر له ګټو څخه لاس

نه دي اخیستی چې فکر کوي اوس به هم مجبور وي سفر وکړي. » دهند حکومت د دې پیښې په ارتباط یوه طرحه اعلان کړه: زیاتی دي په هند کې توقف ونه شي، او په اورګاډي کې مخصوصه کوټه هم نشته.

نادر دهند حکومت ته دهغه شفر په واسطه خبرور کړ چې خپل یو دوست ته چې ام. اي. حکیم نومیده او په پېښور کې و، تیر کړي و، چې « هغه دوه سوه زره هندي روپۍ چې ماته راکړي شوي وي، فعلاً به د ټولو او ضاعو د حل دوسیلی په توګه کار وکړي. » ماته په اروپا کې د برتانیې دیو سیاست مدار له خوا ویل شوي وو چې د برتانیې حکومت هیله لري چې یو پیاوړي افغانستان ووینی، که چیرې د برتانیې حکومت په رښتیا سره غواړي په افغانستان کې د ګډوډي پای او د سولی د بیا منځ ته راتلل ووینی، اوس یې وخت دي چې مرسته دي وکړي. امان الله چې د روسیې د خالص سره زر په زور بیا د کابل پاچاهی ترلاسه کوي، هیڅکله به د برتانیې له پاره یو مناسب ګاونډي نه شي. »

یوه شپنواري شخصاً د برتانې د امپراتوري د خیبر د سیاسي افسر مرستیال ته داسې ولیکل: « زه لیکم چې له تاسو څخه پوښتنه وکړم... که تاسو دومره احسان کوي چې موږ ته د کابل له پاچا څخه د خلاصون لاربښوونه کوي... زما خپله قبیله او هم خوګیانو، سره رود او لغمان خلک ټولو د خپلو مرستو وعده کړې ده او که تاسو غواړي د کابل په لور مارش وکړي، زه به له تاسو سره یم او وعده درکوم چې تاسو هر هغه ځاي ته ورسوم چې تاسو وغواړي. هیڅوک به ستاسو په مخ کې ونه دریږي... ما ... یو لیک ترلاسه کړي دي... چې په کې له موږ څخه د یو مسلمان پاچا د ټاکلو همکاري غوښتل شوي ده. زه چې په دې هکله ستاسو پر مشورو باندي تکیه لرم، دغه لیک ته ځواب نه ورکوم، ځکه چې بوسري یو ځلې انتخاب شي، دا به مشکله وي چې وروسته تر هغه خپل خواهش تحمیل کړو. » دي لیک ته هیڅ ځواب ورنه کړي شو.

تقریباً ټول هغه څه چې اوس امان الله ورباندي پوهیده یوازي دغزني په جنوبي برخه کې متمرکزو. دهغه پوځ په تنظیم کې یو نظامي پوځ و، مګر د کرکنیز له مخې بې نظمه او بې شکله و. دهغه له شاهي نفرو څخه پرته او هم له هغو هزارو، پرته چې د برتانوي هند په اردو کې یې خدمت کړي و، لږ شمیر پوځیان یې واقعي نظامي تربیه لرله، ډیر دلې په حقیقت کې هغه کوچنی شخصي عسکرو چې قبیلوي مشرانو ته، چې د دوي لارښوونه دهغوي په لاس

و ، وفا داره وي، او امان الله ته د دغو ډلو د ځینو مشرانو وفا داري کمه وه ، د خلکو له پاره دا آسانه وه ، چې دده کمپ ته بې له کوم محدودیت او قیوداتو څخه تګ راتګ وکړي. دامان الله د موقف یو حقیقت داو ، چې دهغه دشاو خوا هر نفر په ربښتیني توګه د امان الله دبریالیتوب غوښتونکی نه وو.

د امان الله د قوي او دغزني د مخکښوقوا وترمنځ فاصله بیخي کمه وه او په غزني کې یې چې فیرونه کول دردوونکي او ازیې اوریدل کیده ، لیکن دا فاصله دیوې ورځې پلی تګ څخه زیاته وه. عبد الاحد له غزني څخه یو استازي واستاوه چې یو مخصوص ځاي، چې ممکن د امان الله نفر هلته توقف وکړي، وټاکي او له هغه سره وصل شي.

د امان الله شخص سکرتر هغه ځاي یې په یاد راوړ ، دهغه کلي ورته نژدي و ، او هغه پوهیده چې دا ځاي د توقف له پاره یې شمیره نیمګو تیاوي لري. هغه وروسته لیکلي وچې زه « پوهیږم داکار شخصاً ماته دشخصي خصومت له مخې صورت نیولی دي، او دهغه د مناسب والي راپورونه د عبد الولي له خوا په دي هیله برابر شوي دي، چې کندهاري عسکر به داځاي وران کړي. » عسکرو لا دمخه مارش کړي وو ، او دي ځان غلی نیولی و.

دي نقطې ته هیڅ سرک نه و تللی، موټرونونه شوکولی له دي غرني سیمې څخه تیر شي. نومجبور وو په غیر مستقیمه لاره لاړشي. ډیري ویالي ددوي مانع ګرځیدي او دوي په داسې حال کې چې غټ توپونه یې له ځانه سره وړل، مجبور وو ، په سختې سره دد دغوویالو څخه یې پوري ایستل د کمپ ساحې ته په رسید و سره هغوي ته معلومه شوه چې که څه هم په لاره کې خرابي او به وي مګر په هغه شاو خواکې نه دڅښلو او به وي او نه د کالي پریمنځلو.

د غذا له پاره امان الله هیله کوله له هغو لږو او بو څخه استفاده وشي چې له نژد و کلیو څخه یې په پیسو رانیولې. افسرانو به دهغه دغذا د پیدا کولو په خاطر لاړل، هغوي مجبوریدل د تیوپکونو له ډزو څخه ځانونه ګوښه کړي، متخاصم غلزي هغه کلي یې په خپل تصرف کې راوستي وو ، هلته ډیراسونه، کچري او خره موجود وچې باید ورته وابښه ورکړي شوي واي، او امان الله به خپلو نفرو ته ویل چې تنکي جوار دي ورته وریبي او په پټیو کې دي خوشې کړي، هغه پوهیده چې دا کار به دځمکو خاوندان دښمن وګرځوي، مګر دا هیله ورسره وه ، چې وروسته به وکړي شي په پیسو باندې سوله وکړي.

کله چې امان الله او دهغه یوغ ترتیبات ونیول چې لښانتې خوب وکړي، د سقاو د زوي

نژدې درې سوه تنه له دوو غټو توپونو سره غلي غلي راغلل، او په لومړي شفق داغ کې يې د دوي پر کمپ باندې ډزې پيل کړې. امان الله خپلې ډلې واستولې چې له درو خواو څخه پر توپونو باندې بريد وکړي، شورشيانو ځانونه گوښه کړل، مگر دمخه تردې چې هلته يوه لنډه خاموشي منځ ته راشي غرمه شوه. وروسته نور دښمنان راښکاره شول: دغلزيو دوې ډلې، اندړ او سليمان خېل هغسې چې شير آغا په جرگه کې وعده کړې وه، سره متحد شوي وو. دهغوي شمير زرگونه تنو ته رسيده، کوم شی چې امان الله ته نجات ورکړ د هغوي پر ټوپکونو باندې دده دغټيو توپونو تفوق وو.

په دې وخت کې دبل مابښام د ډوډې خوړلو وخت رانژدې کيده، حال دا چې د امان الله پرپوځ باندې د فشار، هيجان او کمی غذا سخته ورځ تيره شوې وه. امان الله شل زره روپۍ خپل يو مهم افسر ته ورکړې او ورته هدايت يې ورکړ چې د مواد و د ترلاسه کولو په خاطر دې، په خپله کليوته لاړشي او هم دې متوجه شي چې دعسکرو له خوا کليوا لوته کوم زيان نه وري رسيدلی. دې افسر، په داسې حال کې چې دمواد و دراوړلوله پاره دوه سوه مواشی يې له ځان سره وړې وو، به نژدې کليو کې غذايی مواد ترلاسه کړل، مگر څنگه چې له کمپ څخه ډير ليرې حرکت وکړ، دغلزې له خوا ورباندې بريد وشو چې پنځوس مواشی يې ورڅخه ونيول او د پاچا دوه تنه محافظين چې بدرگه ورسره تللي وو، ووژل شول کله چې هغه تقريباً بی له غذا يی مواد وڅخه بيرته راستون شو، امان الله ديو راپورچی راپورته غوږنيولی وچې په کې ويل شوي وو، غلزې نن شپه ديوې پلې حملې په هڅه کې دي.

امان الله خپل پوځ ته امرور کړ چې د مابښام ډوډې دې وختی وخورې او داسې يوځای ته دې دحرکت کولو آماده گی ونيسي چې هلته د دوستو هزاره ووکلی به گرد چاپير تر راتاو وي. هغه پلان درلود مخه تردې چې له عبد الحق سره وصل شي په دې حمل کې د يوې ورځی له پاره توقف وکړي. امان الله په دې هڅه چې د انتظار په حال کې غلزې وارخطا کړي، امر يې وکړ چې غلي دې حرکت وکړي. مگر داد امان الله نفرووچې مغشوش او وارخطا شول دهغوي زيات مواشی تيول شوي وو، نو په دې توگه عسکر مجبور وو، پر خپلو هغويابو گانو خپل سامان بارکړې چې په خپلهورباندې سپريدل. يو محلي نفر گومارل شوی و، چې دلارښود په توگه وظيفه اجرا کړي، هغه ورک شو. د خيمو ټولول او حرکت کول په بی نظمی او غال مغال سره سرته ورسيدل.

دمارش په لومړیو دوو ساعتونو کی سپوږمی دلاري په پیدا کولو کی مرسته وکړله. وروسته سپوږمی په وریځو کي پټه شوه، او یوغ خپله لاره ورکه کړه. هغوي د امان الله د سکرتر په، رسته چی داسیمه ورته معلومه وه، د یوه خان کلاته ځانونه ورسول. دا خان د اسمان الله له دوستانو څخه و. خان له امان الله څخه په کلکه غوښتنه وکړه چی تم دي نه شي او دغرنی خواته دي حرکت وکړي. هغه وویل که امان الله هلته استراحت وکړي، غلزي به فکر وکړي تاسو ماتی خوړلی ده او دهغوي مورال به زیات لوړشی. بهتره داده چی بی له کوم ځنډ څخه له عبد الاحد سره یو ځای شی. هغه په خپله خوښه وغوښتل له دوي سره د لار ښود په توګه اجرات وکړي، داستړي او ستومانه یوغ له شپاړسو ساعتونو مارش کولونه وروسته، بی له غذا او استراحت څخه، د عبد الاحد کمپ ته داخل شو.

اوس هزاره ګان په هغو کلیو کي اوسیدل چی نژدي وو، هغوي په خوښی سره راغلل او خپل غذایی مواد بی خرځ کړل. وروسته د هزاره ووجنګی ډلی په راتګ پیل وکړ: یو زرکسیزه ډله بیابله زرکسیره ډله، دریمه اته سوه کسیزه ډله، دوي نوري ډلی هریوه دوه زره تنه، او یوه بله پنځه سوه کسیزه ډله. هغوي له ځانه سره خپلی وسلی هم واوري وي.

امان الله چی د خپل اوږد مارش له ستونزو څخه خلاص شوي و، خپلو وفا دارونفروته چی تنګ سترګی یی درلودي وکتل او د یو څه زیاد اعتماد احساس ورته پیدا شو.

د شوروي په لید رشیی کی دوي نظریی وي، چی روسیه دي په دي مورد کی د افغانستان په باره کی یا ید څه وکړي. او، جی، پی، یو (O, G, P, U) خفیه پولیس، غوښتل له سقاو زوي څخه، چی د پرولتاریا سمبول و، دفهرمان په توګه دفاع وکړي. هغوي به وویل چی، څرنګه چی هغه په خپله دبزګرله طبقی څخه راپورته شوي دي، نو ممکن د بزګري جنبش ته پر مختګ ورکړي او دهغه په واسطه به موږوکولی شوکرار کرار افغانستان یو شوروي ایالت وګرځوو.

د بهرنیو چارو کو میساري بل ډول عقیده درلوده. دغه کومیساري وویل یوازي د شمال وکړي دسقاو زوي حمایه کوي، نو ددي له پاره چی دوام وکړي هغه به مجبور شي د روسی ترکستان په مورد کی خپل نفوذ نه د پراختیاورکولو په منظور د شوروي په برخه کی یو متجاوز سیاست غوره کړي. له بلی خوا، امان الله د جنوبی قبایلوله خوا حمایه کیده، نو په دي لحاظ داسی هیله موجوده و، چی هغه به دهغو برتانویانو په مورد کی، چی په هند کی وو، متخاصمه

رویه سوره کړي. برسیره پردې د بهرنیو چارو اداري دایی په گوته کړه چی ممکن نه دي د سقاو زوي د اوږدې مودې له پاره په قدرت کی پاته شی.

غلام صدیق نژدې دوې میاشتی په مسکو کی و. هغه له خپل ورور غلام نبی سره د بهرنیو چارو له کومیسار، چیچرین سره، چی امان الله د لیدنی کتنی په وخت کی د غلام نبی له خواد هغه د نوم په یاد ولوسره ستایل کیده او له قره خان سره چی د آسیایی برخی مرستیال و او له هغه سره یی د تینس لوبی کړې وې، بحث وکړ چی امان الله ته دې مرسته واستوي چی بیا پاچاشی. په پای کی سیاسی بیرو، چی په ورسیه کی یو عالی ارگان دی، پریکړه وکړه او وي ویل هغه دستور العمل یه غوره کړي چی دبهرنیو چارو دکومیساري خوښ وي او له امان الله سره به مرسته وکړي.

غلام نبی او غلام صدیقی یوه شپه د ډیرو ساعتونو له پاره بحث وکړ، چی دغه مرسته دې باید څه بڼه ځان ته ونیسی. هغو روسانو چی دوی ورسره خبري وکړې ډگروال ک. م. پریماکوف (K. M. PRIMAKOFF) د کابل د سفارت پخوانی نظامی اتشه او د تولی روسیی د کتاتور، جوسف ستالین وو.

آغا بیکوف(۲) داسی راپور ورکړ، «داسی پریکړه شوي ده چی یوه اعزامی قوه له سره یوځ څخه په افغانی جامه سمبال شی. دغه قوه به د پریماکوف له خوا لارښوونه وشی. غلام نبی به چی دافغانستان په شمال کی نفوذ لري، په نوم لیږ روي.

روسانو او افغانانو د می دلسمی نیټی په حدود دوکی حرکت وکړ، یوه ورځ سهار وختی الوتکی روسیی له سرحدي ښار، ترمز څخه، چی د امود سیند، چی دواړه هیوادونه سره بیلوي، په اخوا کی پروت دی، والوتی.

د پتگیسر (Patagisar) افغانی سرحدي پوستی ته اخطار ورکړ شو، د سرحدي محافظ یوه برخه ووتله چی ووینی څه پیښنه ده، او هوابازان، چی تیتی الوتنی یی کولی، د ماشیندارونو خولی ښکته ونیولی او ټول یی ووژل، آغا بیکوف وویل، «تر هغه وروسته سمدستی، پلی عسکر، چی د تاشکند له بهترینو یونوټونو څخه تشکیل شوي و، د آمو له سیند څخه غلی تیر شول. کشافه قوا، چی شمیري یی نژدي اتوسوو تنو ته رسیده، له څه زیاتو ماشیندارونو او یو شمیر توپونو سره، دمزار شریف په لور پر مختگ وکړ. د افغان د حکومت (د سقاو د زوي قواوي چی دهغوي مخالفت کاوه، دماشیندارو او توپونو په ډزو سره فوري له منځه

لاړي... غلام نبی دهغه ځای اصلی وگرځي، چی مزار شریف ته نژدي پروت و... دواړه قواوي تر آخره پوري وجنگيدي. شپږ ساعته وروسته د سقاو د زوي قو او دايی لازمه وگڼله چی تيښته وکړي... زموږ نفراو د غلان نبی افغانان بی له دي چی زيات جنگ وکړي تاشقرغان بی وتيو او دي ته تيار شو چی د ځان اباد په لور پرمخ ولاړشي. »

د. او. جی. پی. يو (O, G, P, U) نفرو فکر وړ چی دهغوي موقف چی په هغه وخت کی لامتزلزل و، دستالين له خوا په خطر کی و، چی ددوي مشوروته د نورو په شان ترجيح نه ورکول کيده، هغوي، ددي له پاره چی دوباره خپل ثبات وښيی، تصميم ونيو چی اغا بيکوف کندهار ته واستوي چی دامان الله پر مستقبل موقف باندي راپور ورکړي، د قبايلو احساس معلوم کړي، اووينی چی برتانويانو څه رول لوبوي، تر څو پوري چی اغا بيکوف په کندهار کی و، له هغه ځخه به هيله هم کيدله چی په هغه ښار کی د جاسوسی سيستم تشکيل کړي چی په هند کی فعاليت وکړي.

ليکن د می په څلورم هرات د سقاو د زوي په لاس لويدلی و. دشجاع الدوله يادنورو مامورينوله پوهيد وپرته، پنځلس تنه ملايان د سقاود زوي د پرمختگ په حال کی جنرال ته يود دعوت نامه وليږله چی ښار ته دي داخل شی. دحکومت د نفرو مخکی گارډ راپور ته شو او، په زياته مذهبی جذبه يی تقريباً سل تنه هغه هزاره گان ووژل چی له دوي سره روان وو، دسقاو د زوي جنرال د اس په سپرلی ښاته ننوت. او يا اوښان چی خزانهورباندي باروه وريسی وو. هغه خپله اداره له دي خزانی سره دوسره په اغيز منه توگه ټينگه کړه چی حتی دروسانو د خفيه پوليس ماهره دستگاه د هرات شاو خوا هغه ساحه يی په بشپړه توگه بنده ولیدله چی له هغی ساحی ځخه کندهار ته لاره تللی وه.

بيا هم، او جی، پی، يو (O, G, P, U) يوه مخصوصه څانگه درلودله چی دبهرنی ديپلوماتو د تلگرامونو رمز کشفاوه، او دا دهغوئا جايزو عملونو عمومی ښکارندوي و، چی په شمالی افغانستان کی ترسره کيدل. حتی پارسيان او ترکان چی په هغوي کی، او جی، پی، يو هيله کوله د امان الله له پاره بشپړه همدردي پيدا کړي، هم ناراضه وو، په اروپايی اخبارونو کی ددي حملی راپور ورکړشو، په هرځاي کی عدم توافق موجود و.

په ډيرو ځايونو کی د نارضايتی علت په ټاکلی رول کی درلود بشري طبيعت له نيمگړتياونه پيدا کيږي او که چيري دي خپل رول له هيلی سره سم نه تر سره کوي، نوځوريږي.

دلته یو کمونیستي هیواد وجود درلود ، د روسیه ، او دیوپاچا په حمایه کولو سره یې په یو غیر کمونیستي عمل لاس پوري کړي و ، حتی هغوي چې کمونیستي یې نه خوښوله ، غوښتل چې هغه دي باید پر خپلو اصولو باندي ولاړ وي.

روسیې د نړي نظریه ته ارزښت ورکړ ، هغه هیواد د نورو هیوادونو رسمي پیژند نه او د سوداګري د پراختیا غوښتنه یې کوله. وروسته چیچرین وویل چې روسیه امان الله سره مرسته په دې خاطر رد کړه چې داریده له انګلستان سره به یې ستونزي پیل شي ، هغه کشافي قوي ته بیخي اجازه ورنه کړه.(۳)

مسکو ، چې د او ، جي ، پي ، یو ، له راپور سره مخامخ و ، وپتیله ، چې پر افغانستان باندي یو اشتباه وه. ستالین خپل پوخ او الوتکې بیرته وغوښتې. له غلام نبي سره روسیې مرستي په دروورځو کل له منځه لاړله. مګر غلام نبي تر اوسه پوري خپلي افغاني قواوي درلودي ، ځینې په کې د روس ترکستان افغانان وو ، چې ممکن د روس په نوم سره یاديدل. هغوي تر اوسه پوري هم وسله او ټینګ عزم درلود ، او د غوربند د دري او د بامیانو له لاري چې دلویې بودا مجسمه په کې د فکر په حال کې ولاړه ده ، د کابل په لور پرمخ ولاړل.

د هزاره ګانو رارسیدل ، چې د امان الله له پاره خوښ موجب و ، ډیر نور قبایلیان یې د هغه پر ضد وګرځول.

افغانستان تر اوسه پوري په مختلفو برخو ویشل شوي یو هیواد دي ، صداقت او وفاداري په مرکزي حکومت کې نه بلکې په قبایلو کې دي. مرکزي حکومت یو تجریدي حکومت و او یوازي پري جنبي جوړولي چې پیسي او تفر تر لاسه کړي. امان الله د لسو کلوله پار مذهبي تبلیغ کړي و ، هغه به د مذهبي قدرت او توان تبلیغ کاوه ، اوس افغاني قبایل خپه وو ، په دي چې امان الله له دوي څخه توقع کوله چې له هغو کسانو سره دي په مساوي توګه په جنګ کې برخه واخلي چې کړي سترګي یې درلودي ، چې له دوي سره پرځ ځایونو باندي یې شخړي کولي او هغوي چې د لمانځه د ادا کولو په وخت کې د دي پرځای چې لاسونه د سني مذهبو په شان تر نامه لاندي وتړي ، خپل لاسونه به یې ځوړند پرېښودل.

د امان الله د شاو خوا لیډران مدام تراشتباه لاندي وو ، غزني ته د نژدي راتلو راهیسې هغوي به د سقاو د زوي د نفرو په لوراستازي استول ، او په وار سره به د سقاو د زوي د پروپاګندونو پاڼې تر لاسه کولې چې په کې راغلي وو :

«له امان الله او دهغه له همکارانو څخه خداي (ج) او هدغه پیغمبر (ص) ناراضه دي، او انشا ء الله چې هیڅکله به ښه ورځ نه په دنیا او نه په آخرت کې ووینې.» د دغو رسالو دوران د امان الله په خپل پوځ کې پیل شو. د امان الله پرپوځ باندې باران په ورید وپیل وکړ، دهغه د ښمن په سنگر کې پناگاه درلوده، لیکن امان الله په دوه ورځنی جنگ کې بریالی و او وروسته یې دیوې شاهکارې هڅه وکړه.

د غزنی نظامی کلا، که څه هم دیوې غونډې د پاسه وه، له یوې غونډې څخه یې څارنه کیدله چې له هغې غونډې څخه جگ وه، دامان الله هغه نفر چې ورڅخه بیل شوي وو، پردې نظامی کلا باندې چپاو یووړ، په دوې کې دشاه جوې وزیر هم شامل وو، چې یې دخلکو د دارایی دلوټ کولو نه سنځ کیدونکی عمل هغه وخت نه راپه دې خوا، امان الله ته دستونزو د رامخ ته کولو باعث گرځیدلی و، چې امان الله ورته په هغه ځاي کی ځمکه ورکړې وه. دغو زیرو، دهرات له ځینو خلکو سره، دغه جگه غونډې اشغال کړه. اوس دوې په یوارپانوونکی تاکتیکی حالت کی قرار درلود. دوې دهغه غټ توپ په واسطه، چې دغونډې په سر کی و، پر جنگی کلا باندې ډزې کولی.

د جنگی کلا یو دروازه خلاصه وه، خلک چې قران شریفونه یې په سر ایښی وو، د تسلیمیدو په عنوان را ووتل. د ننه په کلاکی دهغو کسانو په منځ کی چې لیکل یې زده وو، د لیکنی ناڅاپی هڅې روانې وې، دسقاو د زوې نفر امان الله ته د تسلیمید و رسمی تصدیقنامی برابر ولی.

وروسته د شاه جوې وزیرله خپلې جگې غونډې څخه لاندې وکتل او دټیټو غونډیو په خواکی یې یوکلی ولید چې دوې یې راوپا رول. دا ورته گټوره ښکاره شوه هغوي د فاتحینو په توگه له دې کار څخه ډډه نه شوه کولی چې خپل توپکونه پرېږدې او دهغه کلی د لوټولوله پاره لاندې لاړشي. د غونډې ځینی نور قبایلیان، چې پوهیدل وزیر څه غواړې تر لاسه کړې، هم ښکته شول. دغونډې سره یې دفاع پاته شو. دسقاو د وې پلویان له نورو نژدې کلیو څخه د غونډې سرته وختل، اشغال یې کړ، او خپل توپکونه یې د هغوو زیرو په لور سیخ کړل چې لاندې یې کلی لوټول، په یوه شپه کې برې په ماتې بدل شو.

هزاره گانو له امان الله څخه اجازه وغوښتله چې که غونډې بیا تر خپل تصرف لاندې راولي، هغوي په هغه شپه باندې مارش وکړه مگر د سقاو د زوې نفر غونډې سمدستی بیا تقویه

کړی وه، امان الله چې د دوربین په واسطه څارنه کوله ولیدل، چې دهغه هزاره ګان په دی نا امیده حمله کی خپل ځانونه تلف کوي، نوبیرته یی راوغوښتل.

دوړ دکو یوه ډله راورسیدله، او وویل یی چې دغزنی په لاره کی دسقاو د زوی قواوته یی ماتی ورکړي ده ، او هغوی یی په زور سره په نژدی کلا وکی ایسار کړي دی ، او هغوی یو بندی نیولی وچی دوی یی حیران کړی وو.

د ابندی هم پښتو پوهیده او هم په یوه بله ژبه چې دامان الله د شاوخوا نفر ورباندی پوهیدل داروسی ژبه وه. هغه په روسی ژبه وویل چې زه دپولیند لهوار ساځخه یم، او څلور کاله دمخه هرات ته تللی وم او هلته دسیاسی شکایت لاندي راغلم او ګرفتاره شوم، او وروسته کابل ته واستول شوم چې هلته یی خپله بی ګناهی ثابته کړه او خوشی شوم: بل دا چې هغه وویل چې په جنوبی ولایت کی می یو دوست درلود، او پښتو می دهغه په کورکی زده کړي ده، او د سقاو زوی له قوا وسره یوازي په دي خاطر یو ځای شوم چې دخپل کورته ورسیږم.

هیچایی خبره نه منله. بیاهم دهغه دکیسی دا برخه درسته وه، هغه دیو ژرنده ګری شاګرد وه او له دوو ملګرو سره د «کارګرود جنت» په کیسو تیرایستل شوی و او روسیی ته راوستل شوی و، دغو دریوتنو چې هلته دجاسوسی په تور بندیان شوي وو افغانستان ته تښتیدل او په دي ویره چې بیرته به روسیی ته واستول شي افغانی مقاماتوته یی وویل چې موږ انګلیسان یو اوله چین څخه تښتیدلی یو. هغوي په کابل کی په عین وخت کی په بندیخانه وکی چې ستراتل- ساور (Stratil Sauer)، چې له دوي سره یی په روسی ژبه خبري کولی، یو تن یی مسلمان شو او افغانی نوم ورباندي کیښودل شو او دخوښی ژوند یی په نصیب کی شوه دوه تنه نور یی دیر خوار او غریب تر هغه پوري په زندان کی پاته شول، څو چې کونت پتوکی «Count Potocki» یوازنی پولیندی چې افغانستان یی کله نه ولیدلی، دهغوی په خاطر له امان الله سره خبري وکړی.

امان الله زیاتر تعقیب لاندی و او هدف داو، چې ووژل شی. یو سړي چې څو ورځی د مخه دهغی خیمی ته ظاهراً په دی معنی چې یوه درخواستی ورته ورکوي، ولیدل شو چې یو تبریی له ځان سره وری و، د امان الله د شاو خوا کسانو هغه ونیو او مړیی کړ. اوس چې امان الله د اسلامی قانون پیروی یی کوله، یوه دری کسیزه محکمه یی وتاکله چې پرنوي بندی باندی قضاوت وکړی: دهغه اوسی عبد الوهاب طرزي، چې په اکسفورد کی یی زده کړه کړی وه،

دهغه اوبنی حسن جان[۱] او د ثریا اکا، ادیب افتدی . دغه کسان دجنګ په ډګر کی وو، دوی دکابل پر دوسیی باندی، چی ممکن د دی پولیندي کیسه پکی ذکرنه و بر لاسه نه وو. برسیره پردی دغه سړي له ځانه سره سره زر هندی پیسی درلودی او هغوی پر برتانویانو باندی شکمن ووچی دهغوی له لوري د دوی پر ضد دغه تولی ورانکاری صورت نیولی اوچی هغوی خپل د ا نصاف احساس ته دوسلی په منع کولو سره سپکاوي کړي و. محکمی وپتیله چی دا دبرتانیی جاسوس دی. همدا راز کوم شی چی دوی ورته اړتیالرله چی خپلی نیت او پرکی قواوی سره بوځای کړي، هغه یو ګډ دښمن دی او یو یی دلته و.

امان الله دغه بندی پوځ وراندي کړ، او ورته برتانوی جاسوس وویل، «هغه توپکونه چی له غزنی څخه ډزي کوی، د برتانویانو له خوا شورشیانو ته ورکړي شوی دی او ما دخپلو دوربینو نو په ذریعه لیدلي دی چی توپچی نفر برتانویان وو... په دی توګه پوهیږم چی زمونږ جنګ دسقاو د زوی سره نه بلکی له برتانویانو سره دي، چی مونږ خپه کوی. پوځ په خوا شینی سره چغی وکړي او امان الله چی په هغه څه چی یی ویلی وباور نه درلود، دا سړی یی هغوی ته ورکړ چی مړیی کړي.

د سقاو زوی الوتکی ولیږلی چی بمونه یی وغورزول او صحیح په هدف وغورزیدل. یو بم د امان الله یو کندهاری داوطلب بیر غچی یی وواژه دایو منفور سړي و او د چرسرد خوړلو په وجه یی سترګی مدام تکی سری وي، مګر له منځله تللو یی دهغه د نفرو مورال کمزوری کړ. وروسته ولیدل شو چی خزانه هیڅ سپین زر نه لری، یوازی برتانوی نوټونه په کی وو او هزاره ګانو دهغه له منلو څخه دده وکړه. هغو کسانو چی خپل څاروی یی د حمل او نقل په خاطر اجاره کړي وونغدی پیسی یی غوښتلی، هغوی ته څو ورځی پیسی نه وی ورکړي شوی او هغوی د خپلو خروجلبونه ونیول او شروع یی وکره چی یوی زی.

امان الله دی حدته رسیدلی و، چی د عبد الاحد پر وفا داری باندي شکمن شو، هغه له حسن جان څخه چی دهغه استخباریه بی رهنما یی کوله، و اوریدل چی عبد الاحد غواړي دی وغولوی، غزنی ته یی یوسی، او د سقاو زوی د نفرو په لاس یی ورکړی. پلان، څنګه چی حسن جان توضیح کړه له هغی پیشګویی سره شباهت درلود چی همفریز له یوه میاشت نه ډیر دمخه کړي وه: هغه دا وچی غلزی به امان الله په لومه کی ایسار کړی.

---

۱ - حسین جان دامان الله و خورمیړه و. (ژباړونکی)

حسن جان له امان الله سره پټ وغږید. هغه ورته ووېل چې حتی که ته پاچاهم شې، د یو غیر منظم هیواد پاچا به شې چې شتمنې یې تیت او پرک شوې ده. هغه ووېل افغانانو ناپوه خلک دي چې دلسو کلو سخت کارته یې د قدرپه سترګه ونه کتل.

امان الله خپل لښکر سره را ټول کړ، او اعلان یې وکړ چې د کندهار لاره بنده ده او زه ځم چې خلاصه یې کړم. دهغې شپې په لسو بجو باندې هغه بیا د جنوب په لورمارش وکړ، په ټوله لاره کې یې په دوام داره توګه له شاوخوا څخه د ډزو اوازونه اوریدل: دا د غلزیو ډزې وې. په مقر کې ورته احوال راغلی چې هرات سقوط کړی دی. هرات د یو سمبول او محک په شان و، افغانی امیرانو به په عنعنوی توګه احساس کاوه چې تر هغو چې هرات، چې له مزار او کندهار څخه مساوي واټن لري، د دوي په واک کې وي، دوی مصئون دی. ځکه یرنفر کولی شو له هغې نقطې څخه مانور اجرا کړي. اوس که امان الله مغلوب شي نوله کندهار څخه پرته د تللو پل ځای نه لري.

هغه ته خبرونه کرار کرار رارسیدل. هغه و اوریدل چې غلام نبی په حرکت کې دی، مګر په پوره تفصیل سره نه پوهیده چې ناارامي یې له منځه تللې وای حقیقت یه ورته جرأت ورکاوه که چیرې وریاندی پوهیدلی وای. غلام نبی، بامیانو ته رسیدلی و او د کابل په لور په حرکت کې و، او د سقاو دزوی نفر، چې له ده سره یې مخالفت کاوه، دومره زیات شمیر زخمیان شوي وو، چې نور هغوی تلفات په دی ویره کابل ته نه راوړل کیدل چې خلک وارخطانه شی، بلکې په چاریکار وکې پرېښودل کیدل. او د سقاو زوی نوری اعلامیې خپرولې: « غلام نبی درواغجن، شرابی او یو کافر سړی دی، لواطت کوی او لمونځ بیخي نه کوی. »

عبد الاحد وغوښتل چې لږه قوه په غزنی کې پریږدي او د دوستوردکو له لاری کابل ته په ورتګ باندی زور واچوی. هغه ځوان افسر چې په ترکیه کې یې زده کړه کړی وه هم همداسی غوښتل که چیری امان الله دغه تدبیریې منلی وای، نو افغانان به دتل له پاره هک پک پاته کیدل، څه به پیښ شوي وای؟

هغه د نادر له خوا یوه بله مشوره ترلاسه کړه، کله چې نادر تمایل ښکاره کړ چې کندهار کې له هغه سره یوځای شی، ډاډ ګیرنه ورکرله شوی وه، چې هغوی دواړه د یوی موضوع له پاره کارکوی. نادر ورته د بیرته راتلود هیلی پیشنهاد وکړ.

امان الله فوری خپل تصمیم ونیو. هغه حسن جان کندهارته واستاوه چې په پټه توګه د

ترانسپورت بند اویست وکړي ، هغـه حتی هلتـه هم خوشـبخت نه و ، ځکه چی غلزیانو د هغـه ځینی موترونه غلا کړی وو ، چی رولز رایس (Rolls _ Ryce) هم په کی شامل وچی په کی په انګلستـان کی په عزت سره سفر کړي و . د بمبیی قونسل ته تلګرام وشوه ، او ورڅخه وغوښتل شو چی عنایت الله ته ویزه ورکړله شی چی د مشرقی ولایت له لاری راشی چی والی مقررشی. د بمبیی قونسل یوه بله موسسه وه چی تردی وختـه پوری یی دامان الله امر منلی و ، برتانویانو ونه منله ، او وی ویل چی دا کار به دسقاو له زوی سره پیمان شکنی وی ، مګر امان الله دهغوی ځواب ته معطل نه شو.

هغـه ، ددی کړاو دیوی برخی په آشنا کی د ګلانو په لویدوکی خپل تصمیم نیـولی و ، دا داختـر ورځ وه ، چی یوه بختـوره ورځ ده او په هغـه کـال یی دمی د میـاشتی له ۲۰ سـره تصادف کـړی و . عـمـر پورتـه خـتلی : وچی پر پوغ باندی د ګـلانو په شـیندلو سـره ددغی ورځی په خاطراجراات وکړی.

مـومند وته په رسید وسره ، امـان الله یو نفر راوغوښت چی د تیلفوني وظیفـه یی لرله او ورته یی وویل چی د شمـال دلوری لین دی قطع کـړي چی دلات او مـقـر خـواتـه تللی دی او له کندهار سره یی رخ کړي. هغه له خپلی کورنی سره خبری وکړي. دهغـه د اکا زوی علی احمد دده د غوښتنی له مخی مومند و ته راغلی و ، هغـه له علی احمد سره یونیم ساعت خبـری وکړی. ټولی خبری د کندهار د حکومت کـولو په باره کی وی ، مګر خپل مقصد یی ورته څرګند نه کړ علی احمد لاړ امان الله امروکړ چی دکندهار د تیلفون لین دی قطع شی.

خلک په سـختی سـره پوه شـول کله چی امـان الله د شـپی پر دوویجـو بانـدی د حربیی له وزیر ،عبد العزیز سره ، سپانو سوزا «Sparo - Suiza» ته ورسید ، چی غلزی له هغه ځای څخه تللی وو او له مومند وڅخه د کندهار په لور په موټر کی لاړل. دکندهار د شمال په اته میلی کی هغه له جنوب څخه د رنایی ناڅاپی شغلی ولیدلی. دهغـه د مخکی ترتیب شوی پلان له مخی دهغه کورنی او دوستان چی له کندهار څخه راغلی وو ، خپل موټرونه یی دشمال په لور مخامخ دروللی وو ، او د موټرونو په څراغـونو سرمییورباندی رڼا اچول. دری عرادی د میرسدس بنز سـرویسـونه او تقـریبـاً اتلس ګـرندی مـوټران او لاری د دوی په انتـظار کی ووچی اوه ویشت تنه نارینه ، پنځه دیرش تنه ښځی او ماشومان او دیرش تنه نوکران په کی سپاره وو . دښځوله جملی څخه دوی ښځی ، ثریا او دعنایت الله ښځه کوکب ، د خپلی امید واری په وروستی میاشت کی وی. دهغه مورله دوی سره وه.

کله چی دا ډله په اخره کی د بهر په لور روانه شوله، امان الله د هغه موټر پر جلب ناست وچی د فرانس جمهوریت ورته ورکړی و، او د هند په لوریی حرکت وکړ. دی ډله به هر ساعت توقف کاوه ځکه چی یونفر د موټر پر بام باندی ناست و او دیوی غوځونکی آلی په ذریعه یی د تلگراف مزی پریکول. مخابره په دی وخت کی دامان الله له پاره یو دښمن و.

یوه اعلامیه ترتیب شوی وه چی په کی ویل شوی و، عنایت الله د ننگرهار دوالی په توگه د ننگرهار خواته په حرکت کی دی، دا اعلامیه افغانی سرحدی مامورته وښودله شوه، او هغه ذومره وخت نه درلود چی ورته کتلی یی وای یایی خپلی سترگی ورته غړولی وای. امان الله په داسی حال کی چی په هغه لاره خپل موټر چلاوه چی اتلس میاشتی د مخه په شان او شوکت سره په دی لاره د موټر په ذریعه تیر شوی و، بالاخره افغانستان څخه ووت. په قطعی توگه به چانه ویل چی هغه د افغانستان پاچا و.

دهغه دحکومت ایدیالیستی تجربه، چی په خونړی لویه جگړه کی پیل شوی وه، پای ته ورسیدله، وینی توییدل له هغه نه وروسته لاهم وجود درلود.

# څلور دیرشم فصل

## د ۱۹۲۹ کال د می له ۲۲ څخه

## د ۱۹۳۳ کال د سپتمبر تر ۷ نیټې پورې

امان الله چې له مومندو څخه د می د ۲۲ تاریخ په ماښام ولاړ، یوساعت وروسته هغه تیلفوني چې دهغه له پاره ی مزی پریکول، بیرته د کندهار په لور لاړ. هغه داسې وویل، «کله چې زه هغه ځای ته ورسیدم چې د کندهار - غزني سړک د چمن له سړک سره یو ځای کیږي، زه د پاچا د موټر د ارابو له خط څخه وپوهیدم چې امان الله ددې پرځای چې کندهار ته تللی وي، د چمن په لور تللی و.» تیلفوني سهار وختي کندهار ته ورسید او هلته یې دامان الله د تلو خبر ورکړ.

د می د میاشتې د ۲۳ نیټې د ماسپین په یوه بجه، چې تقریباً هغه شیبه وه چې امان الله له بندر څخه د هند خواته د تیرید و په حال کې و، علي احمد د دوهم ځل له پاره ځان د افغانستان د بوی برخې امیر اعلان کړ. بله ورځ هغه په دې باندې خوښ شو چې د کندهار په یو جومات کې یې نوم په خطبه کې امیر علي احمد، وویل شو.

په بله جمعه کې خطبه د امیر حبیب الله، په نوم وویل شوه. د هغه قوا وو یوه اوونۍ دمخه کندهاریې بې له کوم مخالفت څخه تصرف کړي و، او علي احمد د یو غریب هزاره په کور کې پټ شوی و، څو ورځې وروسته هغه وموندل شو، کابل ته راوستل شو او په داسې حال کې چې زولنې یې په پښو کې وې، د کابل په کوڅو کې لوڅې پښې وګرځول شو.

علي احمد د جولای تر ۹ نیټې پورې په بندیخانه کې و، وروسته له هغه په یوغټ توپ کې د الوزولو له پاره د توپ غوندي ته چې کابل له هغه ځای څخه معلومیده وخیژول شو. هغه لومړی توپ بشکل کړ چې ونښیږي: یو غیرتي میړه په شان په توپ الوزول کیږي او شکریې وویست چې له کړاوونو څخه خلاصیږي. کله چې خبر لندن ته ورسید، دهند د دفتر دیو یاد داشت په حاشیه کې دا مطلب ولیدل شو: «یو توپ لږ ترلږه یوه غټه مرغۍ لاندې ځمکې ته وغورځوله.»

کله چې امان الله له افغانستان څخه لاړه د هغه اتل غلام نبي، چې له روسیې څخه راغلی و، په بامیانو کې دهغه له پاره جنګیده. هغه د کابل په یوه عجیبه فاصله کې و، چې وايي اوریدل چې دامان الله تک نه یوازې هغه یې د جنوب له حمایې څخه بې برخې کړ، بلکې دهغه د جنګ علت یې هم له منځه یوړ. هغه د مزار شریف په لورعقب نشیني وکړه او له هغه ځای څخه، بې له کومې شخړې یې ځان روسیې ته وایست.

هزاره ګانو خپل جنګ ته د امان الله له پاره دوام ورکړ. امین جان، ځوان شهزاده، چې دهغوی لیډر شوی و، دهزاره و مشران یې راوغوښتل، او ښکاره یې کړه چې پیسې نه لرو، مخابره نه لرو، او وسله هم کمه لرو. مشرانو وویل چې پیسې، وسله او نفر به موږ برابر کړو، نو هغوی په هزاره جاتو کې یوه نظامي اډه جوړه کړه چې له هغه ځای څخه د سقاو زوی یې دومره په اغیزمنه توګه ځوراوه چې کله چې هغوی د شرطونو پیشنهاد کاوه، هغه به ځینې شرطونه ومنل، چې هغه ته دامین جان له پاره یوه آزاده لاره هم په کې شامله وه. امین جان د ختیځې لورې په سفر کې له نادر سره ملاقات وکړ. نادر ورته مشوره ورکړه چې له هیواد څخه دې پټ ووزي او د نادر د برې او د هغو انتخاباتو په انتظار کې دی و اوسي چې نادر یې د یو نوي امیر په خاطر کوي. امین جان، چې هیڅ تردید نه درلود چې پرته له امان الله څخه به بل څوک امیر انتخاب شي، ولاړ. د امان الله نورو ملګرو ته د غه وعده ورکړ شوې وه انتخاباتو ته هیله من وو. غلام صدیق او غلام نبي په خپل مورد کې د نادر مخالفت له یاده وویست او هغه ته یې پیسې ولیږلې هغه د دوی یوازنۍ هیله وه.

په هر حال، د سقاو د زوی د هیواد ستونزې، د هغه د حکومت د ساتنې په برخه کې، دهغه واهمې کمې کړې. هغه له سوداګرو څخه لاډیرې زیاتې پیسې غصب کړې وې، دهغه پیروان دبنځو په مورد کې د یرلږ حقایق او تګ لارې ښودلې وې، هغه د یر زیات مهم موقفونه خپلو زړو

ملګرو ته ورکړي وو، او حتی دهغه کوهدامني کسان نارضايتي ښکاره کړې وه، ځکه دهغوی ګڼ شمير ځوانان يې دعسکرۍ له پاره نيولي وو، په دې چې هغوی يوازې نفرو چې ده ورباندي يې اعتماد کاوه.

د جولای په سر کې هغه د کوهدامن د مشرانو کنفرانس داير کړ، او دهغوی د مشورې په صورت کې دهغوی د پوره ملاتړ هيله وکړه. هغوی ورته وويل چې له نادر سره دې بايد روغه وکړي، چې دوی ورته کابل ته دراتګ پيشنهاد کړی و. د سقاوزوی د دې خبرې له اوريد څخه ډډه وکړه.

هغه وويل، « که خلک ستړي وي چې له ماسره مرسته وکړي نو هغه ستړي د هغه له خوا وچې ځان دخدای(ج) د احکامو د مفسر په توګه معرفي کړی و، دا سړی شير آغا و. »

د جون په ۱۳ تاريخ د سقاو د زوی يو ډير مهم جنرال پر نادر باندې يوه خواشينې کوونکې حمله وکړه او ماتې يې وخوړه. ليکن د سقاو زوی د نفرو او مهماتو څخه زيات ضايعات ورکړل.

شير آغا يوه جرګه جوړه کړه او يوه اعلاميه يې خپره کړه چې په کې د سقاو زوی يې بې دين معرفي کړی و.

دهغه مرجع د قران شريف هغه او امروو چې حکم يې کاوه هيڅوک دې بايد پر خپل رقيب باندې يرغل ونه کړي څوچې يې خبرو اترو ته غوښتی نه وي، دسقاو زوی دغه شي بيخي له منځه وړی و، نو هغسې چې د مخه له امان الله سره شوي وو، د سقاو پر زوی باندې بريد کول نه يوازې يو منلی کار دی، بلکې دستايني وړ دی.

د شير آغا په ليکنه کې ويل شوي وو چې اوس هغه وخت را رسيدلی دی چې کابل ته دې د خبرو اترو له پاره راشي. شير آغا يو ځل بيا وويل چې نه.

دشير اغا قدرت داسې يو قدرت وچې دبې رحمو غلزيو احساساتو د اور لمبو ته يې لمن وهله. اوغلزي پلان درلود چې په دې کال کې دمعمول په خلاف له افغانستان څخه وختې لاړشي. دبلوچستان په استخباراتي يادداشت کې ويل شوي وو، دا مشکوکه خبره چې هغوی د نادر، شير آغا او هم د سقاو زوی په باره کې خپله عقيده له لاسه ورکړي وي. »

غلزي چې د زياتو استخباراتي دند و په خاطر په يوه قاره کې د ګرزنده په حال ساتل شوي و، د شير اغا دمانورو په وجه په انديښنه کې و، او ښکاره يې کړل چې د افغانستان چارې په مور پورې هيڅ اړه نه لري.

نادر ته، دامان الله په شان، عاجل ضرورت د زیاتو عسکرو درلودل و، او یوازنی تر لاسه کېدونکی خلک په برتانوی سرحدی سیمه کی وو.

هغوی ته د نادر درک د امان الله له درک څخه توپیر درلود. هغه په زوروتوب سره برتانویانو ته ولیکل چی په کی یی څرګندونه کړی وه چی غواړی څه وکړی. هغوی بیرته ورته ولیکل چی باید هغسی دی ونه کړی. لیکن په عین حال کی خلک ورته علی خیلو ته تلل او هغوی د مخنیوی په برخه کی د برتانویانو هلی ځلی مذبذب او زړه نازړه و. «په دی مرحله کی ډیر غوڅ تهدیدی عمل کول، دغسی تهدید وه سپکول، او بیا، د نادر موقف او معیارته د زیات هجوم په صورت کی، د دغو تهدید ونو د عملی کولو په نامناسب توب او غیر ممکن توب باندی پوهیدل، به په نتیجه کی خبره رسوایی ته ویاسی.» دا هغه طریقه وه چی دهند حکومت یو ماموړ ته تلګرام کی دغه استعداد او توانایی عادلانه وښودله. او پوښتنه یی کوله چی د تلو په حال کی قبایلیانو سره دی باید څه وکړی.

وروسته نادر د هغوی د غیر فعال ګرځولو له پاره ددی معلوماتو په واسطه، چی هغه په فکر کی لری له افغانستان څخه لاړشی او له کابل څخه د خپلی کورنی په ژغورلو کی د برتانیی مرسته غواړی، بله موضوع ورته وړاندی کړه.

هغه دوست چی نادر دغی خبری اتری ورپه غاړه کړې وې، مهذب حاجی محمد اکبرو، چی په بمبیی کی د امان الله قونسل و او هلته یی په تولنیز وچارو کی د پوهی په نسبت دهند د بهرنیو چارو د سکرتره سرډینسربری (Sir Denys Bray) پام نظر ځان ته جلب کړی و. اوس هغه دهند دحکومت د عملیاتو په برخه کی پوره وارد و، او پوهیده چی کومه پوښتنه په پاراچینار کی کولی شی چی ډیلی او له ډیلی څخه دی لندن ته رجعت ورکړشی. ده هغی پوښتنی وکړی. هم ځلی چی د برتانیی مباحثه کوونکی د معطلی په خاطر معذرت غوښتلو، حاجی اکبر به په مسکا شو.

کله چی د معطلی دغه تاکتیکونه په فعالیت کی وو، له پنځوزرو تنو څخه زیات وزیرله نادر سره په علی خیلو کی یو ځای شول. همدا راز د شاولی تر حمایی لاندی یو ځوان چی محی الدین نومیده هم له نادر سره یوځای شو. چی په کابل کی د یو موقف خاوند و او له هغه ځای څخه به یی د سقاو د زوی له استخباراتی دستګاه څخه نادر ته پیغامونه استول. اوس نادر د سقاو د زوی په ټول عسکری را زباندی پوهیده او ډیر معلومات یی د بی سیم د شفر دهغو

پیغامونو په ذریعه تر لاسه کیدل چې د پینور سوداګر ام. ای. حکیم یې له کابل څخه د نمایندګانو له خوا، چې د پیغامونو د استولو اجازه یې لرله تر لاسه کول.

شاولي وزیري د کابل په لور لاربنوونه وکړه. دهغه ستراتیژي د دښمن د صاحب منصبانو نیول وه، او بې لیډره پوځیان سره ګډوډ شول. هغه ژرد ارګ په مخ کې قرار ونیو. ارګ هغه ماڼۍ وه چې له هغه څخه پر عنایت الله باندې فشار راوړل شوی و. د هغه خپله کورنۍ د ننه په کې بندیان وو، مګر د نادر ښځې وکړې شو، چې نادر ته پیغام واستوي چې برید دې وکړي او په دې فکر کې دې نه شي چې دوی ته به په نتیجه کې څه پیښ شي.

داکتوبر په ۱۲ د شاولي توپونو پر ارګ باندې ډزې پیل کړې. په ارګ کې چې له مهماتو څخه ډک و، انفجارو صورت ونیو. د سقاو زوی، حمید الله اویو څوتنه ملګري د ارګ د دیوال دیو سوري له لارې ووتل چې له هر یوه سره د سرو زرو کڅوړې وې. دسقاو زوی طالع لېترلږه دجوې حالاتو په واسطه وېښه شوی وه، سپوږمۍ په وریځو کې پټه شوې و، او هغه وکړې شو چې تېښته وکړي.

داکتوبر په ۱۵ تاریخ نادر د یوتوراس پرسیرلې کابل ته ورداخل شو، چې عسکري موزیک هم هلته غږول کیده. هغه دعیدګاه جومات په لور، چې یوه ډله ورته په انتظار کې وه، لاړ، دیرو چغې وکړې چې ته باید زموږ پاچا شې. هغه دپروتست ځینې حرکتونه اجرا کړل، مګر چغو دوام وکړ. نادر سر ټیټ کړ، بیایې جګ کړ او ویې منله.

بله ورځ د اکتوبر ۱۶، نادر خان د افغانستان پاچا اعلان کړ، هغه د یو پخوانۍ فاتح پاچا، نادر شاه، نوم پر ځان کیښود.

کله چې د سقاو زوی بیرته د کوهستان غرونو ته لاړ، د کوهستان خلکو ورباندې ګلان وشیندل. هغه د یوې مودې له پاره د کوهستان خلکو ته وقار او عزت ورپه برخه کړی و، چې هغوی هیڅ توقع نه کوله. دسقاو زوی دهغوی سوغات و.

شاولي او نادر ډیر ژر عسکر کوهستان ته واستول چې کلیو ته اور واچوي. د سقاو زوی او دهغه ملګرو د عمومي بخښنې له مخې ځانونه تسلیم کړل چې د کابل ارګ ته راوستل شول او هلته د میلمه په توګه ورسره چلند کیده.

څو ورځې وروسته نادر ټولو ته اعلان وکړ چې غواړي دسقاو زوی معاف کړي، مګر له مامورینو او قبایلي مشرانو څخه یې غوښتنلیکونه ترلاسه کړل چې په کې هیله څرګنده شوې وه چې «دغه خاینان مړ ته په لاس راکړي چې له منځه یې یوسو.»

د سقاو زوي لـه خپلـو ملګـرو سره د شیر پور هوایي ډګرته یو وړل شول چې ډیر قبایلیان پـه هغـه ځـای کې انتظار کې وو، وزیر، مـسـود، منګل، ځدران او دوړ، دوی تـه وویل شـو: «دغـه دی د سقـاو زوی. دا سـتـاسو کـار دی چې وژني یې او یا یې معـافـوی.» وزیر وویل چې مور یې معـافـولی نه شو او ځـاځي دی باید دهغـه د اجل پریکړه وکړي. ځـاځي وویل دا په وزیر پوري اړه لري.

لیکن دوی د موضـوع د عملي کولو خلک وو، ځینو وزیرو خپلې تمانچې وایستلې، باران ورید، او دوی په ختیو کې سوبیدل، لیکن کولي شول صحیح ډزې وکړي. هغوی دسقاو پر زوی باندې ډزې وکړې. د توپکو نو نوری ډزې هم وشوی. حمیـد الله، شیر جان او څـارلس تنه نور کسان ووژل شول.

د دوی مړی دری ورځې پرپایو باندې ځړول شوی ووچې خلک یې ووینې. ددغو مړو څخه عکسـونه واخیستل شول چې وروسـته تر هغـه دځلورو میاشـتو له پاره په پیښور کې هرچا په شپږو پیسو باندې دهغه په لیدو خوښي کوله.

خلکو ته د سقاو زوی دعکسـونو ښکاره کول دهغه د ژوند صحنې وروستی څرګندونې وې.

روسیـه بیالومړنی هیواد وچې دخپلواک افـغـانسـتـان حکومت یې په رسمیت وپیژاند. برتانویانو وویل، «که موږ یې په پیژند نه کې له بیړې څخه کار واخلو، دا به په قطعي توګـه داسې فکروشي چې نادر موږ پاچاهي ته رسولی دی، او هم څرنګه چې نادر په خپله پوره ماهر دی او پوهیږي، دا به وړته دده دهیواد والو په نظر او یاد شوروی په نظر کومه ګټه ونه لري. دهغه ګټه او زموږ ګټه - به په دې کې وي چې د حدس وهلو په حال یې پریږدو.

امان الله چې هند ته ورسید برتانویانو ته یې داسې وویل:

«زه غواړم په بولیری او ګوښه ځای کې ژوند وکړم څو افغانان پوه شي چې زه افغانستان ته نژدې نه یم او په دې توګـه وینې توبیدنه به بس شي. زه غـواړم په ایتـالیـا کې بزګـری وکـړم.»

هغه داسې هم وویل:

«زه افغـانسـتـان تـه دبیرته تلونیت بیـخې نه لرم... انقلاب داسې شیان منځ ته راوړل چې مـایې هیڅ تـوقع نـه رلودله. زه په خـارجي بـانکونـو کې یوپول هم پس انداز نـه لرم... زمـا ټوله سرمـایه هغـه څـه دی چې را سـره دی او د ۴۰۰۰۰ برتانویانو روپیـو سره مـعـادل دی، او زه مجبور یم چې دا هم له خپلو ورونیو او نورو ملګرو سره وویشم.»

ځرنګه چی امان الله خپل استقلال یی په زحمت سره له لویی برتانیی څخه لاس ته راوړی و، لویی بریتانیی د هغه له پاره د کوم مسئولیت احساس ونه کړه لکه چی د اتلسمی پیړی د شاهی پناه وړونکو له پاره یی کړی و. کله چی ورته وویل شو چی داروپا د لاری په اخوا به ورسره هیڅ مرسته ونه شی. امان الله په میړانه او په غرور سره «هرو مرو پیښیدونکی پیښه ومنله» هغه وویل، «تاسو باید پوه شی چی زه د پارس د پخوانی پاچا په شان یو بیکاره سړی نه یم او بله دا چی ماشپه او ورځ دخپلو خلکو د سوکالی له پاره کار کاوه او په خپل سقوط کی زه د وجدان ښه تسلیت لرم.» هغه وروسته خوله خلاصه کړه او څه چی یی غوښتل هغه یی وویل، «زه افسوس کوم چی ولی د روسیی د تزار په شان له خپلی ټولی کورنی سره نابود شوی نه یم! زه اوس په نظر کی لرم چی په بهرنیو هیواد ونوکی سرګردانه وګرځم.»

بیا هم هغه د ایتالیی پاچا ته دانتزیاتا (Annunziata) د کالر درلودونکی او د یو «داکازوی» په څیرو.

پاچا ویتوری امانویل (Vittore Emanele) چی په رښتیا سره یو «ښه سړی» و، ورته پنا ورکړله او دروم په ویا او رازیو (Via Drazio) کی یی ورته یو کور ورکړ. عنایت الله پارس ته تللی و، علیا حضرتی او د هغی بل زوی قسطنطنیی ته تللی وو، محمود سامی هم همداسی وکړ. امان الله او ثریا له خپلی کورنی سره په (ویا اورازیو) کی میشته شو، او هغه لوریی هم په کی شامله وه چی په هند کی زیږیدلی وه.

کله چی شاولی لندن ته د مختار وزیر په توګه ورسید، د برتانیی د بهرنیو چارو دفتر ته یی داسی وویل: «نادر جدی تصمیم لری چی امان الله ته به اجازه ورنه کړی چی بیا افغانستان ته داخل شی.»

د ۱۹۲٦ کال د اکتوبر په ۲٦، امان الله د «نادر د غصب کولو او په زور نیولو» په باره کی به پیښور ته لیکل. هغه ټکان خوړلی وچی بیرته پاچاهی ته غوښتل شوی نه و اویالی ترلیډ په هغه انتخاباتو کی د یوکاندید په توګه نیول شوی نه وچی نادر د هغه وعده ورکړی وه.

هغه ژر د نادر د دښمنی په کلک ټینګار باندی پوه شو. ولی په کابل کی په دی ګناه ترمحاکمی لاندی نیول شوی و چی د سقاو د زوی په توطئه کی یی برخه درلودله. هغه اعتراف وکړ چی له باندیت سره یی اړیکی درلودی، خو ددی خبری تایید او ملا ترییی وکړ چی په پوهی او امرونو سره به یی عمل کاوه. امان الله ددی تایید په هغه له قهره ډکو تلګرامونو کی وکړ

چی کابل ته یې کوڵاو د اثباتیه مدارک په توګه بېخي وړاندي نه شول. ولي په اته کاله بند محکوم شو، حال دا چي محمود سامي، چي همداسي مشابه تورورباندي لګول شوي و، په مرګ محکوم شو. امان الله په لېږو کلونو کي، دولي د نایب السلطنتي په وخت کي دعلني دفاداري په بنود لو سره، خپله لور، عابده، دولي زوی ته ورکوله.

په ۱۹۳۰ کال امان الله په هند کي یو لیک چاپ کړ او په خصوصي توګه یې په افغانستان کي وګرځاوه. په دي لیک کي هغه تورونه رد شوي ووچي ګوندي امان الله د هیواد زیاته سرمایه خارج ته وړي ده او دخپل اروپا د سفر په وخت کي یې دهغه ځای په بانکونو کي پټ حساب پرانیستي دی. هغه همدا راز نادر محکوم وګرځاوه چي د شورش په وخت کي دی یې تیرایستلی و او ورته ویلي یې ووچي «زه او ته دیو هدف له پاره فعالیت کوو.»

د نادر رد ځواب په داګه سره داخبار په یوه مقاله کي څرګند شو چي امان الله یې په دومره تفصیل سره محکوم کړی وچي حتی د رقاصي ایدن بای (den Bai) نوم یې ذکر کړی و، چي ۱۹۲۸ کال په جشن کي «لوڅه» ګډېدله. «کومه مادي ګټه اداري د ستګاه ته ورسیدله، چي امان الله ملکه، خپلي خوېندي او دشاهي کورني نوري ښځي یې دي ته تشویق کړي چي چادري لیري کړي، ویښتان لنډکړي او اروپایي جامي واغوندي؟... هیواد ته د پخواني پاچا په دي کار باندي هیڅ ګټه متصوره نه وه چي ویل یې دا ضرور ده چي زوم او ناوي دي له واده څخه د مخه یوله بل سره توافق ولري... هغه د زړو پر ځای د ځواني ډلي په مقرر ولو سره، په هیواد کي د کرکي او نفاق احساس ایجاد کړی و.»

دا دلویې جرګي له پاره هغه مقدماتي ترتیبات وچي نادر غوښتل خپل بري ورباندي په تصویب ورسوي. دغو ۲۸٦ کسانو د نادر په امر اعلان وکړ چي په افغانستان کي دامان الله دارایي د حکومت دارایي شوه او هم یې اعلان وکړ چي هغه دي په هیڅ شکل سره باید د خپلي دارایي ګټه ترلاسه نه کړي. لویې جرګي، له حکومتي پیسو سره د تیښتي موضوع رسمي کړه او پیشنهاد یې وکړ چي دغه پیسي او نور ارزښتمن شیان دي بیرته راوړل شي. د «تاج د جواهراتو» نوم هم یاد شوي و که څه هم افغانستان د تاج جواهرات نه درلود.

حتی په هغه وخت کي چي جرګه دایره وه، دبرتانیي د بهرنیو چارو اداري خپلو سفیرانو ته په تیوله تړي کي د زوراولیور (Zuravulior) په نوم مخصوص شفر تیراوه، دا تلګرام مکي معظمي ته دامان الله د حج د سفر د حرکت په باره کي و. برتانویانو هیڅکله له دي یاد داشت

اخیستلو څخه لاس وانه خیست چی هغه چیری دی او څه کوی، او په کابل کی برتانوی مختار وزیر، چی اوس مکونا چی و، دغه معلومات یی نادر ته تیر کړل.

نادر ښوونځی بیا پرانیستل، مگر په یو محدود شکل او یوازی د هلکانو له پاره، هغه وویل، «ترهغه چی په هیواد کی شرایط مساعد نه شی، موږ نه غواړو چی د عمومی ښوونی او روزنی په منلو سره ملایان خپه کړو.» په خپله د ملایانو یو نفر، چی شیر اغا نومیده، دعدلیی وزیر مقرر شو، یوقاتل د یو مقتول خپلوان ته وسپارل شو چی د خلکو په وړاندی دی اعدام شی، او یو سړی چی ویسکی شراب یی څښلی و، د قهرجنو ملایانو له خواد خلکو په وړاندی په دورو ووهل شو.

بیاهم، نادر مشکلات درلودل. غلزی بیا شورش وکړ، او سره له دی چی هغه شیرآغا ورته واستاوه چی ورسره خبری وکړی، خود شیرآغا پرو فاداری باندی یی اعتبار نه کاوه په دی چی د پ چاهی د ترلاسه کولو په خاطر هغه هم هیله درلودله.

شیرآغا بیا وغوښتل شو چی له هیواد څخه مکی معظمی ته لاړشی، او د نادر مرستیالانو دهغه زړه مور مجبور کړه چی د مذهبی قانون د غوښتنی له مخی دی د هغه د اجازی غوښتلو مخنیوی وکړی. څنگه چی نادر ډیر ارام شو، د شیرآغا قوت کم شو. گل آغا قاهری ته د مختار وزیر په توگه واستول شو. هاشم چی صدراعظم و، د شیرآغا ډیری فیصلی یی له منځه یووړی او دا یوه نه هیریدونکی بی عزتی و، چی حکومت په آخره کی د شیرآغا کورته عسکرو استول چی هغه فراری له خپل کور څخه ویاسی چی حضرت صاحب ورته په خپل کورکی پناه ورکړی وه.

د امان الله ځینی مامورین د نادر مامورین شول. فیض محمد چی د ښوونی او روزنی وزیرو، اوس د بهرنیو چارو وزیر مقرر شو چی یوه مهمه وظیفه وه. شیر احمد په فارس کی مختار وزیر شو او د چرخی دوه وروڼه، غلام صدیق او غلام نبی په درناوی سره په جرمنی او ترکیه کی مختار وزیران مقرر شول.

نادر د چرخی پر وروڼو باندی اعتماد نه درلود، په تیره بیا له هغه وخت نه وروسته چی غلام نبی ورته یولیک واستاوه چی په کی وریاندی تورلگول شوی و، چی پاچاهی یی په زور سره اخیستی ده. کله چی غلام نبی په ترکیه کی خپله وظیفه د څو اوونیو له پاره پریښودله، برتانویانو د افغانانو په شان زیاتی هڅی وکړی چی پوه شی هغه چیری دی.

وروسته د ۱۹۳۲ کال په اوړی کی، غلام نبی د خپلی کورنی په خاطر دوفا داری ژمنه ولیږله او اجازه یی وغوښتله چی له غلام جیلانی سره بیرته افغانستان ته راشی. نادر په غور او دقت سره ورته اجازه ورکړه، مگر غلام نبی په کابل کی ترڅارنی لاندی و.

د نومبر په اتم تاریخ نادر غلام نبی خپل دفتر ته راوغوښت او هغه اسناد او شواهد یی ورته وښودل چی د امان الله د طرفداری په توطئه کی یی دده ونډه څرگندوله. د غلام نبی عصاب خراب شو. هغه نادر ته وویل چی تا دری کاله فعالیت وکړ چی امان الله بیرته پاچاشی لیکن دهغه پرعوض تاځان پاچا کړ. نادر خپل حاضر باش ته امرو کړ چی هغه فوری له منځه یوسی. وروسته هغه له کوټی څخه دباندی ووت او دروازه لا پوری شوی نه وه چی د عسکرو د توپکو په کنداغ سره غلام نبی یی تر ضربی لاندی ونیو او دومره یی وواهه چی ځای پر ځای مړ شو.

نادر، همداسی حال کی چی کابینی، د اعیانو مجلس او د شوار مجلس ته شواهد ښکاره کړل، له ټولو دریو قدرتونو څخه یی وغوښتل چی غلام نبی د یو خاین سړی په توگه اعلان کړی. مگر څنگه چی مکونا چی ورته یادونه وکړه، دا ترتیب غلط و.

برتانویانو تبصره وکړه چی داسی یو ظالمانه عمل به عبد الرحمن له هر وخت نه زیات مقتدر گرځاوه. «مگر نادر هڅه کوی چی نور رنگونه له منځه یوسی.» او په منځ کی امان الله وجود درلود.

د تشدد او تیری لړی تر برلین پوری ورسیدله، چیری چی دنادر یوورور د یو افغانی محصل له خوا، چی امان الله ته خوشبین و، ووژل شو. د ۱۹۳۳ کال د سپتمبر په ۷ په کابل کی یو بل ځوان افغان د برتانیی نماینده گی ته ورننوت او راساً یی دبرتانیی د گاراژ امر او دوه تنه هندی مستخدمین یی ووژل. ددی په نتیجه کی د امان الله ځینی زندانی ملگری په قتل ورسول شول. یو یی غلام جیلانی او بل یی ولی نومیده چی پر دار باندی له ځړولو دمخه یی له نادر څخه وغوښتل هغه فرمان له منځه یوسی چی دده د ماشومانو ښوونه او روزنه یی منع کړی وه. دا خبره ونه منل شوه.

هغه ځوان سړی چی د برتانیی نماینده هدف نیولی و داسی ویلی وو، «داسی آوازه ده چی برتانویانو په پټه سره افغانستان خپل لاس ته راوستی دی او افغانان غولوی.» دا خبره پټه شوه او دهغه عمل ته داسی نسبت ورکړ شو چی هغه یو ناروا شرابی دی. آزاده مینه کول او یی واکه ژوند کول غواړی.

برتانویان په داسې یو موقف کې ووچې څو کاله دمخه، کله چې دورک شوي غلام نبي په لټه کې وو، توضیحات ورکړي وو:

«موږ په دې ډېره ځان حق په جانب ونه باله پوښتنه وکړو چې ممکن دهغه په خاطر موږ داسې څرګند شو چې ګوندې د افغانستان په داخلي چاروکې مو ناروا لاس وهنه کړې ده او هغې کیسې ته مورنګ ورکړی دی چې په یووخت کې خپره شوې وه چې دانګلستان حکومت د امان الله په سقوط کې پټه مرسته کړې ده، ځکه چې هغه یونا مناسب ترقي غوښتونکی پاچاو،» د برلین سفارت راپور ورکړ، او دبهرنیو چارو دفتر هغه یې داسې تایید کړ: «لکه چې تاسو وایاست، دا ډېره مهمه ده چې زموږ ګټه او علاقه دې باید غلط فهمي یا غلط تعبیر نه شي.»

# پنځه ديرشم فصل

# د ۱۹۳۳ کال د نومبر له اتم څخه

# تر حاضر وخته پوری

امان الله او ثريا خپل باقي ژوند د افغانستان په کیسو تير کړه چی خپلی لويی کورنی ته بی کولی. هغوی خپل شپږ تنه ماشومان ځان سره روم ته يوووړل، او دوه نوريی هم پيدا کړل، چی د فارسی ژبی درس بی ورکاوه.

هغوی له ايتالوی زمامدارانو سره د دوستی له لاری يو تاکلی تولينز موقف بی ځان ته غوره کړ، چی دهغوی د پخوانی پاچاهی دوره يی ورپه ياد وله. هغو خپل ټول هغه شخصی جواهرات خرڅ کړل چی له افغانستان څخه بي وړي وو. او بيايی هم پيسی نه درلودی. امان الله چی له واکمنی پرته پربل شی باندی نه پوهيـه خپله ډيره زيا ته انرژی يی د ميـزونو او چوکيو په جوړولو لګوله.

هغسی چی نادر او برتانويان داريدل، هغه په رښتيا سره توطئه وکړه. د ۱۹۳۳ کال په پای کی هغه ته دا فرصت تر لاسه کيدی شو چی د پاچا په توګه بيرته افغانستان ته لاړشی. د نوامبر په اتم تاريخ چی دغلام نبی د مړينی له کاليزی سره مصادف وه، نادر د دلکشا مانی ته لاړ چی دشاګردانو يوی ډلی ته جايزی ورکړی. په دغو شاګردانو کی يوتن (عبد الخالق) د غلام نبی دنوکرزوی و، چی د هغه په کورکی لوی شوی و، هغه له ځان سره يوتو مانچه وړی وه، چی په هغی باندی يی پرنادر دري ډزي وکړي.

د نادر مړی دوه ساعته پټ وساتل شو. په همدی وخت کی تجویز ونیول شو چی دهغه نولس کلن زوی، محمد ظاهر، پاچا شي په دی وخت کی د امان الله له پلویانو څخه کومه موثره ډله په کابل کی نه وه چی له دی موقع څخه یی استفاده کړي وای. د نادر کورنۍ تر اوسه پوری په افغانستان کی اقتدار په لاس کی لری.

د امان الله د بیا منځ ته راتلو بل ښه چانس نری واله دوهمه جگړه وه. دده دلومړی جگړې پخوانی دوست، فون هنتیگ (Von Hentig) بی فایدی هلی ځلی وکړی چی د جرمنی ملاتړ د هغه له پاره تر لاسه کړي. دوروسته له جنگ څخه امان الله پوه شو چی هغه بیا مخ ته راتلل یو خیل دی، هغه ظاهر شاه پاچا ته یو لیک واستاوه چی په هغه کی یی خپل تابعیت اعلان کړی و، کابینی دروم له سفیر څخه و اوریدل چی امان الله په ناوړو اقتصادی شرایطو کی ژوند کوی، څه پیسی یی ورته منظوری کړی.

په پای کی دهغه د افغانستان خپلوانو ته اجازه ورکړله شوه چی ورسره دی ملاقات وکړی، امان الله له هغوی سره د «د افغانستان خلک څنگه دی؟» په ویلو سره روغبر وکړ؛ یوسړی چی د دروازی په درشل کی یی ځند وکړ چی خپل بوټان پاک کړی، ثریا ورباندی غږ وکړ «او د افغانستان خاوره له خپلو بوټانو څخه مه پاکوه!

د امان الله یو خوریی د شاولی زوی، شینی را وینبی شو که گوری چی امان الله یی ترځنگ په داسی حال کی ولاړ دی په تنی یی خولی ماتی دی، خپل موتې یی کلک نیولی و، په غضب سره یی وویل، ولی، ولی، ولی؟»

کلونه تیرشول. ماشومان غټ شول. یو لوریی ډاکټره شوه، کله چی هغه د زده کړی له پاره لندن ته لاړله، سر فرانسس همفریز د امان الله لیدوته ورغی اوویی پتیله چی اوس په هغه ځای کی دبخښنی وخت را رسیدلی دی، او له میرمن همفریز څخه یی وغوښتل چی دهغی څارنه وکړی. رحمت الله، چی ولیعهد و، دوی دوکتورایی لاس ته راوړی او دهلکانو د دوښوونځیو مالک شوی و، احسان الله له ملگری ملتونو سره انجنیر شو.

محمود طرزی په قسطنطنیه کی، چی اوس د استامبول په نامه سره یادیږی، وفات شو. دهغه ورستی کلونه پر عمومی نقلیه وسایلو باندی په سپریدو او د موضوعاتو له پاره دهغو یادداشتونو په لیکلو تیر شوی ووچی هیڅ کله یی لیکلی نه وو.

عنایت الله په تهران کی د زړه د حملی په اثر په خپل باغ کی په داسی وخت کی ولوید او مړشو چی عکاسی یی کوله.

د ۱۹٦۰ کال په سر کی امان الله دخیگرد ناروغی د علاج له پاره سویز رلیند ته لاړ. هغه چی اوو، دیرش کاله د پاچا او شهزاده په توگه او یودیرش کاله دیو غریب تبعید شوی شخص په توگه ژوند کړي و، د اپریل په ۲٦ تاریخ (د ٦۸ کلو په عمر (په هغه ځای کی وفات شو. په اخری وختونو کی له هغه سره دهغه گرانه خور نور السراج، چی اوس یوه پخه ښځه وه، ملگری وه. نور السراج د هغه وروستی خبری واوریدی.

د امان الله مړی د ایتالیی د احترام گارد په واسطه تر هغی الوتکی پوری بدرگه شو چی په هغه کی افغانستان ته انتقال کیده، داسی پلان ترتیب شوی وچی په جلال آباد کی دهغه ناسکه ورونه دی دهغه تابوت قبرته وسپاری، مگر قبایلیانو هغوی بی لیری کړل او تینگار یی وکړ چی دوی په خپله د امان الله تابوت انتقالوی. ځینی په کی سنگوخیل شینواري وو. په هغه ځای کی، د خپل پلار تر څنگ، چی په نوی باغ (سراج العماره) کی و، د امان الله وروستی ارمان لږ ترسره شو. هغه د افغانستان په خاوره کی ښخ شو. له ایرو څخه شغله:

زه د امان الله د تاریخ د څیړنی له پاره په ۱۹٦۷ کال کی افغانستان ته لاړم. کابل ته می په خپله د افغانستان په اریانانومی الوتکی کی، چی د افغانستان د هوانوردی شرکت و، سفرو کړ، یوه امریکایی ښځه چی زما په څنگ کی ناسته وه، زما پام بی لاندی خواته لوی کانکریتی سړک ته واړاوه، چی له هرات څخه تر کندهار او بیا تر کابله پوری امتداد درلود او راته یی وویل چی زما زوم په هغه امریکایی شرکت کی کار کاوه چی ددی سړک یوه برخه یی جوړه کړی ده. (بله برخه یی روسانو جوړه کړه (دی ښځی وویل چی لوریی خپل زیات وخت د پروکولو (قطعه بازی)) تیراوه او ډیرلږ به یی ددی احساس کاوه چی امریکاکی نه اوسیږی.

د امریکی په کتابخانو کی امان الله دومره لږ پیژندل شوی څیره وه، چی دهغه په مورد کی مادخیالی او ډرا ماتیکی طرحو له اوټ لاین څخه پرته، لږ معلومات تر لاسه کړی وو. کله چی می واوریدل چی د امان الله د ټول تاریخ تر لاسه کول کوم ساده کارنه دی، نوپه سختی سره له الوتکی څخه راکوزه شوم. څنگه چی افغانانو و اوریدل چی زه غواړم د امان الله خان په باره کی څیړنه کوم، نو په څیر سره یی ماته وکتل او وی ویل، « ښه دی، خدای دی وکړي واقعیتونه بیان کړي. »

ډیرو وویل چی زه پوهیږم چی واقعیتونه- په هر صورت، دهغوی واقعیتونه هیڅ کله ویل شوي نه دی. په لاره کی یو ځوان سړی، چی زه یی له مغرور وپولیسو څخه وژغورلم، وویل،

«کله چې ما واوریدل چې یو نفر غواړي د امان الله په باره کې څه ولیکل، ته به تصور ونه کړې زما زړه څومره تږپږونه ووهل.»

دا دجشن وخت و، دهغه خپلواکی د نمانځلو ورځی چې امان الله د افغانستان له پاره گټلی وه. سره له دې ما د امـان الله نوم نه اوریدلو. مـا د اتشـبازي ننداره وکړه، او ددې ننداری په وروستی چاودنه کی یو کوچنی بیرغ په هوا کی ولیدل شو چې د پراشوت په ذریعـه له هوا څخه کرار کرار ښکته کیده. په ځینو بیرغونو کی دظاهر شاه پاچا عکسونه لیدل کېدل او په ځینو کی دهغـه د پلار، نادر پاچا، چې ښکلی مقبـره یې له ورا په ځلیـد له، او هغـه پارا شـوتو نه چې خلکوورته په چک چکو سره احساسات ښودل، دپښتونستان دبیرغ علامه، چې لمر د راختلو په حال کی کیدل کیده، معلومیدل. پښتونستان هغه سیمه ده چې برتانویانوورته آزاده سیمه ویلی ده او افغانانو به تل ویل چې د دوی سیمه ده. لیکن په یو بیرغ کی هم دامان الله عکس ونه لیدل شو. زه په تعجب کی شوم چې که د امان الله عکس لرونکی بیرغ په هوا کی لیدل شوی وای خلکو به څه عکس العمل ښکاره کړی وای.

امان الله تقریباً د افغـانستـان د تاریخ له کتابونو څخه له منځه وړل شوی و، مگر په بوه خاوره کی چې هلتـه په لسـو تنو کی یوازی یو تن سواد ولری، دا کـار دومره فـرق نـه کـاوه، په بازارونو کی دخلکو پر ژبو، دهغو قبایلی خلکو پر ژبو، چې دجشن سیل ته راغلی وو، امان الله صرف د افغانی نورو تاریخی څیرو په شـان ژوندی و. یوی بیسـواده ښځی مـاته وویل، «امان الله زمـوږ بهتـرین پاچا و» کـه څـه هم د بازار په زیاترو دوکـانونو کی دظاهر پاچا عکسونه په څرگند ډول لیـدل کیـدل، خو ډیرو به د امـان الله رسم شـوی وروکـی عکسـونه هم بندول. زه په جلال آباد کی څو واری دده قبر ته لاړم، هغه د خپل پلار تر څنگ ښخ دی او قبر یې چې له سمنتو څخه جوړ شوی دی، نیم استوانه یی شکل لری. همداسی دنیم استوانی په شکل د عنایت الله قبر هم و، پر یوه قبربـاندی هم نوم لیدل کېده، مـاته داسی وویل شو چې هر څوک پوهیږی چې څوک دلته ښخ دی. هر ځلی چې ماله قبر څخه لیدنه کوله، یو تازه گل به می دامان الله اویل به می دامیر حبیب الله پر قبر باندی لیدل. عنایت الله به لاد پامـه غورځیده. زه یو ځلی په سپیده چاودکی لاړم، چې خلک په هغه ځای کی په دوعاکولو بوخت وو، او مـاته یی اشاره وکړه چې بوټان وباسم، دا هغه قبایلی خلک وو چې امان الله یی له تخت څخه غورځولی و.

د امان الله د قضیـو په باب ټولو افغـانانو یوه مفکوره لرلـه: هغـه دا چې برتانویانو په

مشوری سره توطئه جوړه کړي وه چی دهغه له شره ځخه ځان خلاص کړي. کله چی زه لندن ته دهندی دفتر کتابخانی ته لاړم چی دهغو وختونو اسنا دمطالعه کړم، ماوغوښتل چی هغه لیک ووینم چی: «راځئ چی دامان الله له شره ځخه ځان خلاص کړو.»

ما هیڅ شی په آسانی سره تر لاسه نکړل. د آرشیف نفرراته خبر داری راکړ چی د «جاسوسی په باره کی، د هر هغه شی په باره کی چی شخص ته یا هیواد ته تاوان ورسوی» ورپریښودل یی منع دی. په حقیقت کی ما دجاسوسی په باره کی ډیر راپورونه پیدا کړل، دجاسوسی د طریقی په باره کی او ډیر هغه اسناد می هم پیدا کړل چی په دی مطلب باندی پیل شوی وو، «درا رسیدلو معلوماتو له مخی.» اشخاصوته دمادی تاوان درسیدوله مخی، هغه یوازی پر برتانیی پوری مربوط و، نه پر کوم بل ملیت پوری.

هغه کیسه چی ماته څرګنده شوه، له هغی کیسی ځخه زیاته دقیقه او ماهرانه وه، چی ماتوقع کوله ماولیدل چی برتانویانو، پرته له دی چی امان الله یی درک کړی وای، ځنګه وکړی شول رد یی کړی، او وروسته، کله چی په ویتنام کی د امریکی د دخالت په مورد کی دپنتاګون سندونه برملاشول، مادویتنام دجمهور رئیس انګون دن دیم (Ngo, Dinh Diem) د موضوع مشابهتونه ولیدل. دامان الله سقوط د برتانیی د امپراتوری د تجزیی د جز په توګه څرګند شو، هغه تجزیه چی د کابل د برتانیی د نماینده ګی په یولیک کی په احساساتی توګه څرګنده شوه او په کی افسوس شوی و چی که یوکور چی د ۱۹۲۸ - ۲۹ کال په شورش کی وران شوی وی، بیا جوړول به یی دي ډړنه وی چی د دورو مستعملولار یوجانشین شی.

کله چی ما د خپل تحقیق به باره کی له یوه افغاني پوه سره بحث وکړ، هغه فکر نه کاوه، چی، توله کیسه راسره وه، هغه مسلمه ګڼله چی هیڅ یو ملت به خپله زیاته بی اعتباری ښکاره نه کړی. هغه، چی زما د مواد وله مخی دغه سلسله یی تعقیبوله، داسی شواهد یی ولیدل چی برتانویانو د امان الله د سقوط کنترول یی په خپل لاس کی لاره. دا هغه نتیجه ګیری وه چی د روسانو خفیه دستګاه هم له دغو شواهد وځخه کړی وه، ځکه دغه دستګاه اسناد په لاره ځول. په کابل کی د روسانو د جاسوسی د شبکی مشر جورج، اغاپیکوف، یادداشتونه، چی په ۱۹۳۰ کال کی چاپ شوی وو، هغه اسناد یی، چی ماپیژندل، کټ مټ رانقل کړی وو، که ځه هم تر ۱۹۶۸ کال پوری دغور او بررسی کولو په خاطر نه تر لاسه کیدل. برسیره پردی، دهغو افغانانو له جملی ځخه چی ما یی نومونه په دی دسیسه کی ذکر کړل، زما افغانی دوست

وویل، څو چی له بهر څخه د یوعالی فکر لاربښوونه نه وای، یو افغانی به هم دداسی یو پروژی د پرمخ بیولو وړنه وای.

عربی لارنس تر اوسه پوری یوه معما ده، که چیری هغه په افغانی چاروکی کوم رول نه درلودی، هغه شیان چی له موږ څخه د هغه په مورد کی غوښتنه کیږی، چی ورباندی عقیده وکړو، غیر متحمل دی، او د ننه د برتانیی په حکومت کی هم حتی په یووخت کی شک موجود و. همدا راز د خلکو یوه پوره ډله ماته یو بی معنی شی پاته کیږی: د برتانیی معمولی عسکر او مامورین ټول هغه شیان چی ماولوستل د اکسفورد او کمبرج د فارغ التحصیلا نو له خوا لیکل شوی وو چی پیسی می په خپلو سترگو په پراخه اندازه لیدلی وی، ما په کتاب کی دا ډیرلږ لوستلی دی چی یوه سړی دی دلندن له اطراف یاد برایتون له پس کو څو څخه هند ته د کارله پاره راغلی وی او بیا دی تر آخره پوری هلته د پاته کیدو په خیال کی نه وی. هغه هم مینه و.

نوزه متوجه شوم چی زما عکس تکمیل نه دی، بلکی تیاره ځایونه به د ځینو خلکو په نظر زماد ترنظر لاندی ځایونو څخه بل ډول ښکاریدل.

زه د ۱۹٦۸ کال په پسرلی کی، وروسته له هغه چی می دبرتانیی سندونه ولوستل، بیرته افغانستان ته لاړم. کله چی د امان الله فکر سره سم افغانستان می ولید، یونوی هیواد ورڅخه جوړ شوی و. ما د کابل غوړیدلی پوهنتون ولید چی داکسفورد په پوهنتون کی د هغه دبیا نی یوه موضوع وه. دا هغسی یو سفرو چی د هغه په وخت کی به یی ورځی په برکی بیولی او اوس څو ساعته په برکی نیسی. حتی ماله هارتفورد کانتکت (Hartford Counetict) څخه تر کابل پوری دجت الوتکی په سپرلی یوازی یو ځلی الوتکه بدله کړه. نوی اساسی قانون منځ ته راغلی و، چی په ۱۹٦٤ کی لیکل شوی و. د انترکانتیننتال په نوم نوی هوټل هم جوړ شوی و.

ښځو به په لویدیځو شیکو جامو کی له ماسره گپ شپ لگولو، له بلی خوا، ښځی له چادری لاندی ماته متوجه کیدلی، یوه ښځه چی چادری یی په سروه، دپان امریک د نړیوالی هوایی کرښی کڅوړه یی له ځان سره لرله.

ماد یوی ماښامنی میلمستیا په باره کی، چی لس کاله دمخه د ترقی غوښتونکی صدراعظم، داود، له خوا ترتیب شوی وه او ملکي له خپلی ښځینه میلمني سره په کی مخ لوڅي گډون کړي وه، و اوریدل، او بله ورځ سهار وختی پولیس په کوڅوکی گرځیدل چی پر هغو ښځو

باندې د تيرې مخنيوی وکړي چې که غوښتلي يې د هغوی د دې اقدام پيروي وکړي. دا مابنامني ميلمستيا د ثريا له هغې ډراماتيکې شيبې څخه يو دیرش کاله وروسته وه، چې ثريا په کې خپله چادرې ليرې کړې وه.

متحده ايالتونه د برتانيې د پخواني امپراتور رول د داسې يوې قوې په توګه غوره کړي وه چې په افغانستان کې له شوروي اتحاد سره رقابت وکړي. ليکن متحده ايالتونه هلته په سرحد کې وجود نه لري، سره له دې چې مسئوليت يې په غاړه اخيستی دی خو سرحدي شخړه پاکستان ته په ميراث پاتې کيږي. په هر حال، افغانستان، چې له هوارې نړۍ څخه يې په کروې نړۍ کې اهميت لږ دی، په هغه نړۍ کې د چنې وهلو لږ قدرت لري چې پوځي سلاح ګانې يې کولې شي په اسانۍ سره له حايلو دولتونو څخه تيرې شي. د هغو کسانو له جملې څخه لکه، کرستوف کولمب او چنګيزخان، چې افغانستان ته يې زيان رسولی، ممکن د رابرټ ګودارډ (Robert Goddard) نوم هم په دې لوی کې راشي چې راکټي الې يې اختراع کړې دي.

ثريا په ۱۹٦۸ کال د اپريل په ۲۱ تاريخ په روم کې وفات شوه. عليا حضرت، چې له امان الله څخه يې زيات ژوند وکړه څو کاله د مخه وفات شوه. عاليه، د امان الله دا کالورچې د شورش په وخت کې يې واده کړې و، تر اوسه پورې په کابل کې اوسيدله، امان الله له ايتالې څخه ورته طلاق ليږلی و، مګر عالیې بيا بيخي واده ونه کړ.

ايتالويانو، يو ځلې بيا د ثريا د مړي له پاره شاهانه ترتيبات ونيول. بيا يوې الوتکې يو تابوت کابل ته يو وړ او يوې عسکري الوتکې هغه يې جلال آباد ته وليږ داوه.

کله چې د ثريا مړی جلال آباد ته ورسيد، زه په هوايي ډګر کې وم. يو شمبرپتيکې لرونکي قبايليان هم حاضر وو، دا هغه قبايليان ووچې د ثرياد کړو وړو په واسطه تحقير شوي وو او همدوی باعث شوي وو چې ثريا تبعيد شي او په بيچاره ګی سره ژوند وکړي. کله چې د ثريا ګل پوښ تابوت له الوتکې څخه ښکته کړی شو او په هغه موټر کې چې د قران شريف آيتونه يې په ښيښه کې ليکل شوي وو، کيښودل شو، خلک ورته داحترام په توګه سلامي ودريدل.

د ثريا قبر له هغه ورځ کې د الان څخه د باندې وچې دامان الله قبر په کې و. د جلال آباد مامورين په ويره کې وو چې ځينې مظاهرې به دا ورځ خرابه کړي، يو ملا بې اختياره او په ناګهاني توګه خبرې وکړي، ليکن ددې په خاطر بې وکړي چې ثريا وستايي. د جنازې په مراسمو کې د ثريا د کورنۍ پرته نورې ښځې نه وې، او په بوره اسلامي جنازه کې داحتې يو غير

معمولي غونډې ښکاره شو. لیکن څنګه چې مهم کسان له نظره پناه شول، د زړو ښځو یوډله راغله چې چادرۍ ګانې یې په سر کړې وې او لاسونه یې دهغه چاپر قبر باندې په دوعانیولي ووچې، غوښتل یې ښځې د چادرۍ له اسارت څخه وژغورې.

د ۱۹٦۸ کال په اګست کې افغانستان د خپلې خپلواکې پنځوسمه کلیز لمانځله، ما د هغه د لیدلو توقع په ۱۹٦۹ کال کې کړې وه، مګر داسې ښکاري چې، افغانان، چې په ډیرو شیانو کې ځند راولي، د کلیزې د لمانځلو په برخه کې پیشقدمه دي.

په یو ګرم سهار باندې، د راتولید و په یوشاندار محل کې، چې له سرشناسو افغاني میرمنو او ډیپلوماتانو څخه ډک و، افغاني میرمنو خپلې ملي جامې یوازې د دې وخت له پاره په تن کړې وې او ډیپلوماتانو سپین ډیپلوماتکي لباسونه اغوستي ووچې یوازې دلومړي ځل له پاره نه وواغوستي، ظاهر د افغانستان پاچا خبرې وکړې. هغه دوه واري دامان الله نوم یاد کړ، دا د نورو له پاره یوه اشاره وه چې دهغه په مورد کې خبرې وکړي. هغه عکس د کابل په اخبارونو کې څرګند شو. له څلوېښتو کلو وروسته په رسمي توګه اعتراف وشو چې د امان الله پاچاهي وجود درلود. د یادګار څلوېښت کاله په برکې نیولې و.

ما په یوه میلمستیا کې، چې د پاچا له خوا ترتیب شوې وه، د یو زوړ سړي عکس واخیست چې پټکی یې په سر کړی و او نیولی غونډې ښکاریده، چې ممکن شیر اغا به وي، وروسته پوه شوم چې دا سړی معصوم، دشیراغا ورار و، چې له هغه سره یې دامان الله پر ضد توطئه کړې وه. په بل کال باندې، په متحده ایالتونو کې، مادښځو دلندو لمنو او نورو عصري ناوړو شیانو په مقابل کې د ملایانو د پاڅون په باب مطالب ولوستل، او لیډر یې د معصوم زوی و او له همکارانو له جملې څخه یې یود تګاب د ملازوی و، چې دسقاو زوی یې حمایه کړې و، او له هغه نه یو نسل وړاندې، امان الله د نیکه په مقابل کې جنګیدلی و. په ۱۹٦۹ کال کې دغه ملایان په غصه شوي وو، ځکه چې افغانستان، د ملګرو ملتونو په تجویز سره، دلنین سلمه کالیزه، ولمانځله، ځینې ملایان شینوارو ته لاړل چې هغوی تحریک کړي، او ونیول شول. ځینې یې چې په کابل نارامي منځ ته راوړې وه، په لاریو کې یو وړل شول.

دا کیسه مایوسه ښکاره شوه. وروسته ماولیدل چې دقوا و ډیره برخه چې د امان الله مخالفت یې کاوه په هغه پوري لږې اړیکې درلودې مګر هغسې چې د برتانیې یو مامورد کوچیانو د مهاجرت په هکله ووېل، داسې قوي وي چې حتی د پاچاهانو قدرت هم د دوی مخه ونه شو نیول.

یو سپین زیری افغان راته وویل، «د امان الله پر ضد شورش، افغانستان یی څلویست کاله شاته وغورځاوه.» ما د ۱۹۲۸ کال د جشن عکسونه په یاد راوړل، چې ثریا او نور السراج له هغو نماینده گانو سره مخ لوڅې اخیستې وو چې علاقه مند معلومیدل د ښځو له آشنا مخونو سره عکس واخلي. یو جرمني انجنیر راته وویل چې زه د کوچیانو د ښوونځیو د بیخي نوي پروژې په خاطر استخدام شوی یم. ما په یاد راوړل چې امان الله هم همداسې مکتبونه تاسیس کړي وو. کله چې ما د افغان د سلطنتي کورنۍ د یوې شهزاده گۍ عکس ولید چې په یو روغتون کې د نرس په توگه وظیفه اجرا کوي، ما په یاد راوړل چې امان الله غوښتې ووچې خپلې خویندې د قابلگۍ د زده کړې له پاره واستوي، او راضي کړې شوې وې چې د اکارد «متمدنو هیوادونو» په شاهي کورنیو کې نه دی شوی، او هم کله چې هغه یو د انگلیسي قابله یې له انگلستان څخه راوغوښتله، برتانویانو هغه په ۱۹۲۳ کال کې مجبوره کړه چې د سیاسي لوبو د لوبولو په خاطر دې بیرته لاړه شي. وروسته تر هغه امان الله مجبور شو د دې مقصد له پاره افغاني نجوني ترکیې ته ولیږي.

امان الله تل تیروتلی و، لیکن همدومره یې په مقابل کې گناه کیدله. ما د ماجراجو برتانویانو په سند ونوکې د یو نه بخښونکي خیانت په باره کې لوستلي وو، مگر په افغانستان کې مې هم د زیاتې وفا دار نمونې او مثالونه پیدا کړل.

ماته، په حقیقت کې، معلومه شوه چې د امان الله په شان د تولو خوبونو او خیالونه په ایرو کې یوه سپرغۍ شته. کوم اور چې مړ شوی وي په ایرو کې یې د اسې د اور بخرکې پاته کیږي چې په یو کولو سره یې بله لمبه ترې پورته کیدای شي. د امان الله ایره داشې لري.

پای

